# كشف الباري

عما فی

# صحیح البخاری

## کتاب الاستیذان، کتاب الدعوات، کتاب الرّقاق

**مؤلف** ← صدر وفاق المدارس مولانا سلیم الله خان مد ظله العالی
شیخ الحدیث جامعه فاروقیه کراچی
**ترتیب وتحقیق** ← مولانا ابن الحسن عباسی (مؤلف درس مقامات)
**ترجمه** ← مولانا شاه فیصل فاضل وفاق المدارس، امداد العلوم

**خصوصیات**

**جلد ⑮**

① داحادیثو تخریج
② د تعلیقات بخاری تخریج کول
③ د اسماء الرجال مختصر تعارف
④ دګرانو لغاتو لغوی صرفی او نحوی حل
⑤ ماقبل باب سره د ربط په باره کښې پوره تحقیق
⑥ د شرحې د هرې خبرې په حاشیه کښې حواله ورکول
⑦ د ترجمة الباب متعدد په بیانولو کښې پوره تحقیق
⑧ د مختلفو مذاهبو تحقیقی بیان او بیا د مذهب حنفی ترجیح
⑨ دحدیث اطراف بیانول چه په بخاری کښې داحدیث په کوم کوم ځائې کښې دې

**خورونکی** فیه: ا. کتب خانه محله جنګی پیښور
موبائل:- ۰۳۲۱۹۰۹۱۸۳۵

دکتاب نوم: کشف الباری عما فی صحیح البخاری

جلد: کتاب الاستیذان، کتاب الدعوات، کتاب الرقاق

شارح: صدر وفاق المدارس شیخ الحدیث مولانا سلیم اللہ خان مدظلہ العالی

ترتیب وتحقیق: مولانا ابن الحسن عباسی استاذ جامعہ فاروقیہ کراچی

پښتو مترجم: مولانا شاہ فیصل فاضل امداد العلوم و وفاق المدارس
ایم اے اسلامیات وعربی پیښور یونیورسټي



د ملاویدو پتې د فیصل کتب خانه پیښور څخه علاوه

- رشیدیه کتب خانه اکوړه خټک
- علمیه کتب خانه اکوړه خټک ۰۹۲۳۶۳۰۵۹۴
- مکتبه رشیدیه کوئټه ۰۸۱۲۶۶۲۲۶۳
- مکتبه عثمانیه کانسی روډ کوئټه ۰۳۰۱۳۷۳۷۰۳۰
- مکتبه یوسفیه کانسی روډ کوئټه ۰۳۲۱۰۸۲۸۹۳۰
- راشد کتب خانه چمن ۰۳۰۰۳۸۹۶۳۵۳
- مکتبه عمریه تاج میر روډ چمن بلوچستان
- مکتبه علوم اسلامیه تاج میر روډ چمن بلوچستان ۰۳۳۳۷۹۵۸۶۹۶
- مکتبه حقانیه چمن ۰۳۳۳۷۷۵۲۲۱۹
- صداقت کتب خانه قندهار افغانستان ۰۷۸۷۷۴۲۳۷۱
- مکتبهٔ رحمانیه قندهار افغانستان ۰۷۹۷۷۳۵۲۸۱
- مکتبه عبدالحي قندهار افغانستان ۰۷۰۰۸۲٤۳۳٤
- اسدالله کتب خانه قندهار افغانستان ۰۷۰۷٤۷۷٦۲۷
- مکتبهٔ غفاریه قندهار افغانستان ۰۷۰۰۳٤۱۷٤۹
- مکتبهٔ رشیدیه قندهار افغانستان ۰۷۷۲۲۱۰۷۰۹
- مکتبهٔ حبیبیه قندهار افغانستان ۰۷۹۹٤٤۷٤۱۳
- مکتبهٔ القدس قندهار افغانستان ۰۷۰۷۹٤۸۵۵۹
- قدرت کتب خانه کابل افغانستان ۰۷۹۹۲۱۹۲۰۳
- عبدالمجید کتب خانه جلال آباد ۰۷۰۸۱۹۷۷٤۹
- شاهین کتب خانه خوست افغانستان
- بلال کتب خانه خوست افغانستان
- اسلامي کتب خانه خوست افغانستان ۰۷۹۹۳۱۰۲٤۷

# فهرست مضامين

| شميره | مضمون | صفحه |
|---|---|---|

## ۸۲ کتاب الاستیذان

| شمیره | مضمون | صفحه |
|---|---|---|

## ۸۳: کتاب الدعوات (الاحادیث: ۵۹۴۵-۶۰۴۸)

| شمیره | مضمون | صفحه |
|---|---|---|

| شمیره | مضمون | صفحه |
|---|---|---|

## ۸۴: کتاب الرقاق

| شمیره | مضمون | صفحه |
|---|---|---|



## ۸۳: كتاب الرقاق

| شمیره | مضمون | صفحه |
|---|---|---|

| شمیره | مضمون | صفحه |
|---|---|---|

| شمیره | مضمون | صفحه |
|---|---|---|

بسم الله الرحمٰن الرّحيم

# ۸۲: كتاب الاستيذان

## (۱) باب بدء السلام

**د كتاب الاستيذان او كتاب الادب ترمينځه مناسبت** : امام بخارى رحمه الله فرمائى چه د كتاب الادب نه بغير كتاب الاستيذان ذكر فرمائيلې دې. چاته تلو سره د هغه نه د دننه داخليدو اجازت اخستلو استئذان وائى. او دا هم د آداب معاشرت نه يو اهم اسلامى ادب دې. خو د دې په احكاماتو كښې چونكه تفصيل دې په دې وجه امام بخارى رحمه الله د دې دپاره د مستقل كتاب عنوان اوتړلو.

**د استئذان معنى** : د استئذان معنى ده (طلب الاذن فى الدخول لمحل لا يملكه المستاذن)[1] يعنى كوم ځائې چه د انسان ملكيت نه وى هلته د داخليدو نه مخكښې اجازت طلب كولو ته استئذان وئيلې شى.

**د ترجمة الباب مقصد** : امام بخارى رحمه الله په دې كتاب كښې د ټولو نه مخكښې ترجمة الباب "باب بدء السلام" په الفاظو سره قائم كړې دې. بداء (د باء په فتحې او د دال په سكون سره) د ابتداء په معنى كښې دې[2] په دې باب كښې امام بخارى رحمه الله د سلام د ابتداء واقعه بيان كړې ده.

استئذان متصل سلام ذكر كولو سره ئې دې طرف ته اشاره اوكړه چه كوم سړې سلام نه كوى هغه ته دې دداخليدو اجازت ورنكړې شى[3] ددې تفصيل وړاندې په باب كښې راروان دې.

۵۸۷۳: حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ جَعْفَرٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ عَنْ مَعْمَرٍ عَنْ هَمَّامٍ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صلى الله عليه وسلم قَالَ: «خَلَقَ اللَّهُ آدَمَ عَلَى صُورَتِهِ، طُولُهُ سِتُّونَ ذِرَاعًا، فَلَمَّا خَلَقَهُ قَالَ اذْهَبْ فَسَلِّمْ عَلَى أُولَئِكَ النَّفَرِ مِنَ الْمَلَائِكَةِ جُلُوسٌ، فَاسْتَمِعْ مَا يُحَيُّونَكَ، فَإِنَّهَا تَحِيَّتُكَ وَتَحِيَّةُ ذُرِّيَّتِكَ. فَقَالَ السَّلَامُ عَلَيْكُمْ. فَقَالُوا السَّلَامُ عَلَيْكَ وَرَحْمَةُ اللَّهِ. فَزَادُوهُ وَرَحْمَةُ اللَّهِ، فَكُلُّ مَنْ يَدْخُلُ الْجَنَّةَ عَلَى صُورَةِ آدَمَ، فَلَمْ يَزَلِ الْخَلْقُ يَنْقُصُ بَعْدُ حَتَّى الْآنَ» [ر: ۳۱۴۸]

**ترجمه** : د سيدنا ابوهريره رضى الله عنه نه روايت دې چه رسول الله صلى الله عليه وسلم اوفرمائيل الله پاک سيدنا ادم عليه السلام په خپل صورت باندې پيدا كړو. د هغوى اوږد والې شپيته ګزه وو. چه كله الله پاک هغه پيدا كړو نو وې وئيل لاړه شه او د ناستو ملائكو دې جماعت ته سلام اوكړه او واوره

[1] فتح البارى ۳/۱۱، ارشاد السارى ۲۲۸/۱۳، عمدة القارى ۲۲۹/۲۲
[2] فتح البارى ۳/۱۱، ارشاد السارى ۲۲۸/۱۳، عمدة القارى ۱۱۶/۲۲
[3] فتح البارى ۳/۱۱، ارشاد السارى ۲۲۸/۱۳، عمدة القارى ۲۲۹/۲۲

چه هغوی څه جواب درکوی هم هغه به ستا او ستا د اولاد سلام وی. نو هغوی ئلو سره ﴿السّلام علیکم﴾ اووې. ملائکو اووې ﴿السلام علیك ورحمة الله﴾ ملائکو د ﴿ورحمة الله﴾ ضافه اوکړه پس هر هغه سړې کوم چه به جنت ته داخلیږی هغه به د سیدنا آدم علیه السلام په صورت پیدا کیږی د سیدنا ادم علیه السلام نه روستو د خلقو په قد کښې کمې شروع شو کوم چه تر اوسه پورې جاری دې

**د خلق الله ادم علی صورته تشریح** : ﴿خَلَقَ اللّٰهُ آدَمَ عَلٰی صُوْرَتِهٖ طُوْلُهٗ سِتُّوْنَ ذِرَاعًا﴾ د دې جملې په تشریح کښې د حضرات محدثینو مختلف اقوال دی:

① یو قول دا دې چه په ﴿علی صورته﴾ کښې ضمیر لفظ ادم طرف ته راجع دې او مطلب دا دې چه الله پاک سیدنا ادم علیه السلام لره د تخلیق د ابتداء نه هم د هغوی په صورت او شکل باندې پیدا کړو او د نورو انسانانو په شان د هغوی تخلیق په هغه تدریجی مراحلو باندې نه دې شوې چه په هغې کښې انسان اول یو نطفه، بیا مضغه، بیا جنین، بیا طفل، بیا صبی او بیا خوانیدو سره د خلقت مراحل پوره کوی، بلکه هغه د شروع نه د ټولو اندامونو او کامل شکل و صورت سره د شپیتو ګزو پوره انسان جوړ کړې شوې وو.[1]

د صحیح بخاری شارح علامه ابن بطال رحمه الله فرمائی چه په دې حدیث کښې د دهریه په عقیده باندې رد دې چه د انسان خلقت د اولې ورځې نه د نطفه او مضغه تدریجی مراحلو سره راروان دې. انسان د نطفې او نطفه د انسان پیداوار دې. په دې حدیث کښې صراحت راغلو چه د سیدنا آدم علیه السلام خلقت د نطفې نه نهٔ دې شوې بلکه هغه د خاورې نه په شروع کښې په خپل اصل صورت باندې پیدا کړې شوې وو.[2]

② دویم قول دا دې چه په ﴿علی صورته﴾ کښې ضمیر د لفظ الله طرف ته راجع دې، او د ﴿صورة﴾ نه مراد صفت دې. مطلب دا دې چه الله پاک سیدنا ادم علیه السلام لره په خپل صفت باندې پیدا کړو. یعنې هغه ئې د هغه صفاتو سره موصوف کړو کوم چه د الله پاک د صفاتو سورې او نظاره ده. پس الله پاک هغوی حی، عالم، قادر، مربد، متکلم، سمیع او بصیر جوړ کړو.[3]

③ دریم قول دا دې چه ضمیر د لفظ الله طرف راجع دې او د ﴿صورة﴾ نه صفت نه دې مراد بلکه صورت او هیئت مراد دې. خو د الله پاک طرف ته اضافت د تشریف او تکریم دپاره دې.[4] لکه "روح الله" او "بیت الله" کښې د روح او بیت اضافت د الله پاک طرف ته د شرف او عظمت د ظاهرولو دپاره دې، په دې صورت کښې د سیدنا آدم علیه السلام د شکل او صورت

---

[1] فتح الباری ۳/۱۱، ارشاد الساری ۲۲۸/۱۳، عمدة القاری ۲۲۹/۲۲

[2] شرح صحیح البخاری لابن بطال ۶/۹، عمدة القاری ۲۲۹/۲۲

[3] ارشادالساری ۲۲۹/۱۳، فتح الباری ٤/۱۱، شرح صحیح البخاری لابن بطال ۷/۹، عمدة القاری ۲۲۹/۲۲

[4] ارشاد الساری ۲۲۹/۹، مرقاة المفاتیح، کتاب الدیات، باب ما لا یضمن من الجنایات: ۸۵/۷، عمدة القاری ۲۲۹/۲۲_

وجاهت او لطافت او د هغوى حسن او ښكلا طرف ته اشاره كول مقصود دى چه الله پاك سيدنا ادم عليه السلام په داسې لطيف او جميل صورت باندې پيدا كړو كوم چه په اسرار او لطائف باندې مشتمل دې او كه چه هغه د خپل قدرت كامله په ذريعه د خپل طرف نه وركړې دې.[1]

**قوله: ﴿فَاسْتَمِعْ مَا يُحَيُّونَكَ فَإِنَّهَا تَحِيَّتُكَ وَتَحِيَّةُ ذُرِّيَّتِكَ﴾**: يعنى تاسو د سلام كولو نه پس واورئ چه څنګه په جواب كښې تحية پيش كوى، هم هغه به ستاسو او ستاسو د امت تحية وى. د ابوهريره رضي الله عنه په روايت كښې ﴿يجيبونك﴾ دې، يعنى هغه څنګه جواب دركوى.[2]

**طوله ستون ذراعا** يعنى د سيدنا آدم عليه السلام اوږدوالي دهغوى دپيدائش په وخت شپيتهٔ ذراع وو

**د ذراع نه څه مراد دې، د سيدنا ادم عليه السلام ذراع يا موجوده ذراع؟** زيات صحيح خبره دا ده چه د موجوده خلقو ذراع مراد دې.[3] د سيدنا آدم عليه السلام ذراع نه دې مراد[4]، او مطلب دا دې چه د سيدنا آدم عليه السلام قد په اوږد والى كښې د دې دور د خلقو د شپيتو ګزو په اندازه وو. يعنى شپيتهٔ ګزه وو. ځكه چه كه د آدم عليه السلام ذراع مراد كړې شى نو د دې مطلب به دا وى چه د هغوى ذراع د هغوى د قد د شپيتمې حصې برابر وو، كوم چه د هغوى د قد د اوږد والى او تناسب اعضاء اعتبار سره بالكل بې جوړه معلوميږى. ځكه چه ذراع عموما د انسان د ربع او څلورمې حصې برابر وى او مناسب او ښكلي هم هغه وخت لګى چه كله هغه د ربع په اندازه وى. د شپيتهٔ ګزه انسان صرف يو ګز لاسونه به بالكل هم دغه شان بې جوړه معلوميږى لكه د دې دور د شپږ فټه انسان د څلور انچو لاس به نامناسب معلوميږى. په دې وجه د ذراع نه د دې دور د عام خلقو ذراع مراد دې.[5]

**سلام د امت محمديه خصوصيت**: ﴿ ذرية ﴾ نه د سيدنا آدم عليه السلام عام ذرية نه دې مراد. بلكه صرف د امت محمديه صلى الله عليه وسلم مسلمان ذرية مراد دې.[6]

وجه دا ده چه د نورو څو رواياتو نه معلوميږى چه د سلام مشروعيت د امت محمديه صلى الله عليه وسلم خصوصيت دې

پس امام بخارى رحمه الله په الادب المفرد كښې او ابن ماجه په سنن كښې د سيده عائشه رضي الله عنها نه مرفوع روايت نقل كړې دې چه په هغې كښې دى ﴿ مَا حَسَدَتْكُمُ الْيَهُودُ عَلَى شَيْءٍ مَا حَسَدُوكُمْ عَلَى

---

[1]) ارشاد السارى ۲۲۹/۱۳، شرح صحيح البخارى لابن بطال ۸/۹، مرقاة المفاتيح، كتاب الديات، باب ما لا يضمن من الجنايات: ۹۷/۷

[2]) ارشاد السارى ۲۲۹/۱۳، فتح البارى ۴/۱۱، عمدة القارى ۲۲۹/۲۲

[3]) عمدة القارى ۲۸۷/۱۵، فتح البارى ۴۴۲/۶، تحفة البارى ۵۶/۴، الابواب والتراجم للكاندهلوى ۲۱۲/۱، مرقاة شرح مشكاة ۷۳۰/۹.

[4]) ايضا

[5]) حواله سابقه، د زيات تفصيل دپاره اوګورئ: مظاهر حق جديد (رقم الحديث: ۵۷۳۶)

[6]) ارشاد السارى ۲۲۹/۱۳، فتح البارى ۵/۱۱

السَّلَامِ وَالتَّأْمِينِ ﴾[1] يعنى يهوديان چه ځنګه په سلام او آمين وئيلو باندې تاسو سره حسد كوى. په بل څه څيز باندې داسې حسد نه كوى

هم دغه شان د سيدنا ابوذر غفارى رضی الله عنه يو اوږد مرفوع روايت امام مسلم رحمه الله نقل كړې دې.

په دې كښې دى ﴿ اول من جاء بتحية السلام ﴾[2]

يعنى د ټولو نه اول ماته د سلام ډالئ راكړې شوه.

امام بيهقى رحمه الله په شعب الايمان كښې د سيدنا ابوامامه رضی الله عنه نه مرفوعا روايت نقل كړې دې.

﴿إِنَّ اللهَ جَعَلَ السَّلَامَ تَحِيَّةً لِأُمَّتِنَا، وَأَمَانًا لِأَهْلِ ذِمَّتِنَا ﴾[3] يعنى سلام زمونږ د امت دپاره ډالئ او د اهل ذمه دپاره امان دې

په سنن ابى داؤد كښې د سيدنا عمران بن حصين رضی الله عنه نه په يو روايت كښې دى ﴿ كُنَّا نَقُولُ فِي الْجَاهِلِيَّةِ أَنْعَمَ اللهُ بِكَ عَيْنًا وَأَنْعِمْ صَبَاحًا فَلَمَّا كَانَ الْإِسْلَامُ نُهِينَا عَنْ ذٰلِكَ ﴾[4] يعنى مونږ به د جاهليت په زمانه كښې ﴿ انعم بك عينا ﴾ ستا په ذريعه دې سترګې يخې وى او ﴿ انعم صباحا ﴾ ستا سحر دې په خير وى (ښه چارې) الفاظ وئيل. د اسلام د راتلو نه پس مونږ د دې الفاظو نه منع كړې شو

د مقاتل بن حيان رحمه الله په روايت كښې دى ﴿ كانوا فى الجاهلية يقولون : حييت مساء، حييت صباحا، فغير الله ذلك السلام ﴾[5] يعنى د جاهليت په زمانه كښې به خلقو ﴿ حييت مساء او حييت صباحا ﴾ الفاظ د سترې مشى په طور وئيل چه د هغې معنى ده سحر او ماښام ژوندې اوسې. الله پاک هغه په سلام باندې بدل كړو.

**قوله:** فقال : السلام عليكم: سيدنا آدم علیه السلام ته ﴿ سلم ﴾ وئيلو شوې وو. د ﴿ السلام عليكم ﴾ الفاظ يا خو هغوى د امر د صيغې نه پخپله فهم كړل او يا الله پاک د الهام په ذريعه هغوى ته دا الفاظ اوښودل[6]

---

[1] اخرجه الامام البخارى فى الادب المفرد (مع فضل الله الصمد). باب فضل السلام. رقم الحديث: ٩٨٨. ٤٤٩/٢. واخرجه ابن ماجة فى كتاب اقامة الصلاة والسنة فيها. باب الجهر بآمين. رقم الحديث : ٧٨٦. ٢٨٧/١.

[2] اخرجه مسلم. بتغيير فى كتاب فضائل الصحابة. باب من فضائل ابى ذر رضى الله تعالى عنه. رقم الحديث ٢٤٧٣. ٤. ١٩٢١

[3] اخرجه البيهقى فى شعب الايمان. باب فى مقاربة وموادة اهل الدين. رقم الحديث ٨٧٩٨. ٤٣٦/٦.

[4] اخرجه ابوداؤد فى الادب. باب فى الرجل يقول : انعم الله بك عينا. رقم الحديث : ٥٢٢٧

[5] فتح البارى ٥/١١

[6] فتح البارى ٥/١١.

﴿السلام علیکم﴾ په الف لام سره غوره او افضل دي. که څوک بغیر د الف لام نه ﴿سلام علیکم﴾ اوائی نو هم صحیح دي (١)، په قرآن کریم کښې دی ﴿ فَقُلْ سَلَامٌ عَلَيْكُمْ كَتَبَ رَبُّكُمْ عَلَى نَفْسِهِ الرَّحْمَةَ ﴾ (٢)، په یو بل آیت کریمه کښې دی ﴿ سَلَامٌ عَلَى نُوحٍ فِي الْعَالَمِينَ ﴾ (٣)، په دواړو آیتونو کښې سلام بغیر د الف لام نه دي.

**د علیکم السلام وئیلو مطلب** که یو سړي ﴿علیکم السلام﴾ اوائی نو د راجح قول مطابق دا هم د سلام صیغه ده او په دې سره به سلام ادا شي. خو قاضی عیاض او امام غزالی رحمهما الله دې ته مکروه وئیلي دي (٤)، خو امام نووی رحمه الله فرمائی چه ﴿ والمختار لا یکره، ویجب الجواب، لانه سلام﴾ (٥)، یعنی مختار قول دا دي چه دا مکروه نه ده او د دې جواب ورکول واجب دی ځکه چه دا سلام دي.

په سنن ابی داؤد او سنن ترمذی کښې د ابو جری جابر بن سلیم الهجیمی رضی الله عنه نه روایت دي چه ﴿ أَتَيْتُ النَّبِيَّ - صلى الله عليه وسلم - فَقُلْتُ عَلَيْكَ السَّلَامُ يَا رَسُولَ اللهِ. قَالَ «لَا تَقُلْ عَلَيْكَ السَّلَامُ فَإِنَّ عَلَيْكَ السَّلَامُ تَحِيَّةُ الْمَوْتَى ﴾ (٦)، زه د رسول الله صلی الله علیه وسلم په خدمت کښې حاضر شوم او اومې وئیل ﴿علیك السلام یا رسول الله﴾ نو رسول الله صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل: ﴿علیك السلام﴾ مه وایه. ځکه چه دا د مړو تحیة دی. د دې روایت نه د ﴿علیك السلام﴾ کراهت معلومیږی.

**قوله: ﴿ فَقَالُوا السَّلَامُ عَلَيْكَ وَرَحْمَةُ اللهِ فَزَادُوهُ وَرَحْمَةُ اللهِ ﴾ :** یعنی ملائکو په جواب کښې د ﴿ ورحمة الله ﴾ اضافه اوکړه. دا اضافه کول بالاتفاق مستحب ده. که سلام کونکی ﴿ورحمة الله﴾ اووي نو په جواب ﴿ وبرکاته ﴾ اضافه مستحب ده.

**د ومغفرته ورضوانه د اضافې حکم** د ﴿ وبرکاته ﴾ نه په سلام او د هغې په جواب کښې د ﴿ومغفرته، ورضوانه﴾ اضافه مشروع ده یا نه؟ په دې سلسله کښې روایات مختلف دی امام مالک رحمه الله په موطاء کښې د سیدنا ابن عباس رضی الله عنهما روایت نقل کړې دي. په هغې کښې

---

(١) فتح الباری ٥/١١، ارشاد الساری ٢٣٠/١٣

(٢) سورة الانعام الاية : ٥٤

(٣) سورة الصافات، الاية ٧٩

(٤) ارشاد الساری ٢٣٠/١٣، فتح الباری ٥/١١

(٥) فتح الباری ٥/١١، شرح مسلم للنووی کتاب السلام ٢١٢/٢

(٦) اخرجه ابوداؤد فی ابواب السلام، باب کراهیة ان یقول : علیک السلام ٣٥١/٢، والترمذی فی ابواب الاستیذان والادب، باب ما جاء فی کراهیة ان یقول : علیک السلام مبتداء ١٠١/٢.

دى ﴿ انتھی السلام الی البرکة ﴾ يعنى په ﴿ وبرکاته ﴾ باندې سلام پوره کيږی.[1]
خو د سيدنا انس، سيدنا ابن عمر او سيدنا زيد بن أرقم ﷺ نه داسې روايات منقول دى چه په هغې کښې د ﴿ وبركاته ﴾ نه پس اضافه منقول ده.[2]

دا روايات اګر چه ضعيف دى، خو د ټولو د يوځائې کولو نه د ﴿ وبركاته ﴾ د اضافې مشروعيت ثابتيږي، پس حافظ ابن حجر رحمه الله ليکى :

﴿ وهذه الاحاديث الضعيفة، اذا انضمت قوى ما اجتمعت عليه من مشروعية الزيادة على وبركاته ﴾.[3]

دلته په روايت کښې دى چه سيدنا آدم عليه السلام ﴿ السلام عليكم ﴾ اووې او ملائکو په جواب کښې ﴿ السلام عليك ﴾ أووې. د دې نه معلومه شوه چه د سلام په جواب هم هغه صيغه استعمالولې شي کومه چه د سلام دپاره خاص ده. د کشميهنى په روايت کښې ﴿ وعليك السلام ﴾ دې.[4]
په جواب کښې که چا صرف ﴿ وعليكم ﴾ اووې نو هم کافى ده خو که ﴿ عليكم ﴾ ئې بغير د واؤ نه اووې نو د جواب دپاره به کافى نه وى.[5]

**د سلام او د هغې د جواب متعلق نور احکام:** سلام کول مسنون او جواب ورکول واجب على الکفاية دى که په جماعت کښې يو کس جواب ورکړو نو د ټولو د طرف نه به کافى شى.[6]
سلام کولو او د هغې په جواب ورکولو کښې ضرورى ده چه په دومره اوچت آواز سره وى چه نزدې کس ئې واورى. که د دې نه ئې رو اووې نو هغه شرعا کافى نه دې.[7]
د سلام جواب فورا ورکول واجب دى. که په دې کښې تاخير اوکړې شو نو ګناهګار به وى.[8]

---

[1] اخرجه الامام مالک فى الموطاء، كتاب السلام، باب العمل فى السلام، رقم الحديث : ۲. ۲. ۹۵۹. واخرجه البيهقى فى شعب الايمان، باب رد السلام، رقم الحديث : ۹۰۹۶، ۵۱۰/۶
[2] فتح البارى ۷/۱۱. عَنْ يَحْيَى بْنِ سَعِيد . أَنَّ رَجُلاً سَلَّمَ عَلَى عَبْدِ اللهِ بْنِ عُمَرَ . فَقَالَ: السَّلَامُ عَلَيْكَ وَرَحْمَةُ اللهِ وَبَرَكَاتُهُ . وَالْغَادِيَاتُ وَالرَّائِحَاتُ . فَقَالَ لَهُ عَبْدُ اللهِ بْنُ عُمَرَ : وَعَلَيْكَ أَلْفًا . ثُمَّ كَأَنَّهُ كَرِهَ ذَلِكَ. اخرجه الامام مالک فى الموطاء، كتاب السلام ۹۶۶/۲.
" عَنْ زَيْدِ بْنِ أَرْقَمَ. قَالَ: كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا سَلَّمَ عَلَيْنَا. فَرَدَدْنَا عَلَيْهِ السَّلَامَ قُلْنَا: " وَعَلَيْكَ وَرَحْمَةُ اللهِ وَبَرَكَاتُهُ وَمَغْفِرَتُهُ" اخرجه البيهقى فى شعب الايمان. فصل فى كيفية السلام وكيفية الرد. رقم الحديث : ۸۸۸۱. (۴۵۶/۶)
[3] فتح البارى ۷/۱۱
[4] فتح البارى ۶/۱۱. ارشاد السارى ۲۳۰/۱۳. عمدة القارى ۲۳۰/۲
[5] شرح صحيح مسلم للنووى كتاب السلام ۲۰۲/۲
[6] شرح صحيح مسلم للنووى كتاب السلام ۲۱۲/۲. فتاوى هندية كتاب الكراهية. الباب التاسع : ۳۲۵/۵. رد المختار. فصل فى البيع ۲۹۳/۵
[7] شرح مسلم للنووى. كتاب السلام ۲۱۳/۲. رد المختار ۲۹۳/۵. فتاوى هندية كتاب الكراهية ۳۲۶/۵.
[8] رد المختار فصل فى البيع ۲۹۳/۵

د غائب جواب كه څوک راورسوي نو د هغه په جواب كښې ﴿ وعليك وعليه السلام ﴾ الفاظ وئيل يكار دي [1]

**قوله:** فلم يزل الخلق ينقص حتى الآن: دلته ﴿ حتى ﴾ په معنى د ﴿ الى ﴾ دې او مطلب دا دې چه د شپيتو ذراع نه د انسان قامت په مزه مزه ښكته كيدلو. او تقريبا شپږ فټو نه راكوز شو. د نقص او كمى دا سلسله په هره صدئ كښې جارى وه. تردې چه د رسول الله ﷺ په زمانه باندې راتلو سره اودريده [2]

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى چه ماته په دې مقام كښې دا اشكال دې چه د هغې صحيح جواب مانه اوسه پورې اونشو. هغه دا چه دا نقص دا سلسله په هره صدئ كښې وه. د سيدنا آدم عليه السلام نه واخله تر قوم ثمود پورې، په هغې كښې هيڅ خاص كمې نشته. ځكه چه د قوم ثمود چه كوم آثار ملاؤ شوې دې چه دا كمې انتهائى كمه شوې ده. هغه خلق د انتهائى اوچت قد او قامت مالكان وو او د قوم ثمود نه پس چه تر نن پورې په انسانى قامت كښې كوم كمې راغلې دې. هغه ډير زيات دې. ځكه چه د قوم ثمود او د آدم عليه السلام په زمانه كښې ډيره فاصله ده. او د قوم ثمود نه د رسول الله ﷺ د زمانې پورې فاصله نسبتا كمه ده پس حافظ ابن حجر رحمه الله ليكى:

﴿ ويشكل على هذا ما يوجد الآن من آثار الأمم السالفة كديار ثمود فإن مساكنهم تدل على أن قاماتهم لم تكن مفرطة الطول على حسب ما يقتضيه الترتيب السابق ولا شك أن عهدهم قديم وأن الزمان الذى بينهم وبين آدم دون الزمان الذى بينهم وبين أول هذه الأمة ولم يظهر لى إلى الآن ما يزيل هذا الاشكال ﴾

د دې جواب دا كيدې شى چه په حديث كښې د ﴿ نقص ﴾ ذكر مطلق دې. د زمانې د څه مخصوص مقدار او په څه خاص تناسب سره د نقص ذكر نه دې. لهذا كه د قوم ثمود پورې نقص زيات نه شو نو دا هيڅ د اشكال خبره نه ده كه روستو زيادت شوې وى نو هيڅ د اشكال خبره نه ده

## (۲) باب

قَوْلِ اللّٰهِ تَعَالَى ( يَاأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَا تَدْخُلُوا بُيُوتًا غَيْرَ بُيُوتِكُمْ حَتَّى تَسْتَأْنِسُوا وَتُسَلِّمُوا عَلَى أَهْلِهَا ذَلِكُمْ خَيْرٌ لَكُمْ لَعَلَّكُمْ تَذَكَّرُونَ * فَإِنْ لَمْ تَجِدُوا فِيهَا أَحَدًا فَلَا تَدْخُلُوهَا حَتَّى يُؤْذَنَ لَكُمْ وَإِنْ قِيلَ لَكُمُ ارْجِعُوا فَارْجِعُوا هُوَ أَزْكَى لَكُمْ وَاللّٰهُ بِمَا تَعْمَلُونَ عَلِيمٌ * لَيْسَ عَلَيْكُمْ جُنَاحٌ أَنْ تَدْخُلُوا بُيُوتًا غَيْرَ مَسْكُونَةٍ فِيهَا مَتَاعٌ لَكُمْ وَاللّٰهُ يَعْلَمُ مَا تُبْدُونَ وَمَا تَكْتُمُونَ ).(۲) وَقَالَ سَعِيدُ بْنُ أَبِي الْحَسَنِ لِلْحَسَنِ إِنَّ نِسَاءَ الْعَجَمِ يَكْشِفْنَ صُدُورَهُنَّ

---

[1] رد المختار فصل فى البيع ٥/٢٩٤

[2] فتح البارى ٦/٤٤٣، عمدة القارى ١٥/٢٨٧، تحفة البارى ٤/٥٦، مرقاة ٩/٧٣٠

وَرَءُوسَهُنَّ قَالَ اصْرِفْ بَصَرَكَ عَنْهُنَّ. قَوْلُ اللَّهِ عَزَّ وَجَلَّ (قُلْ لِلْمُؤْمِنِينَ يَغُضُّوا مِنْ أَبْصَارِهِمْ وَيَحْفَظُوا فُرُوجَهُمْ). وَقَالَ قَتَادَةُ عَمَّا لاَ يَحِلُّ لَهُمْ (وَقُلْ لِلْمُؤْمِنَاتِ يَغْضُضْنَ مِنْ أَبْصَارِهِنَّ وَيَحْفَظْنَ فُرُوجَهُنَّ) (خَائِنَةَ الأَعْيُنِ) مِنَ النَّظَرِ إِلَى مَا نُهِيَ عَنْهُ. وَقَالَ الزُّهْرِيُّ فِي النَّظَرِ إِلَى الَّتِي لَمْ تَحِضْ مِنَ النِّسَاءِ لاَ يَصْلُحُ النَّظَرُ إِلَى شَيْءٍ مِنْهُنَّ مِمَّنْ يُشْتَهَى النَّظَرُ إِلَيْهِ وَإِنْ كَانَتْ صَغِيرَةً. وَكَرِهَ عَطَاءٌ النَّظَرَ إِلَى الْجَوَارِي يُبَعْنَ بِمَكَّةَ إِلاَّ أَنْ يُرِيدَ أَنْ يَشْتَرِيَ.

امام بخاري رحمه الله په ترجمة الباب كښې د ټولو نه اول د سورة النور درې آيتونه ذكر كړې دى چه د هغې ترجمه دا ده.

اې ايمان والو! تاسو د خپلو كورونو نه علاوه نورو كورونو ته مه داخليږئ. چه ترڅو پورې مو اجازت نه وى حاصل كړې او د هغې اوسيدونكو ته مو سلام نه وى كړې. هم دا ستاسو دپاره غوره ده چه تاسو نصيحت حاصل كړئ بيا كه تاسو په هغه كورونو كښې څوك بيا نه مومئ نو هغې ته مه ځئ چه ترڅو پورې تاسوته اجازت درنكړې شى او كه تاسو ته جواب ملاؤ شى چه واپس شئ نو واپس شئ. هم دا خبره ستاسو دپاره غوره ده او الله پاك ته ستاسو د ټولو اعمالو خبر دې.

مولانا شبير احمد عثمانى رحمه الله د دې آيتونو په تفسير كښې ليكى:

يعنى خاص د خپل اوسيدو چه ئې كوم كور دې د هغې نه سوا دې بل كور ته بغير د خبر كولو نه داخل نه شى. معلومه نه ده چه هغوى به په څه حال كښې وى او هغه وخت د چا دننه راتلل خوښوى او كه نه، لهذا دننه تلو نه مخكښې آواز وركولو سره دې اجازت حاصل كړى او د ټولو نه غوره آواز د سلام دې. په حديث كښې دى چه درې كرته دې سلام اوكړى او د داخليدو اجازت دې واخلى. كه درې كرته سلام كولو نه پس هم اجازت ملاؤ نه شى نو واپس دې لاړ شى. په حقيقت كښې دا داسې حكيمانه تعليم دې چه كه د دې پابندى اوكړې شى نو د كور والا او ملاقات كونكى دواړو دپاره غوره ده خو افسوس چه نن مسلمانان دا مفيد تعليمات پريږدى كوم چه نور قومونه هم د هغوى نه زده كولو سره ترقى كوى. (١)

**د استيذان طريقه او حكم:** د سورة النور د دې آيات مباركه نه د استيذان طريقه او حكم نسبتا په تفصيل سره بيان كړې شوې دې، چه د هغې حاصل دا دې چه انسان كله د بل سړى په كور كښې داخليدل غواړى نو هغه دې اجازت طلب كړى او د اجازت ملاويدو نه پس بيا داخل شى.

د اجازت طلب كولو په كيفيت كښې لږ شان اختلاف دې.

① د بعض علماء كرامو په نزد د استيذان صحيح صورت دا دې چه اول دې اجازت طلب كړې شى او د اجازت ملاويدو نه پس دې سلام اوكړې شى يعنى په استيذان كښې سلام مقدم دې. (٢)

(١) تفسير عثمانى: ٤٧١، سورة النور آيت نمبر ٢٧
(٢) تكملة فتح الملهم ٢٢٩/٤، شرح صحيح مسلم ٢١٠/٢، لامع الدرارى ٤٨/١٠

دا حضرات يو خو د قرآن كريم د ذكر شوي آيت كريمه نه استدلال كوي چه په هغې كښې ﴿ يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَا تَدْخُلُوا بُيُوتًا غَيْرَ بُيُوتِكُمْ حَتَّى تَسْتَأْنِسُوا وَتُسَلِّمُوا عَلَى أَهْلِهَا ﴾ په دې آيت كريمه كښې د ﴿ تستانسوا ﴾ ترجمه مفسرين حضرات په ﴿ تستاذنوا ﴾ سره كړې ده. [1] مطلب دا دې چه د چا په كور كښې د داخليدو نه مخكښې دوه كارونه كول پكار دى يو استيناس يعنى استيذان او دويم سلام. په آيت كريمه كښې استيذان په سلام باندې مقدم كړې شوې دې.

دويم دا چه دا حضرات د سيدنا ابو ايوب انصارى رضي الله عنه د روايت نه استدلال كوى كوم چه ابن ماجة په خپل سنن كښې نقل كړې دې. په هغې كښې دى ﴿ قُلْنَا: يَا رَسُولَ اللهِ، هَذَا السَّلَامُ، فَمَا الِاسْتِئْذَانُ؟ قَالَ: يَتَكَلَّمُ الرَّجُلُ تَسْبِيحَةً، وَتَكْبِيرَةً، وَتَحْمِيدَةً، وَيَتَنَحْنَحُ، وَيُؤْذِنُ أَهْلَ الْبَيْتِ ﴾ [2] يعنى يا رسول الله! دا خو سلام شو، د استيذان څه طريقه ده؟ نو رسول الله ﷺ اوفرمائيل: داسې انسان لره تسبيح او تكبير او مرئ تازه كولو سره د خپل راتلو خبر وركول پكار دى. په دې كښې دى چه د سلام نه مخكښې تسبيح وغيره لوستل، او مرئ تازه كول استيذان دې.

۲: خو د جمهور علماء كرامو په نزد د استيذان مسنون طريقه دا ده چه سلام دې په استيذان باندې مقدم كړې شى، يعنى اول دې سلام اوكړى او بيا دې كور ته د داخليدو اجازت طلب كړې شى. [3] مثلا اول دې دا اووئيلې شى ﴿ السلام عليكم ﴾ د دې نه پس دې اووئيلې شى چه: زه دننه راتلې شم؟

دا حضرات يو خو په سنن ابى داؤد كښې د ربعى د روايت نه استدلال كوى چه رسول الله ﷺ په كور كښې وو. د بنو عامر يو سړى كور ته د دننه داخليدو اجازت طلب كړو او وې وئيل ﴿ األج ﴾ (آيا زه دننه داخليدې شم) رسول الله ﷺ خپل خادم ته اوفرمائيل ﴿ اخْرُجْ إِلَى هَذَا فَعَلِّمْهُ الِاسْتِئْذَانَ فَقُلْ لَهُ قُلِ السَّلَامُ عَلَيْكُمْ أَأَدْخُلُ ﴾ يعنى دې سړى ته ور اوځه او ورته د استيذان طريقه اوښايه او اووايه چه په داسې وئيلو سره دې اجازت طلب كړى: السلام عليكم آيا زه داخليدې شم؟ هغه صاحب دا هدايت اوريدلو، پس هغوى اووې ﴿ السلام عليكم أَأَدْخُلُ ﴾ رسول الله ﷺ هغوى ته اجازت وركړو. [4]

امام بيهقى رحمه الله هم په شعب الايمان كښې د سيدنا جابر رضي الله عنه نه روايت نقل كړې دې، په هغې كښې دى: ﴿ لَا تَأْذَنُوا لِمَنْ لَمْ يَبْدَأْ بِالسَّلَامِ ﴾ [5]

---

[1] سورة النور آيت ۲۷، تفسير القرطبى ۲۱۳/۱۲، وروح المعانى ۱۳۳/۱۰، ابن كثير ۲۷۸/۳

[2] اخرجه ابن ماجة فى سننه فى كتاب الادب باب الاستيذان ۲۶۳ (اسناده ضعيف)

[3] اوګورئ: تكملة صحيح مسلم ۲۲۹/٤، شرح مسلم للنووى ۲۱۰/۲، لامع الدرارى ٤٨/١٠

[4] الحديث اخرجه ابوداؤد فى كتاب الادب، باب الاستيذان ۴۳۷/۲، (اسناده صحيح)

[5] الحديث اخرجه البيهقى فى شعب الايمان باب فى مقاربة وموادة اهل الدين، رقم الحديث ۸۸۱۶، ٤٤١/٦ (اسناده ضعيف)

یعنی څوک چه په سلام سره ابتداء نه کوی هغه ته اجازت مه ورکوئ.
امام بخاری رحمه الله هم په الادب المفرد کښې د سیدنا ابوهریره رضی الله عنه نه دغه شان روایت نقل کړې دې [1]
د دې روایاتو نه معلومیږی چه سلام په استیذان باندې مقدم دې، هر چه تعلق دې د قرآن کریم د آیت نو د هغې دا جواب کیدې شی چه هلته واؤ د جمع دپاره دې د ترتیب دپاره نه دې لکه چه په اصول فقه کښې قاعده مشهوره ده. [2]
او د سیدنا ابوایوب انصاری رضی الله عنه روایت ته حافظ ابن حجر رحمه الله ضعیف وئیلې دې [3] په دې وجه هغه د ذکر کړې شوې هغه روایاتو په مقابله کښې حجت نه دې.
بهر حال د جمهور علماء کرامو په نزد د اجازت طلب کولو مسنون طریقه هم دا ده چه اول سلام اوکړې شی، د دې نه پس دې خپل نوم اخستلو سره اجازت طلب کړې شی. خو داسې ځایونه. کورونه او ځایونه چه هلته هر سړی ته عام د ورتلو اجازت وی. مثلا مسافر خانې. اسپتال وغیره نو هلته به د استیذان ذکر شوې حکم نه وی. په آیت کریمه کښې د ﴿ بیوتا غیر مسکونة ﴾ نه هم داسې مقامات مراد دی. [4]

**قوله:** وَقَالَ سَعِيدُ بْنُ أَبِي الْحَسَنِ لِلْحَسَنِ إِنَّ نِسَاءَ الْعَجَمِ يَكْشِفْنَ صُدُورَهُنَّ وَرُؤُوسَهُنَّ قَالَ اصْرِفْ بَصَرَكَ عَنْهُنَّ: سعید بن ابی الحسن رحمه الله، د امام حسن بصری رحمه الله رور دې، هغوی د خپل رور حسن بصری رحمه الله نه تپوس اوکړو چه عجمی زنانه خپله سینه او سر ښکاره ساتی؟ امام حسن بصری رحمه الله اوفرمائیل: تاسو خپل نظر د هغوی نه بچ ساتئ او په دلیل کښې هغوی د قرآن کریم دا آیت کریمه: ﴿ قُلْ لِلْمُؤْمِنِينَ يَغُضُّوا مِنْ أَبْصَارِهِمْ وَيَحْفَظُوا فُرُوجَهُمْ ﴾ پیش کړو، په دې آیت کریمه کښې مومنانو ته د سترګو د ښکته کولو حکم کړې شوې دې.

**قول الله عزوجل:** په ترکیب کښې مرفوع هم کیدې شی، په دې صورت کښې به دا د مبتداء محذوف دپاره خبر وی او د ﴿ اقراء ﴾ فعل محذوف کیدو د وجې نه منصوب هم کیدې شی. [5]
کشمیهنی نه علاوه په نورو نسخو کښې ﴿ وقول الله ﴾ په واؤ سره دې، په دې صورت کښې به دا آیت کریمه د مستقل ترجمة الباب په حیثیت سره وی، د امام حسن بصری رحمه الله د قول

---

[1] الحديث اخرجه الامام البخارى فى الادب المفرد مع شرحه فضل الله الصمد ۵۰۵/۲ (صحيح الاسناد)
[2] كشف الاسرار ۱۰۹/۲
[3] فتح البارى ۹/۱۱ قال الحافظ : واخرج ابن ابى حاتم بسند ضعيف من حديث ابى ايوب.
[4] عمدة القارى ۲۳۱/۲۲. ارشاد السارى ۲۳۲/۱۳، د تفصیل دپاره اوګورئ : تفسير القرطبى ۲۲۱/۱۲ وروح المعانى ۱۳۷/۱۰.
[5] عمدة القارى ۲۳۱/۲۲

حصه به نه وی (١)

**قوله**: وَقَالَ قَتَادَةُ عَمَّا لَا يَحِلُّ لَهُمْ: د ﴿وَيَحْفَظُوا فُرُوجَهُمْ﴾ تفسير امام قتاده رحمه الله كړې دې چه هغه مومنين د خپلو شرمګاهونو حفاظت كوى د هغه څيزونو نه كوم چه د هغوى دپاره جائز نه دى. ابن ابى حاتم د قتاده رحمه الله دا تعليق موصولا نقل كړې دې (٢)

په سورة غافر كښې دى ﴿يَعْلَمُ خَائِنَةَ الْأَعْيُنِ﴾ خائنة الاعين د ﴿نظرة﴾ صفت دې (٣)، او د دې نه ممنوعه څيزونو طرف ته كتل مراد دى، يعنى چه د كومو څيزونو طرف ته كتل شرعا جائز نه دى. د هغې طرف ته سترګې اوچتول ﴿خائنة الاعين﴾ (د سترګو خيانت) دې

**قوله**: ﴿وَقَالَ الزُّهْرِيُّ فِي النَّظَرِ إِلَى الَّتِي لَمْ تَحِضْ مِنَ النِّسَاءِ لَا يَصْلُحُ النَّظَرُ إِلَى شَيْءٍ مِنْهُنَّ مِمَّنْ يُشْتَهَى النَّظَرُ إِلَيْهِ وَإِنْ كَانَتْ صَغِيرَةً﴾: امام محمد بن شهاب الزهرى رحمه الله فرمائى چه كومو زنانو باندې د كم عمرئ يا بودا نوب د وجې نه حيض نه راځى. هغوى ته د شهوت په نظر كتل صحيح نه دى.

دا تعليق چا موصولا نقل كړې دې دا معلومه نه شوه (٤)

**قوله**: ﴿وَكَرِهَ عَطَاءٌ النَّظَرَ إِلَى الْجَوَارِي يُبَعْنَ بِمَكَّةَ إِلَّا أَنْ يُرِيدَ أَنْ يَشْتَرِيَ﴾: امام عطاء بن ابى رباح رحمه الله به په مكه مكرمه كښې خرڅيدونكو وينځو طرف ته كتل مكروه ګڼړل. خو چه چا به اخستل غوښتل هغه به ئې د دې حكم نه مستثنى ګڼړلو.

ابن ابى شيبة رحمه الله د عطاء دا تعليق موصولا نقل كړې دې (٥)

**د ايات استيذان نه پس د تعليقات ذكر كولو مقصد**: د امام حسن بصرى. امام زهرى او امام عطاء رحمهم الله دا تعليقات د آيات استيذان نه پس ذكر كولو كښې دې خبرې طرف ته اشاره كول مقصود دى چه د استيذان د مشروعيت غرض او غاية دا دې چه بغير د اجازت نه د داخليدو په صورت كښې چه كور والا د كومو څيزونو طرف د چا كتل نه خوښوى، هغه د كتلو نه بچ كړې شى. او په دې ټولو كښې خطرناك امر پردو زنانو ته كتل دى،

پس شارحين د بخارى ليكى:

﴿وجه ذكر هذا عقيب ذكر الآيات الثلاث المذكورة الإشارة إلى أن أصل مشروعية الاستئذان الاحتراز من وقوع النظر إلى ما لا يريد صاحب المنزل النظر إليه لو دخل بلا إذن، واعظم ذلك النظر الى النساء الاجنبيات﴾ (٦)

---

(١) عمدة القارى ٢٣١/٢٢. فتح البارى ١٠/١١.

(٢) عمدة القارى ٢٣١/٢٢. فتح البارى ١٠/١١

(٣) روح المعانى. سورة غافر ٥٩/١٣. عمدة القارى ٢٣١/٢٢

(٤) تعليق التعليق كښې هم د ﴿اما قول الزهرى﴾ نه پس علامة الحذف دې. ١٢٠/٥

(٥) عمدة القارى ٢٣٢/٢٢

(٦) ارشاد السارى ٢٣٢/١٣. فتح البارى ١٠/١١. عمدة القارى ٢٣١/٢٢

۵۸۷۴: حَدَّثَنَا أَبُو الْيَمَانِ أَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ أَخْبَرَنِي سُلَيْمَانُ بْنُ يَسَارٍ أَخْبَرَنِي عَبْدُاللَّهِ بْنُ عَبَّاسٍ -رضي الله عنهما- قَالَ
أَرْدَفَ رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- الْفَضْلَ بْنَ عَبَّاسٍ يَوْمَ النَّحْرِ خَلْفَهُ عَلَى عَجُزِ رَاحِلَتِهِ، وَكَانَ الْفَضْلُ رَجُلاً وَضِيئًا، فَوَقَفَ النَّبِيُّ -صلى الله عليه وسلم- لِلنَّاسِ يُفْتِيهِمْ، وَأَقْبَلَتِ امْرَأَةٌ مِنْ خَثْعَمَ وَضِيئَةٌ تَسْتَفْتِي رَسُولَ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- فَطَفِقَ الْفَضْلُ يَنْظُرُ إِلَيْهَا، وَأَعْجَبَهُ حُسْنُهَا، فَالْتَفَتَ النَّبِيُّ -صلى الله عليه وسلم- وَالْفَضْلُ يَنْظُرُ إِلَيْهَا، فَأَخْلَفَ بِيَدِهِ فَأَخَذَ بِذَقَنِ الْفَضْلِ، فَعَدَلَ وَجْهَهُ عَنِ النَّظَرِ إِلَيْهَا، فَقَالَتْ يَا رَسُولَ اللَّهِ إِنَّ فَرِيضَةَ اللَّهِ فِي الْحَجِّ عَلَى عِبَادِهِ أَدْرَكَتْ أَبِي شَيْخًا كَبِيرًا، لاَ يَسْتَطِيعُ أَنْ يَسْتَوِيَ عَلَى الرَّاحِلَةِ، فَهَلْ يَقْضِي عَنْهُ أَنْ أَحُجَّ عَنْهُ قَالَ: نَعَمْ. «[ر: ۱۴۴۲]

دا روایت په کتاب الحج کښې تیر شوې دې، په دې کښې د سیدنا فضل بن عباس رضي الله عنهما قصه ذکر کړې شوې ده. د حجة الوداع په موقع باندې هغه رسول الله ﷺ سره په سورلئ باندې شاته ناست وو. یو زنانه د رسول الله ﷺ نه د یوې مسئلې د تپوس کولو دپاره راغله چه ډیره ښکلې وه، سیدنا فضل رضي الله عنه هغې ته کتل. رسول الله ﷺ چه کله اولیدل چه سیدنا فضل رضي الله عنه هغې ته مسلسل ګوری نو رسول الله ﷺ خپل لاس شاته بوتلو سره د فضل رضي الله عنه زنانه اونیوله او د هغه زنانه ئې د هغوی مخ واړولو.

**قوله: ﴿عَجُزِ رَاحِلَتِهِ﴾:** عجز: د عین فتحې او د جیم د ضمې سره، د سورلئ شاته حصه

**د حديث الباب نه مستفاد څو احکام** ددې حدیث نه څو خبرې معلومې شوې:

① یو دا چه په حالت د احرام کښې د زنانو دپاره د مخ داسې پرده نشته چه کپړه ئې د مخ سره اولګی.[1] خو که کپړه د مخ نه لرې کولو سره داسې زوړنده کړې شی چه مخ د خلقو نه پټ هم وی او کپړه هم د مخ سره نه لګی نو دا جائز دې بلکه هم په دې کښې احتیاط دې.[2]

**پردئ زنانه ته د کتلو حکم:** ۲: دویمه خبره ترې دا معلومه شوه چه پردئ زنانه ته په غور سره کتل جائز نه دی. سیدنا فضل بن عباس رضي الله عنهما رسول الله ﷺ د داسې کتلو نه منع کړو.

د حنابله او شوافع حضراتو په نزد پردئ زنانه ته کتل مطلقا ناجائز او حرام دی که د فتنې ویره وی او که نه وی.[3]

---

[1]) فتح الباری ۴۰۶/۳ (کتاب الحج، باب ما یلبس المحرم من الثیاب والاردیة والازر) عمدة القاری ۱۶۶/۹ (کتاب الحج باب ما یلبس المحرم من الثیابت والاردیة والازر) رد المختار، کتاب الحج، فصل فی الاحرام، مطلب فیما یحرم بالاحرام وما لا یحرم ۱۷۶/۲، وبدائع الصنائع، کتاب الحج، فصل: واما بیان ما یحظره الاحرام ومالا یحظره ۱۸۶/۲.

[2]) فتح الباری ۴۰۶/۳ (کتاب الحج، باب ما یلبس المحرم من الثیاب والاردیة والازر)

[3]) المغنی لابن قدامة ۴۰۶/۳، ما نصه: فاما نظر الرجل الی الاجنبیة من غیر سبب، فانه محرم الی جمیعها فی ظاهر کلام احمد، واما مذهب الشافعیة: فما نقله النووی فی المنهاج ما نصه: ...بقیه برصفحه آئنده...

د احنافو او مالکیانو حضراتو په نزد د پردئ ښځې مخ ته کتل جائز دی، په دې شرط چه د فتنې ویره نه وی.[1]
که د فتنې ویره وی نو بیا بالاتفاق کتل ناجائز دی او چونکه په غالب احوالو کښې د فتنې ویره وی، په دې وجه متاخرین احناف هم مطلقا د عدم جواز فتوی ورکړې دې[2]
خو د ضرورت مواقع د دې نه مستثنی دی، مثلا ډاکټر ته د علاج په وخت یا قاضی ته د

---

...بقیه ازحاشیه گذشته] ویحرم نظر فحل بالغ الی عورة حرة کبیرة اجنبیة، وکذا وجهها وکفیها عند خوف فتنة. وکذا عند الامن علی الصحیح. (وانظر تکملة الفتح ٢٦٩/٤، والفتاوی هندیة ٣٣٩/٥ ما نصه : وَاَمَّا النَّظَرُ إِلَی الْاَجْنَبِیَّات فَنَقُولُ : یَجُوزُ النَّظَرُ إِلَی مَوَاضِعِ الزِّینَة الظَّاهِرَة مِنْهُنَّ وَذَلِکَ الْوَجْهُ وَالْکَفُّ فِی ظَاهِرِ الرِّوَایَة ... واما المَالکیة : فمذهبهم ما ذکره الخرشی فی حاشیته علی مختصر الخلیل ٣٤٧/١ : وعورة الحرة مع الرجل الاجنبی جمیع بدنها حتی دلالیها؟ وقصتها، وما عدا الوجه والکفین ظاهرهما وباطنهما فیجوز النظر لهما بلا لذة ولا خشیة فتنة من غیر عذر، ولو شابة.

[1]) وفی الدر المختار ٢٦١/٥، فحل النظر مقید بعدم الشهوة. والا فحرام، وهذا فی زمانهم، واما فی زماننا فمنع من الشابة. وانظر احکام القرآن للجصاص ٤٥٦/٣، سورة احزاب.

[2]) لاندې د څو اردو فتاوی نه د دې مسئلې متعلق عبارتونه نقل کولې شی:
١: مفتی اعظم هند، مفتی کفایت الله رحمه الله فرمائی : د پردې او حجاب د حکم مدار د فتنې په ویره باندې دې او دا ظاهره ده چه په مخ باندې نظر پریوتل د فتنې په باره کښې زیات موثر دې. په هدې وجه فقهاء کرامو د مومنه حره (آزادې مسلمانې ښځې) دپاره د پردو سرو مخکښې مخ ښکاره کول ناجائز کړې دی. د ارشادات او دلالات نصوص نه د مخ د پټولو تائید کیږی او هم دا احوط او اسلم دی. پس برقع اچولو سره وتل اوفق بالشرع والحکمة دی. (کفایة المفتی ٣٩٢/٥، کتاب الحجاب)
٢: او یو دې حجاب یعنی ټولو پردو زنانو نه پرده کوم چه صرف په زنانو باندې لازم ده، په سرو باندې نه. په دې کښې د سر نه واخله تر خپو پورې سره د مخ نه ټوله حصه پټول ضروری دی. (فتاوی حقانیه ٤٨٥/٢)
٣: مولانا حکیم الامت رحمه الله فرمائی : د احادیث و آیات او روایات فقهیه نه صفا معلومیږی چه د زنانه دپاره حکم اصلی حجاب او استتار بجمیع اعضائها وارکانها ثابت دې، خو چه چرته سخت ضرورت وی یا د بوډئ کیدو د وجې نه مطلق احتمال د فتنې او اشتهاء باقی نه وی هلته د مخ او لاسونو کشف جائز دې. او هم دا مطلب دې د هغې د نه ستر کیدو (امداد الفتاوی ١٨١/٤)
٤: صاحب د احسن الفتاوی لیکی : د پردې په ثبوت کښې اوس څه امور بالاختصار بیانولې شی.
١: زنانه دپاره بغیر د ضرورت نه په برقع کښې وتل هم حرام دی. ٢: د څه اهم ضرورت دپاره په پرده کښې وتل ورله جائز دی. په دې شرط چه برقع وغیره ډولی نه وی. څه قسم خوشبوئی ئې نه وی لګولې. خبرې او چال ئې ښکلې نه وی د فتنې ویره ئې نه وی. ٣: بغیر د پردې نه بهر وتل او د غیر محرم مخکښې مخ ښکاره کول بغیر د سخت ضرورت نه حرام دی. (احسن الفتاوی ٢٢٩/٩)
٥: مولانا مفتی محمود الحسن ګنګوهی رحمه الله لیکی : معلومه شوه چه زنانو ته اصالة په کورونو کښې د اوسیدو حکم دې، که د څه حاجت د وجې نه اوځی نو مخ او سر لره پټولو سره وتل پکار دی، د لارې کتلو دپاره ورته د یوې سترګې ښکاره کولو ګنجائش دې. (فتاوی محمودیه ٤٠/١٢)
او په یو بل مقام باندې لیکی : د پردې سرې نه د مخ پټول بغیر د فساد د ویرې نه هم سوا د مستثنی مواقع نه په هر حال کښې ضروری دی. (فتاوی محمودیه ١٩٩/٥)

ګواهئ ورکولو په وخت که ضرورت وی نو د کشف وجه ګنجائش دې (لان الضرورة تبيح المحظورة)[1] یعنې د ضرورت د وجې نه ممنوع څیزونه جائز کیږی.
امام بخاری رحمه الله د آیات استیذان نه پس، د غض بصر آیاتونه او روایات ذکر کړې دی، په دې کښې دې طرف ته اشاره ده چه د استیذان یو مصلحت دا هم دې چه د نظر ممنوعه ارتکاب اونشی خکه چه پردئ زنانه ته کتل جائز نه دی او په کور کښې زنانه اکثر بې پردې وی، په دې وجه که داجازت طلب کولو نه بغیرڅوک داخل شی نو دستر ګو حفاظت به اونه شی.

۵۸۷۵: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مُحَمَّدٍ أَخْبَرَنَا أَبُو عَامِرٍ حَدَّثَنَا زُهَيْرٌ عَنْ زَيْدِ بْنِ أَسْلَمَ عَنْ عَطَاءِ بْنِ يَسَارٍ عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ - رضى الله عنه أَنَّ النَّبِيَّ - صلى الله عليه وسلم - قَالَ «إِيَّاكُمْ وَالْجُلُوسَ بِالطُّرُقَاتِ». فَقَالُوا يَا رَسُولَ اللَّهِ مَا لَنَا مِنْ مَجَالِسِنَا بُدٌّ نَتَحَدَّثُ فِيهَا. فَقَالَ «إِذَا أَبَيْتُمْ إِلاَّ الْمَجْلِسَ فَأَعْطُوا الطَّرِيقَ حَقَّهُ». قَالُوا وَمَا حَقُّ الطَّرِيقِ يَا رَسُولَ اللَّهِ قَالَ «غَضُّ الْبَصَرِ، وَكَفُّ الأَذَى، وَرَدُّ السَّلاَمِ، وَالأَمْرُ بِالْمَعْرُوفِ وَالنَّهْىُ عَنِ الْمُنْكَرِ» [ر: ۲۳۳۳]

**ترجمه**: د سیدنا ابوسعید خدری رضی الله عنه نه روایت دې چه رسول الله صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل تاسو په لارو کښې د کیناستلو نه ځان ساتئ؛ خلقو عرض اوکړو یا رسول الله صلی الله علیه وسلم: زمونږ دپاره یو بل سره په لارو کښې د خبرو کولو نه خلاصې نشته. رسول الله صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل چه هر کله ستاسو خبرې کول ضروری دی نو لارې ته د هغې حق ورکوئ. خلقو تپوس اوکړو: یا رسول الله صلی الله علیه وسلم: د لارې څه حق دې؟ رسول الله صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل: سترګې ښکته ساتل، د تکلیف ورکونکو امورو نه بندیدل، د سلام جواب ورکول، د ښه خبرو حکم کول او د بدو خبرو نه منع کول.
د حدیث مناسبت د ترجمة الباب نه واضح دې.

## (۳) بَابُ السَّلاَمُ اسْمٌ مِنْ أَسْمَاءِ اللَّهِ تَعَالَى: وَإِذَا حُيِّيتُمْ بِتَحِيَّةٍ فَحَيُّوا بِأَحْسَنَ مِنْهَا أَوْ رُدُّوهَا

حَدَّثَنَا عُمَرُ بْنُ حَفْصٍ حَدَّثَنَا أَبِي حَدَّثَنَا الأَعْمَشُ قَالَ حَدَّثَنِي شَقِيقٌ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ قَالَ كُنَّا إِذَا صَلَّيْنَا مَعَ النَّبِيِّ - صلى الله عليه وسلم - قُلْنَا السَّلاَمُ عَلَى اللَّهِ قَبْلَ عِبَادِهِ، السَّلاَمُ عَلَى جِبْرِيلَ، السَّلاَمُ عَلَى مِيكَائِيلَ، السَّلاَمُ عَلَى فُلاَنٍ، فَلَمَّا انْصَرَفَ النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - أَقْبَلَ عَلَيْنَا بِوَجْهِهِ فَقَالَ «إِنَّ اللَّهَ هُوَ السَّلاَمُ، فَإِذَا جَلَسَ أَحَدُكُمْ فِي الصَّلاَةِ فَلْيَقُلِ التَّحِيَّاتُ لِلَّهِ، وَالصَّلَوَاتُ وَالطَّيِّبَاتُ السَّلاَمُ عَلَيْكَ أَيُّهَا النَّبِيُّ وَرَحْمَةُ اللَّهِ وَبَرَكَاتُهُ، السَّلاَمُ عَلَيْنَا وَعَلَى عِبَادِ اللَّهِ الصَّالِحِينَ. فَإِنَّهُ إِذَا قَالَ ذَلِكَ أَصَابَ كُلَّ عَبْدٍ صَالِحٍ فِي السَّمَاءِ

[1] الاشباه والنظائر، القاعدة الخامسة، ص ۹۴، وقواعد الفقه ص: ۸۹

وَالأَرْضِ، أَشْهَدُ أَنْ لاَ إِلَهَ إِلاَّ اللَّهُ وَأَشْهَدُ أَنَّ مُحَمَّدًا عَبْدُهُ وَرَسُولُهُ. ثُمَّ يَتَخَيَّرُ بَعْدُ مِنَ الْكَلاَمِ مَا شَاءَ». [ر: ۷۹۷]

لفظ (السلام) د الله پاک په اسماء حسنى کښې دې. د دې معنى سلامتى ده. دلته د دې نه مراد (ذوالسلامة) دې، يعنى الله پاک د ټولو نقصاناتو او عيوبو نه منزه دې [۱]، حافظ ابن حجر رحمه الله د ابن دقيق العيد نه نقل کوى

(السلام يطلق بإزاء معان منها السلامة ومنها التحية ومنها أنه اسم من أسماء الله قال وقد يأتى بمعنى التحية محضا وقد يأتى بمعنى السلامة محضا وقد يأتى مترددا بين المعنيين كقوله تعالى ولا تقولوا لمن ألقى إليكم السلام لست مؤمنا فإنه يحتمل التحية والسلامة) [۲]،

يعنى د سلام اطلاق په ډېرو معنى باندې کيږى. سلامتى، تحيه. او د الله پاک د نوم په طور استعماليږى. کله دا صرف د سالم کېدو په معنى باندې راځى او کله صرف د تحية په معنى باندې راځى. او کله په دې کښې د دواړو معنو احتمال وى. لکه چه د قرآن کريم په آيت کښې دى (وَلَا تَقُولُوا لِمَنْ أَلْقَى إِلَيْكُمُ السَّلَامَ) دلته سلام د تحية او سلامتئ دواړو معنى لرى.

**قوله:** (وَإِذَا حُيِّيتُمْ بِتَحِيَّةٍ فَحَيُّوا بِأَحْسَنَ مِنْهَا أَوْ رُدُّوهَا): علامه عينى رحمه الله فرمائى چه امام بخارى رحمه الله په دې آيت کريمه سره اشاره فرمائيلې ده چه د تحية چه کوم عام حکم کړې شوې دې. د دې نه لفظ د سلام مراد دې. د علماء کرامو په دې باندې اتفاق دې چه په آيت کريمه کښې د تحية نه مراد سلام دې [۳]، خو ابن التين د بعض مالکيانو علماء کرامو نه نقل کړې دى چه د تحية نه هديه مراد ده [۴]، علامه قرطبى رحمه الله احنافو ته هم د دې قول نسبت کړې دې [۵]، خو علامه عينى رحمه الله د دې ترديد کړې دې او فرمائيلې ئې دى چه نسبة هذا إلى الحنفية غير صحيحة [۶]، يعنى د احنافو طرف ته د دې نسبت کول صحيح نه دى خو علامه جصاص رحمه الله په احکام القرآن کښې دا په هديه باندې محمول کړې دې [۷]

---

[۱]) عمدة القارى: ۲۳۳/۲۲، فتح البارى ۱۵/۱۱، ارشاد السارى ۲۳۵/۱۳، لسان العرب، فصل السين المهملة: ۲۹۰/۱۲، وتاج العروس، باب الميم، فصل السين ۳۳۸/۸

[۲]) فتح البارى ۱۸/۱۱، عمدة القارى ۲۳۳/۱۱

[۳]) عمدة القارى ۲۳۳/۲

[۴]) عمدة القارى ۲۳۳/۲، فتح البارى ۱۶/۱۱

[۵]) سورة النساء/۸۶، تفسير القرطبى ۲۹۸/۵، (سورة النساء) عمدة القارى ۲۳۳/۲۲، فتح البارى ۱۶/۱۱.

[۶]) عمدة القارى ۲۳۳/۲۲

[۷]) احکام القرآن للجصاص ۲۰۷/۲، سورة النساء/۸۶ علامه جصاص د هدية تصريح خو نه ده کړې خو هم د دې آيت کريمه نه په رجوع فى الهبة باندې استدلال کوى او ظاهره ده چه دا استدلال به هله صحيح وى چه کله تحية نه هدية مراد کړې شى. پس هغوى ليکى: فإذا حملنا... [بقيه برصفحه آئنده...

حاصل دا چه كه يو سړي سلام كولو سره د ﴿ السلام عليكم ﴾ الفاظ اوائي چه د جواب وركونكى دپاره مستحب دى چه د ﴿ وعليكم السلام ورحمة الله ﴾ د اضافي سره جواب وركړى فالزيادة مندوبة والمماثلة مفروضة. (١)

**د علامه ګنګوهی توجيه** : مولانا رشيد احمد ګنګوهی رحمه الله په لامع الدراری كښې په ترجمة الباب كښې د آيت كريمه د ذكر كولو يوه بله وجه ليكلې ده، پس هغوى فرمائى:

﴿ ولعل الوجه فى ايراد الاية فى هذا الباب ان المامور به من التحية ما فيه حسن، سواكان الحسن قليلا او كثيرا، كمايدل عليه قوله تعالى ﴿ باحسن منها ﴾ فان صيغة التفضيل مشعرة بزيادة الحسن فى هذا الرد، فكان دليلا على اصل الحسن فى التحية، وليس فى قولهم : السلام على الله حسن، لانقلاب المعنى، فلم يكن قائله اتيا بالمامور به لان المامور به انما يتادى اذا تضمن الحسن ولو اقل مما فى ردها ﴾ (٢)

يعنى په دې باب كښې د آيت كريمه د راوړلو وجه دا كيدې شى چه مامور به هغه تحيه ده چه په هغې كښې حسن او ښكلا وى، كه هغه حسن او ښكلا لږه وى او كه ډيره. لكه چه د الله پاک د دې ارشاد ﴿ باحسن منها ﴾ نه هم دا فهميږى، په دې كښې ﴿ احسن ﴾ د اسم تفضيل صيغه ده. كوم چه په جواب كښې د حسن په زيادت باندې دلالت كوى نو دا په دې آيت د تحيه كښې په اصل حسن او خوبئ باندې دليل شو او په ﴿ السلام على الله ﴾ وئيلو كښې هيڅ حسن نشته. ځكه چه معنى بدله شوې ده نو په دې باندې عمل كونكي به په مامور به باندې عمل كونكي نه وى ځكه چه مامور به هغه وخت ادا كيږى چه كله هغه حسن او خوبيانو لره متضمن وى. اګر چه هغه د هغه حسن نه كم تر وى كوم چه د هغې په جواب كښې دې.

شيخ الحديث مولانا محمد زكريا رحمه الله په الابواب والتراجم كښې دې توجيه ته لطيف او قوى وئيلې ده. (٣)

حديث په باب كتاب الصلاة كښې تير شوې دې (٤) په هغې كښې دى ﴿ ان الله هو السلام ﴾ په قرآن كريم كښې هم د الله پاک په اسماء حسنى كښې دا لفظ راغلې دې. سورة حشر كښې دى ﴿ الْمَلِكُ الْقُدُّوسُ السَّلَامُ الْمُؤْمِنُ الْمُهَيْمِنُ ﴾

امام بخارى رحمه الله په الادب المفرد كښې د سيدنا انس رضي الله عنه په حسن سند سره يو روايت نقل كړې

---

...بقيه ازحاشيه ګذشته] قوله تعالى وَإِذَا حُيِّيتُمْ بِتَحِيَّةٍ فَحَيُّوا بِأَحْسَنَ مِنْهَا أَوْ رُدُّوهَا على حقيقته أفاد أن من ملك غيره شيئا بغير بدل فله الرجوعَ فيه ما لمَ يثبتْ منه فهذا يدلّ على صحة قول أصحابنا فيمن وهب لغيرى ذى رحم أن له الرجوع فيها ما لم يثبت منها.

(١) تفسير ابن كثير ٥٣١/١، عمدة القارى ٢٣٣/٢٢

(٢) لامع الدرارى ٤٩/١٠، ٥٠.

(٣) الابواب والتراجم لصحيح البخارى، كتاب الاستيذان. باب السلام اسم من اسماء الله ص ١٢١.

(٤) الصحيح للبخارى، كتاب الصلاة. باب التشهد فى الآخرة، رقم الحديث ٨٣١

دې په هغې کښې دى ﴿ إِنَّ السَّلَامَ اسْمٌ مِنْ أَسْمَاءِ اللهِ تَعَالَى ، وَضَعَهُ اللهُ فِي الأَرْضِ ، فَأَفْشُوا السَّلَامَ بَيْنَكُمْ ﴾[1] ، يعنى سلام د الله پاک يو نوم دې کوم چه الله پاک په زمکه کښې کيخودلې دې.
لهذا دا خپل مينځ کښې خور کړئ.

د سيدنا ابن عباس رضي الله عنهما نه هم يو روايت موقوفا منقول دې په هغې کښې دى ﴿ السلام اسم الله، وهو تحية اهل الجنة ﴾[2] ، يعنى سلام د الله پاک نوم دې او د جنت والو تحيه ده.

## ④ باب تَسْلِيمِ الْقَلِيلِ عَلَى الْكَثِيرِ

[٥٨٧٧] (٣) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ مُقَاتِلٍ أَبُو الْحَسَنِ أَخْبَرَنَا عَبْدُ اللهِ أَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ عَنْ هَمَّامِ بْنِ مُنَبِّهٍ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ - صلى الله عليه وسلم - قَالَ «يُسَلِّمُ الصَّغِيرُ عَلَى الْكَبِيرِ، وَالْمَارُّ عَلَى الْقَاعِدِ، وَالْقَلِيلُ عَلَى الْكَثِيرِ». [٥٨٧٨ - ٥٨٨٠]

**د ترجمة الباب مقصد** : د دې ځائې نه وړاندې په څلورو واړو بابونو کښې امام بخارى رحمه الله دا بيان کړې دى چه سلام چاته کول پکار دى، پس په باب کښې ئې د سيدنا ابوهريره رضي الله عنه روايت نقل کړې دې. رسول الله ﷺ فرمائى وړوکې دې په مشر باندې. تيريدونکې دې په ناست باندې او کم خلق دې په زياتو باندې سلام کوى

﴿ يسلم ﴾ اگر چه د مضارع صيغه ده او خبر دې خو دلته د امر په معنې کښې دې. پس د مسند احمد په روايت کښې ﴿ ليسلم ﴾ د امر په صيغې سره راغلې دې.[4]

## ⑤ باب تَسْلِيمِ الرَّاكِبِ عَلَى الْمَاشِي

حَدَّثَنَا مُحَمَّدٌ أَخْبَرَنَا مَخْلَدٌ أَخْبَرَنَا ابْنُ جُرَيْجٍ قَالَ أَخْبَرَنِي زِيَادٌ أَنَّهُ سَمِعَ ثَابِتًا مَوْلَى عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ زَيْدٍ أَنَّهُ سَمِعَ أَبَا هُرَيْرَةَ يَقُولُ قَالَ رَسُولُ اللهِ - صلى الله عليه وسلم - «يُسَلِّمُ الرَّاكِبُ عَلَى الْمَاشِي، وَالْمَاشِي عَلَى الْقَاعِدِ، وَالْقَلِيلُ عَلَى الْكَثِيرِ». [ر: ٥٨٧٧]

---

[1]) الادب المفرد (مع فضل الله الصمد) باب السلام من اسماء الله عزوجل. رقم الحديث. ٩٨٩. (٤٤٩/٢)

[2]) شعب الايمان للبيهقى. فصل فى سلام من دخل بيته او بيتا ليس فيه احد. رقم الحديث : ٨٨٣٥ (٤٤٦/٦)

[3]) الحديث، اخرجه البخارى ايضا فى كتاب الاستئذان. باب يسلم الراكب على الماشى (رقم الحديث ٥٨٧٨). وكذا فى باب يسلم الصغير على الكبير. (رقم الحديث ٥٨٨٠) واخرجه مسلم فى كتاب السلام. باب يسلم الراكب على الماشى والقليل على الكثير ١٧٠٣/٤ (رقم الحديث ٢١٦٠) واخرجه الترمذى فى كتاب الاستئذان. باب ما جاء فى تسليم الراكب على الماشى. ٦٢/٥. (رقم الحديث : ٢٧٠٤) واخرجه ابو داؤد فى ابواب الاستئذان. باب من اولى بالسلام : ٣٥١/٤ (رقم الحديث : ٥١٩٨)

[4]) مسند الامام احمد بن حنبل مرويات ابى هريره رضى الله عنه ٣١٤/٢

سورلئ باندې سور سړې دې په پیدل تلونکي باندې سلام اوکړي. سلام په اصل کښې د تواضع هم علامت دې او د سور حالت د تواضع زیات محتاج دې ځکه چه د سورلئ د وجې نه په زړه کښې تکبر راتلې شي (۱)

## ⑥ باب تَسْلِيمِ الْمَاشِي عَلَى الْقَاعِدِ

[۵۸۷۹] حَدَّثَنَا إِسْحَاقُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ أَخْبَرَنَا رَوْحُ بْنُ عُبَادَةَ حَدَّثَنَا ابْنُ جُرَيْجٍ قَالَ أَخْبَرَنِي زِيَادٌ أَنَّ ثَابِتًا أَخْبَرَهُ - وَهُوَ مَوْلَى عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ زَيْدٍ - عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ - رضى الله عنه - عَنْ رَسُولِ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - أَنَّهُ قَالَ «يُسَلِّمُ الرَّاكِبُ عَلَى الْمَاشِي وَالْمَاشِي عَلَى الْقَاعِدِ، وَالْقَلِيلُ عَلَى الْكَثِيرِ»

روان سړې به په ناست باندې سلام کوي، ګویا سلام کول د تلونکي سړي وظیفه ده که تلونکي زیات وي او ناست کم وي نو په دې صورت کښې به څه کولې شي؟ د مشی په اعتبار سره سلام ماشی له کول پکار دی خو د قلة په حیثیت سره که اوکتلې شی نو سلام قاعد له کول پکار دی.

د دې جواب علامه کرمانی رحمه الله دا کړې دې چه په داسې صورت کښې دواړه برابر دی. چه څوک هم ابتداء بالسلام اوکړي. هم هغه به غوره وي. (۲)

په دې کښې دې د دومره خبرې لحاظ اوساتلې شي چه په یو جماعت باندې سلام اوکړې شو نو د ټول جماعت جواب ورکول ضروري نه دی. که په جماعت کښې یو هم جواب ورکړو نو د ټولو د طرف نه به کافي شي.

## ⑦ باب تَسْلِيمِ الصَّغِيرِ عَلَى الْكَبِيرِ.

[۵۸۸۰] وَقَالَ إِبْرَاهِيمُ عَنْ مُوسَى بْنِ عُقْبَةَ عَنْ صَفْوَانَ بْنِ سُلَيْمٍ عَنْ عَطَاءِ بْنِ يَسَارٍ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - «يُسَلِّمُ الصَّغِيرُ عَلَى الْكَبِيرِ، وَالْمَارُّ عَلَى الْقَاعِدِ، وَالْقَلِيلُ عَلَى الْكَثِيرِ» [ر: ۵۸۷۷]

په دې باب کښې امام بخاری رحمه الله دا ادب بیانول غواړي چه ماشوم دې مشر ته سلام کوي ګویا په سلام کښې ماشوم له ابتداء کول پکار دی.

## ⑧ باب إِفْشَاءِ السَّلاَمِ

[۵۸۸۱] حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ حَدَّثَنَا جَرِيرٌ عَنِ الشَّيْبَانِيِّ عَنْ أَشْعَثَ بْنِ أَبِي الشَّعْثَاءِ عَنْ مُعَاوِيَةَ بْنِ سُوَيْدِ بْنِ مُقَرِّنٍ عَنِ الْبَرَاءِ بْنِ عَازِبٍ - رضى الله عنهما - قَالَ أَمَرَنَا رَسُولُ اللَّهِ - صلى

---

(۱) ارشاد الساری ۲۸/۱۳. فتح الباری باب یسلم الصغیر علی الکبیر ۱۸/۱۱

(۲) شرح الکرمانی: ۷۸/۲۲. ارشاد الساری: ۲۳۸/۱۳. ۲۳۹-

اللہ علیہ وسلم - بِسَبْعٍ بِعِيَادَةِ الْمَرِيضِ، وَاتِّبَاعِ الْجَنَائِزِ، وَتَشْمِيتِ الْعَاطِسِ، وَنَصْرِ الضَّعِيفِ، وَعَوْنِ الْمَظْلُومِ، وَإِفْشَاءِ السَّلَامِ، وَإِبْرَارِ الْمُقْسِمِ، وَنَهَى عَنِ الشُّرْبِ فِي الْفِضَّةِ، وَنَهَانَا عَنْ تَخَتُّمِ الذَّهَبِ، وَعَنْ رُكُوبِ الْمَيَاثِرِ، وَعَنْ لُبْسِ الْحَرِيرِ، وَالدِّيبَاجِ، وَالْقَسِّيِّ، وَالإِسْتَبْرَقِ. [ر: ۱۱۸۲]

**د ترجمة الباب مقصد** په دې باب کښې امام بخاری رحمه الله د سلام خورولو فضيلت او اهميت بيانول غواړی.

حديث الباب د دې خائې نه مخکښې په څو مقاماتو باندې تير شوې دې [۱] په دې کښې رسول الله ﷺ چه د کومو اووه څيزونو حکم کړې دې، په هغې کښې يو د سلام خورول هم دی. سلام خپل مينځ کښې د محبت پيدا کولو ذريعه ده او د اسلامی معاشرې يو امتيازی وصف دې د سلام په فضيلت باندې ډير احاديث راغلی دی. [۲]

---

[۱]) الحديث اخرجه البخاری فی كتاب الجنائز، باب الامر باتباع الجنائز، رقم الحديث، ۱۲۳۹، واخرجه ايضا فی كتاب النكاح، باب حق اجابة الوليمة والدعوة ومن اولم سبعة ايام ونحوه رقم الحديث ۵۱۷۵، واخرجه فی كتاب الاشربة، باب انية الذهب والفضة، رقم الحديث ۵۶۳۵، وايضا اخرجه فی كتاب المرضى، باب وجوب عيادة المريض رقم الحديث ۵۶۴۹، وفی كتاب اللباس باب الميثرة الحمراء رقم الحديث ۵۸۴۹، وباب خواتيم الذهب رقم الحديث ۵۸۶۳، وفی كتاب الادب باب تشميت العاطس اذا حمد الله، رقم الحديث ۶۳۲۲، وفی كتاب المظالم والغصب، باب نصر المظلوم، رقم الحديث ۲۴۴۵، وفی كتاب اللباس، باب لبس القسی رقم الحديث ۵۸۳۸.

[۲]) چه د هغې نه بعض دلته نقل کولې شی:

۱ عَنْ عِمْرَانَ بْنِ حُصَيْنٍ، قَالَ: كُنَّا جُلُوسًا عِنْدَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَجَاءَ رَجُلٌ. فَقَالَ: السَّلَامُ عَلَيْكُمْ. فَرَدَّ عَلَيْهِ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَقَالَ: " عَشْرٌ ". ثُمَّ جَاءَ آخَرُ فَقَالَ: السَّلَامُ عَلَيْكُمْ وَرَحْمَةُ اللهِ. فَرَدَّ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَقَالَ: " عِشْرُونَ ". ثُمَّ جَاءَ آخَرُ فَقَالَ: السَّلَامُ عَلَيْكُمْ وَرَحْمَةُ اللهِ وَبَرَكَاتُهُ. فَرَدَّ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَقَالَ: "ثَلَاثُونَ" (شعب الايمان للبيهقی ۶/ ۴۵۴، باب فی موادة ومقاربة اهل الدين)

۲ وَقَالَ عَمَّارٌ ثَلَاثٌ مَنْ جَمَعَهُنَّ فَقَدْ جَمَعَ الإِيمَانَ الإِنْصَافُ مِنْ نَفْسِكَ وَبَذْلُ السَّلَامِ لِلْعَالَمِ وَالإِنْفَاقُ مِنَ الإِقْتَارِ. (صحيح البخاری ۱/ ۹ كتاب الايمان، باب افشاء السلام من الاسلام فوق رقم الحديث: ۲۸)

۳ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: وَالَّذِي نَفْسِي بِيَدِهِ لَا تَدْخُلُوا الْجَنَّةَ حَتَّى تُؤْمِنُوا، وَلَا تُؤْمِنُوا حَتَّى تَحَابُّوا، أَلَا أَدُلُّكُمْ عَلَى أَمْرٍ إِذَا أَنْتُمْ فَعَلْتُمُوهُ تَحَابَبْتُمْ؟ أَفْشُوا السَّلَامَ بَيْنَكُمْ. (الجامع الصحيح للترمذی ۵/ ۵۳ كتاب الاستئذان، باب ما جاء فی افشاء السلام، رقم الحديث ۲۶۸۸)

۴ عَنْ مَالِكٍ، عَنْ إِسْحَاقَ بْنِ عَبْدِ اللهِ بْنِ أَبِي طَلْحَةَ، أَنَّ الطُّفَيْلَ بْنَ أُبَيِّ بْنِ كَعْبٍ، أَخْبَرَهُ أَنَّهُ كَانَ يَأْتِي عَبْدَ اللهِ بْنَ عُمَرَ فَيَغْدُو مَعَهُ إِلَى السُّوقِ، قَالَ: فَإِذَا غَدَوْنَا إِلَى السُّوقِ، لَمْ يَمُرَّ عَبْدُ اللهِ بْنُ عُمَرَ عَلَى سَقَّاطٍ، وَلَا صَاحِبِ بِيعَةٍ، وَلَا مِسْكِينٍ، وَلَا أَحَدٍ إِلَّا سَلَّمَ عَلَيْهِ. قَالَ الطُّفَيْلُ: فَجِئْتُ عَبْدَ اللهِ بْنَ عُمَرَ يَوْمًا فَاسْتَتْبَعَنِي إِلَى السُّوقِ، فَقُلْتُ لَهُ: وَمَا تَصْنَعُ فِي السُّوقِ؟ وَأَنْتَ لَا تَقِفُ عَلَى الْبَيِّعِ، وَلَا تَسْأَلُ عَنِ السِّلَعِ، وَلَا تَسُومُ بِهَا، وَلَا تَجْلِسُ فِي مَجَالِسِ السُّوقِ؟ قَالَ: وَأَقُولُ اجْلِسْ بِنَا هَاهُنَا نَتَحَدَّثُ. قَالَ فَقَالَ لِي عَبْدُ اللهِ بْنُ عُمَرَ: يَا أَبَا بَطْنٍ وَكَانَ الطُّفَيْلُ ذَا بَطْنٍ إِنَّمَا نَغْدُو مِنْ أَجْلِ السَّلَامِ، نُسَلِّمُ عَلَى مَنْ لَقِينَا. (الموطاء للامام محمد ۳۸۴، ۳۸۵ باب رد السلام)

...[بقيه برصفحه آئنده...

# ⑨ باب السلام للمعرفة وغير المعرفة.

۵۸۸۲ | حدثنا عبد الله بن يوسف حدثنا الليث قال حدثني يزيد عن أبي الخير عن عبد الله بن عمرو أن رجلا سأل النبي - صلى الله عليه وسلم - أي الإسلام خير قال « تطعم الطعام، وتقرأ السلام على من عرفت، وعلى من لم تعرف ». [ر: ۱۲]

۵۸۸۳ | حدثنا علي بن عبد الله حدثنا سفيان عن الزهري عن عطاء بن يزيد الليثي عن أبي أيوب - رضى الله عنه - عن النبي - صلى الله عليه وسلم - قال « لا يحل لمسلم أن يهجر أخاه فوق ثلاث، يلتقيان فيصد هذا، ويصد هذا، وخيرهما الذي يبدأ بالسلام ». وذكر سفيان أنه سمعه منه ثلاث مرات. [ر: ۵۷۲۷]

**د سلام متعلق څو امور** : د سلام متعلق دي د څو امورو لحاظ او ساتلي شي:

① راتلونكى كه زيات وى او په هغوى كښې يو كس سلام اوكړو نو هغه به د ټولو د طرف نه كافى شى. كينې ټول به ګناهګار وى. هم دا حكم د جواب وركونكو هم دي (۱)

② سلام كول سنت او د هغې جواب وركول واجب دى. علامه ابن عبدالبر په دې باندې اجماع نقل كړې ده (۲)

③ د سلام كولو كم از كم درجه دا ده چه د سلام كونكى او جواب وركونكى آواز واورى. د آواز نه بغير صرف په لاس يا سر خوزولو سره به د سلام سنت نه ادا كيږى (۳) هم دغه شان جواب فورا وركول واجب دى. كه فورا ئي جواب ورنكړو او د نورو اعمالو نه فارغ كيدو نه پس ئي جواب وركړو نو واجب به نه ادا كيږى (۴)

④ په كافر باندې سلام كول جائز نه دى، كه يو كافر په مسلمان باندې سلام اوكړو نو په جواب كښې به صرف ﴿وعليكم﴾ وئيلې شى. ﴿وعليكم السلام﴾ دې نه وائى (۵)

---

...بقيه ازحاشيه ګذشته]

۵ عن عبد الله قال: إن السلام اسم من أسماء الله. وضعه الله في الأرض. فأفشوه بينكم. (الادب المفرد (مع فضل الله الصمد) ۴۸۷/۲)

۶ عن ابن عمر عن النبى صلى الله عليه وسلم قال إن سركم أن يخرج الغل من صدور كم فافشوا السلام بينكم. (احكام القرآن للجصاص: ۴۵۳/۳، سورة النور/۲۷)

(۱) شرح مسلم للنووى. كتاب الاستئذان ۲۱۲/۲

(۲) شرح مسلم للنووى. كتاب الاستئذان ۲۱۲/۲ ورد المختار. كتاب الحظر والاباحة ۲۹۳/۵

(۳) شرح مسلم للنووى. كتاب الاستئذان ۲۱۳/۲ وردالمختار. كتاب الحظر والاباحة ۲۹۳/۵ فتح البارى ۱۶/۱۱

(۴) شرح مسلم للنووى. كتاب الاستئذان ۲۱۳/۲ وردالمختار. كتاب الحظر والاباحة ۲۹۳/۵، فتح البارى ۱۶/۱۱

(۵) شرح مسلم للنووى. باب النهى عن ابتداء اهل الكتاب بالسلام وكيف يرد عليهم ۲۱۳/۲ ورد المختار. كتاب الحظر والاباحة ۲۹۲/۵

د جمهور علماء کرامو هم دا مسلک دې چه په کافر او ذمی باندې دې سلام اونکړې شی. د بعض علماء کرامو په نزد په ذمیانو باندې سلام کول جائز دی.[1]

⑤ سړې دې په پردئ زنانه باندې سلام نه کوی، هم دغه شان دې ښځه په پردی سړی سلام نه کوی.[2] په بعض فاسقانو باندې هم د سلام نه احتراز کولو باره کښې فقهاء کرامو تصریح کړې ده مثلا شرابی او لوفر انسان ته سلام نه کول افضل دی.[3] د سیدنا عبدالله بن عمر رضي الله عنهما قول دې. (لا تسلموا على شراب الخمر)[4]

په ماشومانو باندې سلام کول جائز دی ځکه چه دغه شان به د هغوی تربیت کیږی. خو که یو ماشوم داسې حالت کښې دې چه په هغه باندې سلام کولو سره په فتنه کښې د اخته کیدو ویره ده نو بیا سلام ترک کول پکار دی.[5]

⑥ په بعض صورتونو کښې د سلام حکم نه لاګو کیږی، مثلا څوک خوراک کوی یا اوبه څکی یا په بیت الخلاء او غسل خانه کښې دې. یا اودهٔ دې یا په مانځه کښې مصروف دې یا په مطالعه کښې مشغول دې نو په دې صورتونو کښې سلام نه دی کول پکار[6]

خو که څوک خوراک څکاک ته ناست دې خو نمرئ ئې لا په خوله کښې نه ده نو په داسې صورت کښې سلام کیدلې شی.[7]

په حمام کښې دننه که ئې لنګ په بدن باندې دې نو په هغه باندې سلام کیدلې شی خو که د لنګ نه بغیر دې نو بیا پرې سلام کول جائز نه دی.[8]

---

[1] رد المختار. كتاب الحظر والاباحة ۲۹۲/۵

[2] رد المختار. كتاب الحظر والاباحة ۲۶۱/۵، شرح مسلم للنووی، باب استحباب السلام على الصبيان ۲۱۵/۲، مرقاة شرح مشكاة كتاب الادب ۵۰/۹

[3] رد المختار. كتاب الحظر والاباحة ۲۹٤/۵

[4] الادب المفرد (مع فضل الله الصمد) ٤۷۲/۲

[5] عمدة القارى ۲٤۳/۲۲، فتح البارى. كتاب الاستئذان، باب التسليم على الصبيان: ۳۹/۱۱

[6] رد المختار كتاب الحظر والاباحة ۲۹۵/۵، كتاب الصلاة باب ما يفسد الصلاة وما يكره ٤۵۶/۱.

[7] رد المختار كتاب الحظر والاباحة ۲۹۵/۵، رد المختار كتاب الصلاة باب ما يفسد الصلاة وما يكره ٤۵۶/۱........ پس علامه ابن عابدين رحمه الله په اشعارو کښې دننه په کومو خلقو چه سلام نه دی کول پکار هغوی ذکر کړې دی:

| | |
|---|---|
| رد السلام واجب إلا على | من فى الصلاة أو بأكل شغلا |
| أو شرب أو قراءة أو أدعيه | أو ذكر أو فى خطبة أو تلبيه |
| أو فى قضاء حاجة الإنسان | أو فى إقامة أو الأذان |
| أو سلم الطفل أو السكران | أو شابة يخشى بها افتتان |
| أو فاسق أو ناعس أو نائم | أو حالة الجماع أو تحاكم |
| أو كان فى الحمام أو مجنونا | فواحد من بعدها عشرونا |

(رد المختار، كتاب الصلاة، باب ما يفسد الصلاة وما يكره فيها ٤۵۷/۱)

[8] عمدة القارى ۲۳۶/۲۲

⑦ سلام يقينا د خپل مينځ کښې محبت او مودت ذريعه او وسيله ده. خاص کر هغه وخت چه کله سلام د زړه نه اوکړې شي او د هغې د معنې طرف ته خيال اوساتلې شي. چه تاسو په دنيا او آخرت کښې زما د شر او هر قسم شر نه سالم او محفوظ شئ او د الله پاک سلامتي دې تاسره شامل وي. چه کله د دې نيت او جذبې سره سلام اوکړې شي نو د هغې برکات به مخې ته راځي (١)

⑧ په ټيلی فون وغيره باندې چه کله رنګ راشي نو خلق ريسور اوچتولو سره "هيلو" "Hello" وائي دا اسلامي طريقه نه ده. صحيح اسلامي طريقه دا ده چه د "هيلو" په ځائې ﴿السلام عليكم﴾ اووئيلې شي.

⑨ د سلام دپاره ضروري نه ده چه د مخکښې نه دې پيژندګلو وي. سلام د اسلامي معاشرې يو عام تحيه ده. امام بيهقي رحمه الله د سيدنا عبدالله بن مسعود رضي الله عنه مرفوع روايت نقل کړې دې، د هغې الفاظ دی ﴿إِنَّ مِنْ أَشْرَاطِ السَّاعَةِ، أَنْ يَمُرَّ الرَّجُلُ فِي الْمَسْجِدِ، لَا يُصَلِّي فِيهِ رَكْعَتَيْنِ، وَأَنْ لَا يُسَلِّمَ الرَّجُلُ إِلَّا عَلَى مَنْ يَعْرِفُ﴾ (٢) يعني د قيامت يو علامت دا دې چه انسان به په مسجد باندې تيريږي او په هغې کښې به هغه چرته دوه رکعته هم نه وي کړې او دا چه هغه به صرف په پيژندګلو کس باندې سلام کوي. امام طحاوي رحمه الله دا روايت په دې الفاظو سره نقل کړې دې ﴿ان من اشراط الساعة السلام للمعرفة﴾ (٣) يعني د قيامت يو علامت دا دې چه په پيژندګلو کس باندې به سلام کولې شي.

پس امام بخاري رحمه الله دلته باب السلام للمعرفة وغيره المعرفة هم په دې سلسله کښې قائم کړې دې. چه په هغې کښې هغوی د سيدنا عبدالله بن عمر رضي الله عنهما مرفوع حديث نقل کړې دې په هغې کښې دی ﴿وَتَقْرَأُ السَّلَامَ عَلَى مَنْ عَرَفْتَ، وَمَنْ لَمْ تَعْرِفْ﴾

## ⑩ باب آيَةِ الْحِجَابِ

[٥٨٨٤| ٥٨٨٥] حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ سُلَيْمَانَ حَدَّثَنَا ابْنُ وَهْبٍ أَخْبَرَنِي يُونُسُ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ قَالَ أَخْبَرَنِي أَنَسُ بْنُ مَالِكٍ أَنَّهُ كَانَ ابْنَ عَشْرِ سِنِينَ مَقْدَمَ رَسُولِ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - الْمَدِينَةَ، فَخَدَمْتُ رَسُولَ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - عَشْرًا حَيَاتَهُ، وَكُنْتُ أَعْلَمَ النَّاسِ بِشَأْنِ الْحِجَابِ حِينَ أُنْزِلَ، وَقَدْ كَانَ أُبَيُّ بْنُ كَعْبٍ يَسْأَلُنِي عَنْهُ، وَكَانَ أَوَّلَ مَا نَزَلَ فِي مُبْتَنَى رَسُولِ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - بِزَيْنَبَ ابْنَةِ جَحْشٍ، أَصْبَحَ النَّبِيُّ -

(١) عمدة القارى ٢٣٦/٢٢. فتح البارى. كتاب الصلاة. باب التهشدفى الاخرة: ٢١٢/٢. شرح مسلم للنووى: ٢١٣/٢

(٢) شعب الايمان للبيهقى. باب فى مقاربة وموادة اهل الدين ٤٣١/٦. رقم الحديث ٨٧٧٨) فتح البارى ٢٥/١١. عمدة القارى ٢٣٧/٢٢

(٣) فتح البارى ٢٥/١١. عمدة القارى ٢٣٧/٢٢

صلى الله عليه وسلم - بِهَا عَرُوسًا فَدَعَا الْقَوْمَ، فَأَصَابُوا مِنَ الطَّعَامِ ثُمَّ خَرَجُوا، وَبَقِي مِنْهُمْ رَهْطٌ عِنْدَ رَسُولِ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - فَأَطَالُوا الْمُكْثَ فَقَامَ رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - فَخَرَجَ وَخَرَجْتُ مَعَهُ كَيْ يَخْرُجُوا، فَمَشَى رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - وَمَشَيْتُ مَعَهُ حَتَّى جَاءَ عَتَبَةَ حُجْرَةِ عَائِشَةَ، ثُمَّ ظَنَّ رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - أَنَّهُمْ خَرَجُوا فَرَجَعَ وَرَجَعْتُ مَعَهُ، حَتَّى دَخَلَ عَلَى زَيْنَبَ فَإِذَا هُمْ جُلُوسٌ لَمْ يَتَفَرَّقُوا، فَرَجَعَ رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - وَرَجَعْتُ مَعَهُ، حَتَّى بَلَغَ عَتَبَةَ حُجْرَةِ عَائِشَةَ، فَظَنَّ أَنْ قَدْ خَرَجُوا، فَرَجَعَ وَرَجَعْتُ مَعَهُ، فَإِذَا هُمْ قَدْ خَرَجُوا، فَأُنْزِلَ آيَةُ الْحِجَابِ، فَضَرَبَ بَيْنِي وَبَيْنَهُ سِتْرًا.

په دې باب کښې امام بخاري رحمه الله د سورة احزاب د آيت حجاب د نزول والا روايت ذکر کړې دې سيدنا انس رضي الله عنه فرمائي چه زه د رسول الله ﷺ مديني منورې ته د تشريف راوړلو په وخت د لسو کالو اوم. د هغوی په خدمت کښې لسو کالو پورې پاتې شوې يم. زه د پردې د حکم متعلق د خلقو نه زيات خبر يم چه کله هغه نازل شو. د سيدنا ابی بن کعب رضي الله عنه (په شان د قرآن قاری) به زما نه د دې متعلق تپوس کولو د حجاب آيت د ټولو نه مخکښې چه کوم وخت رسول الله ﷺ سيده د زينب بنت جحش رضي الله عنها سره واده کړې وو هغه وخت نازل شو. خو څه خلق رسول الله ﷺ سره پاتې شو او د ډير وخته پورې ناست وو نو رسول الله ﷺ اودريدلو او بهر لاړو. چه دا خلق لاړ شي. رسول الله ﷺ روان شو زه هم هغوی سره روان شوم. تردې چه د عائشې رضي الله عنها د دروازې درشل ته اورسيدل. بيا د هغوی خيال راغلو چه خلق به تلې وی نو رسول الله ﷺ واپس شو. زه هغوی سره واپس شوم تردې چه د سيده زينب رضي الله عنها کور ته داخل شو نو وې کتل چه لا تراوسه پورې هغه خلق ناست دی. لا تلې نه دی. رسول الله ﷺ واپس شو. زه هم هغوی سره واپس شوم. تردې چه د عائشې رضي الله عنها دروازې ته اورسيدل. بيا ئې خيال اوکړو چه هغه خلق به تلې وی بيا راواپس شو. زه هم هغوی سره راواپس شوم نو وې کتل چه خلق تلې دی. بيا آيت حجاب (د پردې آيت) نازل شو نو رسول الله ﷺ زما او خپل مينځ کښې پرده راوستله.

۵۸۸۵ : حَدَّثَنَا أَبُو النُّعْمَانِ حَدَّثَنَا مُعْتَمِرٌ قَالَ أَبِي حَدَّثَنَا أَبُو مِجْلَزٍ عَنْ أَنَسٍ رضى الله عنه قَالَ لَمَّا تَزَوَّجَ النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - زَيْنَبَ دَخَلَ الْقَوْمُ فَطَعِمُوا، ثُمَّ جَلَسُوا يَتَحَدَّثُونَ فَأَخَذَ كَأَنَّهُ يَتَهَيَّأُ لِلْقِيَامِ فَلَمْ يَقُومُوا، فَلَمَّا رَأَى ذَلِكَ قَامَ، فَلَمَّا قَامَ قَامَ مَنْ قَامَ مِنَ الْقَوْمِ وَقَعَدَ بَقِيَّةُ الْقَوْمِ، وَإِنَّ النَّبِيَّ - صلى الله عليه وسلم - جَاءَ لِيَدْخُلَ، فَإِذَا الْقَوْمُ جُلُوسٌ، ثُمَّ إِنَّهُمْ قَامُوا فَانْطَلَقُوا فَأَخْبَرْتُ النَّبِيَّ - صلى الله عليه وسلم - فَجَاءَ حَتَّى دَخَلَ، فَذَهَبْتُ أَدْخُلُ فَأَلْقَى الْحِجَابَ بَيْنِي وَبَيْنَهُ، وَأَنْزَلَ اللَّهُ تَعَالَى (يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لاَ تَدْخُلُوا بُيُوتَ النَّبِيِّ) الآيَةَ.

قَالَ أَبُو عَبْدِ اللَّهِ: فِيهِ مِنَ الْفِقْهِ: أَنَّهُ لَمْ يَسْتَأْذِنْهُمْ حِينَ قَامَ وَخَرَجَ، وَفِيهِ: أَنَّهُ تَهَيَّأَ لِلْقِيَامِ وَهُوَ يُرِيدُ أَنْ يَقُومُوا. [ر: ۴۵۱۳]

سيدنا انس رضی الله عنه فرمائی رسول الله صلی الله علیه وسلم چه کله د زینب رضی الله عنها سره نکاح اوکړه نو خلق راغلل او خوراک ئې اوکړو او ناست وو خبرې ئې کولې نو رسول الله صلی الله علیه وسلم داسې ظاهره کړه ګویا پاسیدل غواړی خو خلق پانسیدل. چه کله رسول الله صلی الله علیه وسلم دا صورت حال اولیدو نو پاسیدل. چه کله هغوی پاسیدل نو په هغوی کښې څه خلق خو لاړل خو څه ناست وو. رسول الله صلی الله علیه وسلم زینب رضی الله عنها ته ورتلل غوښتل خو او ئې لیدل چه خلق ناست دی. بیا هغه خلق پاسیدل او لاړل نو ما رسول الله صلی الله علیه وسلم ته خبر ورکړو، (چه خلق تللی دی) هغوی تشریف راوړلو او دننه داخل شو. زه هم دننه لاړم چه هغوی زما او خپل مینځ کښې پرده زوړنده کړه او الله پاک د حجاب آیت ﴿یاایها الذین امنوالاتدخلوابیوت النبی﴾ نازل اوفرمائیلو

د سورة احزاب دا آیت کریمه د حجاب د حکم متعلق د ټولو نه اول نازلیدونکې آیت دې. دا آیت کریمه په ۳ یا ۵ هجری کښې نازل شوې دې[1]، حافظ ابن کثیر رحمه الله د ۵ هجری قول ته ترجیح ورکړې ده. [2]

په قرآن کریم کښې د زنانو د پردې متعلق اووه آیتونه نازل شوې دی. څلور په سورة احزاب کښې او درې په سورة نور کښې. [3]

**د پردې مراتب:** مولانا محمد شفیع رحمه الله په احکام القرآن کښې د پردې درې مراتب لیکلې دی

① **حجاب الاشخاص البیوت:** یعنی په کورونو کښې اوسیدل وی او زنانه بغیر د ضرورت نه بهر لاړې نه شی. د قرآن کریم آیت ﴿وقرن فی بیوتکن﴾ کښې د دې حکم بیان کړې شوې دې [4]

② **حجاب بالبرقع:** د ضرورت په مواقع باندې که یو زنانه بهر اوځی نو د بلې خپې پورې دې په برقع یا اوږد څادر کښې پټه وی او د بدن یو حصه دې هم ښکاره نه وی [5]

③ دریمه درجه دا ده چه د سر نه والا خپو پورې ټول بدن ئې پټ وی خو مخ او لاسونه ئې ښکاره وی. کومو حضراتو چه د سورة النور د آیت ﴿الا ما ظهر منها﴾ تفسیر په مخ او لاسونه سره کړې دې د هغوی په نزد لاسونه او مخ عورت نه دې. د احناف حضراتو اصل مسلک هم دا دې. لکه چه مخکښې نقل کړې شوې دی. په دې شرط چه د فتنې ویره او د خوند اخستلو قصد نه وی او چونکه په غالب احوالو کښې د فتنې ویره وی. په دې وجه متاخرین

---

[1] ) الاصابة فی تمیز الصحابة. حرف الزائی. القسم الاول ۳۱۳/٤. ترجمة زینب بنت جحش. والاستیعاب لابن عبدالبر (علی هامش الاصابة) ۳۱٤/٤. ترجمة زینب بنت جحش. والادب المفرد (مع فضل الله الصمد). باب کیف نزلت آیة الحجاب ٤۹۵/۲.

[2] ) التفسیر للحافظ بن کثیر رحمه الله ۵۰۳/۳. (سورة الاحزاب)

[3] ) په سورة احزاب کښې آیت نمبر ۳۳. ۵۳. ۵۵. ۵۹. او په سورة نور کښې آیت نمبر ۳۰. ۳۱ او ۶۰ نازل شوې دې.

[4] ) احکام القرآن ٤۵٤/۳. سورة الاحزاب

[5] ) احکام القرآن ٤۵٤/۳. سورة الاحزاب

احنافو مطلقا د عدم جواز فتوی ورکړې ده.[1]

**د امام بخاري رحمه الله مقصد:** د شارحينو د کلام نه معلوميږی چه د امام بخاري رحمه الله مقصد د آيت حجاب شان نزول بيانول دی.[2] شيخ الحديث مولانا محمد زکريا رحمه الله فرمائی چه زما په نزد وجه دا ده چه امام بخاري رحمه الله د آية حجاب مصداق بيانول غواړی.[3]

چونکه د استيذان ابواب شروع دی او د استيذان يو مقصد او مصلحت د بې پردګئ نه بچ کيدل هم دی. په دې وجه د پردې او حجاب آيت باندې امام بخاري رحمه الله باب قائم کړې دې.[4]

۵۸۸۲: حَدَّثَنَا إِسْحَاقُ أَخْبَرَنَا يَعْقُوبُ حَدَّثَنَا أَبِي عَنْ صَالِحٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ قَالَ أَخْبَرَنِي عُرْوَةُ بْنُ الزُّبَيْرِ أَنَّ عَائِشَةَ رضي الله عنها زَوْجَ النَّبِيِّ صلى الله عليه وسلم قَالَتْ كَانَ عُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ يَقُولُ لِرَسُولِ اللَّهِ صلى الله عليه وسلم احْجُبْ نِسَاءَكَ. قَالَتْ فَلَمْ يَفْعَلْ، وَكَانَ أَزْوَاجُ النَّبِيِّ - صلى الله عليه وسلم - يَخْرُجْنَ لَيْلاً إِلَى لَيْلٍ قِبَلَ الْمَنَاصِعِ، خَرَجَتْ سَوْدَةُ بِنْتُ زَمْعَةَ، وَكَانَتِ امْرَأَةً طَوِيلَةً فَرَآهَا عُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ وَهُوَ فِي الْمَجْلِسِ فَقَالَ عَرَفْتُكِ يَا سَوْدَةُ. حِرْصًا عَلَى أَنْ يُنْزَلَ الْحِجَابُ. قَالَتْ فَأَنْزَلَ اللَّهُ عَزَّ وَجَلَّ آيَةَ الْحِجَابِ. [ر: ۱۴۶]

**ترجمه:** سيده عائشه رضي الله عنها فرمائی چه سيدنا عمر رضي الله عنه به رسول الله صلى الله عليه وسلم ته عرض کولو چه خپلې بيبيانې په پرده کښې ساتئ، د عائشې رضي الله عنها بيان دې چه رسول الله صلى الله عليه وسلم داسې اونکړل. د رسول الله صلى الله عليه وسلم بيبيانې به د حاجت پوره کولو دپاره د شپې وتلې، پس سيده سودة بنت زمعه رضي الله عنها بهر اوتله. او هغه يوه لوړه زنانه وه. سيدنا عمر رضي الله عنه هغه وخت په يو مجلس کښې ناست وو. هغوی اوليده او وې وئيل: اې سودة! ته ما اوپيژندلې! صرف په دې شوق ئې داسې اووې چه د حجاب حکم نازل شی، د عائشې رضي الله عنها بيان دې چه د دې نه پس الله پاک د حجاب آيت نازل اوفرمائيلو.

**قوله:** ﴿قال ابوعبدالله: فيه من الفقه انه لم يستأذنهم حين قام وخرج﴾: امام بخاري رحمه الله فرمائی چه د ايت حجاب د شان نزول والا ايت کريمه يو خو دا خبره معلومه شوه چه کوربه ته د بهر تلو او مجلس نه پاسيدو کښې د ميلمنو نه د اجازت اخستلو ضرورت نشته لکه چه رسول الله صلى الله عليه وسلم بهر لاړو او دويمه دا چه ميلمنو ته په خپل څه عمل يا حرکت سره د تلو اجازت ورکول جائز دی. لکه چه رسول الله صلى الله عليه وسلم اودريدلو سره بهر لاړو خو مقصود ئې ميلمنو ته خبردارې ورکول وو چه هغوی لاړ شی، د امام بخاري رحمه الله دا قول د ابوذر او

---

[1] احکام القرآن ۳/۴۶۰، سورة الاحزاب

[2] الابواب والتراجم باب اية الحجاب ۲/۱۲۲

[3] الابواب والتراجم باب اية الحجاب ۲/۱۲۲

[4] ايضا

ابو الوقت د نسخو نه علاوه په باقى نسخو كښې نشته (۱)

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى چه دلته ئې نه كيدل غوره دى خكه چه امام په دې باندې مستقل باب قائم كړې دې

په باب كښې امام بخارى رحمه الله د آيت حجاب د شان نزول په طور د سيده زينب رضي الله عنها او سيده سودة رضي الله عنها دواړو واقعات ذكر كړي دى، داسې چه اول د سيده سودة رضي الله عنها واقعه بيينه شوې وى او د هغې نه پس د سيده زينب رضي الله عنها د وليمې واقعه بيينه شوې وى. (۲)

## ⑪ باب الاستئذان من أجل البصر.

[۵۸۸۷] حدثنا علي بن عبد الله حدثنا سفيان قال الزهري حفظته كما أنك ها هنا عن سهل بن سعد قال اطلع رجل من جحر في حجر النبي - صلى الله عليه وسلم - ومع النبي - صلى الله عليه وسلم - مدرى يحك به رأسه فقال «لو أعلم أنك تنظر لطعنت به في عينك، إنما جعل الاستئذان من أجل البصر». [ر: ۵۵۸۰]

يعنى د استيذان حكم د نظر پريوتلو د وجې نه دې، مقصد دا دې چه د اجازت طلب كولو نه بغير كه يو سړې د چا په كور كښې داخل شى نو د كور په زنانو باندې ئې نظر پريوتلې شى. د دې حكمت په وجه باندې د استيذان حكم مشروع كړې شوې دې.

په روايت كښې دى چه يو سړى په سورى كښې د رسول الله ﷺ د كوړونو نه يو كور كښې اوكتل او د رسول الله ﷺ په لاس كښې د سر ګرولو آله وه چه په هغې باندې ئې خپل سر ګرولو. رسول الله ﷺ اوفرمائيل: كه ماته معلومه وې چه ته به داسې ګورې نو په دې به ما ستا ستر ګه ويشتلې وې، د اجازت حكم خو د كتلو د وجې نه مقرر كړې شوې دې.

مدرى: د سر ګرولو آله ته وائى، دا روايت په كتاب اللباس كښې د باب الامتشاط د لاندې تير شوې دې.

۵۸۸۸: (۳) حدثنا مسدد حدثنا حماد بن زيد عن عبيد الله بن أبي بكر عن أنس بن مالك أن رجلا اطلع من بعض حجر النبي صلى الله عليه وسلم - فقام إليه النبي - صلى الله عليه وسلم بمشقص أو بمشاقص - فكأني أنظر إليه يختل الرجل ليطعنه. [۶۴۹۴، ۶۵۰۴]

---

(۱) ارشاد السارى ۱۳/۲٤٤، فتح البارى ۱۱/۲۷، عمدة القارى ۲۶/۲۳۸

(۲) ارشاد السارى ۱۳/۲٤٤، ۲٤۵، فتح البارى ۱۱/۲۸

(۳) الحديث اخرجه البخارى ايضا فى كتاب الديات، باب من اخذ حقه، او اقتص دون السلطان (رقم الحديث: ۶۸۸۹) وفى باب من اطلع فى بيت قوم ففقوا عينه، فلا دية له (رقم الحديث ۶۹۰۰) واخرجه مسلم فى كتاب الادب، باب تحريم النظر فى بيت غيره (رقم الحديث ۲۱۵۷) واخرجه ابوداؤد فى كتاب الادب، باب كم مرة يسلم الرجل فى الاستئذان ٤/۳٤۳ (رقم الحديث: ۵۱۷۱) واخرجه الترمذى فى كتاب الاستئذان، باب من اطلع فى دار قوم بغير اذنهم (رقم الحديث: ۲۷۰۸)

د باب په دې دويم روايت كښې سيدنا انس رضي الله عنه فرمائي چه يو سړی د رسول الله ﷺ د حجرو نه په يو حجره كښې په پټه باندې اوكتل. رسول الله ﷺ د غشي څوكه اخستلو سره اودريدلو. هغه منظر زما د ستركو وړاندې دې چه رسول الله ﷺ هغه سړې د غشي په دې سوكه باندې وهلو دپاره لټولو

مشقص: دميم په كسرې. د شين سكون اود قاف فتحې سره، دغشي سوكې ته وائي يعنې پلك

يختل الرجل: ﴿يأتيه من حيث لا يشعر﴾ سړی ته د داسې طرف نه راتلل چه د هغه خيال نه وی

﴿ليطعنه﴾ د طعن معنى د نيزې يا سوكې والا څيز باندې د وهلو هم راځي. دلته هم دا معنى مراد دہ

## ⑫ باب زِنَا الْجَوَارِحِ دُونَ الْفَرْجِ

[٥٨٨٩] [١] حَدَّثَنَا الْحُمَيْدِيُّ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنِ ابْنِ طَاوُسٍ عَنْ أَبِيهِ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ -رضي الله عنهما- قَالَ لَمْ أَرَ شَيْئًا أَشْبَهَ بِاللَّمَمِ مِنْ قَوْلِ أَبِي هُرَيْرَةَ. حَدَّثَنِي مَحْمُودٌ أَخْبَرَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ أَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ عَنِ ابْنِ طَاوُسٍ عَنْ أَبِيهِ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ مَا رَأَيْتُ شَيْئًا أَشْبَهَ بِاللَّمَمِ مِمَّا قَالَ أَبُو هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ -صلى الله عليه وسلم- «إِنَّ اللَّهَ كَتَبَ عَلَى ابْنِ آدَمَ حَظَّهُ مِنَ الزِّنَا، أَدْرَكَ ذَلِكَ لاَ مَحَالَةَ، فَزِنَا الْعَيْنِ النَّظَرُ، وَزِنَا اللِّسَانِ الْمَنْطِقُ، وَالنَّفْسُ تَمَنَّى وَتَشْتَهِي، وَالْفَرْجُ يُصَدِّقُ ذَلِكَ كُلَّهُ وَيُكَذِّبُهُ». [٦٢٣٨]

د ترجمة الباب مقصد د امام بخاری رحمه الله مقصد دا دې چه د شرم ګاه نه علاوه د بدن د نورو اندامونو نه هم د زنا ارتكاب كيدې شي. خود هغې نوعيت مختلف وی. مثلا په شهوت سره كتل د ستركو زنا ده. د شهوت خبرې كول د ژبې زنا ده، په شهوت سره ښكلول د شونډو زنا ده. په شهوت سره رانيول د لاسونو زنا ده، د زنا په اراده باندې تلل د خپو زنا ده. پس د ابن جرير په يو روايت كښې دی: ﴿زنا العين النظر، وزنا الشفتين التقبيل، وزنا اليدين البطش، وزنا الرجلين المشي﴾ [٢]

په باب كښې چه امام بخاری رحمه الله كوم روايت نقل كړې دې. هغه ئې اول د سيدنا ابن عباس رضي الله عنهما نه موقوفا نقل كړې دې او دا ناقص دې. د دې نه پس ئې د معمر په طريق سره مرفوعا نقل كړو او هغه كامل دې.

---

[١] الحديث اخرجه البخاری ايضا فی كتاب القدر ٩/٩ باب : (وحرام على قرية اهلكنها انهم لا يرجعون) الانبياء ٩٥. (رقم الحديث : ٦٦١٢) واخرجه مسلم فی كتاب القدر. باب : قدر على ابن ادم حظه من الزنا وغيره. (رقم الحديث ٦٢٤٣) واخرجه ابوداؤد فی كتاب النكاح. باب ما يؤمر به من غض البصر : ٢٤٧/٢ (رقم الحديث : ٢١٥٣)

[٢] ارشاد الساری ٢٤٧/١٣

سيدنا ابن عباس رضي الله عنهما فرمائي: ﴿لَمْ أَرَ شَيْئًا أَشْبَهَ بِاللَّمَمِ مِنْ قَوْلِ أَبِي هُرَيْرَةَ﴾ سيدنا ابن عباس رضي الله عنهما په دې حال کښې د قرآن کريم په آيت کښې د واقع لفظ ﴿اللمم﴾ تشريح کول غواړي. په آيت کريمه کښې دی ﴿الَّذِينَ يَجْتَنِبُونَ كَبَائِرَ الْإِثْمِ وَالْفَوَاحِشَ إِلَّا اللَّمَمَ﴾[1] سيدنا ابن عباس رضي الله عنهما فرمائي: چه د سيدنا ابوهريره رضي الله عنه يو قول چه څومره د ﴿اللمم﴾ مشابه او موافق دې. دغه شان يو څيز هم ما نه دې ليدلې يعنې سيدنا ابوهريره رضي الله عنه چه په خپل يو روايت کښې کوم څيزونه بيان کړي دی. ماته هم هغه د ﴿اللمم﴾ مصداق معلوميږي. سيدنا ابوهريره رضي الله عنه د رسول الله ﷺ نه مرفوعا نقل کوی چه الله پاک د ابن ادم عليه السلام دپاره د زنا يو حصه ليکلې ده کومه چه به هغه ته ضرور ملاويږي. پس د سترګو زنا کتل دی، د ژبې زنا وئيل دی او د نفس خواهش او تمنا کول دی او شرمګاه د هغې تصديق يا تکذيب کوی.

﴿اللمم﴾ نفساني خواهشاتو او وړو ګناهونو ته وائی[2] مولانا انور شاه کشميری رحمه الله په فيض الباري کښې فرمائي:

﴿يريدُ ابنُ عبّاسٍ أن يستفيدَ من حديث أبي هريرة هذا تفسيرَ قوله تعالى: {إِلَّا اللَّمَمَ} (النجم: ٣٢)، فجعل دواعي الزِّنا، وما يقعُ من الرجل في سلسلة الزِّنا من المعاصي كلَّها صغائرَ ولمماً، فإن غشي الزنا تُحْسَبُ كلُّها من الزنا، وتنقلب كبائرَ، وإلاّ فهي صغائرُ تَصْلُحُ أن تُغْفَرَ له، ويُعْفَى عنها. فاستفاد منه بعضُهم تعريفَ الصغيرة، وقال: إنّ المعاصي على نحوين: منها ما تقعُ تمهيداً، ومنها ما تكون مَقْصَداً. فالتي تقعُ في السلسلة، وتكون وسيلةً لتحصيل منتهاها، هي الصغائرُ، وذلك المنتهى هو الكبيرةُ. قلتُ: ولا بُدَّ فيه من تنبيهٍ، وهو أن السمعَ، والبصرَ، والنظرَ قد تَصِيرُ مقصودةً أيضاً، وذلك حين يَعْجَزُ عن المنتهى - أعني الزنا - فيرضى بتلك الأمور، ويجعلها مقصورةً لحظِّ نفسه، وحينئذٍ لا ريبَ في كونها كبيرةً. نعم إن أتى بها في سلسلة الزنا، ثم امتنع عنه مخافةَ ربِّه جلَّ وعلا، فَيَنْزِلُ امتناعُه عن الزنا منزلةَ التوبة، ويُرْجَى له أن تُغْفَرَ له تلك السلسلة بأسرها، إذا أَتْبَعَهَا بحسنةٍ، فإنَّ الحسناتِ يُذْهِبْنَ السيئاتِ﴾[3]

ترجمه: يعنې سيدنا ابن عباس رضي الله عنهما د سيدنا ابوهريره رضي الله عنه د حديث نه څوخبرې مستنبط کوی: د الله پاک د قول ﴿الا اللمم﴾ تفسير، پس هغوی د زنا اسباب او د زنا په سلسله کښې چه سړې په کومو ګناهونو کښې واقع کيږي، هغې ټولو ته ئې صغائر او للم وئيلې دی. پس که هغه سړې په زنا کښې اونيولې شو نو دا ټول ګناهونه به ئې زنا شمارلې شی او دغه شان به کبائر اوګرځی. ګينې وی خو به دا صغائر چه د هغې معافی او مغفرت کيدې شی. بعض

---

[1] سورة النجم آية ٣٢
[2] ارشاد الساری ۲۴۶/۱۳، عمدة القاری ۲۴۰/۲۲، فتح الباری ۶۱۶/۱۱
[3] فيض الباری ۴۱۰/۴

حضراتو د دې نه د صغيره تعريف هم مستنبط كړې دې. پس هغوى وئيلې دى چه گناهونه په دوه قسمه دى. يو هغه دى كوم چه د تمهيد په طور وى. دويم هغه كوم چه مقصد وى. پس كومه گناه چه د خپل منتهى د حصول ذريعه وى هغه صغائر دى او هغه منتهى كبيره ده. خو په دې كښې يو تنبيه ضرورى ده او هغه دا چه غورړونه. سترگې او نظر هم كله مقصود جوړ شى، او دا هغه وخت چه كله سړې د منتهى يعنى زنا نه عاجز شى نو هغه هم په دې امور باندې قانع او تيار وى او د خپل نفس د حصې دپاره هم دا مقصود گرځوى. په داسې صورت كښې د دې په كبيره كيدو كښې هيڅ شک نشته. خو كه هغه دا گناه د زنا دپاره اوكړې. بيا هغه د الله پاک د ويرې نه هغه د گناه نه اويريدلو نو د هغه د زنا بنديدل به د توبې قائم مقام شى او د الله پاک د رحمت نه اميد دې چه دا ټول ذرائع به الله پاک معاف كړى. ځكه چه د الله پاک د ويرې نه د زنا نه ځان ساتل د توبې قائم مقام دى، او توبه نيكى ده او نيكئ گناهونو لره ختموى.

**قوله:** ﴿وَالْفَرْجُ يُصَدِّقُ ذَلِكَ كُلَّهُ وَيُكَذِّبُهُ﴾: يعنى د سترگو زنا كتل دى او د ژبې زنا خبرې كول دى. نفس خواهش او تمنا كوى او شرمگاه د هغې تصديق يا تكذيب كوى يعنى كه هغه واقعتا په زنا كښې اخته كيږى نو د شرمگاه د طرف نه د دې خواهش تصديق كيږى او كه اخته نه شى نو د هغې تكذيب كيږى. (١)

شيخ الحديث مولانا محمد زكريا رحمه الله يو بله معنى هم بيان كړې ده هغوى ليكى: ﴿ معنى تصديق الفرج وتكذيبه ان الفرج ان كان يتاثر بزنا العين كالقبلة، وبزنا اليد كاللمس ونحوهما بان يحصل فى الفرج شئ من الحس والحركة والانتشار، تكون هذه الامور اى: زنى الجوارح المذكور فى الحديث فى حكم الزنا، وان لم يتاثر الفرج، ولم ينتشر الالة، فلا تكون هذه الامور فى حكم الزنا بل ادنى منه جريمة، والله اعلم ﴾ (٢)

يعنى د شرمگاه د طرف نه د تصديق او تكذيب كيدو مطلب دا دې چه شرمگاه د سترگو زنا مثلا كتلو سره يا د لاس په زنا مس كولو وغيره سره متاثر شو، په داسې طريقه چه په شرمگاه كښې حركت او انتشار وغيره محسوس شى نو دا ټول امور يعنى په حديث كښې مذكور د جوارح زنا به د زنا په حكم كښې وى، او كه شرمگاه متاثره نه شوه او آله منتشر نه شوه نو دا امور به د زنا په حكم كښې نه وى، بلكه دا به د هغې نه كم درجې والا جرم او گناهونه وى.

•••

(١) لامع الدرارى ١٠/٥٢، فتح البارى ١١/٦١۶

(٢) الابواب والتراجم ٢/١٢٢، كتاب الاستئذان باب زنى الجوارح دون الفرج او لامع الدرارى ١٠/٥٢ باندې هم دا عبارت د معمولى تغير سره موجود ده.

## ⑬ باب التَّسْلِيمِ وَالِاسْتِئْذَانِ ثَلَاثًا

[۵۸۹۰] حَدَّثَنَا إِسْحَاقُ أَخْبَرَنَا عَبْدُ الصَّمَدِ حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ الْمُثَنَّى حَدَّثَنَا ثُمَامَةُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ عَنْ أَنَسٍ - رضی اللہ عنہ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ - صلی اللہ علیہ وسلم - كَانَ إِذَا سَلَّمَ سَلَّمَ ثَلَاثًا، وَإِذَا تَكَلَّمَ بِكَلِمَةٍ أَعَادَهَا ثَلَاثًا. [ر: ۹۴]

[۵۸۹۱] حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ خُصَيْفَةَ عَنْ بُسْرِ بْنِ سَعِيدٍ عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ قَالَ: كُنْتُ فِي مَجْلِسٍ مِنْ مَجَالِسِ الْأَنْصَارِ إِذْ جَاءَ أَبُو مُوسَى كَأَنَّهُ مَذْعُورٌ فَقَالَ اسْتَأْذَنْتُ عَلَى عُمَرَ ثَلَاثًا، فَلَمْ يُؤْذَنْ لِي فَرَجَعْتُ فَقَالَ مَا مَنَعَكَ قُلْتُ اسْتَأْذَنْتُ ثَلَاثًا، فَلَمْ يُؤْذَنْ لِي فَرَجَعْتُ، وَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صلی اللہ علیہ وسلم - «إِذَا اسْتَأْذَنَ أَحَدُكُمْ ثَلَاثًا فَلَمْ يُؤْذَنْ لَهُ، فَلْيَرْجِعْ». فَقَالَ وَاللَّهِ لَتُقِيمَنَّ عَلَيْهِ بِبَيِّنَةٍ. أَمِنْكُمْ أَحَدٌ سَمِعَهُ مِنَ النَّبِيِّ - صلی اللہ علیہ وسلم - فَقَالَ أُبَيُّ بْنُ كَعْبٍ وَاللَّهِ لَا يَقُومُ مَعَكَ إِلَّا أَصْغَرُ الْقَوْمِ، فَكُنْتُ أَصْغَرَ الْقَوْمِ، فَقُمْتُ مَعَهُ فَأَخْبَرْتُ عُمَرَ أَنَّ النَّبِيَّ - صلی اللہ علیہ وسلم - قَالَ ذَلِكَ. وَقَالَ ابْنُ الْمُبَارَكِ أَخْبَرَنِي ابْنُ عُيَيْنَةَ حَدَّثَنِي يَزِيدُ عَنْ بُسْرٍ سَمِعْتُ أَبَا سَعِيدٍ بِهَذَا. [ر: ۱۹۵۶]

**د ترجمة الباب مقصد**: استیذان او سلام درې کرته مشروع دي. د سلام نه مراد سلام د استیذان دي. عام سلام یو کرت وی. په هغې کښې تکرار نشته. خو که مجمع لویه وی او یو کرت د سلام رسیدل ګران وی نو په داسې صورت کښې مکرر سلام کیدلې شی. هم دغه شان که مخاطب سلام نه وی اوریدلې نو بیا هم هغه ته د اورولو دپاره دوباره سلام کیدلې شی. (۱)

د باب اول حدیث په کتاب العلم کښې په باب اعاد الحدیث ثلاثا لیفهم د لاندې تیر شوې دې. (۲)

د باب دویم حدیث کښې سیدنا ابوسعید خدری رضی اللہ عنہ فرمائی چه زه د انصارو په یو مجلس کښې ناست اوم چه سیدنا ابو موسی اشعری رضی اللہ عنہ راغلو او هغوی په ویره کښې وو، وې وئیل ما د فاروق اعظم رضی اللہ عنہ نه درې کرته اجازت طلب کړو، هغوی اجازت رانکړو نو زه واپس شوم. هغوی تپوس اوکړو ته د دننه راتلو نه چا منع کړې. ما اووې چه ما درې کرته اجازت طلب کړو. خو ماته اجازت ملاؤ نه شو. په دې وجه زه واپس شوم. ځکه چه رسول الله صلی اللہ علیہ وسلم فرمائی: ﴿إِذَا اسْتَأْذَنَ أَحَدُكُمْ ثَلَاثًا فَلَمْ يُؤْذَنْ لَهُ فَلْيَرْجِعْ﴾ یعنی په تاسو کښې که یو کس درې کرته اجازت طلب کړې او هغه ته اجازت اونکړې شو نو واپس دې شی. سیدنا عمر فاروق رضی اللہ عنہ اوفرمائیل قسم په الله ته به په دې باندې ګواه پیش کوې، سیدنا ابوموسی رضی اللہ عنہ تپوس اوکړو په تاسو کښې د رسول الله صلی اللہ علیہ وسلم نه چا دا حدیث اوریدلې دې؟ سیدنا ابی بن کعب رضی اللہ عنہ اوفرمائیل: قسم په الله! ستا د ګواهئ دپاره به د قوم نه کم عمره ماشوم اودریږی!

---

(۱) فتح الباری ۳۲/۱۱، ارشاد الساری: ۲۴۸/۱۳

(۲) صحیح البخاری، کتاب العلم، باب من اعاد الحدیث ثلاثا لیفهم عنه، رقم الحدیث ۹۴

سیدنا ابو سعید خدری رضی الله عنه فرمائی چه زه هغه وخت دتپولونه ورو کې وم. زه د ابو موسی رضی الله عنه سره اودریدم او سیدنا عمر رضی الله عنه ته مې اووئیل چه رسول الله ﷺ دا ارشاد فرمائیلې دې

**قوله:** ﴿وَاللّٰهِ لَتُقِيمَنَّ عَلَيْهِ بِبَيِّنَةٍ﴾: د صحیح مسلم په روایت کښې دا اضافه هم ده ﴿والا اوجعتك﴾[1] او د بکیر بن الاشج په روایت کښې دی ﴿فَوَاللّٰهِ لَأُوجِعَنَّ ظَهْرَكَ وَبَطْنَكَ. أَوْ لَتَأْتِيَنَّ بِمَنْ يَشْهَدُ لَكَ عَلَى هٰذَا﴾[2] يعنى گواهان پيش کړئ گينې تاسو ته سزا درکوم.

**قوله:** ﴿فَأَخْبَرْتُ عُمَرَ أَنَّ النَّبِيَّ صلى الله عليه وسلم قَالَ: ذٰلِكَ﴾: د سیدنا عمر فاروق رضی الله عنه په خدمت کښې د سیدنا ابوموسی اشعری رضی الله عنه دپاره گواهی ورکونکې سیدنا ابو سعید خدری رضی الله عنه وو کوم چه د ټولو نه زیات کم عمره وو.

په صحیح مسلم کښې د سیدنا ابوبرده رضی الله عنه یو روایت دې چه دا گواهی سیدنا ابی بن کعب رضی الله عنه ورکړې وه[3] خو په دې دواړو کښې داسې تطبیق کیدلې شي چه د سیدنا ابو سعید رضی الله عنه د گواهئ نه پس سیدنا ابی بن کعب رضی الله عنه هم گواهی ورکړې وی[4]

**قوله:** ﴿وَقَالَ ابْنُ الْمُبَارَكِ، أَخْبَرَنِي ابْنُ عُيَيْنَةَ، حَدَّثَنِي يَزِيدُ عَنْ بُسْرٍ سَمِعْتُ أَبَا سَعِيدٍ بِهٰذَا﴾: پورته په روایت موصوله کښې عنعنه ده. ﴿بسر عن ابی سعید﴾ دې. په دې تعلیق کښې د سماع تصریح ده. د دې تصریح د وجې نه امام بخاری رحمه الله دا تعلیق دلته ذکر اوفرمائیلو[5] ابو نعیم دا تعلیق موصولا نقل کړې دې[6]

سیدنا فاروق اعظم رضی الله عنه چه کله سیدنا ابوموسی اشعری رضی الله عنه ته د گواه پیش کولو دپاره اووې. حال دا چه هغه یو عادل او ثقة صحابی وو. د دې یوه وجه په یو روایت کښې په دې الفاظو باندې راغلې ده: ﴿أما انى لم أتهمك، ولكنى أردت ألا يتجرأ الناس على الحديث عن رسول الله صلى الله عليه وسلم﴾[7]

او د موطاء په روایت کښې دی ﴿أَمَا إِنِّي لَمْ أَتَّهِمْكَ، وَلَكِنْ خَشِيتُ أَنْ يَتَقَوَّلَ النَّاسُ عَلَى رَسُولِ اللّٰهِ صلى الله عليه وسلم﴾[8] يعنى زه تا متهم (تهمتی) نه گنړم، (ستاسو په صداقت کښې زما شک نشته) خو زما مقصد دا دې چه خلق په رسول الله ﷺ باندې د ځان نه حدیث جوړ نه کړی.

---

[1] صحیح مسلم. کتاب الاداب. باب الاستئذان ۲۱۰/۲
[2] صحیح مسلم. کتاب الاداب. باب الاستئذان ۲۱۱/۲
[3] صحیح مسلم. کتاب الاداب. باب الاستئذان ۲۱۱/۲
[4] فتح الباری ۳٤/۱۱
[5] عمدة القاری ۲٤۲/۲۲، فتح الباری ۳٤/۱۱، ارشاد الساری ۲٤۹/۱۳
[6] عمدة القاری ۲٤۲/۲۲، فتح الباری ۳٤/۱۱، ارشاد الساری ۲٤۹/۱۳
[7] شرح صحیح البخاری لابن بطال ۲۵/۹
[8] الموطاء للامام مالک ۹٦۳/۲، کتاب الاستئذان

د دي حديث نه يو خبره معلومه شوه چه صاحب منزل ته دا اختيار حاصل دي چه كه هغه په څه كار كښې مشغول دې نو د سلام استيذان جواب دې نه وركوى دويمه خبره تړې نه دا معلومه شوه چه ډير كرته يو لوئې عالم او لوئې سړى ته يو مسئله معلومه نه وى او وړوكى ته معلومه وى. لكه چه فاروق اعظم رضي الله عنه ته دا حكم معلوم نه وو [١]

فائده دلته د باب په اول حديث كښې يو راوى عبدالله بن مثنى دې. كوم چه مختلف فيه دې. عجلى د هغه توثيق كړې دې [٢]، او ابوزرعه او ابن معين هغه ته ﴿ليس بشئ﴾ وئيلې دې [٣]، امام نسائى رحمه الله فرمائى ﴿ليس بالقوى﴾ [٤]، حافظ ابن حجر رحمه الله په الهدى السارى كښې د هغوى دفاع كړې ده [٥]،

ابن حبان رحمه الله په كتاب الثقات كښې د هغوى ذكر كړې دې او فرمائيلې ئې دى چه دوى په هغه رواياتو كښې غلطى كوى كوم چه ئې د خپل تره ثمامه بن عبدالله نه علاوه نورو خلقو نه نقل كړې وى. د ثمامه نه د هغوى روايات صحيح دى [٦]، او دلته د بخارى روايت د ثمامه نه دې

## ⑭ بَابٌ إِذَا دُعِيَ الرَّجُلُ فَجَاءَ هَلْ يَسْتَأْذِنُ

قَالَ سَعِيدٌ عَنْ قَتَادَةَ عَنْ أَبِي رَافِعٍ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ - صلى الله عليه وسلم - قَالَ: هُوَ إِذْنُهُ.

[٥٨٩٢] [٧]، حَدَّثَنَا أَبُو نُعَيْمٍ حَدَّثَنَا عُمَرُ بْنُ ذَرٍّ. وَحَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ مُقَاتِلٍ أَخْبَرَنَا عَبْدُ اللَّهِ أَخْبَرَنَا عُمَرُ بْنُ ذَرٍّ أَخْبَرَنَا مُجَاهِدٌ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ - رضى الله عنه - قَالَ دَخَلْتُ مَعَ رَسُولِ اللَّهِ - صلى

---

[١]) فتح البارى كتاب الاستئذان ٣٧/١١

[٢]) تهذيب التهذيب ٣٨٨/٥، الترجمة ٦٥٩، الرفع والتكميل فى الجرح والتعديل ٢١٤.

[٣]) ارشاد السارى ٢٣٧/١٣، خو په: تهذيب التهذيب ٣٨٨/٥، او تعليقات الرفع والتكميل لعبد الفتاح ابى غدة ص ٢١٤ باندې د ﴿ليس بشئ﴾ قول صرف د ابن معين طرف ته منسوب دې اګر چه په ارشاد السارى كښې ابن معين او ابوزرعه دواړو طرف ته نسبت كړې شوې دې. خو په صالح وئيلو كښې ابوزرعه د ابن معين سره دې

[٤]) تهذيب التهذيب ٣٨٨/٥، الترجمة: ٦٥٩، تهذيب الكمال: ٢٧/١٧، الرفع والتكميل فى الجرح والتعديل ٢١٤، الترجمة: ٥٣٢١

[٥]) هدى السارى مقدمة فتح البارى: ٤١٦، الفصل التاسع، تهذيب التهذيب ٣٨٨/٥، كښې هم د ابن معين او ابوزرعة توثيق منقول دې

[٦]) ارشاد السارى ٢٤٧/١٣، او امام بخارى رحمه الله هم د عبدالله بن مثنى د هغه روايتونو نه استدلال كوى كوم چه هغوى د ثمامه نه نقل كړى وى. پس حافظ ابن حجر رحمه الله ليكى قلت: لم ار البخارى احتج به الا فى روايته عن عمه ثمامة فعنده عنه احاديث. (هدى السارى مقدمة فتح البارى ٤١٦)

[٧]) الحديث اخرجه البخارى ايضا فى كتاب الرقاق، باب كيف كان عيش النبى صلى الله عليه وسلم واصحابه وتخليهم من الدنيا (رقم الحديث ٦٠٨٧) ٢٣٧٠/٥، وكذا اخرجه الترمذى فى كتاب الزهد والنسائى فى الرقاق.

الله عليه وسلم - فَوَجَدَ لَبَنًا فِي قَدَحٍ فَقَالَ «أَبَا هِرٍّ الْحَقْ أَهْلَ الصُّفَّةِ فَادْعُهُمْ إِلَيَّ». قَالَ فَأَتَيْتُهُمْ فَدَعَوْتُهُمْ، فَأَقْبَلُوا فَاسْتَأْذَنُوا فَأُذِنَ لَهُمْ، فَدَخَلُوا. [۲۰۸۷]

**د ترجمة الباب مقصد** : د امام بخاری رحمه الله مقصد دا دې چه چا يو بل سړی ته دعوت اوكړو او هغه راغلو نو آيا هغه ته به د اجازت اخستلو ضرورت وی؟ د دې نه پس ئې د سيدنا ابوهريره رضی الله عنه په ذريعه حديث نقل كړې دې چه ﴿ هو اذنه ﴾ يعنى د نوې اجازت اخستلو ضرورت نشته. دعوت وركول او راغوښتل اجازت دې. دا تعليق امام بخاری رحمه الله په الادب المفرد كښې او امام ابوداؤد رحمه الله په سنن كښې موصولا نقل كړې دې [۱]

په حديث الباب كښې رسول الله صلی الله عليه وسلم سيدنا ابوهريره رضی الله عنه ته اوفرمائيل چه اهل صفه راطلب كړه. پس هغوی راغوښتل. هغوی راغلل او اجازت ئې طلب كړو نو رسول الله صلی الله عليه وسلم اجازت وركړو.

په دې باندې اشكال كيدې شی چه د دې نه مخكښې په تعليق كښې ﴿ هو اذنه ﴾ وئيلې شوې دې چه دعوت وركول اجازت دې او دلته په حديث كښې اجازت طلب كړې شوې دې په ظاهره دواړو كښې تعارض دې. علامه قسطلانی رحمه الله د دې په جواب كښې ليكی :

﴿ واجيب : بانه يختلف بطول العهد وقصره فان طال العهد بين الطلب والمجيء احتاج الى استئناف الاذن، والا فلا... والاستئذان على كل حال احوط ﴾ [۲]

يعنى د دې جواب دا دې : چه د استيذان حكم د وخت د اوږدوالی او كم والی په اعتبار سره مختلف دې، كه د دعوت وركولو او حاضريدلو ترمينځه وخت اوږد وی نو د نوی سره نه به اجازت اخلی. احتياط هم په دې كښې دې چه اجازت واخستلې شی

## ⑮ باب التَّسْلِيمِ عَلَى الصِّبْيَانِ

[۵۸۹۳] [۳] - ۶۲۴۷ - حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ الْجَعْدِ أَخْبَرَنَا شُعْبَةُ عَنْ سَيَّارٍ عَنْ ثَابِتٍ الْبُنَانِيِّ عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ - رضى الله عنه أَنَّهُ مَرَّ عَلَى صِبْيَانٍ فَسَلَّمَ عَلَيْهِمْ وَقَالَ كَانَ النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - يَفْعَلُهُ.

---

[۱]) الادب المفرد (مع فضل الله الصمد) ۵۱۱/۲، رقم الحديث ۱۰۸۶، باب دعا الرجل اذنه. وسنن ابى داؤد ۳۴۹/۲، كتاب الادب، باب فى الرجل يدعى ان يكون ذكل اذنه.

[۲]) ارشاد السارى ۲۵۰/۱۳

[۳]) الحديث اخرجه مسلم فى كتاب السلام، باب استحباب السلام على الصبيان عن انس بن مالك ۱۷۹۸/۴، وكذا اخرجه الترمذى فى كتاب الاستئذان، باب ما جاء فى التسليم على الصبيان ۵۷/۵ (رقم الحديث : ۲۶۹۶) واخرجه فى السنن الكبرى فى كتاب عمل اليوم والليلة، باب التسليم على الصبيان ومما زحتهم ۹۰/۶، (رقم الحديث ۱۰۱۶۲) واخرجه ابوداؤد فى كتاب الاستئذان، باب فى السلام على الصبيان : ۳۵۲/۴، (رقم الحديث : ۵۲۰۲)

لکه چه مخکښې تیر شوې دی چه په ماشومانو باندې سلام کول جائز دی. رسول الله ﷺ به هم دغه شان کول. خو که یو ماشوم داسې دې چه په سلام کولو سره ئې د فتنې ویره وی نو سلام نه دی کول پکار.

## ⑯ باب تَسْلِيمِ الرِّجَالِ عَلَى النِّسَاءِ، وَالنِّسَاءِ عَلَى الرِّجَالِ

[٥٨٩٤] حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مَسْلَمَةَ حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي حَازِمٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ سَهْلٍ قَالَ كُنَّا نَفْرَحُ يَوْمَ الْجُمُعَةِ. قُلْتُ وَلِمَ قَالَ كَانَتْ لَنَا عَجُوزٌ تُرْسِلُ إِلَى بُضَاعَةَ - قَالَ ابْنُ مَسْلَمَةَ نَخْلٍ بِالْمَدِينَةِ - فَتَأْخُذُ مِنْ أُصُولِ السِّلْقِ فَتَطْرَحُهُ فِي قِدْرٍ، وَتُكَرْكِرُ حَبَّاتٍ مِنْ شَعِيرٍ، فَإِذَا صَلَّيْنَا الْجُمُعَةَ انْصَرَفْنَا وَنُسَلِّمُ عَلَيْهَا فَتُقَدِّمُهُ إِلَيْنَا، فَنَفْرَحُ مِنْ أَجْلِهِ، وَمَا كُنَّا نَقِيلُ وَلاَ نَتَغَدَّى إِلاَّ بَعْدَ الْجُمُعَةِ.

[٥٨٩٥] حَدَّثَنَا ابْنُ مُقَاتِلٍ أَخْبَرَنَا عَبْدُ اللَّهِ أَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ أَبِي سَلَمَةَ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ عَنْ عَائِشَةَ - رضى الله عنها - قَالَتْ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - «يَا عَائِشَةُ هَذَا جِبْرِيلُ يَقْرَأُ عَلَيْكِ السَّلاَمَ». قَالَتْ قُلْتُ وَعَلَيْهِ السَّلاَمُ وَرَحْمَةُ اللَّهِ، تَرَى مَا لاَ نَرَى. تُرِيدُ رَسُولَ اللَّهِ صلى الله عليه وسلم تَابَعَهُ شُعَيْبٌ وَقَالَ يُونُسُ وَالنُّعْمَانُ عَنِ الزُّهْرِيِّ وَبَرَكَاتُهُ

د امام بخاری رحمه الله مقصد دا دې چه سړی په زنانو او زنانه په سړو باندې سلام کولې شی. په دې شرط چه د فتنې ویره نه وی.

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی چه امام بخاری رحمه الله په دې ترجمې سره د هغه روایت تردید کول غواړی چه په هغې کښې د سړو په زنانو او د زنانو په سړو باندې سلام کولو ته مکروه وئیلې شوې دی.

د اسماء بنت یزید رضی الله عنها په روایت کښې د دې تصریح ده چه په هغې کښې دی ﴿ مَرَّ عَلَيْنَا النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - فِي نِسْوَةٍ فَسَلَّمَ عَلَيْنَا ﴾ یعنی رسول الله ﷺ په مونږ زنانو باندې راتیر شو نو هغوی په مونږ باندې سلام اوکړو امام ترمذی رحمه الله دې روایت ته حسن وئیلې دې.[1] خو چونکه دا روایت د امام بخاری رحمه الله په شرط باندې نه وو. په دې وجه ئې نه دې ذکر کړې.

د احناف حضراتو او جمهور فقهاء کرامو په نزد په غیر محرم او پردئ ځوانې زنانه باندې سلام کول جائز نه دی. هم دغه شان په بوډئ مشتهاة باندې هم سلام کول صحیح نه دی، خو که یو بوډئ مشتهاة ده نو په هغې باندې سلام کیدلې شی.[2]

[1]) الجامع للترمذی، کتاب الادب ٩٩/٢، باب ما جاء فی التسلیم علی النساء. (قلت: لم اجده فی الترمذی بهذا اللفظ بل هو فی ابی داؤد)

[2]) اوجز المسالک ١٠٥/١٥، جامع السلام، العمل فی السلام. وشرح صحیح مسلم للنووی: ٢١٥/٢، کتاب السلام، باب استحباب السلام علی الصبیان.

د باب په دويم روايت كښې د سيدنا جبريل عليه السلام په سيده عائشه رضي الله عنها باندې د سلام ذكر دې.
علامه قسطلاني رحمه الله ليكي «وقد كان جبريل عليه السلام يأتي النبي صلى الله عليه وسلم في صورة دحية، وحينئذ فتحصل المطابقة بين الترجمة والحديث، ويزول الاشكال»[1]
يعنى سيدنا جبريل عليه السلام به د رسول الله ﷺ په خدمت كښې د سيدنا دحية الكلبى رضي الله عنه په شكل كښې راتلو. دغه شان په ترجمه او حديث كښې مطابقت حاصليږى او اشكال ختميږى
د باب په آخر كښې د معمر متابعت لره امام بخارى رحمه الله په كتاب الرقاق كښې. د يونس تعليق په مناقب كښې موصولا نقل كړې دې. د نعمان بن راشد تعليق طبرانى موصولا نقل كړې دې[2]

## ⑰ باب إِذَا قَالَ مَنْ ذَا فَقَالَ أَنَا

[٥٨٩٦] حَدَّثَنَا أَبُو الْوَلِيدِ هِشَامُ بْنُ عَبْدِ الْمَلِكِ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ الْمُنْكَدِرِ قَالَ سَمِعْتُ جَابِرًا - رضى الله عنه - يَقُولُ أَتَيْتُ النَّبِيَّ - صلى الله عليه وسلم - فِي دَيْنٍ كَانَ عَلَى أَبِي فَدَقَقْتُ الْبَابَ فَقَالَ «مَنْ ذَا». فَقُلْتُ أَنَا. فَقَالَ «أَنَا أَنَا». كَأَنَّهُ كَرِهَهَا.
په دې روايت كښې سيدنا جابر رضي الله عنه فرمائى چه زه د خپل پلار د قرض په سلسله كښې د رسول الله ﷺ په خدمت كښې حاضر شوم ما دروازه اوټكوله نو رسول الله ﷺ اوفرمائيل څوك ئې؟ ما اووې: زه! رسول الله ﷺ اوفرمائيل: زه زه! ګويا هغوى دا خبره ناخوښه كړه پس ادب هم دا دې چه د استيذان په وخت خپل نوم واخستلې شى. امام بخارى رحمه الله په دې باب كښې هم دا ادب بيان كړې دې.

## ⑱ باب مَنْ رَدَّ فَقَالَ عَلَيْكَ السَّلاَمُ

قَالَ سعيد عن قتادة، عن ابى رافع، عن ابى هريرة، عَنِ النبى صلى الله عليه وسلم قَالَ: هُواذنه.
وَقَالَ النَّبِيُّ صلى الله عليه وسلم - «رَدَّ الْمَلاَئِكَةُ عَلَى آدَمَ السَّلاَمُ عَلَيْكَ وَرَحْمَةُ اللَّهِ».
[٥٨٩٧] حَدَّثَنَا إِسْحَاقُ بْنُ مَنْصُورٍ أَخْبَرَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ نُمَيْرٍ حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللَّهِ عَنْ سَعِيدِ بْنِ أَبِي سَعِيدٍ الْمَقْبُرِيِّ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ - رضى الله عنه أَنَّ رَجُلاً دَخَلَ الْمَسْجِدَ وَرَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - جَالِسٌ فِي نَاحِيَةِ الْمَسْجِدِ فَصَلَّى، ثُمَّ جَاءَ فَسَلَّمَ عَلَيْهِ فَقَالَ لَهُ رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - «وَعَلَيْكَ السَّلاَمُ ارْجِعْ فَصَلِّ فَإِنَّكَ لَمْ تُصَلِّ». فَرَجَعَ فَصَلَّى، ثُمَّ جَاءَ فَسَلَّمَ. فَقَالَ «وَعَلَيْكَ السَّلاَمُ فَارْجِعْ فَصَلِّ، فَإِنَّكَ لَمْ تُصَلِّ». فَقَالَ فِي الثَّانِيَةِ أَوْ فِي الَّتِي

[1] ارشاد السارى ٢٥٢/١٣
[2] ارشاد السارى ٢٥٢/١٣، عمدة القارى ٢٤٢/٢٢، فتح البارى ١٤١/١١

بَعْدَهَا عَلِّمْنِي يَا رَسُولَ اللّٰهِ. فَقَالَ «إِذَا قُمْتَ إِلَى الصَّلَاةِ فَأَسْبِغِ الْوُضُوءَ، ثُمَّ اسْتَقْبِلِ الْقِبْلَةَ فَكَبِّرْ، ثُمَّ اقْرَأْ بِمَا تَيَسَّرَ مَعَكَ مِنَ الْقُرْآنِ، ثُمَّ ارْكَعْ حَتَّى تَطْمَئِنَّ رَاكِعًا، ثُمَّ ارْفَعْ حَتَّى تَسْتَوِيَ قَائِمًا، ثُمَّ اسْجُدْ حَتَّى تَطْمَئِنَّ سَاجِدًا، ثُمَّ ارْفَعْ حَتَّى تَطْمَئِنَّ جَالِسًا، ثُمَّ اسْجُدْ حَتَّى تَطْمَئِنَّ سَاجِدًا، ثُمَّ ارْفَعْ حَتَّى تَطْمَئِنَّ جَالِسًا، ثُمَّ افْعَلْ ذٰلِكَ فِي صَلَاتِكَ كُلِّهَا». وَقَالَ أَبُو أُسَامَةَ فِي الْأَخِيرِ «حَتَّى تَسْتَوِيَ قَائِمًا».

حَدَّثَنَا ابْنُ بَشَّارٍ قَالَ حَدَّثَنِي يَحْيَى عَنْ عُبَيْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنِي سَعِيدٌ عَنْ أَبِيهِ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - «ثُمَّ ارْفَعْ حَتَّى تَطْمَئِنَّ جَالِسًا». [ر ٧٢٤]

**د ترجمة الباب مقصد**: د امام بخاري رحمه الله په ترجمة الباب سره مقصد دا دې چه د سلام جواب ورکولو سره ﴿عليك السلام﴾ هم وئيلې شى او ﴿السلام عليك﴾ هم وئيلې شى. لفظ على مقدم کولې هم شى او موخر کولې هم او دې طرف ته هم اشاره کيدې شى چه د واؤ نه بغير جواب ورکړې کيدې شى، د مفرد صيغه استعمالولې شى. [1]

افضل هم دا ده چه په جواب کښې ﴿وعليكم السلام﴾ د جمع په صيغې سره جواب ورکړې شى. اګر چه مخاطب يو وى. [2]

**قوله**: ﴿وَقَالَتْ عَائِشَةُ: وَعَلَيْهِ السَّلَامُ وَرَحْمَةُ اللّٰهِ وَبَرَكَاتُهُ﴾: دا حديث اوس موصولا تير شوې دې. په دې کښې ﴿عليه﴾ جار مجرور په ﴿السلام﴾ باندې مقدم دې ﴿وَقَالَ النَّبِيُّ صلى الله عليه وسلم رَدَّ الْمَلَائِكَةُ عَلَى آدَمَ السَّلَامُ عَلَيْكَ وَرَحْمَةُ اللّٰهِ﴾ يعنى ملائکو سيدنا آدم عليه السلام ته په جواب کښې وئيلې وو: ﴿السلام عليك ورحمة الله﴾ په دې کښې السلام مقدم دې. دا تعليق هم د کتاب الاستيذان په شروع کښې موصولا تير شوې دې.

په حديث الباب کښې د ﴿وعليك السلام﴾ الفاظ راغلى دى. په دې کښې هم ﴿عليك﴾ مقدم دې. دا حديث په کتاب الصلاة کښې په تفصيل سره تير شوې دې. [3]

د ابو اسامة تعليق په کتاب الايمان والنذور کښې موصولا ذکر کړې شوې دې. [4]

---

[1]) عمدة القارى ٢٤٥/٢٢. ارشاد السارى ٢٥٤/١٣، فتح البارى ٤٤/١١

[2]) وفى رد المختار: ٢٩٣/٥: والافضل للمسلم ان يقول: السلام عليكم ورحمة الله وبركاته والمجيب كذلك يرد. وارشاد السارى ٢٥٦/١٣. وكما اخرج البخارى من طريق معاوية بن قرة قال: قَالَ لِي أَبِي: يَا بُنَيَّ، إِذَا مَرَّ بِكَ الرَّجُلُ فَقَالَ: السَّلَامُ عَلَيْكُمْ. فَلَا تَقُلْ: وَعَلَيْكَ. كَأَنَّكَ تَخُصُّهُ بِذٰلِكَ وَحْدَهُ. فَإِنَّهُ لَيْسَ وَحْدَهُ. وَلٰكِنْ قُلْ: السَّلَامُ عَلَيْكُمْ ... الادب المفرد (مع فضل الله الصمد) ٤٨٥/٢، ٤٨٦. (رقم الحديث ١٠٣٧) باب كيف رد السلام.

[3]) صحيح البخارى ١٦٧/١، كتاب الصلاة، باب وجوب القراءة للامام والماموم فى الصلاة كلها فى الحضر والسفر. رقم الحديث ٧٥٧.

[4]) صحيح البخارى، كتاب الايمان والنذور، باب اذا حنث ناسيا فى الايمان، رقم الحديث ٦٦٦٧.

## ⑲ باب إذا قال فلانٌ يقرئك السلام

[٥٨٩٨] حَدَّثَنَا أَبُو نُعَيْمٍ حَدَّثَنَا زَكَرِيَّاءُ قَالَ سَمِعْتُ عَامِرًا يَقُولُ حَدَّثَنِي أَبُو سَلَمَةَ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ أَنَّ عَائِشَةَ -رضي الله عنها- حَدَّثَتْهُ أَنَّ النَّبِيَّ -صلى الله عليه وسلم- قَالَ لَهَا «إِنَّ جِبْرِيلَ يُقْرِئُكِ السَّلَامَ». قَالَتْ وَعَلَيْهِ السَّلَامُ وَرَحْمَةُ اللهِ. [ر: ٣٠٤٥]

**د ترجمة الباب غرض**: شيخ الحديث مولانا محمد زكريا رحمه الله فرمائي چه امام بخاري رحمه الله كيدي شي د رواياتو د اختلاف طرف ته اشاره كوي، امام ابوداؤد رحمه الله هم بعينه هم دا ترجمه قائم كړې ده (١) او د هغې د لاندې ئې دوه احاديث ذكر كړې دي. يو حديث كوم چه د بنو تميم د يو سړي نه روايت كړې شوې دې، چه د هغه نوم نه دې ذكر كړې شوې. هغوى وائي چه ماته زما پلار او هغوى ته زما نيكۀ دا حديث بيان كړو چه زما پلار زه رسول الله ﷺ ته اوليږلم چه هغوى ته سلام اووايه: ﴿ فَأَتَيْتُهُ فَقُلْتُ إِنَّ أَبِي يُقْرِئُكَ السَّلَامَ. فَقَالَ «عَلَيْكَ وَعَلَى أَبِيكَ السَّلَامُ» ﴾ يعنى زه د رسول الله ﷺ په خدمت كښې حاضر شوم او عرض مې اوكړو چه زما والد صاحب تاسو ته سلام كولو نو رسول الله ﷺ اوفرمائيل: ﴿ عَلَيْكَ وَعَلَى أَبِيكَ السَّلَامُ ﴾.

د دې نه پس امام ابوداؤد رحمه الله د عائشه رضي الله عنها مذكوره حديث ذكر كړې دې. په دې كښې صرف ﴿ وعليه السلام ﴾ دې. په مبلغ باندې يعنى سلام رارسونكى باندې سلام نشته. (٢)

مولانا خليل احمد سهارنپوري رحمه الله فرمائي چه په دواړو طريقو سره جواب وركول جائز دې. (٣) د امام بخاري رحمه الله مقصد كيدې شي چه دې طرف ته اشاره كول وي چه په رواياتو كښې دواړه طريقې راغلى دي. (٤) امام نووي رحمه الله فرمائي:

﴿ في هذا الحديث مشروعية ارسال السلام، ويجب على الرسول تبليغه، لانه امانة، وتعقب بانه بالوديعة اشبه، والتحقيق: ان الرسول ان التزمه اشبه بالامانة والا فوديعة، والودائع اذا لم تقبل لم يلزمه شئ ﴾ (٥)

يعنى په دې حديث كښې د سلام ليږلو د مشروعيت ذكر دې او په قاصد باندې د هغه رسول واجب دى ځكه چه دا امانت دې، بعض د دې تعاقب كولو سره ليكلي دى چه دا د وديعة زيات مشابه دې، تحقيقي خبره دا ده چه كه قاصد د دې زيات التزام اوكړو نو دا به د امانت سره زيات مشابه وى ګينې بيا به وديعة وى او د ودائع حكم دا دې چه كه هغه قبوله نه كړې شوه نو په هغه باندې هيڅ هم لازم نه دى.

---

(١) سنن ابى داؤد ٣٥٨/٤، كتاب الادب، باب فى الرجل يقول: فلان يقرئك السلام.
(٢) سنن ابى داؤد، كتاب الادب، باب فى الرجل يقول: فلان يقرئك السلام: ٣٥٩/٤، رقم الحديث ٥٢٣٢
(٣) بذل المجهود، باب فى الرجل يقول للرجل فلان يقرئك السلام فكيف يرد؟ ١٧١/٢
(٤) فتح البارى ٣٨/١١.
(٥) ارشاد السارى ٢٥٧/١٣، لامع الدرارى، كتاب الاستيذان، باب اذا قال: فلان يقرئك السلام ٥٥/١٠

# ⑳ باب التَّسْلِيمِ فِي مَجْلِسٍ فِيهِ أَخْلَاطٌ مِنَ الْمُسْلِمِينَ وَالْمُشْرِكِينَ

[۵۸۹۹] حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ مُوسَى أَخْبَرَنَا هِشَامٌ عَنْ مَعْمَرٍ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ عُرْوَةَ بْنِ الزُّبَيْرِ قَالَ أَخْبَرَنِي أُسَامَةُ بْنُ زَيْدٍ أَنَّ النَّبِيَّ صلى الله عليه وسلم رَكِبَ حِمَارًا عَلَيْهِ إِكَافٌ، تَحْتَهُ قَطِيفَةٌ فَدَكِيَّةٌ، وَأَرْدَفَ وَرَاءَهُ أُسَامَةَ بْنَ زَيْدٍ وَهُوَ يَعُودُ سَعْدَ بْنَ عُبَادَةَ فِي بَنِي الْحَارِثِ بْنِ الْخَزْرَجِ، وَذَلِكَ قَبْلَ وَقْعَةِ بَدْرٍ حَتَّى مَرَّ فِي مَجْلِسٍ فِيهِ أَخْلَاطٌ مِنَ الْمُسْلِمِينَ وَالْمُشْرِكِينَ عَبَدَةِ الْأَوْثَانِ وَالْيَهُودِ، وَفِيهِمْ عَبْدُ اللَّهِ بْنُ أُبَيٍّ ابْنُ سَلُولَ، وَفِي الْمَجْلِسِ عَبْدُ اللَّهِ بْنُ رَوَاحَةَ، فَلَمَّا غَشِيَتِ الْمَجْلِسَ عَجَاجَةُ الدَّابَّةِ خَمَّرَ عَبْدُ اللَّهِ بْنُ أُبَيٍّ أَنْفَهُ بِرِدَائِهِ ثُمَّ قَالَ لَا تُغَبِّرُوا عَلَيْنَا. فَسَلَّمَ عَلَيْهِمُ النَّبِيُّ صلى الله عليه وسلم ثُمَّ وَقَفَ فَنَزَلَ، فَدَعَاهُمْ إِلَى اللَّهِ وَقَرَأَ عَلَيْهِمُ الْقُرْآنَ فَقَالَ عَبْدُ اللَّهِ بْنُ أُبَيٍّ ابْنُ سَلُولَ أَيُّهَا الْمَرْءُ لَا أَحْسَنَ مِنْ هَذَا، إِنْ كَانَ مَا تَقُولُ حَقًّا، فَلَا تُؤْذِنَا فِي مَجَالِسِنَا، وَارْجِعْ إِلَى رَحْلِكَ، فَمَنْ جَاءَكَ مِنَّا فَاقْصُصْ عَلَيْهِ. قَالَ ابْنُ رَوَاحَةَ اغْشَنَا فِي مَجَالِسِنَا، فَإِنَّا نُحِبُّ ذَلِكَ. فَاسْتَبَّ الْمُسْلِمُونَ وَالْمُشْرِكُونَ وَالْيَهُودُ حَتَّى هَمُّوا أَنْ يَتَوَاثَبُوا، فَلَمْ يَزَلِ النَّبِيُّ صلى الله عليه وسلم- يُخَفِّضُهُمْ، ثُمَّ رَكِبَ دَابَّتَهُ حَتَّى دَخَلَ عَلَى سَعْدِ بْنِ عُبَادَةَ فَقَالَ «أَيْ سَعْدُ أَلَمْ تَسْمَعْ مَا قَالَ أَبُو حُبَابٍ». يُرِيدُ عَبْدَ اللَّهِ بْنَ أُبَيٍّ قَالَ كَذَا وَكَذَا قَالَ اعْفُ عَنْهُ يَا رَسُولَ اللَّهِ وَاصْفَحْ فَوَاللَّهِ لَقَدْ أَعْطَاكَ اللَّهُ الَّذِي أَعْطَاكَ، وَلَقَدِ اصْطَلَحَ أَهْلُ هَذِهِ الْبَحْرَةِ عَلَى أَنْ يُتَوِّجُوهُ فَيُعَصِّبُونَهُ بِالْعِصَابَةِ، فَلَمَّا رَدَّ اللَّهُ ذَلِكَ بِالْحَقِّ الَّذِي أَعْطَاكَ شَرِقَ بِذَلِكَ، فَذَلِكَ فَعَلَ بِهِ مَا رَأَيْتَ، فَعَفَا عَنْهُ النَّبِيُّ -صلى الله عليه وسلم-[ر: ۲۸۲۵]

**د مسلمانانو او کفارو په مخلوط مجلس باندې د سلام حکم**: چه په يو داسې مجلس باندې ورتير شی چه په هغې کښې مسلمانان او کفار دواړه وی، هلته سلام کول پکار دی. امام نووی رحمه الله فرمائی چه دا سنت ده چه کله په يو داسې مجلس باندې ورتير شی نو سلام علی العموم کول پکار دی او قصد د مسلمانانو کول پکار دی.[1] ابن العربی رحمه الله فرمائی چه هم دا حکم د داسې مجلس دې چه په هغې کښې اهل سنت او اهل بدعت وی، عادل او ظالم وی، نيک او فاجر وی، نو سلام کول پکار دی خو اراده د نيکانو خلقو کول پکار دی.[2]

په حديث الباب کښې دی: «حَتَّى مَرَّ فِي مَجْلِسٍ فِيهِ أَخْلَاطٌ مِنَ الْمُسْلِمِينَ وَالْمُشْرِكِينَ عَبَدَةِ الْأَوْثَانِ

[1]) فتح الباری ۴۷/۱۱، والابواب والتراجم، کتاب الاستئذان، باب التسليم فی مجلس فيه اخلاط من المسلمين والمشرکين.

[2]) فتح الباری ۴۷/۱۱، شرح سنن الترمذی للامام ابی بکر ابن العربی المالکی ۱۷۳/۱۰، ابواب الاستئذان باب ما جاء فی السلام قبل الکلام

وَالْيَهُودِ ... فَسَلَّمَ عَلَيْهِمُ النَّبِيُّ صلى الله عليه وسلم ﴾ يعنی رسول اللهﷺ په داسې مجلس باندې ورتېر شو چه په هغې کښې د مسلمانانو نه علاوه بت پرست او يهوديان هم وو نو رسول اللهﷺ په هغوی باندې سلام اوکړو.

## ۲۱: باب مَنْ لَمْ يُسَلِّمْ عَلَى مَنِ اقْتَرَفَ ذَنْبًا، وَلَمْ يَرُدَّ سَلَامَهُ حَتَّى تَتَبَيَّنَ تَوْبَتُهُ، وَإِلَى مَتَى تَتَبَيَّنُ تَوْبَةُ الْعَاصِي

وَقَالَ عَبْدُ اللَّهِ بْنُ عَمْرٍو لَا تُسَلِّمُوا عَلَى شَرَبَةِ الْخَمْرِ.

[۵۹۰۰] حَدَّثَنَا ابْنُ بُكَيْرٍ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ عُقَيْلٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ أَنَّ عَبْدَ اللَّهِ بْنَ كَعْبٍ قَالَ سَمِعْتُ كَعْبَ بْنَ مَالِكٍ يُحَدِّثُ حِينَ تَخَلَّفَ عَنْ تَبُوكَ وَنَهَى رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - عَنْ كَلَامِنَا، وَآتِي رَسُولَ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - فَأُسَلِّمُ عَلَيْهِ، فَأَقُولُ فِي نَفْسِي هَلْ حَرَّكَ شَفَتَيْهِ بِرَدِّ السَّلَامِ أَمْ لَا حَتَّى كَمَلَتْ خَمْسُونَ لَيْلَةً، وَآذَنَ النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - بِتَوْبَةِ اللَّهِ عَلَيْنَا حِينَ صَلَّى الْفَجْرَ. [ر: ۲۲۰۹]

**د ترجمة الباب مقصد:** د ترجمة الباب دوه اجزاء دی.

① اول جزء دا دې چه په فاسق او ګناهګار باندې سلام نه دی کول پکار تردې چه هغه توبه اوکړي. حافظ ابن حجرؒ فرمائی چه امام بخاریؒ د دې مسئلې په حکم کښې د اختلاف طرف ته اشاره فرمائيلې ده.[۱]

**په فاسق او مبتدع باندې د سلام کولو حکم:** پس د جمهور علماء کرامو په نزد په فساق او مبتدعين باندې سلام نه دی کول پکار. خو که د هغه د طرف نه د سلام نه کولو په صورت کښې د نقصان رسولو ويره وی نو بيا د سلام ګنجائش شته.[۲] امام نوویؒ د دې تصريح کړې ده.[۳]

امام ابن العربیؒ په دې باندې دومره اضافه کړې ده چه په دې صورت کښې دې د سلام کولو په وخت دا نيت اوکړې شی چه سلام د الله پاک په نومونو کښې يو نوم دې نو ګويا د ﴿السلام عليکم﴾ معنی ده ﴿الله رقيب عليکم﴾.[۴]

خو د بعض علماء کرامو په نزد په فاسق او بدعتی باندې سلام کول جائز دی. ابن وهب فرمائی چه په کافر باندې هم سلام کيدلې شی.[۵]

---

[۱] فتح الباری ۱۱/۴۸

[۲] فتح الباری ۱۱/۴۸، ارشاد الساری ۱۳/۲۶۰، عمدة القاری: ۲۲/۲۴۷

[۳] شرح صحيح مسلم للنووی ۲/۲۱۴، کتاب السلام، باب النهی عن ابتداء اهل الکتاب بالسلام وکيف يرد عليهم.

[۴] شرح سنن الترمذی للامام ابی بکر ابن العربی المالکی ۱۰/۱۷۴، ابواب الاستئذان

[۵] فتح الباری ۱۱/۴۸، عمدة القاری ۲۲/۲۴۷

په درمختار کښې دی چه په فاسق باندې سلام کول مکروه دی. په دې شرط چه هغه د خپل فسق اعلان کونکې وی. خو که څوک ښکاره فسق کونکې نه وی نو بیا سلام بغیر د کراهت نه جائز دې.[1]

د ترجمة الباب دویم جزء دې ﴿الى متى تتبين توبة العاصى﴾ یعنی د ګناه کونکی د توبې صحت به کله معلومیږی. یعنی د داسې قرائن دپاره څومره موده پکار ده چه په هغې کښې د هغه د توبې صحت معلوم شی، په هغې کښې یو کال، شپږ میاشتې او پنځوس ورځو موده ذکر کړې شوې ده چه په دومره موده کښې د هغه حالت واضح کیږی.[2]

ابن بطال رحمه الله فرمائی چه په دې کښې هیڅ موده نه شی متعین کیدې.[3]

د حافظ ابن حجر او علامه عینی رحمهما الله د کلام نه معلومیږی چه امام بخاری رحمه الله په ترجمة الباب کښې دوه اجزاء ذکر کړې دی. یو سلام او د هغې جواب. دویم د توبې د صحت موده

د شیخ الحدیث مولانا محمد زکریا رحمه الله رائې: شیخ الحدیث مولانا محمد زکریا رحمه الله فرمائی چه د فقهاء احناف د کتابونو تفصیلات که اوکتلې شی نو د دوو په ځائې ترجمة الباب په درې اجزاء باندې مشتمل دې. یو سلام. دویم د هغې جواب او دریم د توبې د صحت موده. سلام او جواب دواړه بیل بیل حکم لری، چرته چه سلام کول شرعا جائز نه وی. هلته جواب هم مشروع نه دې. خو که فاسق سلام کړې وی نو د هغې جواب ورکول واجب کیږی.[4]

صاحب د بحر الرائق د دې طرف ته اشاره کړې ده.[5]

## قوله: ﴿وَقَالَ عَبْدُاللهِ بْنُ عَمْرٍو لَاتُسَلِّمُوا عَلَى شَرَبَةِ الْخَمْرِ﴾:

شربة: د شارب جمع ده، سیدنا عبدالله بن عمرو بن العاص رضی الله عنهما فرمائی: په شراب څکونکو باندې سلام مه کوئ. دا اثر امام بخاری رحمه الله د په الادب المفرد کښې موصولا نقل کړې دې.[6]

د دې نه پس په باب کښې امام بخاری رحمه الله د سیدنا کعب بن مالک رضی الله عنه حدیث نقل کړې دې.

---

[1]) رد المختار ٢٩٤/٥

[2]) فتح البارى ٤٨/١١، الابواب والتراجم، كتاب الاستئذان، باب من لم يسلم على من اقترف ذنبا ولم يرد سلامه حتى تتبين توبته. ١٢٣/٢

[3]) شرح صحيح البخارى لابن بطال ٣٦/٩

[4]) الابواب والتراجم، كتاب الاستئذان باب من لم يسلم على من اقترف ذنبا ولم يرد سلام حتى تتبين توبته. ١٢٣/٢

[5]) ثُمَّ اعلَمْ اَنَّهُ يُكْرَهُ السَّلَامُ عَلَى الْمُصَلِّى وَالْقَارِئ وَالْجَالِسِ لِلْقَضَاءِ اَوْ الْبَحْثِ فِى الْفِقْهِ اَوْ التَّخَلِّى وَلَوْ سَلَّمَ عَلَيْهِمْ لَا يَجِبُ عَلَيْهِمْ الرَّدُّ لِاَنَّهُ فِى غَيْرِ مَحَلِّهِ. بابَ ما يفسد الصلاة وما يكره فيها: البحر الرائق ٩/٢، وقال فى رد المختار: وينبغى وجوب الرد على الفاسق لأن كراهة السلام عليه للزجر فلا تنافى الوجوب عليه، باب ما يفسد الصلاة وما يكره ٤٥٧/١.

[6]) الادب المفرد مع فضل الله الصمد ٤٧٢/٢، باب لا يسلم على فاسق. خو په الادب المفرد کښې د ﴿شربة الخمر﴾ په ځائې ﴿شُرَّابِ الْخَمْرِ﴾ دې.

په هغې کښې د رسول اللهﷺ هغوی سره د ترک سلام و کلام قصه ذکر کړې شوې ده. معلومه شوه چه د گناه د وجې نه ترک سلام کیدلې شی.

## ۲۲: باب کیف یرد علی أهل الذمة السلام

[۵۹۰۱] حدثنا أبو الیمان أخبرنا شعیب عن الزهری قال أخبرنی عروة أن عائشة -رضی الله عنها- قالت دخل رهط من الیهود علی رسول الله -صلی الله علیه وسلم- فقالوا السام علیك. ففهمتها فقلت علیکم السام واللعنة. فقال رسول الله -صلی الله علیه وسلم- «مهلا یا عائشة، فإن الله یحب الرفق فی الأمر کله». فقلت یا رسول الله أولم تسمع ما قالوا قال رسول الله -صلی الله علیه وسلم- «فقد قلت وعلیکم». [ر: ۲۷۷۷]

سیده عائشه رضی الله عنها روایت کوی چه د یهودو یو جماعت د رسول اللهﷺ په خدمت کښې حاضر شو او وې وئیل ﴿السام علیك﴾ (یعنی په تا دې لعنت وی)، زه پرې پوهه شوم نو ما اووې ﴿علیکم السام واللعنة﴾ (هم په تاسو دې هلاکت او لعنت وی) رسول اللهﷺ اوفرمائیل: اې عائشې پریږده! الله پاک په ټولو معاملاتو کښې نرمی خوښوی. ما عرض اوکړو: یا رسول اللهﷺ! آیا تاسو واونریدل چه دې خلقو څه اووې؟ رسول اللهﷺ اوفرمائیل: ما هم ﴿وعلیکم﴾ اووې.

[۵۹۰۲] [1] حدثنا عبد الله بن یوسف أخبرنا مالك عن عبد الله بن دینار عن عبد الله بن عمر -رضی الله عنهما- أن رسول الله -صلی الله علیه وسلم- قال: «إذا سلم علیکم الیهود فإنما یقول أحدهم السام علیك. فقل وعلیك». [۶۵۲۹]

د سیدنا عبدالله بن عمر رضی الله عنهما نه روایت دې چه رسول اللهﷺ اوفرمائیل چه کله یهود تاسو ته سلام اوکړی او په هغوی کښې یو کس ﴿السام علیك﴾ اوائی نو تاسو ﴿وعلیك﴾ وایئ.

[۵۹۰۳] [2] حدثنا عثمان بن أبی شیبة حدثنا هشیم أخبرنا عبید الله بن أبی بکر بن أنس حدثنا أنس بن مالك -رضی الله عنه- قال قال النبی -صلی الله علیه وسلم-

[1] الحدیث اخرجه البخاری ایضا فی کتاب استتابة المرتدین والمعاندین وقتالهم، باب اذا عرض الذمی وغیره بسب النبیﷺ ولم یصرح نحو قوله: السام علیک (رقم الحدیث ۶۹۲۸) واخرجه مسلم فی کتاب السلام، باب النهی عن ابتداء اهل الکتاب بالسلام وکیف یرد علیهم (رقم الحدیث ۲۱۶۳) واخرجه ابوداؤد فی کتاب الادب، باب فی السلام علی اهل الذمة (رقم الحدیث ۵۲۰۶) واخرجه الترمذی فی کتاب الاستئذان، باب ما جاء فی التسلیم علی اهل الذمة (رقم الحدیث ۲۷۰۱) واخرجه ابن ماجة فی کتاب الادب باب رد السلام علی اهل الذمة (رقم الحدیث ۳۶۹۸)

[2] الحدیث اخرجه البخاری ایضا فی کتاب استتابة المرتدین والمعاندین وقتالهم، باب اذا عرض الذمی وغیره بسب النبیﷺ ولم یصرح نحو قوله: السام علیک (رقم الحدیث ۶۹۲۶) ... [بقیه برصفحه آئنده...

«إذَاسَلَّمَ عَلَيْكُمْ أَهْلُ الْكِتَابِ فَقُولُوا وَعَلَيْكُمْ».
د سیدنا انس بن مالک رضی الله عنه نه روایت دې چه رسول الله ﷺ اوفرمائیل چه کله تاسو ته اهل کتاب سلام اوکړی نو تاسو ﴿وعلیك﴾ وایئ.

**د ترجمة الباب غرض**: ذمیانو که سلام اوکړو نو څنګه به جواب ورکولې شی؟ ﴿کیف یرد﴾ وئیلو سره امام بخاری رحمه الله دې خبرې ته اشاره اوکړه چه د سلام جواب ورکولو ممنوع نه دی. خو د جواب کیفیت په دې کښې مختلف دې.
د بعض علماء کرامو په نزد پوره جواب ورکول فرض دی. د ابن عباس رضی الله عنهما نه نقل دی چه ﴿من سلم علیك فرده، ولوکان مجوسیا﴾ یعنی څوک چه سلام کوی د هغه جواب ورکوئ اګر چه هغه مجوسی وی، د امام قتادة او امام شعبی رحمهما الله هم دا مسلک دې.[1]

د جمهور علماء کرامو په نزد به د هغوی د سلام په جواب کښې صرف ﴿وعلیکم﴾ وئیلې شی. د لفظ سلام سره به جواب نه شی ورکولې.[2]

په درمختار کښې دی ﴿ولو سلم یهودی أو نصرانی أو مجوسی علی مسلم فلا بأس بالرد ولکن لا یزید علی قوله وعلیك﴾[3] یعنی که یو یهودی، نصرانی یا مجوسی په مسلمانانو باندې سلام اوکړو نو په جواب ورکولو کښې څه باک نشته، خو په جواب کښې به صرف ﴿وعلیك﴾ وئیلې شی د دې نه زیات نه.
د باب نه لاندې چه امام بخاری رحمه الله کوم حدیث ذکر کړې دې، د هغې مناسبت د باب سره ښکاره دې.

---

...بقیه ازحاشیه ګذشته] واخرجه مسلم فی کتاب السلام، باب النهی عن ابتداء اهل الکتاب بالسلام وکیف یرد علیهم (رقم الحدیث ۲۱۶۳) وفی روایة ابی داؤد: أَنَّ أَصْحَابَ النَّبِيِّ -صلی الله علیه وسلم- قَالُوا لِلنَّبِيِّ -صلی الله علیه وسلم- إِنَّ أَهْلَ الْكِتَابِ يُسَلِّمُونَ عَلَيْنَا فَكَيْفَ نَرُدُّ عَلَيْهِمْ قَالَ: قُولُوا وَعَلَيْكُمْ. کتاب الادب، باب فی السلام علی اهل الذمة (رقم الحدیث: ۵۲۰۶) واخرجه ابن ماجة فی کتاب الادب، باب رد السلام علی اهل الذمة (رقم الحدیث ۳۶۹۷)

[1] فتح الباری ۵۰/۱۱، عمدة القاری ۲۴۸/۲۲
[2] شرح صحیح مسلم للنووی ۲۱۳/۲، کتاب السلام، باب النهی عن البداء اهل الکتاب، بالسلام وکیف یرد علیهم، وفتح الباری ۵۳/۱۱
[3] الدر المختار ۲۹۲/۵

# ۲۳: باب من نظر في كتاب من يحذر على المسلمين ليستبين أمره

[۵۹۰۴] حدثنا يوسف بن بهلول حدثنا ابن إدريس قال حدثني حصين بن عبد الرحمن عن سعد بن عبيدة عن أبي عبد الرحمن السلمي عن علي رضى الله عنه قال بعثني رسول الله صلى الله عليه وسلم والزبير بن العوام وأبا مرثد الغنوي وكلنا فارس فقال «انطلقوا حتى تأتوا روضة خاخ، فإن بها امرأة من المشركين معها صحيفة من حاطب بن أبي بلتعة إلى المشركين». قال فأدركناها تسير على جمل لها حيث قال لنا رسول الله - صلى الله عليه وسلم - قال قلنا أين الكتاب الذي معك قالت ما معي كتاب. فأنخنا بها، فابتغينا في رحلها فما وجدنا شيئا، قال صاحباى ما نرى كتابا. قال قلت لقد علمت ما كذب رسول الله صلى الله عليه وسلم والذي يحلف به لتخرجن الكتاب أو لأجردنك. قال فلما رأت الجد مني أهوت بيدها إلى حجزتها وهي محتجزة بكساء فأخرجت الكتاب قال فانطلقنا به إلى رسول الله صلى الله عليه وسلم فقال «ما حملك يا حاطب على ما صنعت» قال ما بي إلا أن أكون مؤمنا بالله ورسوله، وما غيرت ولا بدلت، أردت أن تكون لي عند القوم يد يدفع الله بها عن أهلي ومالي، وليس من أصحابك هناك إلا وله من يدفع الله به عن أهله وماله. قال «صدق فلا تقولوا له إلا خيرا». قال فقال عمر بن الخطاب إنه قد خان الله ورسوله والمؤمنين، فدعني فأضرب عنقه. قال فقال «يا عمر وما يدريك لعل الله قد اطلع على أهل بدر فقال اعملوا ما شئتم فقد وجبت لكم الجنة» قال فدمعت عينا عمر وقال الله ورسوله أعلم. [ر: ۲۸۴۵]

د سيدنا علي رضي الله عنه نه روايت دې چه رسول الله ﷺ زه. سيدنا زبير بن عوام او سيدنا ابو مرثد الغنوي رضي الله عنهما اوليږلو او په مونږ کښې هر يو په اس باندې سور وو او حکم ئې راکړو چه روضه خاخ ته لاړ شئ. هلته يو مشرکه زنانه ده. هغه سره د حاطب بن ابی بلتعه رضي الله عنه خط دې کوم چه د مشرکانو په نوم دې. سيدنا علي رضي الله عنه فرمائی چه مونږ هغه هلته په اوبښ باندې تلونکې بيا موندله د کوم ځائې چه رسول الله ﷺ خبر راکړې وو او مونږ ورته اووې هغه خط کوم چه تا سره دې چرته دې؟ هغې اووې: ما سره خو هيڅ خط نشته؟ مونږ د هغې اوبښ چو کړو، او د هغې د کيجاوې وغيره تلاشی مو واخستله خو هغه خط ملاؤ نه شو. زما دواړو ملګرو هم اووې چه خط نشته. بيا ما اووې: ماته معلومه ده چه رسول الله ﷺ دروغ نه دی وئيلی، قسم دې په هغه ذات چه د هغه قسم خوړلې شی خط راوباسه ګينې تا به بربنډه کړم، چه کله هغې زمونږ سختی اوليده نو د هغه ځادر نه ئې چه د هغې نه ئې لنګ وهلې وو، خط راويستلو او رائې کړو، مونږ هغه خط اخستلو سره د رسول الله ﷺ په خدمت کښې حاضر

شو. رسول الله ﷺ اوفرمائيل : حاطب! تا داسې ولې اوكړل؟ حاطب رضي الله عنه عرض اوكړو : يا رسول الله ﷺ! زه په الله او د هغه په رسول ﷺ ايمان لرم. زه بدل شوې نه يم (يعني مرتد شوې نه يم) ما اوغوښتله چه په هغوى باندې احسان اوكړم چه هغوى زما د اهل وعيال دفاع او نګرانى اوكړى او د نورو صحابه كرامو رضي الله عنهم رشته دار هلته موجود دى كوم چه د هغوى د اهل وعيال نګرانى كوى. رسول الله ﷺ اوفرمائيل : حاطب رشتيا وائى. اوس هغه ته هيڅ مه وايئ. سيدنا عمر بن الخطاب رضي الله عنه عرض اوكړو چه هغه د الله پاک، رسول الله ﷺ او مومنانو سره خيانت كړې دې تاسو ماته اجازت راكړئ چه زه د هغه سټ اووهم. رسول الله ﷺ اوفرمائيل : اې عمر! تاته معلومه نه ده چه الله پاک د اهل بدر متعلق خبر وركړې دې چه څه مو خوښه وى كوئ! ستاسو دپاره جنت واجب شو. د راوى بيان دې چه د سيدنا عمر رضي الله عنه د سترګو نه اوښكې روانې شوې او عرض ئې اوكړو: الله پاک او د هغه رسول ﷺ ښه پوهيږى.

**د ترجمة الباب مقصد** : بغير د اجازت نه د چا خط لوستل جائز نه دى. امام ابوداؤد رحمه الله د سيدنا ابن عباس رضي الله عنهما روايت نقل كړې دې په هغې كښې دى ﴿ مَنْ نَظَرَ فِي كِتَابِ أَخِيهِ بِغَيْرِ إِذْنِهِ فَإِنَّمَا يَنْظُرُ فِي النَّارِ ﴾ يعني چا چه د خپل رور د اجازت نه بغير د هغه خط اوكتلو ګويا هغه اور وينى.[۱] امام بخارى رحمه الله په دې باب سره دې طرف ته اشاره اوفرمائيله چه د عدم اجازت حكم هغه وخت دې چه كله هغه خط د مسلمانانو دپاره مضر او نقصان وركونكې نه وى، كه يو مشكوک خط وى يا د يو متهم سړى خط دې نو هغې لره پرانستلو سره بغير د اجازت نه لوستلې كيدې شى. پس د سنن ابى داؤد د حديث متعلق علامه قسطلانى رحمه الله فرمائى : ﴿انما هو فى حق من لم يكن متهما على المسلمين، واما من كان متهما فلا حرمة له﴾[۲] بغير د اجازت نه د چا خط لوستل اګر چه په عام حالاتو كښې صحيح نه دى خو په مشكوک خط كښې چونكه د زياتې خطرې او فساد ويره وى په دې وجه د هغې د لوستلو ګنجائش شته.

په حديث الباب كښې د سيدنا حاطب بن ابى بلتعه (البدرى) رضي الله عنه د خط واقعه ذكر شوې ده. كومه چه په كتاب التفسير كښې د سورة ممتحنة د لاندې تيره شوې ده او په كتاب المغازى كښې ﴿ باب فضل من شهد بدرا ﴾ د لاندې هم دا حديث تير شوې دې. هم هلته په كشف البارى كښې د دې تفصيل راغلې دې.[۳]

---

[۱]) سنن ابى داؤد، كتاب الصلاة باب الدعاء، ۷۸/۲ (رقم الحديث ۱۴۸۵) (ضعفه ابوداؤد)
[۲]) ارشاد السارى ۲۶۵/۱۳
[۳]) كشف البارى، كتاب المغازى باب فضل من شهد بدرا : ۱۲۹، ۱۳۶

## ٢٤: باب كَيْفَ يُكْتَبُ الْكِتَابُ إِلَى أَهْلِ الْكِتَابِ

[٥٩٠٥] حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ مُقَاتِلٍ أَبُو الْحَسَنِ أَخْبَرَنَا عَبْدُ اللَّهِ أَخْبَرَنَا يُونُسُ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ أَخْبَرَنِي عُبَيْدُ اللَّهِ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُتْبَةَ أَنَّ ابْنَ عَبَّاسٍ أَخْبَرَهُ أَنَّ أَبَا سُفْيَانَ بْنَ حَرْبٍ أَخْبَرَهُ أَنَّ هِرَقْلَ أَرْسَلَ إِلَيْهِ فِي نَفَرٍ مِنْ قُرَيْشٍ وَكَانُوا تِجَارًا بِالشَّامِ، فَأَتَوْهُ فَذَكَرَ الْحَدِيثَ قَالَ ثُمَّ دَعَا بِكِتَابِ رَسُولِ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - فَقُرِءَ فَإِذَا فِيهِ «بِسْمِ اللَّهِ الرَّحْمَنِ الرَّحِيمِ، مِنْ مُحَمَّدٍ عَبْدِ اللَّهِ وَرَسُولِهِ إِلَى هِرَقْلَ عَظِيمِ الرُّومِ، السَّلاَمُ عَلَى مَنِ اتَّبَعَ الْهُدَى، أَمَّا بَعْدُ». [ر: ٧]

**د ترجمة الباب مقصد**: اهل كتابو ته به خط څنګه ليکلې شي؟ امام بخاري رحمه الله په باب کښې حديث هرقل ذکر کولو سره بيان کړې دی چه د هغې طريقه څنګه کيدل پکار دی. شيخ الحديث مولانا محمد زکريا رحمه الله ليکي:

﴿ والاوجه عندی ان الامام البخاری اشار بهذه الترجمة الی هذا، بان یکتب علیهم: السلام علی من اتبع الهدی، لابلفظه المعروف، بلفظ الخطاب: السلام علیکم ﴾ [1]

يعنى زما په نزد زياته مناسب دا ده چه امام بخاري رحمه الله په دې ترجمې سره دا بيانول غواړي. چه اهل کتاب ته د خط ليکلو په وخت سلام داسې ليکل پکار دی ﴿ السلام علی من اتبع الهدی ﴾ معروف لفظ يعنى لفظ خطاب ﴿ السلام عليکم ﴾ نه دی ليکل پکار.

حديث هرقل او د هغې نه د اخذ شوې فوائدو او آدابو مکمل تفصيل په کشف البارى، اول جلد کښې تير شوې دې. [2]

## ٢٥: باب بِمَنْ يُبْدَأُ فِي الْكِتَابِ

[٥٩٠٦] وَقَالَ اللَّيْثُ حَدَّثَنِي جَعْفَرُ بْنُ رَبِيعَةَ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ هُرْمُزَ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ - رضي الله عنه - عَنْ رَسُولِ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - أَنَّهُ ذَكَرَ رَجُلاً مِنْ بَنِي إِسْرَائِيلَ أَخَذَ خَشَبَةً فَنَقَرَهَا، فَأَدْخَلَ فِيهَا أَلْفَ دِينَارٍ وَصَحِيفَةً مِنْهُ إِلَى صَاحِبِهِ. وَقَالَ عُمَرُ بْنُ أَبِي سَلَمَةَ عَنْ أَبِيهِ سَمِعَ أَبَا هُرَيْرَةَ قَالَ النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - «نَجَرَ خَشَبَةً، فَجَعَلَ الْمَالَ فِي جَوْفِهَا، وَكَتَبَ إِلَيْهِ صَحِيفَةً مِنْ فُلاَنٍ إِلَى فُلاَنٍ». [ر: ١٤٢٧]

**د ترجمة الباب مقصد**: د دې باب د لاندې امام بخاري رحمه الله د خط ليکلو يو بل ادب طرف ته اشاره کړې ده چه د خط په ابتداء کښې به د چا نوم ليکلې شي، د خط ليکونکی يا که د مکتوب اليه؟ په عام حالاتو کښې خو مناسب دا ده چه کاتب خپل نوم مخکښې اوليکی او

---

[1] الابواب والتراجم: کتاب الاستيذان، باب کيف يکتب الکتاب الى اهل الکتاب ١٢٣/٢

[2] کشف البارى، باب کيف کان بدء الوحى: ٥٥٥/١

د هغې نه روستو د مکتوب اليه نوم وی، د رسول الله ﷺ په خطونو کښې به د هغوی اسم مبارک رومبې وو، په سنن ابی داؤد کښې د سيدنا علاء خضرمی رضی الله عنه په باره کښې دی چه کله به هغوی رسول الله ﷺ ته خط ليکلو نو اول به ئې خپل نوم ليکلو. (۱) چونکه د رسول الله ﷺ دا معمول وو، په دې وجه به ئې په اتباع سنت کښې داسې کول.
مولانا خليل احمد سهارنپوری رحمه الله فرمائی چه که يو وړوکې چا غټ ته خط ليکی، مثلا مريد خپل شيخ يا شاګرد خپل استاذ ته نو په دې صورت کښې د ادب تقاضه دا ده چه کاتب خپل نوم د مکتوب اليه نه روستو اوليکی. (۲) امام نووی رحمه الله هم د دې تصريح کړې ده. (۳)
امام بخاری رحمه الله ته چونکه د خپل شرط مطابق څه حديث ملاؤ نه شو، په دې وجه ئې د ليث رحمه الله تعليق دلته ذکر کړو چه په هغې کښې دی چه د بنی اسرائيل يو سړی لرګې د دننه نه خالی کولو سره په هغې کښې دولس زره ديناره کيخودل او خپل ملګری ته ئې خط اوليکو
(من فلان الى فلان) په دې خط کښې د کاتب نوم مقدم وو.
دا اګر چه د بنی اسرائيل واقعه ده خو امام بخاری رحمه الله د ماقبل شريعتونو د غير منسوخ واقعاتو نه هم استدلال کوی. (۴)

د ليث دا تعليق امام بخاری رحمه الله په الادب المفرد کښې موصولا نقل کړېدې. (۵)

## ۲۶: باب قَوْلِ النَّبِي صلى الله عليه وسلم «قُومُوا إِلَى سَيِّدِكُمْ»

[۵۹۰۷] حَدَّثَنَا أَبُو الْوَلِيدِ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ سَعْدِ بْنِ إِبْرَاهِيمَ عَنْ أَبِي أُمَامَةَ بْنِ سَهْلِ بْنِ حُنَيْفٍ عَنْ أَبِي سَعِيدٍ أَنَّ أَهْلَ قُرَيْظَةَ نَزَلُوا عَلَى حُكْمِ سَعْدٍ فَأَرْسَلَ النَّبِي - صلى الله عليه وسلم - إِلَيْهِ فَجَاءَ فَقَالَ «قُومُوا إِلَى سَيِّدِكُمْ». أَوْ قَالَ «خَيْرِكُمْ». فَقَعَدَ عِنْدَ النَّبِي - صلى الله عليه وسلم - فَقَالَ «هَؤُلاَءِ نَزَلُوا عَلَى حُكْمِكَ». قَالَ فَإِنِّي أَحْكُمُ أَنْ تُقْتَلَ مُقَاتِلَتُهُمْ، وَتُسْبَى ذَرَارِيُّهُمْ. فَقَالَ «لَقَدْ حَكَمْتَ بِمَا حَكَمَ بِهِ الْمَلِكُ». قَالَ أَبُو عَبْدِ اللَّهِ أَفْهَمَنِي بَعْضُ أَصْحَابِي عَنْ أَبِي الْوَلِيدِ مِنْ قَوْلِ أَبِي سَعِيدٍ إِلَى حُكْمِكَ. [ر: ۲۸۷۸]

سيدنا ابوسعيد خدری رضی الله عنه روايت کوی چه اهل قريظه (يهوديان) د سيدنا سعد رضی الله عنه په حکم باندې راکوز شو (يعنی وې وئيل چه د سعد فيصله به مونږ ته منظور وی) نو رسول الله ﷺ سيدنا سعد رضی الله عنه راطلب کړو، چه هغوی راغلل نو رسول الله ﷺ اوفرمائيل د خپل سردار دپاره اودريږئ (د راوی شک دې چه رسول الله ﷺ (قوموا الى سيدكم اوفرمائيل يا قوموا الى

---

(۱) سنن ابی داؤد، كتاب الادب، باب فيمن يبداء بنفسه فى فى الكتاب، ۳۳۵/۴، (رقم الحديث : ۵۱۳۴)
(۲) بذل المجهود، كتاب الادب باب كيف يكتب الى الذمى، ۷۱/۲۰
(۳) شرح مسلم للنووی، باب كتب النبى صلى الله عليه وسلم الى هرقل ملك الشام يدعوه الى الاسلام ۹۸/۲
(۴) فتح البارى ۴۸/۱۱
(۵) الادب المفرد مع فضل الله الصمد ۵۴۵/۲، باب بمن يبداء فى الكتاب، (رقم الحديث ۱۱۲۸)

خیرکم ﴾ سیدنا سعد ﷺ د رسول اللهﷺ سره کیناستلو. رسول اللهﷺ اوفرمائیل دوی ستا په فیصله باندې راضی شوې دی. سیدنا سعد ﷺ اوفرمائیل : زه فیصله کوم چه په دوی کښې دې چه په دوی کښې دې جنګ کونکی قتل کړې شی. او د هغوی اولاد دې قید کړې شی. رسول اللهﷺ اوفرمائیل : تا هم هغه فیصله کړې ده کومه چه د الله پاک حکم دې ابو عبدالله (بخاری) فرمائی : چه ما ته زما بعض ملګرو د ابو الولید په واسطه د ابو سعید قول (په ځائې د نزلوا علی حکمك) ﴿ نزلوا الی حکمك ﴾ نقل کړې دې.

**د ترجمة الباب مقصد** : علامه عینی رحمه الله لیکی :

﴿ وغرضه من هذه الترجمة بيان حكم قيام القاعد للداخل، ولكن لم يجزم بالحكم لمكان الاختلاف فيه ﴾ (١)

د دې ترجمې مقصد د داخلیدونکی دپاره د ناست کس د پاسیدو حکم بیانول دی. خو چونکه په دې کښې اختلاف دې په دې وجه امام بخاری رحمه الله په دې باندې جزم اونکړو.

**د قیام مختلف صورتونه او د هغې حکم** : د چا دپاره د قیام مختلف صورتونه کیدې شی. په هغې کښې اکثر صورتونه متفق علیه دی. او د هغې حکم واضح دې. سردار ناست او حاضرین مسلسل په تعظیم او تکریم کښې مسلسل ناست دی. دا صورت بالاتفاق ناجائز دې. یا د راتلونکی په زړه کښې تکبر او لوئې والې وی او هغه غواړی چه خلق دې هغه ته اودریږی. دا صورت هم بالاتفاق ناجائز دې، که د راتلونکی په زړه کښې د تکبر پیدا کیدو ویره وی نو د هغه دپاره قیام مکروه دې. د چا په راتلو باندې د خوشحالئ د وجې نه : استقبال دپاره اودریدل بالاتفاق مستحب دی. د مبارکئ ورکولو دپاره اودریدل هم مستحب دی. یو مصیبت زده ته د تسلئ ورکولو دپاره اودریدل هم بالاتفاق مستحب دی. د دې ټولو صورتونو په حکم کښې اختلاف دې. (٢)

**د قیام تعظیمی په حکم کښې اختلاف** : صرف یو صورت د قیام تعظیمی په حکم کښې اختلاف دې او هغه دا دې چه د راتلونکی په اکرام کښې یو سړې اودریږی او د راتلونکی په زړه کښې نه خو د خپل ځان دپاره د دې قیام تعظیمی خواهش دې او نه تمنا. په دې صورت کښې د علماء کرامو اختلاف دې. د جمهور علماء کرامو په نزد دا جائز ده خو دا اجازت په دوه شرطونو سره مشروط دې. یو دا چه د چا دپاره اودریږی د هغه په زړه کښې دې دا طلب نه وی چه خلق دې د هغه دپاره اودریږی.

دویم شرط دا دې چه د اودریدونکی په زړه کښې دې د دې قیام داعیه وی، که په زړه کښې ئې د هغه د اکرام داعیه نه وی. صرف د ریاء او تملق د وجې نه اودریږی نو جائز نه ده. (٣)

(١) عمدة القاری، الابواب والتراجم. کتاب الاستئذان. باب قول النبیﷺ قوموا الی سیدکم : ١/١٢٣، ٢٢/٢٥١.

(٢) فتح الباری ١١/٥٢. عمدة القاری ٢٢/٢٥٢

(٣) کشف الباری، کتاب المغازی، باب مرجع النبیﷺ من الاحزاب ومخرجه الی بنی قریظة ومحاصرته ایاهم : ٣٠٥

بعض حضرات دې قیام ته ناجائز وائی او هغوی د لاندې ذکر کیدونکی حدیث نه استدلال کوی په طبرانی کښې د سیدنا انس رضی الله عنه حدیث دې ﴿إنما هَلَكَ مَنْ كانَ قبلكم بأنهم عظَّموا مُلوكهم: بأن قاموا وقعدوا﴾ (۱) یعنی ستاسو نه مخکښې خلق صرف په دې وجه هلاک شو چه هغوی به د خپلو بادشاهانو داسې تعظیم کولو چه خلق به ولاړ وو او بادشاهان به ناست وو

په سنن ابی داؤد کښې د سیدنا معاویه رضی الله عنه حدیث دې ﴿ سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ -صلى الله عليه وسلم- يَقُولُ «مَنْ أَحَبَّ أَنْ يَمْثُلَ لَهُ الرِّجَالُ قِيَامًا فَلْيَتَبَوَّأْ مَقْعَدَهُ مِنَ النَّارِ» ﴾ (۲) یعنی ما د رسول الله صلی الله علیه وسلم نه واوریدل هغوی اوفرمائیل څوک چه دا خوښوی چه خلق دې هغه ته ولاړ وی نو هغه دې خپله استوګنه په جهنم کښې جوړه کړی

د سیدنا ابوامامة رضی الله عنه حدیث دې ﴿ خَرَجَ عَلَيْنَا رَسُولُ اللهِ -صلى الله عليه وسلم- مُتَوَكِّئًا عَلَى عَصًا فَقُمْنَا إِلَيْهِ فَقَالَ «لاَ تَقُومُوا كَمَا تَقُومُ الأَعَاجِمُ يُعَظِّمُ بَعْضُهَا بَعْضًا» ﴾ (۳) یعنی رسول الله صلی الله علیه وسلم په همسا باندې تکیه لګونکې زمونږ طرف ته بهر راوتلو نو مونږ د هغوی دپاره اودریدلو نو رسول الله صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل: تاسو مه اودریږئ څنګه چه عجمیان د یو بل دپاره اودریږی.

خو جمهور وائی چه د دې احادیثو نه د قیام تعظیمی د جواز والا صورت مراد نه دې. نورصورتونه مراد دی. په حدیث الباب کښې د رسول الله صلی الله علیه وسلم قول دې ﴿ قوموا الی سیدکم ﴾ د دې نه صفا جواز معلومیږی.

مانعین د دې حدیث په باره کښې وائی چه د قیام دا حکم د تعظیم او اکرام دپاره نه وو بلکه د اعانت دپاره وو. چونکه سیدنا سعد رضی الله عنه زخمی وو نو هغوی لره د سورلئ نه په کوزولو کښې د مدد ورکولو دپاره رسول الله صلی الله علیه وسلم د قیام حکم ورکړو پس په مسند احمد کښې د سیده عائشه رضی الله عنها په روایت کښې د دې صراحت دې. په هغې کښې دی ﴿ قوموا الی سیدکم فانزلوه ﴾ (۴) علامه قسطلانی رحمه الله لیکی:

﴿ وعن أبي الوليد بن رشد: أن القيام على أربعة أوجه الأول محظور لمن يريد أن يقام له تكبرا وتعظيما على القائمين له والثاني مكروه لمن لا يتكبر ولا يتعاظم ولكن يخشى أن يدخل نفسه بسبب ذلك ما يحذر ولما فيه من التشبه بالجبابرة وجائز على سبيل الاحترام والاكرام لمن لا يريد ذلك ويؤمن معه التشبه بالجبابرة،

(۱) مجمع الزوائد منبع الفرائد، كتاب الادب، باب ما جاء فى القيام ۷۰/۸. (قلت: ضعفه الهيثمى هناك)
(۲) سنن ابى داؤد، كتاب الادب، باب فى قيام الرجل للرجل، ۳۵۸/٤. (رقم الحديث: ۵۲۲۹)
(۳) وفى معناه، روى مسلم فى صحيحه إنْ كِدْتُمْ آنفًا لَتَفْعَلُونَ فِعْلَ فَارِسَ وَالرُّومِ يَقُومُونَ عَلَى مُلُوكِهِمْ وَهُمْ قُعُودٌ فَلاَ تَفْعَلُوا: ۳۰۹/۱. (رقم الحديث ٤۱۳) وابوداؤد فى كتاب الادب، باب فى قيام الرجل للرجل: ۳۵۸/٤ (رقم الحديث ۵۲۳)
(٤) مسند الامام احمد ۱٤۲/٦

ومندوب لمن قدم من سفر فرحا بقدومه ليسلم عليه أو إلى من تجددت له نعمة فيهنيه بحصولها أو مصيبة فيعزيه بسببها، او الحاكم في محل ولايته، كما دل عليه قصة سعد فانه لما استقدمه النبي ﷺ حاكما في بني قريظة، فرآه مقبلا، قال : قوموا الى سيدكم، وما ذاك الا ليكون انفذ لحكمه، فاما اتخاذه ديدنا فمن شعار العجم، وقد جاء في السنن انه لم يكن احب اليهم من رسول الله صلى الله عليه وسلم، وكان اذا جاء لا يقومون له، لما يعلمون من كراهيته لذلك ﴾[1]

يعني : ابو الوليد بن رشد رحمه الله فرمائي چه قيام په څلور قسمه دي!

① ممنوع : هغه متكبر سړي چه دا وائي چه خلق د هغه د تعظيم دپاره اودريږي، د هغه دپاره اودريدل ممنوع دي.

② مكروه : هغه سړي چه متكبر خو نه دي خو د هغه دا ويره وي چه په دې سره به د هغه په زړه كښې د تكبر وغيره بدى پيدا شي نو د هغه دپاره اودريدل مكروه دى، بلكه دا هغه وخت هم مكروه دد چه كله د متكبرينو سره د مشابهت ويره وي.

③ جائز : كوم سړي چه د تعظيم او اكرام غوښتونكې نه وى، بلكه دا چه د متكبرينو سره ئې د مشابهت ويره هم نه وى نو د هغه دپاره اودريدل جائز دى.

④ مستحب : لكه څوك د سفر نه راشي.نو د هغه د راتلو په خوشحالئ كښې اودريدل چه هغه ته سلام اوكړې شى يا چه چا ته يو نعمت حاصل شوې وى نو د هغه په حصول باندې هغه ته د مباركئ وركولو دپاره اودريدل، يا په يو مصيبت او آفت باندې د تعزيت كولو دپاره اودريدل يا د حاكم دپاره د هغه په محل د ولايت كښې اودريدل. دا مستحب دى، لكه چه د سيدنا سعد رضي الله عنه د قصې نه معلوميږى چه رسول الله ﷺ هغوى لره په بنو قريظه كښې حاكم مقرر كړو او راطلب ئې كړو چه كله رسول الله ﷺ هغوى په راتلو باندې اوليدل نو وې فرمائيل : د خپل سردار دپاره اودريږئ : او رسول الله ﷺ داسې صرف دې دپاره اوكړل چه د هغوى حاكميت نافذ شى. پاتې شوه دا چه د دې نه عادت او طور طريقه جوړه كړې شى نو دا د عجميانو شعار دې. د سنن حديث دې چه صحابه كرامو ته د رسول الله ﷺ نه زيات محبوب بل څوك نه وو او رسول الله ﷺ چه به كله تشريف راوړلو نو صحابه كرام رضي الله عنهم به د هغوى دپاره نه اودريدل ځكه چه هغوى ته معلومه وه چه رسول الله ﷺ دا كار نه خوښوى. ددې مسئلې څه تفصيل په كتاب المغازى كښې د غزوه بنى قريظه د لاندې تيرشوې دې.[2]

**قوله:** قال ابو عبدالله : افهمني بعض اصحابي : دا د امام بخاري رحمه الله قول دې، علامه كرماني رحمه الله فرمائي چه امام بخاري رحمه الله دا وئيل غواړي چه ما د ابو الوليد نه د ﴿على

[1]) ارشاد السارى ۲۶۸/۱۳

[2]) كشف البارى، كتاب المغازى، باب مرجع النبى صلى الله عليه وسلم من الاحزاب ومخرجه الى بنى قريظة ومحاصرته اياهم ص ۲۹۶.

حكمك ﴾ الفاظ اوريدلي دی، او حال دا چه زما بعض شيوخ د هغوی نه د ﴿ الحكمك ﴾ الفاظ نقل كړی دی، يعنی هغوی ﴿ علی ﴾ حرف استعلاء ﴿ ال ﴾ استعمال كړې دې. [1] حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی د ﴿ بعض اصاحبی ﴾ نه يا خو امام محمد بن سعد رحمه الله مراد دې چا چه په خپل طبقات كښې دا حديث د ابو الوليد نه هم په دې سند سره ذكر كړې دې. او يا د ترې مراد ابن ضريس دې. [2]

## ۲۷: باب المُصَافَحَةِ

وَقَالَ ابْنُ مَسْعُودٍ عَلَّمَنِي النَّبِيُّ صلى الله عليه وسلم التَّشَهُّدَ وَكَفِّي بَيْنَ كَفَّيْهِ. [ر: ۵۹۱۰]

سيدنا ابن مسعود رضی الله عنه بيان كړې دې چه ماته رسول الله ﷺ تشهد اوښودلو او زما لاس د هغوی د دواړو لاسونو ترمينځه وو.

وَقَالَ كَعْبُ بْنُ مَالِكٍ دَخَلْتُ الْمَسْجِدَ، فَإِذَا بِرَسُولِ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - فَقَامَ إِلَيَّ طَلْحَةُ بْنُ عُبَيْدِ اللَّهِ يُهَرْوِلُ، حَتَّى صَافَحَنِي وَهَنَّأَنِي. [ر: ۴۱۵۶]

او سيدنا كعب بن مالک رضی الله عنه فرمائی چه زه مسجد ته داخل شوم نو او مې كتل چه رسول الله ﷺ تشريف فرما دې، طلحه بن عبيد په تندئ سره زما طرف ته راغلو، ترديې چه ما سره ئې مصافحه اوكړه او ماته ئې مباركی راكړه.

[۵۹۰۸] حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ عَاصِمٍ حَدَّثَنَا هَمَّامٌ عَنْ قَتَادَةَ قَالَ قُلْتُ لأَنَسٍ أَكَانَتِ الْمُصَافَحَةُ فِي أَصْحَابِ النَّبِيِّ - صلى الله عليه وسلم - قَالَ نَعَمْ.

امام قتاده رحمه الله روايت كوی چه ما د سيدنا انس رضی الله عنه نه تپوس اوكړو : آيا د رسول الله ﷺ په صحابه كرامو رضی الله عنهم كښې د مصافحې رواج وو؟ هغوی اوفرمائيل : او!

[۵۹۰۹] [3] حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ سُلَيْمَانَ قَالَ حَدَّثَنِي ابْنُ وَهْبٍ قَالَ أَخْبَرَنِي حَيْوَةُ قَالَ حَدَّثَنِي أَبُو عَقِيلٍ زُهْرَةُ بْنُ مَعْبَدٍ سَمِعَ جَدَّهُ عَبْدَ اللَّهِ بْنَ هِشَامٍ قَالَ كُنَّا مَعَ النَّبِيِّ - صلى الله عليه وسلم - وَهُوَ آخِذٌ بِيَدِ عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ. [ر: ۳۴۹۱]

او ابو عقيل زهره بن معبد روايت كوی چه هغوی د خپل نيكه عبدالرحمن بن هشام نه واوريدل هغوی اووې چه (يو كرت) مونږ د رسول الله ﷺ سره وو، او هغوی د سيدنا عمر بن الخطاب رضی الله عنه لاس نيولې وو.

**د ترجمة الباب مقصد** : امام بخاری رحمه الله په دې باب كښې د مصافحې مشروعيت بيان كړې

---

[1] شرح الكرمانی : ۹۸/۲۲

[2] فتح الباری ۶۰/۱۱

[3] ۵۹۰۸-۵۹۰۹: الحديث اخرجه الترمذی فی كتاب الاستئذان، باب ما جاء فی المصافحة ۸۴/۵ (رقم الحديث ۲۷۲۹)

دي. امام ترمذي رحمه الله په سنن کښې د سيدنا ابو امامة رضي الله عنه حديث بيان کړې دې ﴿ وَتَمَامُ تَحِيَّتِكُمْ بَيْنَكُمُ الْمُصَافَحَةُ ﴾ يعنې ستاسو د پاره د تحية تکمله مصافحه ده (۱)

امام بخاري رحمه الله په الادب المفرد کښې صحيح سند سره د سيدنا انس رضي الله عنه مرفوع حديث بيان کړې دې. ﴿ قَدْ جَاءَكُمْ أَهْلُ الْيَمَنِ وَهُمْ أَوَّلُ مَنْ جَاءَ بِالْمُصَافَحَةِ ﴾ (۲) يعنې اهل يمن راغلل او د تولو نه اول مصافحه هم هغوی اوکړه.

امام ترمذي رحمه الله هم د سيدنا انس رضي الله عنه يو حديث نقل کړې دې چه په هغې کښې دی. يو سړي د رسول الله صلی الله عليه وسلم نه تپوس اوکړو: ﴿ الرَّجُلُ مِنَّا يَلْقَى أَخَاهُ أَوْ صَدِيقَهُ أَيَنْحَنِي لَهُ؟ قَالَ: لَا، قَالَ: أَفَيَلْتَزِمُهُ وَيُقَبِّلُهُ؟ قَالَ: لَا، قَالَ: أَفَيَأْخُذُ بِيَدِهِ وَيُصَافِحُهُ؟ قَالَ: نَعَمْ ﴾ (۳) يعنې يا رسول الله صلی الله عليه وسلم! که يو مسلمان د خپل رور سره ملاويږي نو د هغه د پاره ښکته شي؟ نو رسول الله صلی الله عليه وسلم اوفرمائيل نه. هغه اووې د هغه لاس نيولو سره هغه سره مصافحه اوکړي؟ نو رسول الله صلی الله عليه وسلم اوفرمائيل او.

په سنن ابی داؤد کښې د سيدنا براء بن عازب رضي الله عنه مرفوع روايت دې ﴿ مَا مِنْ مُسْلِمَيْنِ يَلْتَقِيَانِ فَيَتَصَافَحَانِ إِلَّا غُفِرَ لَهُمَا قَبْلَ أَنْ يَفْتَرِقَا ﴾ (۴) يعنې دوه مسلمانان چه کله يو ځائې شي او مصافحه کوي نو د هغوی د جدا کيدو نه مخکښې د هغوی مغفرت اوکړې شي.

**د مصافحې حکم او طريقه** : د دې احاديثو په بناء امام نووي رحمه الله فرمائي چه د مصافحه په سنت کيدو باندې اجماع ده. (۵)

د امام مالک رحمه الله نه د دې کراهت منقول دې خو هغوی روستو رجوع کړې وه. (۶)

مولانا انور شاه کشميري رحمه الله په فيض الباري کښې فرمائي چه د مصافحه عام طريقه خو دا ده چه په دواړو لاسونو باندې مصافحه اوکړې شي خو که چا په يو لاس سره مصافحه اوکړه نو هم سنت به ادا شي. (۷)

مولانا رشيد احمد گنگوهي رحمه الله په الکوکب الدري کښې فرمائي چه مصافحه په يو لاس سره هم ثابت ده او په دواړو لاسونو سره هم ثابت ده خو په يو لاس سره مصافحه کول چونکه د فرنگيانو شعار جوړ شوې دې. په دې وجه واجب الترک دې. (۸)

---

(۱) الحديث اخرجه الترمذي في سننه، كتاب الاستئذان، باب ماجاء في المصافحة ۸۴/۵ (رقم الحديث ۲۷۳۱)
(۲) الادب المفرد (مع فضل الله الصمد) باب المصافحة ۴۳۲/۲ رقم الحديث ۹۶۷
(۳) جامع الترمذي، كتاب الاستيذان، باب ما جاء في المصافحة ۷۵/۵، رقم الحديث ۲۷۲۸
(۴) سنن ابی داؤد، كتاب الادب، باب في المصافحة، ۳۵۴/۴، رقم الحديث ۵۲۱۲.
(۵) اعلم! انها سنة مجمعة عليها عند التلاقي، الفتوحات الربانية على الاذكار النووية ۳۹۲/۵
(۶) فتح الباري ۵۵/۱۱، الكوكب الدري، كتاب الاستيذان، باب في المصافحة، ۳۹۳/۳، والمدونة الكبرى
(۷) فيض الباري، كتاب الاستيذان، باب المصافحة ۴۱۱/۴
(۸) الكوكب الدري، كتاب الاستيذان، باب في المصافحة، ۳۹۲/۳، لامع الدراري، كتاب الاستيذان، باب المصافحة ۵۶/۱

یو غلط رواج : نن صبا بعض غیر مقلدین په یو لاس باندې مصافحه کولو ته سنت وائی او په باب کښې ذکر شوې د سیدنا عبدالله بن مسعود رضی الله عنه د قول نه استدلال کوی ﴿ عَلَّمَنِي النَّبِيُّ صلی الله علیه وسلم التَّشَهُّدَ وَكَفِّي بَيْنَ كَفَّيْهِ ﴾ یعنی رسول الله ﷺ ماته تشهد اوښودلو او زما لاس د هغوی د دواړو لاسونو ترمینځه وو.

مولانا خلیل احمد سهارنپوری رحمه الله د یو غیر مقلد سره په دواړو لاسونو باندې مصافحه اوکړه. او هغه په یو لاس او په استدلال کښې ئې ﴿ وکفی بین کفیه ﴾ پیش کړو چه سیدنا عبدالله بن مسعود رضی الله عنه فرمائی چه زما یو لاس د رسول الله ﷺ په دواړو لاسونو کښې وو. مولانا اوفرمائیل چه بیا په سنت باندې چا عمل اوکړل؟ ما یا تاسو؟ ځکه چه رسول الله ﷺ دواړه لاسونه ملاؤ کړې وو نو د رسول الله ﷺ په فعل باندې عمل کولو ته سنت وائی. بیا هغه لاجواب کیدو سره خاموش شو. (۱)

بیا د ﴿ وکفی بین کفیه ﴾ نه دا نه لازمیږی چه سیدنا عبدالله بن مسعود رضی الله عنه دې یو لاس ملاؤ کړې وی. ځکه چه په ظاهر کښې داسې نه شې کیدې چه رسول الله ﷺ خو دې دواړه لاسونه ملاؤ کړې وی او سیدنا عبدالله بن مسعود رضی الله عنه یو لاس

سیدنا عبدالله بن مسعود رضی الله عنه هم په ظاهر کښې دواړه لاسونه ملاؤ کړې وو خو یو لاس چونکه د رسول الله ﷺ د دواړو لاسونو ترمینځه وو، په دې وجه ئې د هغې ذکر اوکړو. بل لاس ئې په مینځ کښې نه وو، بلکه د پاسه وو.

بهر حال په یو لاس یا دواړو لاسونو سره مصافحه کول مستحب او مسنون دی. خو د پردې زنانه او داسې کم عمره هلکانو سره مصافحه کول صحیح نه دی چرته چه د فتنې ویره وی (۲)

د باب سره د دویم حدیث مناسبت بیانولو سره حافظ ابن حجر رحمه الله لیکی

﴿ وجه ادخال هذا الحديث في المصافحة : ان الاخذ باليد يستلزم التقاء صفحة اليد بصفحة اليد غالبا ﴾ (۳)

یعنی دې حدیث لره په مصافحه کښې د داخلولو وجه دا ده چه لاس نیول عموما د یو لاس د تلی د بل لاس د تلی یوځائې کولو لره مستلزم وی

## ۲۸: بَابُ الْأَخْذِ بِالْيَدَيْنِ

وَصَافَحَ حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ ابْنَ الْمُبَارَكِ بِيَدَيْهِ.

[۵۹۱۰] حَدَّثَنَا أَبُو نُعَيْمٍ حَدَّثَنَا سَيْفٌ قَالَ سَمِعْتُ مُجَاهِدًا يَقُولُ حَدَّثَنِي عَبْدُ اللَّهِ بْنُ سَخْبَرَةَ أَبُو مَعْمَرٍ قَالَ: سَمِعْتُ ابْنَ مَسْعُودٍ يَقُولُ عَلَّمَنِي رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - وَكَفِّي بَيْنَ كَفَّيْهِ التَّشَهُّدَ، كَمَا يُعَلِّمُنِي السُّورَةَ مِنَ الْقُرْآنِ التَّحِيَّاتُ لِلَّهِ وَالصَّلَوَاتُ وَالطَّيِّبَاتُ، السَّلَامُ

---

۱) تذکرة الخلیل : په دواړو لاسونو سره مصافحه کول ص ۲۹۸
۲) ویستثنی من عموم الامر بالمصافحة المراة الاجنبیة والامرد الاحسن. فتح الباری ۲۵/۱۱
۳) فتح الباری ۲۵/۱۱، ۲۶

عَلَيْكَ أَيُّهَا النَّبِي وَرَحْمَةُ اللهِ وَبَرَكَاتُهُ، السَّلَامُ عَلَيْنَا وَعَلَى عِبَادِ اللهِ الصَّالِحِينَ، أَشْهَدُ أَنْ لَا إِلَهَ إِلَّا اللهُ وَأَشْهَدُ أَنَّ مُحَمَّدًا عَبْدُهُ وَرَسُولُهُ:

وَهُوَ بَيْنَ ظَهْرَانَيْنَا، فَلَمَّا قُبِضَ قُلْنَا السَّلَامُ يَعْنِي عَلَى النَّبِي -صلى الله عليه وسلم-

**د ترجمة الباب مقصد** د امام بخارى رحمه الله مقصد دا دې چه په دواړو لاسونو سره مصافحه كيدلې شى. په باب كښې ئې دوه روايتونه ذكر فرمائيلې دى. په اول روايت كښې دى چه حماد بن زيد د امام عبدالله بن مبارك رحمه الله سره په دواړو لاسونو مصافحه اوكړه او دويم روايت هم هغه د عبدالله بن مسعود رضي الله عنه والا دې.

شيخ الحديث مولانا محمد زكريا رحمه الله فرمائى چه په مخكښې ترجمة الباب او په دې ترجمة الباب كښې د تكرار وهم نه دى كيدل پكار. د دواړو ترجمو مقصد بيل بيل دې. د اول ترجمة الباب مقصد د مصافحه مشروعيت لره بيانول دى او په دې ترجمة الباب سره د مصافحې كيفيت لره بيانول مقصود دى.[1]

**قوله:** ﴿وَصَافَحَ حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ ابْنَ الْمُبَارَكِ بِيَدَيْهِ﴾: غنجار په تاريخ بخارى كښې دا د اسحاق بن احمد بن خلف په طريق سره موصولا ذكر كړې دې.[2]

**قوله:** وهو بين ظهرانينا: علامه عينى رحمه الله فرمائى: واصله : ظهرينا : بالتثنية اى ظهرى المتقدم والمتاخر، اى : بيننا فزيد الالف والنون للتاكيد.[3] يعنى ﴿ظهرانينا﴾ په اصل كښې ﴿ظهرينا﴾ وو. كوم چه د ﴿ظهر﴾ تثنيه ده. يعنى د وړاندې او شاته سړى د شا ترمينځه. يعنى زمونږ ترمينځه بيا د تاكيد په غرض سره (د راء نه پس) ئې د الف او نون اضافه اوكړه نو ﴿ظهرانينا﴾ شو

**قوله:** ﴿فَلَمَّا قُبِضَ قُلْنَا السَّلَامُ يَعْنِي عَلَى النَّبِيِّ صلى الله عليه وسلم﴾: يعنى ترڅو پورې چه رسول الله صلى الله عليه وسلم ژوندې وو نو مونږ به ﴿السلام عليك ايها النبى﴾ لوستلو. خو چه كله هغوى وفات شو نو بيا مونږ ﴿السلام﴾ يعنى على النبى صلى الله عليه وسلم. د ﴿السلام عليك ايها النبى﴾ وئيلو. دا تشريح امام بخارى رحمه الله كړې ده. دا خبره صرف په دې روايت كښې ده په باقى رواياتو كښې نشته.[4]

[1] الابواب والتراجم. كتاب الاستيذان. باب الاخذ باليدين وصافح حماد : ۱۲٤/۲

[2] فتح البارى ٦٧/١١

[3] عمدة القارى ۲۵۳/۲۲، ۲۵٤

[4] عمدة القارى ۲۵٤/۲۲

## ۲۹: باب المعانقة وقول الرجل كيف أصبحت

۵۹۱۱ حدثنا إسحاق أخبرنا بشر بن شعيب حدثني أبي عن الزهري قال أخبرني عبد الله بن كعب أن عبد الله بن عباس أخبره أن عليا - يعني ابن أبي طالب - خرج من عند النبي - صلى الله عليه وسلم - وحدثنا أحمد بن صالح حدثنا عنبسة حدثنا يونس عن ابن شهاب قال أخبرني عبد الله بن كعب بن مالك أن عبد الله بن عباس أخبره أن علي بن أبي طالب - رضي الله عنه - خرج من عند النبي - صلى الله عليه وسلم - في وجعه الذي توفي فيه فقال الناس يا أبا حسن كيف أصبح رسول الله - صلى الله عليه وسلم - قال أصبح بحمد الله بارئا فأخذ بيده العباس فقال ألا تراه أنت والله بعد الثلاث عبد العصا والله إني لأرى رسول الله - صلى الله عليه وسلم - سيتوفى في وجعه، وإني لأعرف في وجوه بني عبد المطلب الموت، فاذهب بنا إلى رسول الله - صلى الله عليه وسلم - فنسأله فيمن يكون الأمر فإن كان فينا علمنا ذلك، وإن كان في غيرنا أمرناه فأوصى بنا. قال علي والله لئن سألناها رسول الله - صلى الله عليه وسلم - فيمنعنا لا يعطيناها الناس أبدا، وإني لا أسألها رسول الله - صلى الله عليه وسلم - أبدا. [ر: ۴۱۸۲]

سیدنا عبدالله بن عباس رضی الله عنهما روایت کوی چه سیدنا علی رضی الله عنه یعنی د ابوطالب خوئي رسول الله ﷺ نه راغلو.

او د احمد بن صالح په روایت کښې دی چه سیدنا علی بن ابی طالب رضی الله عنه چه د رسول الله ﷺ د خوا نه د هغوی د مرض الوفات کښې واپس شو نو خلقو ترې تپوس اوکړو ای ابو الحسن: د رسول الله ﷺ طبیعت سحر څنګه وو؟ هغوی اووې الحمد لله ښه دې. سیدنا عباس رضی الله عنه د هغوی لاس اونیولو او وې وئیل قسم په الله پاک! آیا ته نه ګورې درې ورځې پس به ته د ډنډې غلام شې. زما خیال دې چه رسول الله ﷺ به په دې بیمارئ کښې وفات شي. زه د بنو عبدالمطلب د مخونو نه د هغوی د مرګ آثار پیژنم. په دې وجه ما سره د رسول الله ﷺ په خدمت کښې حاضر شه چه مونږ د هغوی نه تپوس اوکړو چه خلافت به په کوم خاندان کښې وی. که زمونږ په خاندان کښې وی نو مونږ ته به دا معلومه شي او که زمونږ نه علاوه د بل چا په لاس کښې وی نو مونږ به ورته اووایو چه زمونږ دپاره وصیت اوکړي. سیدنا علی رضی الله عنه اوفرمائیل: قسم په الله پاک! که مونږ د هغوی نه تپوس اوکړو او هغوی منع کړو نو بیا به ئې خلق مونږ ته کله هم رانکړي. زه به د دې متعلق د رسول الله ﷺ نه کله هم سوال اونکړم

د ترجمة الباب دوه اجزاء دی. اول جزء المعانقة ده. او دويم جزء كيف اصبحت دې.

① امام بخاری رحمه الله چه په باب کښې کوم حدیث ذکر فرمائیلې دې د هغې په ظاهر کښې د معانقې سره هیڅ تعلق نشته او نه پکښې د معانقې څه ذکر شته.

بعض حضرات وائي چه په اصل کښې دا مستقل ترجمة الباب وو. امام بخاري رحمه الله د دي نه لاندې هغه حدیث ذکر کول غوارې چه په هغې کښې د سيدنا حسن رضي الله عنه سره د رسول الله ﷺ د معانقې ذکر دې. دا حديث امام بخاري رحمه الله په كتاب البيوع کښې باب ما ذكر في الاسواق د لاندې او په کتاب اللباس کښې د باب السخاب للصبيان د لاندې تير شوي دي [1]، امام بخاري رحمه الله د دې حديث دپاره بياض پريخودلې وو. كاتب بياض ختمولو سره دواړه ترجمې ﴿المعانقة﴾ او ﴿كيف اصبحت﴾ رايو ځائې کړې [2].

بعض شارحينو دا هم ليکلي دى چه امام بخاري رحمه الله په يو نوى سند سره د سيدنا حسن رضي الله عنه د رسول الله ﷺ سره د معانقې ذکر کول غوښتل. ځکه چه امام عموما د يو سند اعادة نه کوى خو هغوى ته بل سند ملاؤ نه شو. په دې وجه ئې بياض پريخودلې وو [3].

مولانا رشيد احمد گنگوهى رحمه الله معانقة د حديث الباب نه په طريقه د مقايسه ثابت کړې ده. پس هغوى ليکى.

﴿الجزءان من الترجمة يتوقف اثباتهما على نوع مقايسة، فان المعانقة غاية فى المواجهة، واثر يترتب على المخالة، فاذا جازت المواجهة وكان الخلة باعثة عليها، لربما ادت الى المعانقة﴾ [4].

يعنى د ترجمې د دواړو اجزاء اثبات په يو قسم قياس باندې موقوف دې. په داسې طريقه چه معانقة د انتهائى درجې په مخ سره استقبال کول دى او مواجهه يو اثر دې کوم چه خپل مينځ کښې په دوستانه باندې مرتب وى. پس هر کله چه مواجهه جائز ده او دوستانه په هغې باندې باعث ده نو دا ډير کرته د معانقې طرف ته بوتلونکې وى.

بهر حال د امام بخارى رحمه الله مقصود د معانقې حکم بيانول دى

**د معانقة حکم**: د جمهور علماء کرامو په نزد معانقة جائز ده. د امام مالک رحمه الله نه کراهت منقول دې.

ابن عساکر رحمه الله په تاريخ دمشق کښې يو قصه نقل کړې ده چه سفيان بن عيينة رحمه الله امام مالک رحمه الله ته راغلو. چه سلام ئې اوکړو نو امام مالک رحمه الله اوفرمائيل: لولا انها بدعة لعانقتك، نو سفيان رحمه الله اوفرمائيل چه رسول الله ﷺ د سيدنا جعفر طيار رضي الله عنه سره معانقه کړې وه. امام مالک رحمه الله اوفرمائيل: دا د هغوى خصوصيت وو. سفيان ثوري رحمه الله اوفرمائيل: د خصوصيت دپاره د دليل ضرورت دې نو امام مالک رحمه الله خاموش شو [5].

---

[1]) (رقم الحديث ۲۱۲۲)، (رقم الحديث ۵۸۸٤)

[2]) الابواب والتراجم، كتاب الاستئذان، باب المعانقة وقول الرجل: كيف اصبحت؟: ۱۲٤/۲

[3]) الابواب والتراجم، كتاب الاستئذان، باب المعانقة وقول الرجل: كيف اصبحت؟: ۱۲٤/۲

[4]) لامع الدرارى، كتاب الاستئذان، باب المعانقة وقول الرجل: كيف اصبحت؟ ۵۸/۱۰

[5]) شرح صحيح البخارى لابن بطال، كتاب الاستئذان، باب المعانقة وقول الرجل: كيف اصبحت؟ ٤۹/۹، فتح البارى ۷۰/۱۱

قاضي عياض رحمه الله فرمائی چه د امام مالك رحمه الله خاموشي د تسليم كيدو دليل دي.[1]
په هدايه كښې معانقة ته مكروه وئيلې شوې ده خو دا په هغه صورت باندې محمول ده چه كله په يوه كپړه كښې دوه كسان معانقة اوكړی.[2] په يو روايت كښې دی ﴿ نهى النبى صلى الله عليه وسلم عن المكامعة وهى المعانقة ﴾[3] يعنى رسول الله ﷺ د مكامعة يعنى معانقة نه منع فرمائيلې ده. دا حديث هم په دې صورت باندې محمول دې.
علامه ابن عابدين رحمه الله د معانقې په جواز باندې اجماع نقل كړې ده.[4]
د ترجمة الباب دويم جزء دې ﴿ كيف اصبحت ﴾ په رواية الباب كښې ﴿ كيف اصبح ﴾ په صيغه د غائب سره دې. مولانا رشيد احمد گنگوهی رحمه الله په لامع الدراري كښې فرمائی:
﴿ واما قولهم: اصبحت، فان السؤال لما ثبت عن حال الغائب، كان سؤاله عن حال الحاضر المخاطب اظهر فى الجواز، وايضا، فان السوال عن حاله صلى الله عليه وسلم كان يتضمن المسالة عن حال اهل البيت باسرهم، ومنهم: على رضى الله تعالى عنه، وهو المخاطب فى هذا الكلام فثبت بالسؤال عن حاله عليه الصلاة والسلام جواز المسالة عن حال المخاطب، وان كانت دلالته عليه تضمينه ﴾[5]
يعنى: پاتې شو د عربو دا قول ﴿ اصبحت ﴾ نو هر كله چه د غائب د حال متعلق سوال ثابت شو نو حاضر به د مخاطب متعلق د دې سوال د جواز په باره كښې ظاهر تر وی. بلكه دا چه د رسول الله ﷺ د دې سوال په باره كښې سوال د ټولو اهل بيت د حال په باره كښې سوال لره متضمن دې. چه په هغوی كښې سيدنا على رضي الله عنه هم دې. كوم چه په دې كلام كښې د قائل مخاطب دې. پس د رسول الله ﷺ د حال په باره كښې د سوال نه دا ثابتيږی چه د مخاطب د حال په باره كښې سوال كول جائز دی. اگر چه دلالت تضمنى دې.
د معانقة په باره كښې د سيدنا انس رضي الله عنه يو حديث هم په طبرانی كښې دې. په هغې كښې دی ﴿ كانوا اذا تلاقوا تصافحوا، واذا قدموا من سفر تعانقوا ﴾[6] يعنى حضرات صحابه كرام رضي الله عنهم چه به كله د يو بل سره ملاويدل نو مصافحه به ئې كوله او كله چه به د سفر نه راتلل نو معانقة به ئې كوله.
هم دغه شان د سيدنا زيد بن حارثه رضي الله عنه په باره كښې د سيده عائشه رضي الله عنها په باره كښې راځی

[1]) الابواب والتراجم: كتاب الاستئذان، باب المعانقة وقول الرجل: كيف اصبحت؟ ۲/۱۲۴
[2]) الهداية: كتاب الكراهية ۴/۴۶۵، الابواب والتراجم، كتاب الاستئذان، باب المعانقة وقول الرجل، كيف اصبحت؟ ۲/۱۲۴
[3]) الدراية فى تخريج احاديث الهداية ص ۲۳۲
[4]) رد المختار، كتاب الحظر والاباحة، باب الاستبراء وغيره: ۵/۲۶۹
[5]) لامع الدرارى، كتاب الاستيذان، باب المعانقة وقول الرجل، كيف اصبحت؟ ۱۰/۵۹
[6]) مجمع الزوائد ومنبع الفرائد، كتاب الادب، باب المصافحة والسلام ونحو ذلك: ۸/۳۶

چه کله هغه مديني طيبي ته راغلو نو د رسول الله ﷺ په در باندې حاضر شو. نو رسول الله ﷺ اودريدلو او هغه ته ئې غاړه ورکړه (۱)

ابو الهيثم بن التيهان نه هم معانقة ثابت ده چه رسول الله ﷺ سره چه کله هغوی ملاؤ شو نو رسول الله ﷺ هغوی خان ته رانزدې کړو. (۲)

حديث الباب. کتاب المغازی کښې په باب مرض النبی صلی الله عليه وسلم دلاندې تير شوې دې. (۳)

## ۳۰: بَاب مَنْ أَجَابَ بِلَبَّيْكَ وَسَعْدَيْكَ

حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ حَدَّثَنَا هَمَّامٌ عَنْ قَتَادَةَ عَنْ أَنَسٍ عَنْ مُعَاذٍ قَالَ أَنَا رَدِيفُ النَّبِيِّ - صلى الله عليه وسلم - فَقَالَ « يَا مُعَاذُ ». قُلْتُ لَبَّيْكَ وَسَعْدَيْكَ. ثُمَّ قَالَ مِثْلَهُ ثَلاَثًا « هَلْ تَدْرِي مَا حَقُّ اللَّهِ عَلَى الْعِبَادِ أَنْ يَعْبُدُوهُ وَلاَ يُشْرِكُوا بِهِ شَيْئًا ». ثُمَّ سَارَ سَاعَةً فَقَالَ « يَا مُعَاذُ ». قُلْتُ لَبَّيْكَ وَسَعْدَيْكَ. قَالَ « هَلْ تَدْرِي مَا حَقُّ الْعِبَادِ عَلَى اللَّهِ إِذَا فَعَلُوا ذَلِكَ أَنْ لاَ يُعَذِّبَهُمْ ».

حَدَّثَنَا هُدْبَةُ حَدَّثَنَا هَمَّامٌ حَدَّثَنَا قَتَادَةُ عَنْ أَنَسٍ عَنْ مُعَاذٍ بِهَذَا. [ر: ۲۷۰۱]

سيدنا انس ﷺ د سيدنا معاذ بن جبل ﷺ نه روايت کوی چه زه په رسول الله ﷺ پسې شاته سور اوم. رسول الله ﷺ اوفرمائيل : اې معاذ: ما اووې ﴿ لبيك وسعديك ﴾، بيا ئې هم دغه شان درې کرته اوفرمائيل : (بيا ئې اوفرمائيل) آيا تا ته معلومه ده چه د الله پاک په بندګانو باندې څه حق دې؟ (د هغه حق دا دې چه) د هغه بندګی اوکړی او څوک هم دهغه شريک نه کړې شی. بيا لږ ساعت روان وو او وې فرمائيل : اې معاذ: ما عرض اوکړو ﴿ لبيك وسعديك ﴾ رسول الله ﷺ اوفرمائيل : آيا تاته معلومه ده چه د بندګانو په الله پاک باندې څه حق دې چه کله بندګان دا کار اوکړو؟ هغه دا دې چه الله پاک به هغوی ته عذاب نه ورکوی.

[۵۹۱۳] حَدَّثَنَا عُمَرُ بْنُ حَفْصٍ حَدَّثَنَا أَبِي حَدَّثَنَا الأَعْمَشُ حَدَّثَنَا زَيْدُ بْنُ وَهْبٍ حَدَّثَنَا وَاللَّهِ أَبُو ذَرٍّ بِالرَّبَذَةِ كُنْتُ أَمْشِي مَعَ النَّبِيِّ - صلى الله عليه وسلم - فِي حَرَّةِ الْمَدِينَةِ عِشَاءً اسْتَقْبَلَنَا أُحُدٌ فَقَالَ « يَا أَبَا ذَرٍّ مَا أُحِبُّ أَنَّ أُحُدًا لِي ذَهَبًا يَأْتِي عَلَىَّ لَيْلَةٌ أَوْ ثَلاَثٌ عِنْدِي مِنْهُ دِينَارٌ، إِلاَّ أَرْصُدُهُ لِدَيْنٍ، إِلاَّ أَنْ أَقُولَ بِهِ فِي عِبَادِ اللَّهِ هَكَذَا وَهَكَذَا وَهَكَذَا ». وَأَرَانَا بِيَدِهِ. ثُمَّ قَالَ « يَا أَبَا ذَرٍّ ». قُلْتُ لَبَّيْكَ وَسَعْدَيْكَ يَا رَسُولَ اللَّهِ. قَالَ « الأَكْثَرُونَ هُمُ الأَقَلُّونَ إِلاَّ مَنْ قَالَ هَكَذَا وَهَكَذَا ». ثُمَّ قَالَ لِي « مَكَانَكَ لاَ تَبْرَحْ يَا أَبَا ذَرٍّ حَتَّى أَرْجِعَ ». فَانْطَلَقَ حَتَّى

(۱) ارشاد الساری ۲۷۳/۱۳، وفتح الباری ٦۲/۱۱

(۲) فتح الباری ۷۲/۱۱، شرح صحيح البخاری لابن بطال، کتاب الاستئذان، باب المعانقة وقول الرجل : کيف اصبحت؟ ٤۹/۹

(۳) کشف الباری، کتاب المغازی، باب مرض النبی صلی الله عليه وسلم، ص ٦۸، رقم الحديث : ٤۱۸۲

غَابَ عَنِّي، فَسَمِعْتُ صَوْتًا فَخَشِيتُ أَنْ يَكُونَ عُرِضَ لِرَسُولِ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - فَأَرَدْتُ أَنْ أَذْهَبَ، ثُمَّ ذَكَرْتُ قَوْلَ رَسُولِ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - «لَا تَبْرَحْ». فَمَكَثْتُ قُلْتُ يَا رَسُولَ اللَّهِ سَمِعْتُ صَوْتًا خَشِيتُ أَنْ يَكُونَ عُرِضَ لَكَ، ثُمَّ ذَكَرْتُ قَوْلَكَ فَقُمْتُ. فَقَالَ النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - «ذَاكَ جِبْرِيلُ أَتَانِي، فَأَخْبَرَنِي أَنَّهُ مَنْ مَاتَ مِنْ أُمَّتِي لَا يُشْرِكُ بِاللَّهِ شَيْئًا دَخَلَ الْجَنَّةَ». قُلْتُ يَا رَسُولَ اللَّهِ وَإِنْ زَنَى وَإِنْ سَرَقَ. قَالَ «وَإِنْ زَنَى وَإِنْ سَرَقَ». قُلْتُ لِزَيْدٍ إِنَّهُ بَلَغَنِي أَنَّهُ أَبُو الدَّرْدَاءِ. فَقَالَ أَشْهَدُ لَحَدَّثَنِيهِ أَبُو ذَرٍّ بِالرَّبَذَةِ.
قَالَ الأَعْمَشُ وَحَدَّثَنِي أَبُو صَالِحٍ عَنْ أَبِي الدَّرْدَاءِ نَحْوَهُ. وَقَالَ أَبُو شِهَابٍ عَنِ الأَعْمَشِ «يَمْكُثُ عِنْدِي فَوْقَ ثَلَاثٍ». [ر: ۲۲۵۸]

زید بن وهب فرمائی: قسم په الله پاک: چه ابوذر رضی الله عنه په ربذه کښې مونږ ته بیان اوکړو چه چه زه د رسول الله ﷺ سره د ماسخوتن په وخت کښې په حره باندې تیریدم. زمونږ مخې ته د احد غر راغلو نو رسول الله ﷺ اوفرمائیل: اې ابوذر! زما دا خوښه نه ده چه ما سره دې د احد د غر برابر سره زر وی او په ما باندې یوه ورځ یا یوه شپه تیره شی په داسې حال کښې چه ما سره د هغې نه د قرض نه علاوه یو دینار هم وی مگر دا چه هغه د الله پاک په بندګانو باندې داسې او داسې خرچ کړم اوپه خپل لاسونو مبارکو سره ئې اشاره اوفرمائیله. او وې فرمائیل اې ابوذر: ما اووې ﴿لبيك وسعديك يا رسول الله﴾ رسول الله ﷺ اوفرمائیل: په دنیا کښې زیاتو مالونو والا به (په آخرت کښې) غریبانان وی خو هغه خلق چه داسې او داسې خرچه کوی. بیا ئې ماته اوفرمائیل چه اې ابوذر رضی الله عنه ته په دې ځائې اودریږه ترڅو پورې چه زه نه یم راغلې. ته هم په دې ځائې کښې اوسیږه. پس هغوی روان شو. تردې چه زما د نظر نه غائب شو. ما یو آواز واوریدلو زما ویره پیدا شوه چه رسول الله ﷺ ته څرته څه حادثه نه وی پیښه شوې. په دې وجه ما تلل اوغوښتل بیا ماته د رسول الله ﷺ قول راياد شو چه هم دلته اودریده پس زه اودریدم (چه کله هغوی تشریف راوړلو) نو ما عرض اوکړو یا رسول الله ﷺ ما یو آواز واوریدلو. په دې وجه زما ویره پیدا شوه چه څرته تاسو ته څه حادثه نه وی پیښه شوې (ما راتلل اوغوښتل) بیا ماته ستاسو حکم راياد شو چه هم دلته اودریږه پس زه ولاړ اوم.

رسول الله ﷺ اوفرمائیل: هغه جبرائیل وو. هغوی ماته خبر راکړو چه زما په امت کښې چه څوک د الله پاک سره څوک شریک نه کړی او هغه مړ شی نو جنت ته به داخلیږی ما عرض اوکړو یا رسول الله ﷺ! اګر چه هغه زنا او غلا کوی. رسول الله ﷺ اوفرمائیل. اګر چه هغه زنا او غلا کوی. د راوی بیان دې چه ما د زید نه تپوس اوکړو چه ماته معلومه شوې ده چه هغه ابوالدرداء رضی الله عنه وو هغوی اووې چه زه ګواهی ورکوم چه ماته ابوذر رضی الله عنه په ربذه کښې بیان کړې دې. ماته اعمش وئیلي دی چه ماته ابو صالح او هغوی د ابو الدرداء رضی الله عنه نه هم دغه شان حدیث نقل کړو او ابو شهاب د اعمش نه ﴿يمكث عندى فوق ثلاث﴾ الفاظ نقل کړې دی.

**د لبیک وسعدیک لغوی تحقیق**: علامه عینی رحمه الله لیکی!

﴿ أى هذا باب فى بيان من أجاب لمن يسأله بقوله لبيك ومعناه أنا مقيم على طاعتك من قولهم لب فلان بالمكان إذا أقام به وقيل معناه إجابة بعد إجابة وهذا من المصادر التى حذف فعلها لكونه وقع مثنى وذلك يوجب حذف فعله قياسا لأنهم لما ثنوه صار كأنهم ذكروه مرتين فكأنه قال لبالبا ولا يستعمل إلا مضافا ومعنى لبيك الدوام والملازمة فكأنه إذا قال لبيك قال أدوم على طاعتك وأقيمها مرة بعد أخرى أى شأنى الإقامة والملازمة وأما سعديك فمعناه فى العبادة أنا متبع أمرك غير مخالف لك فأسعدنى على متابعتك إسعادا وأما فى إجابة المخلوق فمعناه أسعدك إسعادا بعد إسعاد أى مرة بعد أخرى ﴾ [1]

یعنی : دا باب د هغه سړی په بیان کښې دې کوم چه د چا په طلب کولو باندې په جواب کښې ﴿ لبيك ﴾ اوائی. د دې معنی ده : زه ستا په طاعت باندې قائم او برقرار یم. دا د ﴿ لب فلان بالمکان ﴾ نه اخستلې شوې دې، چه د هغې معنی ده په یو ځائې کښې مقیم کیدل. بعض د دې معنی په ﴿ اجابة بعد اجابة ﴾ سره کړې ده. یعنی زه مسلسل ستاسو آواز اورم. دا د هغه مصادر نه دې چه د هغې فعل په دې وجه حذف کړې شوې دې چه هغه تثنیه واقع شوې دی. او د مصدر تثنیه واقع کیدل قیاس حذف فعل لره واجب کوی. ځکه چه عربو کله دا تثنیه جوړه کړه نو ګویا هغوی دا دوباره ذکر کړه نو ګویا هغوی داسې اووې : لبالبا. او دا لفظ صرف مضاف استعمالیږی. او د ﴿ لبيك ﴾ په معنی کښې دوام او ملازمت دې. ګویا ﴿ لبيك ﴾ وئیلو سره قائل داسې اووې چه زه به ستا په اطاعت کښې مسلسل یم او هغه به بار بار قائموم یعنی زما حالت اقامت او ملازمت دې. پاتې شو ﴿ سعديك ﴾ نو د عبادت په باب کښې د دې معنی ده اې الله ! زه به ستا حکم منم او ستا مخالفت به نه کوم. پس ته ما په خپله اتباع باندې بار بار سعادتمند کړه. او د مخلوق په اجابت کښې د دې معنی دا ده چه زه به تا بار بار خوشحالوم

**د ترجمة الباب مقصد** : د ترجمة الباب مقصد بیانولو سره شیخ الحدیث مولانا محمد زکریا رحمه الله لیکی :

﴿ ولعل الغرض منه الرد لما حكى عن مالك من كراهة ذلك، كما فى الشرح الكبير، واوله بان مراده استعمال تلبية الحج، لا مطلق لبيك، وترجم الامام ابوداؤد فى سننه على هذا المعنى بقوله : باب الرجل ينادى الرجل : فيقول لبيك ﴾ [2]

یعنی : د ترجمة الباب مقصد په امام مالک رحمه الله باندې رد کیدې شی، د چانه چه د دې

[1] عمدة القارى ۲۵۵/۲۲

[2] الابواب والتراجم، كتاب الاستئذان، باب من اجاب لبيك وسعديك : ۱۲۳/۲، وسنن ابى داؤد كتاب الادب، باب فى الرجل ينادى الرجل فيقول : لبيك : ۳۵۹/٤

الفاظو وئيلو كراهت منقول دي لكه چه په الشرح الكبير كښې دى. صاحب د شرح كبير د امام مالك رحمه الله د دې قول دا تاويل كړې دې چه د هغوى مراد مطلقا لبيك نه دې. بلكه د حج د تلبية استعمال دې. امام ابو داؤد رحمه الله په سنن كښې په دې معنى باندې د دې الفاظو د ترجمې سره ترجمة الباب قائم كړې دې: ﴿باب الرجل ينادى الرجل، فيقول: لبيك﴾ يعنى دا باب د دې په بيان كښې دې چه يو سړې بل ته آواز اوكړى نو بل په جواب كښې ﴿لبيك﴾ اوائى.
د باب د لاندې چه امام بخارى رحمه الله كوم احاديث ذكر كړې دى. په هغې كښې د ﴿لبيك وسعديك﴾ الفاظ دى. په اول روايت كښې د رسول الله ﷺ په رابللو باندې سيدنا معاذ بن جبل رضي الله عنه او په دويم روايت كښې سيدنا ابو ذر رضي الله عنه دا الفاظ وئيلې دى.
د باب دويم روايت په كتاب الجنائز او كتاب اللباس وغيره كښې تير شوې دې (۱)

**قوله: ﴿قال الاعمش: وحدثني ابو صالح عن ابي الدرداء نحوه وقال ابو شهاب عن الاعمش: يمكث عندي فوق ثلاث﴾:** امام بخارى رحمه الله دا فرمائيل غواړى چه اعمش دا حديث د ابو صالح عن ابى الدرداء په طريق هم په دې الفاظو سره روايت كړې دې. او حال دا چه ابو شهاب د ﴿اعمش عن زيد بن وهب عن ابى ذر﴾ په طريق سره نقل كړې دې. خو د دې حديث الباب الفاظ ﴿ياتى على ليلة او ثلاث عندى منه دينار﴾ په ځائې دا الفاظ دى ﴿يمكث عندى فوق ثلاث﴾ او حال دا چه باقى حديث يو شان دې. خو د حديث الباب په آخر كښې د اعمش او ابوذر ترمينځه د سوال او جواب چه كومه تبادله شوې ده. هغه په دې كښې نشته. (۲)

## ۳۱: باب لَا يُقِيمُ الرَّجُلُ الرَّجُلَ مِنْ مَجْلِسِهِ

[۵۹۱۴] (۳) حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ بْنُ عَبْدِ اللهِ قَالَ حَدَّثَنِي مَالِكٌ عَنْ نَافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ - رضى الله عنهما - عَنِ النَّبِيِّ - صلى الله عليه وسلم - قَالَ «لَا يُقِيمُ الرَّجُلُ الرَّجُلَ مِنْ مَجْلِسِهِ، ثُمَّ يَجْلِسُ فِيهِ». [ر: ۸۲۹]

**چا لره د خپل ځائې نه د پاسولو حكم:** يو سړې كه د مخكښې نه په يو ځائې كښې ناست دې

(۱) كتاب فى الاستقراض واداء الديون والحجر والتفليس. باب اداء الديون. رقم الحديث: ۲۳۸۸
(۲) فتح البارى ۱۱/۷٤
(۳) (۵۹۱٤) للحديث اخرجه مسلم فى كتاب السلام. باب تحريم اقامة الانسان من موضعه المباح (رقم الحديث ۲۱۷۷) واخرجه الترمذى فى كتاب الادب. باب ما جاء فى كراهية ان يقام الرجل من مجلسه ثم يجلس فيه (رقم الحديث ۲۷٤۹، ۲۷۵۰) واخرجه ابوداؤد فى كتاب الادب. باب فى الرجل يقوم للرجل من مجلسه (رقم الحديث: ٤۸۲۸)

نو هغه لره د خپل ځائ نه پاسول صحيح نه دي. «لايقيم» اګر چه مضارع په صيغه د خبر دي خو معني اعتبار سره دا نهي ده. (١) په بعض روايتونو کښې «لايقم» په صيغه د نهي سره هم راغلي دي او د صحيح مسلم په روايت کښې «لايقيمن» نهي په نون د تاکيد سره ده. (٢) دا نهي د بعض علماء کرامو په نزد د تحريم دپاره ده او د بعض په نزد د تنزيه دپاره ده. علامه قسطلاني رحمه الله فرمائي چه نهي په ظاهر کښې د تحريم دپاره راځي او د دليل نه بغير دا د بل څه معني دپاره نه شي اخستلې کيدې. (٣)
د حديث الفاظ اګر چه عام دي خو عموم مراد نه دي بلکه په حديث کښې بيان کړې شوې حکم د هغه مجالسو متعلق دي کوم چه د هر يو دپاره عام او مباح وي لکه مسجد، پارک وغيره، او که يو ځائ د چا ملکيت دې نو ظاهره ده چه هلته د هغه د اجازت نه بغير کيناستل جائز نه دي. (٤)

## ۳۲: باب (إِذَا قِيلَ لَكُمْ تَفَسَّحُوا فِي الْمَجَالِسِ فَافْسَحُوا يَفْسَحِ اللَّهُ لَكُمْ وَإِذَا قِيلَ انْشُزُوا فَانْشُزُوا) الآيَةَ| المجادلة: ۱۱_

[۵۹۱۵] حَدَّثَنَا خَلَّادُ بْنُ يَحْيَى حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ عَنْ نَافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ عَنِ النَّبِيِّ صلى الله عليه وسلم أَنَّهُ نَهَى أَنْ يُقَامَ الرَّجُلُ مِنْ مَجْلِسِهِ وَيَجْلِسَ فِيهِ آخَرُ وَلَكِنْ تَفَسَّحُوا وَتَوَسَّعُوا. وَكَانَ ابْنُ عُمَرَ يَكْرَهُ أَنْ يَقُومَ الرَّجُلُ مِنْ مَجْلِسِهِ ثُمَّ يَجْلِسَ مَكَانَهُ [ر: ۸۶۹]
سيدنا ابن عمر رضي الله عنهما د رسول الله صلى الله عليه وسلم نه روايت نقل کوي چه رسول الله صلى الله عليه وسلم د دې خبرې نه منع فرمائيلې ده چه يو سړې د هغه د ځائ نه پاسولې شي او د هغه په ځائ دويم سړې کيني پس ګنجائش راوباسئ او فراخي پيدا کړئ. سيدنا ابن عمر رضي الله عنهما به دا خبره مکروه ګڼړله چه يو سړې د هغه د ځائ نه پاسولې شي بيا د هغه په ځائ خپله کيني.

**د ترجمة الباب مقصد** : د کرماني رحمه الله د نسخې نه علاوه په باقي نسخو کښې «المجلس» مفرد دې، د کرماني په نسخه کښې «المجالس» په صيغه د جمع سره دې. په آيت کريمه کښې دواړه قراءتونه دي. د عاصم قراءت د جمع دې. (٥)

---

(١) وهو خبر معناه النهي. عمدة القاري ۲۵۶/۲۲، فتح الباري ۷۳/۱۱۱
(٢) صحيح مسلم، كتاب السلام، باب تحريم اقامة الانسان من موضعه المباح الذى سبق اليه : ۱۷۱۴/۴، رقم الحديث (۲۱۷۷)
(٣) ارشاد الساري ۲۸۶/۱۳
(٤) ارشاد الساري ۲۸۶/۱۳
(٥) صحيح البخاري بشرح الكرماني، كتاب الاستيذان، باب اذا قيل لكم تفسحوا فى المجلس : ۱۰۴/۲۲، ارشاد الساري ۲۸۶/۱۳



د مجلس نه د رسول الله ﷺ مجلس هم مراد کړې شوې دې خو د هغوی د مجلس سره خاص نه دې بلکه د طاعت هر مجلس د دې نه مراد کیدلې شی او په دې کښې دا ادب بیان کړې شوې دې چه د مجلس نه د چا د اوچتولو په ځائې. په دې کښې راتولیدو سره فراخی پیدا کړې شی. [1]

د سیدنا ابن عباس رضی الله عنهما نه یو روایت هم منقول دې چه د دې نه د قتال مجالس مراد دی. د شهادت په شوق کښې د حضرات صحابه کرامو رضی الله عنهم د قتال په صف اول کښې د ځائې موندلو دپاره په خپل مینځ د یو بل نه مخکښې کیدل. د دې په باره کښې په آیت کریمه کښې حکم بیان کړې شو. [2]

**قوله: ﴿يفسح الله لكم اى: توسعوا يوسع الله عليكم منازلكم فى الجنة﴾:** [3] الله پاک به ستاسو دپاره فراخی پیدا کړی یعنی فراخی پیدا کړئ. الله پاک به ستاسو د جنت په کورونو کښې فراخي پیدا کړی.

د روایت الباب په آخر کښې د سیدنا ابن عمر رضی الله عنهما په باره کښې دی چه هغوی به دا خبره ناخوښه ګڼړله چه یو سړې د خپل مجلس نه پاسی او بل سړې راشی او د هغه په ځائې باندې قبضه اوکړی.

د سیدنا ابوهریره رضی الله عنه نه روایت دې چه رسول الله ﷺ فرمائی: ﴿إِذَا قَامَ أَحَدُكُمْ مِنْ مَجْلِسِهِ ثُمَّ رَجَعَ إِلَيْهِ فَهُوَ أَحَقُّ بِهِ﴾ [4] یعنی که په تاسو کښې یو سړې د خپل ځائې نه پاسی بیا هغه خپل ځائې ته راواپس شی نو هغه د دې ځائې زیات حقدار دې.

د سیدنا عبدالله بن عمر رضی الله عنهما نه یو روایت دې، په دې کښې دی ﴿جَاءَ رَجُلٌ إِلَى رَسُولِ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - فَقَامَ لَهُ رَجُلٌ مِنْ مَجْلِسِهِ فَذَهَبَ لِيَجْلِسَ فِيهِ فَنَهَاهُ رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم﴾ [5] یعنی یو سړې د رسول الله ﷺ په خدمت کښې حاضر شو. یو سړې د هغه دپاره د خپل ځائې نه پاسیدو. چه په هغې باندې هغه د هغه په ځائې کیناستل اوغوښتل نو رسول الله ﷺ هغه منع کړو.

حاصل دا چه یو سړې چه کله مخکښې په یو ځائې کښې کیناستلو او د څه عارض د وجې نه هغه پاسیدو نو د هغه د حق جلوس به نه زائل کیږی، بل سړی لره دهغه په ځائې نه دې کیناستل پکار. [6]

---

[1] وذهب الجمهور الى انها عامة فى كل مجلس من مجالس الخير. فتح البارى ٧٤/١١
[2] ارشاد السارى ٢٧٧/١٣
[3] عمدة القارى ٢٥٧/٢٢
[4] اخرجه مسلم فى كتاب السلام، باب اذا قام من مجلسه ثم عاد فهو احق به: ١٧١٥/٤٠، رقم الحديث ٢١٧٩، واخرجه ابوداؤد فى كتاب الادب، باب اذا قام من مجلسه ثم رجع: ٢٦٤/٤، رقم الحديث: ٤٨٥٣
[5] اخرجه ابوداؤد فى كتاب الادب، باب فى الرجل يقوم للرجل من مجلسه ٢٥٨/٤، رقم الحديث: ٤٨٢٨
[6] فصار كانه ملك منفعة فلا يزاحمه غيره عليه. فتح البارى ٧٥/١١

هم دا حکم په هغه صورت کښې هم دې چه کله یو عالم یا مفتی په مسجد وغیره کښې درس ورکوی او د هغه ځائې متعین وی نو په هغه متعین ځائې باندې د درس په وخت کښې بل چا لره کیناستل نه دی پکار. بعض د عدم جلوس دې حکم ته واجب وئیلې دې خو د جمهورو په نزد مستحب دې [1]

## ۳۳: باب من قام من مجلسه أو بيته، ولم يستأذن أصحابه، أو تهيأ للقيام ليقوم الناس

[۵۹۱۶] حدثنا الحسن بن عمر حدثنا معتمر سمعت أبي يذكر عن أبي مجلز عن أنس بن مالك - رضي الله عنه - قال: لما تزوج رسول الله - صلى الله عليه وسلم - زينب ابنة جحش دعا الناس طعموا ثم جلسوا يتحدثون - قال - فأخذ كأنه يتهيأ للقيام فلم يقوموا، فلما رأى ذلك قام، فلما قام قام من قام معه من الناس، وبقي ثلاثة، وإن النبي - صلى الله عليه وسلم - جاء ليدخل فإذا القوم جلوس، ثم إنهم قاموا فانطلقوا - قال - فجئت فأخبرت النبي - صلى الله عليه وسلم - أنهم قد انطلقوا، فجاء حتى دخل فذهبت أدخل، فأرخى الحجاب بيني وبينه، وأنزل الله تعالى (يا أيها الذين آمنوا لا تدخلوا بيوت النبي إلا أن يؤذن لكم) إلى قوله (إن ذلكم كان عند الله عظيما). [ر: ۴۵۱۳]

د سیدنا انس بن مالک رضی الله عنه نه روایت دې چه کله رسول الله ﷺ د زینب بنت جحش رضی الله عنها سره نکاح اوکړه نو خلقو ته ئې دعوت اوکړو. د خوراک کولو نه پس هغوی ناست وو خبرې ئې کولې. د راوی بیان دې چه رسول الله ﷺ دا ظاهر کړه چه ګویا اودریدل پکار دی، خو خلق اوندریدل چه کله رسول الله ﷺ دا اولیدل نو اودریدل چه کله هغوی اودریدل نو هغوی سره چه کوم خلق وو هغوی هم اودریدل او درې سړی پاتې شو. رسول الله ﷺ چه راغلو نو وې کتل چه خلق ناست دی. بیا هغه خلق هم پاسیدل او لاړل. سیدنا انس رضی الله عنه فرمائی چه زه راغلم او رسول الله ﷺ ته مې خبر ورکړو چه هغوی تلی دی په دې اوریدلو باندې رسول الله ﷺ راغلو. تردې چه کور ته داخل شو. ما هم داخلیدل اوغوښتل نو رسول الله ﷺ زما او خپل مینځ کښې پرده واچوله او الله پاک دا آیت کریمه نازل اوفرمائیلو: ﴿يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَا تَدْخُلُوا بُيُوتَ النَّبِيِّ...﴾ اې ایمان والو! د رسول الله ﷺ کورونو ته مه داخلیږئ مګر دا چه تاسو ته اجازت اوکړې شی. د ﴿إِنَّ ذَٰلِكُمْ كَانَ عِندَ اللَّهِ عَظِيمًا﴾ پورې.

**د ترجمة الباب مقصد** د امام بخاری رحمه الله مقصد د دې ترجمة الباب نه دا دې چه که یو میلمه د زیات وخته پورې ایساریږی کوم چه د کوربه دپاره د تکلیف باعث وی نو کوربه د خپل عمل د هرې اندازې نه هغه ته د تلو پیغام ورکولې شی او دا تنبیه کول د د میلمه د اکرام

---

[1] فتح الباری ۷۵/۱۱

خلاف نه دی [۱]
وجه دا ده چه میلمه لره د کوربه رعایت کولو سره دومره ایساریدل پکار دي چه په هغې سره هغه ته تکلیف نه رسیږي. او که د میلمه رعایت نه کوی نو کوربه دې هم د هغه د اجازت نه بغیر د مجلس نه د پاسیدو خبرداري کولې شي [۲].

## ۳۴- باب الاِحْتِبَاءِ بِالْيَدِ وَهُوَ الْقُرْفُصَاءُ

[۵۹۱۷] [۳] حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ أَبِي غَالِبٍ أَخْبَرَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ الْمُنْذِرِ الْحِزَامِيُّ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ فُلَيْحٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ نَافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ-رضي الله عنهما- قَالَ رَأَيْتُ رَسُولَ اللَّهِ-صلى الله عليه وسلم- بِفِنَاءِ الْكَعْبَةِ مُحْتَبِيًا بِيَدِهِ هَكَذَا.

احتباء خپې د سینې طرف ته راټولو سره کیناستلو ته وائي. چه د هغې تفصیل په کشف الباري،کتاب اللباس کښې باب اشتمال الصماء د لاندې تیر شوې دې [۴].

﴿قرفصاء﴾ په لاسونو باندې تکیه لګولو سره کیناستلو ته وائي. او احتباء عام دی. که په لاسو سره وي او که په څادر وغیره سره وي. [۵]

## ۳۵: باب مَنِ اتَّكَأَ بَيْنَ يَدَيْ أَصْحَابِهِ

قَالَ خَبَّابٌ أَتَيْتُ النَّبِيَّ - صلى الله عليه وسلم - وَهُوَ مُتَوَسِّدٌ بُرْدَةً قُلْتُ أَلاَ تَدْعُو اللَّهَ فَقَعَدَ. [ر: ۳۴۱۶]

سیدنا خباب ﷺ فرمائي چه زه رسول الله ﷺ ته راغلم او هغوی په څادر باندې تکیه لګولې ناست وو. ما عرض اوکړو: آیا تاسو به د الله پاک نه دعا نه غواړئ؟ په دې اوریدلو باندې، رسول الله ﷺ کیناستلو.

[۵۹۱۸] حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ حَدَّثَنَا بِشْرُ بْنُ الْمُفَضَّلِ حَدَّثَنَا الْجُرَيْرِيُّ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ أَبِي بَكْرَةَ عَنْ أَبِيهِ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ-صلى الله عليه وسلم- «أَلاَ أُخْبِرُكُمْ بِأَكْبَرِ الْكَبَائِرِ». قَالُوا بَلَى يَا رَسُولَ اللَّهِ. قَالَ «الإِشْرَاكُ بِاللَّهِ، وَعُقُوقُ الْوَالِدَيْنِ».
حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا بِشْرٌ مِثْلَهُ، وَكَانَ مُتَّكِئًا فَجَلَسَ فَقَالَ «أَلاَ وَقَوْلُ الزُّورِ». فَمَا زَالَ يُكَرِّرُهَا حَتَّى قُلْنَا لَيْتَهُ سَكَتَ. [ر: ۲۵۱۱]

---

[۱]) الابواب والتراجم، کتاب الاستیذان، باب من قام من مجلسه او بیته : ۱۲٤/۲
[۲]) فتح الباري : ۷٦/۱۱
[۳]) (۵۹۱۷) الحدیث اخرجه البخاري في کتاب التوحید، والحدیث من افراده، عمدة القاري ۲۵۹/۲۲
[۴]) کشف الباري، کتاب اللباس، باب اشتمال الصماء ص ۱۸۲
[۵]) الابواب والتراجم، کتاب الاستیذان، باب الاحتباء بالید وهو القرفصاء : ۱۲٤/۲

عبدالرحمن بن ابى بكره د خپل والد رضی الله عنه نه روايت کوی چه هغوی بيان اوکړو چه رسول الله ﷺ اوفرمائيل : آيا زه تاسو ته د ټولو نه لوئې گناه بيان نه کړم؟ خلقو عرض اوکړو : ولې نه يارسول الله ﷺ! رسول الله ﷺ اوفرمائيل: دالله پاک سره شرک اودوالدينونافرمانی کول.
مسدد په واسطه د بشر هم دا حديث داسې بيان کړو چه رسول الله ﷺ تکيه لګولې وه بيا کيناستلو او وې فرمائيل : واورئ د دروغو نه بچ شئ. او دا ئې بار بار فرمائيل ترديې چه مونږ په زړه کښې اووې چه کاش ! رسول الله ﷺ خاموش شی.
**د ترجمة الباب مقصد** : ﴿ اتكا ﴾ معنى اضطجاع يعنى د سملاستو هم راځی او مشهوره معنى ئې د تکيه لګولو ده.[1] مطلب دا دې چه که يو سړې د خپلو ملګرو په محفل کښې ډډه وهی. يا په اړخ باندې سملې نو په سنت کښې د دې اصل موجود دې.[2]
حديث الباب امام بخاری رحمه الله په دوه طريقو سره ذکر کړې دې، په دويم طريق کښې تصريح ده چه رسول الله ﷺ تکيه لګونکې ارشاد فرمائيلو او د لويو ګناهونو ذکر ئې کولو. خو د ﴿قول الزور﴾ ذکر کولو سره کيناستلو.

## ٣٦: باب مَنْ أَسْرَعَ فِي مَشْيِهِ لِحَاجَةٍ أَوْ قَصْدٍ

[٥٩١٩] حَدَّثَنَا أَبُو عَاصِمٍ عَنْ عُمَرَ بْنِ سَعِيدٍ عَنِ ابْنِ أَبِي مُلَيْكَةَ أَنَّ عُقْبَةَ بْنَ الْحَارِثِ حَدَّثَهُ قَالَ صَلَّى النَّبِي -صلى الله عليه وسلم- الْعَصْرَ، فَأَسْرَعَ، ثُمَّ دَخَلَ الْبَيْتَ. [ر: ٨١٣]
**د ترجمة الباب مقصد** : د څه ضرورت د وجې نه که يو سړې خپل عام چال پريخودلو سره په تيز رفتار سره ځی نو دا د وقار خلاف نه ده، لکه چه په حديث الباب کښې دی چه رسول الله ﷺ د مازيګر مونځ ورکړو او په تيزئ سره کور ته لاړو، د کتاب الصلاة او کتاب الزكاة په روايت کښې تصريح ده چه د صدقې څه مال په کور کښې پاتې شوې وو، رسول الله ﷺ د هغې د تقسيمولو دپاره په تيزئ سره لاړو چه هغه چرته د شپې پورې پاتې نه شی.[3]
دا د معمول د رفتار نه لرې کيدو سره په تيز رفتارئ سره د تلو خبره ده. باقی عام رفتار تيز کيدل پکار دی يا نه؟ سيدنا عبدالله بن عمر رضی الله عنهما به تيز تلو او فرمائيل به ئې : تيز تلل د تکبر نه د لرې والی او ضرورت لره د زر پوره کولو ذريعه ده.[4]

[1]) فتح البارى ٨٠/١١، عمدة القارى ٢٥٩/٢٢، تحفة البارى ١٥٧/٦، ارشاد السارى ٢٧٩/١٣
[2]) قال المهلب : انه يجوز للعالم والامام الاتكاء فى مجلسه بحضرة جلسائه لاستراحة اوالم فى بعض اعضائه، ارشاد السارى ٢٨٠/١٣
[3]) صحيح البخارى، كتاب الزكاة، باب من احب تعجيل الصدقة من يومها : ٣٠٢، رقم الحديث : ١٤٣٠.
[4]) فتح البارى ٨١/١١، ارشاد السارى ٢٨١/١٣، عمدة القارى ٢٦٠/٢٢

## ٣٧: باب السرير

[٥٩٢٠] حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ حَدَّثَنَا جَرِيرٌ عَنِ الأَعْمَشِ عَنْ أَبِي الضُّحَى عَنْ مَسْرُوقٍ عَنْ عَائِشَةَ - رضي الله عنها قَالَتْ كَانَ رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - يُصَلِّي وَسْطَ السَّرِيرِ، وَأَنَا مُضْطَجِعَةٌ بَيْنَهُ وَبَيْنَ الْقِبْلَةِ تَكُونُ لِي الْحَاجَةُ، فَأَكْرَهُ أَنْ أَقُومَ فَأَسْتَقْبِلَهُ فَأَنْسَلُّ انْسِلاَلاً. [ر: ٤٨٦]

د ترجمة الباب غرض: ﴿سرير﴾ كټ ته وائى. د ترجمة الباب مقصد دا دې چه تخت وغيره استعمالول د زهد خلاف نه دى [١] په حديث الباب كښې سيده عائشه ﷞ فرمائى چه رسول الله ﷺ به د تخت مينځ ته اودريدلو سره مونځ كولو او زه به د هغوى او د قبلې ترمينځه ناسته اوم. كه زما به څه ضرورت وو نو ما به دا ناخوښه ګنړله چه پاسم او د هغوى مخې ته راشم، په دې وجه به زه په مزه مزه (په ملاسته ملاسته) اوخوئيدم.

## ٣٨: باب مَنْ أُلْقِيَ لَهُ وِسَادَةٌ

[٥٩٢١] حَدَّثَنَا إِسْحَاقُ حَدَّثَنَا خَالِدٌ. وَحَدَّثَنِي عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ عَوْنٍ حَدَّثَنَا خَالِدٌ عَنْ خَالِدٍ عَنْ أَبِي قِلاَبَةَ قَالَ أَخْبَرَنِي أَبُو الْمَلِيحِ قَالَ دَخَلْتُ مَعَ أَبِيكَ زَيْدٍ عَلَى عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو فَحَدَّثَنَا أَنَّ النَّبِيَّ - صلى الله عليه وسلم - ذُكِرَ لَهُ صَوْمِي، فَدَخَلَ عَلَيَّ، فَأَلْقَيْتُ لَهُ وِسَادَةً مِنْ أَدَمٍ حَشْوُهَا لِيفٌ، فَجَلَسَ عَلَى الأَرْضِ، وَصَارَتِ الْوِسَادَةُ بَيْنِي وَبَيْنَهُ، فَقَالَ لِي «أَمَا يَكْفِيكَ مِنْ كُلِّ شَهْرٍ ثَلاَثَةُ أَيَّامٍ». قُلْتُ يَا رَسُولَ اللَّهِ. قَالَ «خَمْسًا». قُلْتُ يَا رَسُولَ اللَّهِ. قَالَ «سَبْعًا». قُلْتُ يَا رَسُولَ اللَّهِ. قَالَ «تِسْعًا». قُلْتُ يَا رَسُولَ اللَّهِ. قَالَ «إِحْدَى عَشْرَةَ». قُلْتُ يَا رَسُولَ اللَّهِ. قَالَ «لاَ صَوْمَ فَوْقَ صَوْمِ دَاوُدَ، شَطْرَ الدَّهْرِ، صِيَامُ يَوْمٍ، وَإِفْطَارُ يَوْمٍ». [ر: ١٠٧٩]

ابو قلابة. د ابو المليح نه روايت كوى چه زه ستا د والد صاحب سره سيدنا عبدالله بن عمرو بن العاص ﷠ ته لاړم هغوى ماته بيان اوكړو چه د رسول الله ﷺ مخكښې زما د روژې تذكره اوشوه نو هغوى ماته تشريف راوړلو ما د هغوى ته يو تكيه واچوله چه د كجهورو د پوستكو نه ډک كړې شوې وو، هغوى په زمكه باندې كيناستل او تكيه زما او د هغوى ترمينځه وه. بيا هغوى ماته اوفرمائيل چه آيا ستا په مياشت كښې درې روژې كافى نه دى؟ ما اووې يا رسول الله ﷺ (زما د دې نه د زياتو طاقت دې)، رسول الله ﷺ اوفرمائيل نو پنځه؟ يا رسول الله ﷺ (زما د دې نه زيات طاقت دې)، هغوى اوفرمائيل. نو اووه؟ ما عرض اوكړو يا رسول الله ﷺ (زما د دې نه زيات طاقت دې)، رسول الله ﷺ اوفرمائيل نو نهه؟ ما عرض اوكړو يا رسول الله ﷺ (زما د دې نه زيات طاقت دې)، رسول الله ﷺ اوفرمائيل نو

---

[١] الابواب والتراجم، كتاب الاستيذان، باب السرير: ١٢٥/٢

يولس؟ ما عرض اوكړو يا رسول الله ﷺ! زما د دې نه زيات طاقت دې، رسول الله ﷺ اوفرمائيل د داؤد عليه السلام د روژو نه لويه هيڅ روژه نشته په دې طريقه چه يوه ورځ روژه وى او يوه ورځ بوزه وى.

[۵۹۲۲] حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ جَعْفَرٍ حَدَّثَنَا يَزِيدُ عَنْ شُعْبَةَ عَنْ مُغِيرَةَ عَنْ إِبْرَاهِيمَ عَنْ عَلْقَمَةَ أَنَّهُ قَدِمَ الشَّأْمَ. وَحَدَّثَنَا أَبُو الْوَلِيدِ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ مُغِيرَةَ عَنْ إِبْرَاهِيمَ قَالَ ذَهَبَ عَلْقَمَةُ إِلَى الشَّأْمِ، فَأَتَى الْمَسْجِدَ فَصَلَّى رَكْعَتَيْنِ فَقَالَ اللَّهُمَّ ارْزُقْنِي جَلِيسًا. فَقَعَدَ إِلَى أَبِي الدَّرْدَاءِ فَقَالَ مِمَّنْ أَنْتَ قَالَ مِنْ أَهْلِ الْكُوفَةِ. قَالَ أَلَيْسَ فِيكُمْ صَاحِبُ السِّرِّ الَّذِي كَانَ لَا يَعْلَمُهُ غَيْرُهُ - يَعْنِي حُذَيْفَةَ - أَلَيْسَ فِيكُمْ - أَوْ كَانَ فِيكُمْ - الَّذِي أَجَارَهُ اللَّهُ عَلَى لِسَانِ رَسُولِهِ - صلى الله عليه وسلم - مِنَ الشَّيْطَانِ - يَعْنِي عَمَّارًا - أَوَلَيْسَ فِيكُمْ صَاحِبُ السِّوَاكِ وَالْوِسَادِ - يَعْنِي ابْنَ مَسْعُودٍ - كَيْفَ كَانَ عَبْدُ اللَّهِ يَقْرَأُ (وَاللَّيْلِ إِذَا يَغْشَى). قَالَ (وَالذَّكَرِ وَالْأُنْثَى). فَقَالَ مَا زَالَ هَؤُلَاءِ حَتَّى كَادُوا يُشَكِّكُونِي، وَقَدْ سَمِعْتُهَا مِنْ رَسُولِ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم -[ر: ۳۱۱۳]

ابراهيم د علقمة نه روايت كوى چه هغوى شام ته اورسيدل نو يو مسجد ته راغلل او دعا ئې اوكړه يا الله! ماته يو ملګرې راكړه، بيا سيدنا ابوالدرداء رضي الله عنه سره كيناستل او تپوس ئې ترې اوكړو چه ته د كوم ځائې اوسيدونكې ئې؟ هغوى اووې د كوفې اوسيدونكې يم علقمه اووې چه آيا په تاسو كښې سړې نه دې كوم چه په دې راز باندې پوهيږى كوم چه د هغه نه علاوه بل چاته نه دې معلوم يعنى حذيفه رضي الله عنه. آيا په تاسو كښې هغه سړې نشته او يا ئې دا اووې چه آيا په تاسو كښې هغه سړې نه وو چاته چه الله پاک د خپل رسول ﷺ په خوله باندې د شيطان نه پناه وركړې وه، يعنى عمار رضي الله عنه او آيا په تاسو كښې د تكيه او مسواک والا يعنى ابن مسعود رضي الله عنه نه دې. عبدالله رضي الله عنه به ﴿والليل اذا يغشى﴾ څنګه لوستلو؟ وې وئيل ﴿والذكر والانثى﴾ به ئې لوستلو. سيدنا ابوالدرداء اوفرمائيل: خلقو به زه په شک كښې اچولم. حال دا چه ما د رسول الله ﷺ نه هم داسې اوريدلې دى.

**د ترجمة الباب مقصد**: په دې باب كښې امام بخارى رحمه الله چاته د تكيه وركولو ذكر كړې دې. په يو حديث كښې د درې څيزونو په باره كښې راغلې دى چه كه هغه پيش كړې شى نو رد كول نه دى پكار، په هغه دريو كښې يو تكيه هم ده.[1]

د باب په اول روايت كښې دى چه سيدنا عبدالله بن عمرو بن العاص رضي الله عنهما د رسول الله ﷺ په خدمت كښې تكيه پيش كړه، رسول الله ﷺ تواضعا په زمكه باندې كيناستلو او تكيه د دواړو ترمينځه وه. رسول الله ﷺ د هغوى نه تپوس اوكړو چه آيا په مياشت كښې درې

[1]) رواه الترمذى فى الشمائل، باب ما جاء فى تعطر رسول الله صلى الله عليه وسلم ولفظه : ثلاث لا ترد : الوسائد، والدهن، والطيب، واللبن. ص ١٤.

روژې ستا دپاره کافي نه دي؟ ﴿قلت يا رسول الله﴾ سيدنا عبد الله بن عمرو رضي الله عنهما اووې يا رسول الله ورانديې جمله محذوف ده يعني زه د دې نه د زياتو طاقت لرم. رسول الله ﷺ اوفرمائيل ﴿خمسا﴾ يعني ﴿صم خمسا﴾ پنځه ورځې روژې اونيسه.

په آخر کښې رسول الله ﷺ اوفرمائيل ﴿لَا صَوْمَ فَوْقَ صَوْمِ دَاوُدَ شَطْرَ الدَّهْرِ صِيَامُ يَوْمٍ وَإِفْطَارُ يَوْمٍ﴾ يعني د صوم داؤدي نه زياته هيڅ روژه نه ده، نيمه زمانه دې روژه اونيولې شي. داسې چه يوه ورځ ئې روژه وي او يوه ورځ افطار.

﴿شطر الدهر﴾ منصوب على الاختصاص دې او ﴿صيام يوم﴾ منصوب على الاختصاص هم کيدې شي او د ﴿هو﴾ مخذوف دپاره خبر هم کيدې شي. په دې صورت کښې به دا مرفوع وي.(۱)

دويم حديث په مناقب کښې تير شوې دې (۲) په دې کښې د عبد الله بن مسعود رضي الله عنه په باره کښې دي چه هغوی به د رسول الله ﷺ مسواک او تکيه سنبهالوله. هم د دې جملې په مناسبت سره دا حديث دلته ذکر کړې دې.

فائده: د باب په دوارو احاديثو کښې امام بخاري رحمه الله دوه دوه سندونه ذکر کړې دي. کوم چه د نکتې نه خالي نه دي. په اول حديث کښې چه امام بخاري رحمه الله کوم دوه سندونه ذکر کړې دي. په هغې کښې په اول سند کښې د هغوی او د خالد بن عبدالله طحان ترمينځه د يو راوی اسحاق بن شاهين واسطه ده. او په دويم سند کښې دوه دوه واسطې دي. يو د عبدالله بن محمد او دويم د عمرو بن عون. گويا دويم سند د يوې واسطې د زياتيدو د وجې نه نازل شوې دې. چونکه سند عالي چه په هغې کښې اسحاق بن شاهين مذکور دې د الفاظو سره دا حديث په کتاب الصلاة کښې تير شوې دې په دې وجه دلته سند نازل عمرو بن عون مذکور دې په الفاظو سره دا حديث ذکر کړې شو. او د سند نازل په راوړلو کښې هم دا نکته ده چه صرف په يو سند سره او په يو طريق باندې د حديث اعادة لازم نه شي. د څو مقاماتو نه علاوه په باقي پوره صحيح کښې د امام بخاري رحمه الله هم دا طريقه ده (۳)

د دويم حديث په شروع کښې هم امام بخاري رحمه الله دوه سندونه ذکر کړې دي. اول سند کښې د هغوی او د شعبه ترمينځه د دوه راويانو يحيى بن جعفر بکيندی او د يزيد بن هارون واسطه ده. او په دويم سند کښې واسطه يوه ده يعني د ابو الوليد. گويا اول سند نازل شو، کيدې شي چه دوه سندونه راوړلو سره امام بخاري رحمه الله په دې خبره باندې تنبيه فرمائي چه د دې يو سند نازل دې او يو عالي.

---

(۱) ارشاد السارى ۲۸۲/۱۳، عمدة القارى ۲۶۲/۲۲

(۲) صحيح البخارى، كتاب الاستئذان، باب من القى له وسادة/۱۳٤۱، رقم الحديث: ۶۲۷۸

(۳) فتح البارى: ۸۲/۱۱

او يو نكته دا هم كيدې شي چه په اول سند كښې د شعبه نه راويت كونكى راوى يزيد عنعنه كړې ده او په دويم سند كښې د شعبه نه روايت كونكى راوى ابوالوليد د تحديث تصريح كړې ده

## ۳۹: بَاب الْقَائِلَةِ بَعْدَ الْجُمُعَةِ

[۵۹۲۳] حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ كَثِيرٍ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ أَبِي حَازِمٍ عَنْ سَهْلِ بْنِ سَعْدٍ قَالَ كُنَّا نَقِيلُ وَنَتَغَدَّى بَعْدَ الْجُمُعَةِ. [ر: ۸۹۶]

﴿قائلة او قيلولة﴾ د غرمې په وخت آرام كولو ته وائى (۱) امام ابن ماجة د سيدنا عبدالله بن عباس رضي الله عنهما نه يو مرفوع روايت نقل كړې دې. د هغې الفاظ دا دى: ﴿ اسْتَعِينُوا بِطَعَامِ السَّحَرِ عَلَى صِيَامِ النَّهَارِ، وَبِالْقَيْلُولَةِ عَلَى قِيَامِ اللَّيْلِ ﴾ (۲) يعنى: د ورځې د روژې دپاره په پيشمنى كولو سره او د تهجدو دپاره په قيلولة باندې مدد حاصلوئ

هم دغه شان طبرانى د سيدنا انس رضي الله عنه مرفوع روايت نقل كړې دې په دې كښې دى ﴿قِيلُوا فَإِنَّ الشَّيَاطِينَ لَا تَقِيلُ﴾ (۳) يعنى قيلوله كوئ، ځكه چه شيطانان قيلوله نه كوى

د سيدنا خوات بن جبير رضي الله عنه نه هم يو روايت موقوفا مروى دې هغوى فرمائى: نوم اول النهار حرق، واوسطه خلق، وآخره حمق ﴾ (۴) يعنى د ورځې په شروع كښې خوب اور دې. د مينځ په حصه كښې د فطرت موافق دې او په آخرى حصه كښې حماقت دې.

## ۴۰: بَاب الْقَائِلَةِ فِي الْمَسْجِدِ

[۵۹۲۴] حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيزِ بْنُ أَبِي حَازِمٍ عَنْ أَبِي حَازِمٍ عَنْ سَهْلِ بْنِ سَعْدٍ قَالَ مَا كَانَ لِعَلِيٍّ اسْمٌ أَحَبَّ إِلَيْهِ مِنْ أَبِي تُرَابٍ، وَإِنْ كَانَ لَيَفْرَحُ بِهِ إِذَا دُعِيَ بِهَا، جَاءَ رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - بَيْتَ فَاطِمَةَ - عَلَيْهَا السَّلَامُ - فَلَمْ يَجِدْ عَلِيًّا فِي الْبَيْتِ فَقَالَ «أَيْنَ ابْنُ عَمِّكِ». فَقَالَتْ كَانَ بَيْنِي وَبَيْنَهُ شَيْءٌ، فَغَاضَبَنِي فَخَرَجَ فَلَمْ يَقِلْ عِنْدِي. فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - لِإِنْسَانٍ «انْظُرْ أَيْنَ هُوَ» فَجَاءَ فَقَالَ يَا رَسُولَ اللَّهِ هُوَ فِي الْمَسْجِدِ رَاقِدٌ. فَجَاءَ رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - وَهُوَ مُضْطَجِعٌ، قَدْ سَقَطَ

---

(۱) فتح البارى ۸۳/۱۱، عمدة القارى ۲۶۳/۲۲، تحفة البارى ۱۵۸/۶، ارشاد السارى ۲۸۳/۱۳

(۲) سنن ابن ماجة، كتاب الصيام، باب ما جآء فى السحور: ۵۴۰/۱، رقم الحديث

(۳) احكام القرآن ۲۳/۱۳، ومجمع الزوائد، كتاب الادب، باب القيلولة ۱۱۲/۸. قال الهيثمى: فيه كثير بن مروان وهو كذاب.

(۴) المستدرك للحاكم، كتاب الادب، ادب العطاس: ۲۹۳/۴، وفى تنزيه الشريعة المرفوعة للكنانى: ۱۹۸/۲، النوم اول النهار حرق، والنوم فى وسط النهار خلق، والنوم بعد المغرب يقطع الرزق.

رِدَاؤُهُ عَنْ شِقِّهِ، فَأَصَابَهُ تُرَابٌ، فَجَعَلَ رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - يَمْسَحُهُ عَنْهُ - وَهُوَ يَقُولُ «قُمْ أَبَا تُرَابٍ، قُمْ أَبَا تُرَابٍ». [ر: ۴۳۰]

سيدنا سهل بن سعد رضی الله عنه روايت کوي چه سيدنا علی رضی الله عنه ته د ابوتراب نه زيات خوښ بل نوم نه وو او کله چه به ورته په دې نوم آواز کولې شو نو ډير په خوشحاليدو. رسول الله ﷺ د فاطمي رضی الله عنها کور ته تشريف راوړلو. سيدنا علی رضی الله عنه ئي په کور کښې بيا نه موندلو نو تپوس ئي اوکړو چه ستا د تره ځوئې چرته دې؟ سيده فاطمه رضی الله عنها اوفرمائيل : چه زما او د هغوی ترمينځه څه خبره راغله. په دې وجه هغه خفه کيدو سره بهر لاړو او کور ئي قيلولة اونکړه. رسول الله ﷺ يو سړی ته اوفرمائيل چه ته اوګوره هغه چرته دې. هغه سړې واپس راغلو او عرض ئي اوکړو : يا رسول الله ﷺ هغوی په مسجد کښې دی. رسول الله ﷺ هغوی ته تشريف راوړلو. هغه وخت هغوی ملاست وو او څادر د هغوی د شانه خوئيدلې وو په دې وجه خاوره د هغوی په بدن باندې لګيدلې وه. رسول الله ﷺ د هغوی د بدن نه خاوره پاکوله او فرمائيل ئي : اې ابو تراب پاسه! ای ابو تراب پاسه!

**په مسجد کښې د اوده کيدو حکم** : په مسجد کښې اوده کيدل جائز دی يا نه په دې کښې تفصيل دې.

د امام شافعي رحمه الله په نزد مطلقا جائز دی. [1]

د امام مالک رحمه الله په نزد د مسافر دپاره جائز دی او د مقامي سړی دپاره نه. [2]

د امام احمد رحمه الله مسلک هم د امام مالک رحمه الله په شان دې. [3]

د احناف حضراتو رحمهم الله په نزد د معتکف او مسافر دپاره جائز دی او د عام خلقو دپاره مکروه. [4]

د حديث الباب نه جواز معلوميږي، د احنافو د طرف نه دا جواب ورکړې کيدې شی چه ممکنه ده سيدنا علی رضی الله عنه د اعتکاف نيت کړې وی.

مولانا انور شاه کشميری رحمه الله فرمائی چه د رسول الله ﷺ او سيدنا علی رضی الله عنه دپاره د مسجد بعض احکام خاص وو. مثلا هغوی دواړو په جنبی حالت کښې په مسجد باندې تيريدلې شو خو د نورو خلقو دپاره د دې اجازت نه وو. د دې حاصل دا دې چه په مسجد کښې د سيدنا علی رضی الله عنه اوده کيدل د هغوی خصوصيت دې. د عام امت دپاره ترې نه استدلال کول صحيح نه دی. [5]

---

[1] عمدة القاري، كتاب الصلاة، باب نوم الرجال فى المسجد : ۱۹۸/۴

[2] فتح الباري، كتاب الصلاة، باب نوم الرجال فى المسجد ۶۹۳/۱

[3] عمدة القاري، كتاب الصلاة، باب نوم الرجال فى المسجد ۱۹۸/۴

[4] رد المختار، مطلب فى الغرس فى المسجد، ۴۸۹/۱

[5] فيض الباري، كتاب الصلاة، باب نوم الرجال ۴۹/۲

## ۳۱: باب مَنْ زَارَ قَوْمًا فَقَالَ عِنْدَهُمْ

۵۹۲۵) حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ اللهِ الأَنْصَارِيُّ قَالَ حَدَّثَنِي أَبِي عَنْ ثُمَامَةَ عَنْ أَنَسٍ أَنَّ أُمَّ سُلَيْمٍ كَانَتْ تَبْسُطُ لِلنَّبِيِّ - صلى الله عليه وسلم - نِطَعًا فَيَقِيلُ عِنْدَهَا عَلَى ذَلِكَ النِّطَعِ - قَالَ - فَإِذَا نَامَ النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - أَخَذَتْ مِنْ عَرَقِهِ وَشَعَرِهِ، فَجَمَعَتْهُ فِي قَارُورَةٍ، ثُمَّ جَمَعَتْهُ فِي سُكٍّ - قَالَ - فَلَمَّا حَضَرَ أَنَسَ بْنَ مَالِكٍ الْوَفَاةُ أَوْصَى أَنْ يُجْعَلَ فِي حَنُوطِهِ مِنْ ذَلِكَ السُّكِّ - قَالَ - فَجُعِلَ فِي حَنُوطِهِ.

**د ترجمة الباب مقصد**: علامه سندهی رحمه الله د ترجمة الباب مقصد بیانولو سره فرمائی چه د قرآن کریم آیت کریمه ﴿إِذَا دُعِيتُمْ فَادْخُلُوا فَإِذَا طَعِمْتُمْ فَانْتَشِرُوا﴾ [۱] اګر چه په ظاهره کښې مطلق دې چه د خوراک کولو نه پس تلل پکار دی خو معنی اعتبار سره دا مقید دې او د وتلو حکم صرف په هغه صورت کښې دې چه کله څه داعی نه وی. [۲] خو که په کور کښې د اوسیدو ضرورت دې او د کور والو د طرف نه د دې اجازت هم دې نو په داسې صورت کښې د ﴿فانتشروا﴾ د حکم نه مستثنی ده. [۳]

د باب اول حدیث د سیدنا انس رضی الله عنه نه روایت دې هغوی فرمائی چه ام سلیم رضی الله عنها به د رسول الله صلی الله علیه وسلم دپاره د څرمنې درئ خوروله، رسول الله صلی الله علیه وسلم به په هغې باندې قیلولة فرمائیله، چه رسول الله صلی الله علیه وسلم به اوده شو نو هغې به د رسول الله صلی الله علیه وسلم خوله او ویښتهٔ مبارک په یوه شیشه کښې جمع کول. بیا به ئې هغه په خوشبوئی کښې جمع کول. د راوی بیان دې، چه کله د سیدنا انس رضی الله عنه د وفات وخت رانزدې شو نو هغوی وصیت اوکړو چه هغه خوشبوئی دې زما په حنوط کښې ګډه کړې شی، پس د هغوی په حنوط کښې هغه ګډه کړې شوه.

﴿نطع﴾ (د نون د کسرې او د طاء په فتحې سره) د څرمنې دستر خوان او درئ ته وائی.

﴿سك﴾ (د سین په ضمې سره) علامه ابن الاثیر رحمه الله په النهاية کښې لیکی: ﴿هو طيب معروف يضاف الى غيره من الطيب، ويستعمل﴾ [۴] یعنی سک یو معروف خوشبوئی ده کومه چه د یو بل خیز سره ګډولو باندې استعمالولې شی، علامه پټنی د دې ترجمه په "تار" سره هم کړې ده. [۵]

﴿حنوط﴾ (د حاء په فتحې سره) مرې ته چه کومه خوشبوئی، د تجهیز او تکفین په وخت لګولې شی، هغې ته حنوط وئیلې شی. [۶]

---

[۱]) سورة الاحزاب آية : ۵۳

[۲]) حاشية صحيح البخاري للسندي : ۹۲۹/۲

[۳]) روح المعاني، المجلد الثاني عشر، الجز الاول : ۷۰

[۴]) النهاية لابن الاثير ۳۸٤/۲، عمدة القاری ۲٦٤/۲۲

[۵]) مجمع بحار الانوار ۹۳/۳

[۶]) عمدة القاری ۲٦٤/۲۲

**قوله: اخذت من عرقه وشعره:** د دې نه په ظاهر کښې معلوميږي چه ام سليم ﷺ به د اوده کيدو په وخت د رسول الله ﷺ د قيلولې په موقع باندې خوله او ويښته جمع کول. حال دا چه حقيقت داسې نه دې، د اوده کيدو په وخت به ئې صرف خوله مبارکه راجمع کړه، ويښته مبارک هغوی سره د مخکښې نه موجود وو، پس امام ابن سعد ﷺ د سيدنا انس ﷺ روايت په صحيح سند سره نقل کړې دې، په هغې کښې تصريح ده چه رسول الله ﷺ چه کله په منی کښې ويښته مبارک حلق کړل نو سيدنا ابو طلحه ﷺ هغه محفوظ کړل او سيده ام سليم ﷺ ته ئې راوړل (۱) د رسول الله ﷺ هغه ويښته مبارک هغوی په يو شيشه کښې کيخودل او خوله مبارکه ئې هم په هغه شيشه کښې جمع کړه او هغه ئې د يو سفوف نما خوشبويئ سره ګډه کړه. علامه عينی ﷺ ليکلي دی چه سک يعنی د سفوف والا خوشبويئ سره ئې خوله مبارکه په دې وجه يوځائې کړه چه چرته هغه اوچيدو سره ختمه نه شي. (۲)

د دې حديث نه د تبرک بآثار الصالحين جواز معلوميږي.

[۵۹۲۶] حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ قَالَ حَدَّثَنِي مَالِكٌ عَنْ إِسْحَاقَ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ أَبِي طَلْحَةَ عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ - رضي الله عنه - أَنَّهُ سَمِعَهُ يَقُولُ كَانَ رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - إِذَا ذَهَبَ إِلَى قُبَاءٍ يَدْخُلُ عَلَى أُمِّ حَرَامٍ بِنْتِ مِلْحَانَ فَتُطْعِمُهُ، وَكَانَتْ تَحْتَ عُبَادَةَ بْنِ الصَّامِتِ، فَدَخَلَ يَوْمًا فَأَطْعَمَتْهُ، فَنَامَ رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - ثُمَّ اسْتَيْقَظَ يَضْحَكُ. قَالَتْ فَقُلْتُ مَا يُضْحِكُكَ يَا رَسُولَ اللَّهِ فَقَالَ «نَاسٌ مِنْ أُمَّتِي عُرِضُوا عَلَيَّ غُزَاةً فِي سَبِيلِ اللَّهِ، يَرْكَبُونَ ثَبَجَ هَذَا الْبَحْرِ، مُلُوكًا عَلَى الأَسِرَّةِ». - أَوْ قَالَ «مِثْلَ الْمُلُوكِ عَلَى الأَسِرَّةِ». شَكَّ إِسْحَاقُ - قُلْتُ ادْعُ اللَّهَ أَنْ يَجْعَلَنِي مِنْهُمْ. فَدَعَا ثُمَّ وَضَعَ رَأْسَهُ فَنَامَ، ثُمَّ اسْتَيْقَظَ يَضْحَكُ فَقُلْتُ مَا يُضْحِكُكَ يَا رَسُولَ اللَّهِ قَالَ «نَاسٌ مِنْ أُمَّتِي عُرِضُوا عَلَيَّ، غُزَاةً فِي سَبِيلِ اللَّهِ، يَرْكَبُونَ ثَبَجَ هَذَا الْبَحْرِ، مُلُوكًا عَلَى الأَسِرَّةِ». أَوْ «مِثْلَ الْمُلُوكِ عَلَى الأَسِرَّةِ». فَقُلْتُ ادْعُ اللَّهَ أَنْ يَجْعَلَنِي مِنْهُمْ. قَالَ «أَنْتِ مِنَ الأَوَّلِينَ». فَرَكِبَتِ الْبَحْرَ زَمَانَ مُعَاوِيَةَ، فَصُرِعَتْ عَنْ دَابَّتِهَا حِينَ خَرَجَتْ مِنَ الْبَحْرِ، فَهَلَكَتْ. [ر: ۲۶۳۶]

سيدنا انس بن مالک ﷺ روايت کوی چه رسول الله ﷺ به چه کله د قباء طرف ته تشريف يوړلو نو د ام حرام بنت ملحان ﷺ کور ته به تلو. هغې به په رسول الله ﷺ ډوډئ خوړله، ام حرام ﷺ د سيدنا عبادة بن الصامت ﷺ بی بی وه، يوه ورځ هغوی تشريف راوړلو نو ام حرام ﷺ په هغوی باندې ډوډئ اوخوړله او رسول الله ﷺ هم هلته اوده شو بيا په خندا باندې بيدار شو، ام حرام ﷺ تپوس اوکړو : يا رسول الله ﷺ تاسو څه څيز اوخندولئ؟

---
(۱) طبقات ابن سعد، ابو طلحة : ۵۰۶، ۵۰۵/۳
(۲) عمدة القاری ۲۶٤/۲۲

رسول الله ﷺ اوفرمائيل زما په امت کښې څه خلق د الله پاک په لاره جهاد کونکی زما مخکښې داسې پيش کړې شو چه د درياب په مينځ کښې د بادشاه په شان هغوی په خپل تخت باندې سوارۀ دی .د راوی شک دی چه ملوکاعلی الاسرة دې او که مثل الملوك على الاسرة ئې اوفرمائيل، ما عرض اوکړو يا رسول الله ﷺ د الله پاک نه اوغواړئ چه ما هم د هغوی نه اوګرځوی. پس رسول الله ﷺ دعا اوفرمائيله بيا رسول الله ﷺ سر کيخودلو سره اودۀ شو او په خندا باندې بيدار شو. ما عرض اوکړو يا رسول الله ﷺ: تاسو ولې خاندئ؟ رسول الله ﷺ اوفرمائيل زما د امت غازيان زما مخې ته پيش کړې شو چه د درياب په مينځ کښې سوارۀ دی. د بادشاهانو په شان تخت باندې دی. ما عرض اوکړو چه دعا اوکړئ چه زۀ هم د هغوی نه شم. رسول الله ﷺ اوفرمائيل چه ته د ړومبنو نه ئې. پس ام حرام رضي الله عنها د امير معاويه رضي الله عنه په زمانه کښې په درياب باندې سورۀ شوه. چه کله د درياب نه راوتله نو د سورلۍ نه پريوتله او وفات شوه

داحديث په کتاب الجهاد کښې تيرشوې دې .[1] «ثبج هذا البحر» ثبج د شا او ظهر په معنی دې

علامه قسطلانی رحمه الله ليکی : « وفى الحديث جواز ركوب البحر الملح ومشروعية القائلة، وفيه علم من اعلام نبوته، وهو الاخبار بما سيقع، فوقع كما قال » .[2]

يعنی په دې حديث کښې په مالګين سمندر کښې د سفر کولو جواز او د قيلولة مشروعيت معلوميږی. بله دا چه په دې کښې د رسول الله ﷺ د نبوت د علاماتو نه يو دليل او علامت هم دې او هغه دا چه رسول الله ﷺ په راروانه زمانه کښې د واقع کيدونکې يوې واقعې خبر ورکړې دې کومه چه روسته هم دغه شان واقع شوه څنګه چه رسول الله ﷺ خبر ورکړې وو

## ۴۲: بَاب الْجُلُوسِ كَيْفَمَا تَيَسَّرَ

۵۹۲۷ | حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ عَطَاءِ بْنِ يَزِيدَ اللَّيْثِيِّ عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ - رضى الله عنه - قَالَ نَهَى النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - عَنْ لِبْسَتَيْنِ، وَعَنْ بَيْعَتَيْنِ اشْتِمَالِ الصَّمَّاءِ، وَالاِحْتِبَاءِ فِي ثَوْبٍ وَاحِدٍ، لَيْسَ عَلَى فَرْجِ الإِنْسَانِ مِنْهُ شَيْءٌ، وَالْمُلاَمَسَةِ، وَالْمُنَابَذَةِ. تَابَعَهُ مَعْمَرٌ وَمُحَمَّدُ بْنُ أَبِي حَفْصَةَ وَعَبْدُ اللَّهِ بْنُ بُدَيْلٍ عَنِ الزُّهْرِيِّ. [ر: ۳۶۰]

سيدنا ابوسعيد خدری رضي الله عنه روايت کوی چه رسول الله ﷺ د دوه قسم جامې او دوه قسمه بيع نه منع فرمائيلې ده. يعنی، اشتمال صماء او په يو کپړه کښې د داسې کيناستلو نه چه په شرمګاه باندې هيڅ هم نه وی او د ملامسة او منابذة نه ئې منع فرمائيلې ده.

**د ترجمة الباب مقصد** : د امام بخاری رحمه الله مقصد دا دې چه انسان څنګه غواړی د خپل

[1] ) كشف البارى، كتاب الجهاد، باب الدعاء بالجهاد والشهادة للرجال والنساء : ۷۱

[2] ) ارشاد السارى ۱۳/۲۸۷

سهولت مطابق كيناستلي شى. د دې حديث د لاندې چه كوم حديث امام بخارى رحمه الله ذكر كړې دې د هغې سره مطابقت بيانولو سره علامه قسطلانى رحمه الله ليكى

﴿ ومطابقة الحديث لما ترجم من حيث انه خص النهى بحالتين، فيفهم منه ان ماعداهما ليس منهيا عنه، لان الاصل عدم النهى، فالاصل الجواز ﴾ [1]

يعنى د حديث د ترجمة الباب سره مناسبت ښكاره دې چه رسول الله ﷺ په حديث كښې نهى د دوه حالتونو سره خاص فرمائيلې ده نو د دې نه معلومه شوه چه د دې نه علاوه باقى حالتونه ممنوع نه دى. ځكه چه عدم نهى او جواز اصل دى

علامه سندهى په دې مطابقت باندې اعتراض كړې دې او فرمائيلې ئې دى چه په حديث كښې د جامې ذكر دې د ناستې نه دې [2]

ابن بطال رحمه الله په شرح بخارى كښې د ابن طاؤس نه تربعا يعنى چوكور كيناستل مكروه نقل كړى دى [3]

خو امام مسلم او امام ابوداؤد رحمهما الله د سيدنا جابر بن سمرة رضي الله عنه نه روايت نقل كړې دې چه رسول الله ﷺ د سحر د مانځه نه پس د نمر د ختلو پورې په خپل ځائې باندې تربعا تشريف فرما وو [4]

**قوله: ﴿ تَابَعَهُ مَعْمَرٌ وَمُحَمَّدُ بْنُ أَبِي حَفْصَةَ وَعَبْدُ اللهِ بْنُ بُدَيْلٍ، عَنِ الزُّهْرِيِّ ﴾:**

يعنى د سفيان بن عيينة متابعت دې درې راويانو كړې دې. د معمر بن راشد متابعت امام بخارى رحمه الله په كتاب البيوع كښې. د محمد متابعت ابن عدى او د عبدالله متابعت امام ذهلى رحمه الله موصولا نقل كړې دې [5]

## ۴۳: بَاب مَنْ نَاجَى بَيْنَ يَدَيِ النَّاسِ، وَمَنْ لَمْ يُخْبِرْ بِسِرِّ صَاحِبِهِ، فَإِذَا مَاتَ أَخْبَرَ بِهِ

[۵۹۲۸] حَدَّثَنَا مُوسَى عَنْ أَبِي عَوَانَةَ حَدَّثَنَا فِرَاسٌ عَنْ عَامِرٍ عَنْ مَسْرُوقٍ حَدَّثَتْنِي عَائِشَةُ أُمُّ الْمُؤْمِنِينَ قَالَتْ إِنَّا كُنَّا أَزْوَاجَ النَّبِيِّ - صلى الله عليه وسلم - عِنْدَهُ جَمِيعًا، لَمْ تُغَادَرْ مِنَّا وَاحِدَةٌ، فَأَقْبَلَتْ فَاطِمَةُ - عَلَيْهَا السَّلاَمُ - تَمْشِي، لاَ وَاللَّهِ مَا تَخْفَى مِشْيَتُهَا مِنْ مِشْيَةِ رَسُولِ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - فَلَمَّا رَآهَا رَحَّبَ قَالَ «مَرْحَبًا بِابْنَتِي». ثُمَّ أَجْلَسَهَا عَنْ يَمِينِهِ أَوْ عَنْ شِمَالِهِ، ثُمَّ سَارَّهَا فَبَكَتْ بُكَاءً شَدِيدًا، فَلَمَّا رَأَى حُزْنَهَا سَارَّهَا الثَّانِيَةَ إِذَا هِيَ تَضْحَكُ. فَقُلْتُ

---

[1]) ارشاد السارى ۲۸۸/۱۳

[2]) حاشية صحيح البخارى ۹۳۰/۲

[3]) شرح صحيح البخارى لابن بطال ۵۹/۹

[4]) سنن ابى داؤد. كتاب الادب. باب فى الرجل يجلس متربعا ۲۶۳/۴. رقم الحديث : ۴۸۵۰

[5]) فتح البارى ۹۵/۱۱. ارشاد السارى ۲۸۸/۱۳

لَهَا أَنَا مِنْ بَيْنِ نِسَائِهِ خَصَّكِ رَسُولُ اللّٰهِ - صلى الله عليه وسلم - بِالسِّرِّ مِنْ بَيْنِنَا، ثُمَّ أَنْتِ تَبْكِينَ، فَلَمَّا قَامَ رَسُولُ اللّٰهِ - صلى الله عليه وسلم - سَأَلْتُهَا عَمَّا سَارَّكِ
قَالَتْ مَا كُنْتُ لأُفْشِي عَلَى رَسُولِ اللّٰهِ - صلى الله عليه وسلم - سِرَّهُ. فَلَمَّا تُوُفِّيَ قُلْتُ لَهَا عَزَمْتُ عَلَيْكِ بِمَا لِي عَلَيْكِ مِنَ الْحَقِّ لَمَّا أَخْبَرْتِنِي. قَالَتْ أَمَّا الآنَ فَنَعَمْ. فَأَخْبَرَتْنِي قَالَتْ أَمَّا حِينَ سَارَّنِي فِي الأَمْرِ الأَوَّلِ، فَإِنَّهُ أَخْبَرَنِي أَنَّ جِبْرِيلَ كَانَ يُعَارِضُهُ بِالْقُرْآنِ كُلَّ سَنَةٍ مَرَّةً «وَإِنَّهُ قَدْ عَارَضَنِي بِهِ الْعَامَ مَرَّتَيْنِ، وَلاَ أَرَى الأَجَلَ إِلاَّ قَدِ اقْتَرَبَ، فَاتَّقِي اللّٰهَ وَاصْبِرِي، فَإِنِّي نِعْمَ السَّلَفُ أَنَا لَكِ». قَالَتْ فَبَكَيْتُ بُكَائِي الَّذِي رَأَيْتِ، فَلَمَّا رَأَى جَزَعِي سَارَّنِي الثَّانِيَةَ قَالَ «يَا فَاطِمَةُ أَلاَ تَرْضَيْنَ أَنْ تَكُونِي سَيِّدَةَ نِسَاءِ الْمُؤْمِنِينَ - أَوْ - سَيِّدَةَ نِسَاءِ هَذِهِ الأُمَّةِ». [ر: ٣٤٢٦]

د سيده عائشه رضي الله عنها نه روايت دې چه مونږ ټولې د رسول الله ﷺ بيبياني هغوی سره جمع وې. په مونږ کښې يوه هم غائبه نه وه. سيده فاطمه رضي الله عنها راغله او د هغې چال د رسول الله ﷺ د چال سره ډير مشابه وو. رسول الله ﷺ د هغې په ليدو باندې هرکلې اووې او وې فرمائيل ستړې مه شې! بيا ئې خپل ښى يا ګس طرف ته هغه کينوله. بيا ئې هغې سره پټې خبرې اوکړې نو هغې په زوروه په ژړا شوه. چه کله رسول الله ﷺ هغه غمژنه کيدو سره اوليده نو دوباره ئې ورته پټه خبره اوکړه نو هغه په خندا شوه. ما هغې ته اووې چه رسول الله ﷺ په مونږ ټولو کښې خاص تاسره د راز خبره اوکړه او بيا هم ته ژاړې. چه کله رسول الله ﷺ لاړو نو ما د هغوی نه تپوس اوکړو څه خبره ئې اوکړه؟ فاطمه (رضي الله عنها) اووې چه زه د رسول الله ﷺ راز نه ښکاره کوم. چه کله د رسول الله ﷺ وفات اوشو نو ما هغې ته اووې چه زه تاته قسم درکوم د هغه حق په عوض کوم چه زما په تا باندې دې. ته ماته دا خبره اوکړه. فاطمه رضي الله عنها اوفرمائيل چه او اوس به ئې درته بيان کړم پس هغې اووې چه اول چه ئې په پټه باندې کومه خبره اوکړه (هغه دا وه) چه رسول الله ﷺ ماته اوفرمائيل چه جبرائيل عليه السلام به ماته هر کال د قرآن يو دور کولو او دې کال ئې دوه کرته دور اوکړو. اوس مرګ ماته نزدې ښکاره کيږي په دې وجه د الله پاک نه اويريږه او صبر کوه زه ستاسو دپاره ښه وړاندې تلونکې يم پس زه په ژړا شوم لکه چه تاسو اوليدل. چه کله هغوی زما ويره اوليده نو په دويم کرت ئې په پټه اوفرمائيل چه اې فاطمه! آيا ته ـ ا نه خوښوې چه د مومنانو د زنانو سرداره شې يا ئې اوفرمائيل چه د دې امت د زنانو سرداره شې.

**د ترجمة الباب مقصد** : د ترجمة الباب دوه اجزاء دی، د اول جزء حاصل دا دې چه د دريو کسانو نه د زياتو جماعت وی نو په هغوی کښې د چا سره پټې خبرې کول جائز دی، په حديث کښې چه کوم ممانعت راغلې دې، هغه د دې صورت سره خاص دی، چه کله صرف درې کسان وی، ځکه چه په داسې صورت کښې که دوه کسان پټې خبرې اوکړی نو د دريم په شک پيدا شی خو د خلقو د کثرت په صورت کښې ددې جواز دې ځکه چه د کثرت په صورت کښې د دوه کسانو پټې خبرې عموما د شک باعث نه وی.

د ترجمة الباب د دويم جزء نه د امام بخاری رحمه الله مقصد دا دی چه که په راز افشاء کولو کښې څه نقصان نه وی، نو هغه دصاحب راز د مرګ نه پس افشاء کولې شی. اکثر شارحین بخاری د ترجمة الباب هم دا مقصد بیان کړې دې. (۱)

**د شیخ الحدیث مولانا زکریا رحمه الله رائې** : خو شیخ الحدیث مولانا محمد زکریا رحمه الله فرمائی چه زما په نزد د اول جزء مقصد دا دې چه د ډیرو خلقو په موجودګۍ کښې که د یو کس سره پټې خبرې اوکړې شی نو دا د مجلس او د خلقو د آداب او اکرام خلاف نه ده. (۲) چونکه عام شارحینو چه کوم غرض ترجمه بیان کړې وو په هغې باندې وړاندې تلو سره امام بخاری رحمه الله مستقل ترجمة الباب ﴿باب اذا کانوا اکثر من ثلاثة، فلا باس بالمسارة والمناجاة﴾ قائم کړې دې نو که د دې ترجمة الباب هم هغه مقصد واخستلې شی په کوم باندې چه وړاندې مستقل باب راروان دې نو تکرار به لازم شی. (۳)

## ۴۴: باب الإستِلقَاءِ

[۵۹۲۹] حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ حَدَّثَنَا الزُّهْرِيُّ قَالَ أَخْبَرَنِي عَبَّادُ بْنُ تَمِيمٍ عَنْ عَمِّهِ قَالَ رَأَيْتُ رَسُولَ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - فِي الْمَسْجِدِ مُسْتَلْقِيًا، وَاضِعًا إِحْدَى رِجْلَيْهِ عَلَى الأُخْرَى.

د حدیث مناسبت د باب سره واضح دې.

**د تکرار ترجمة وهم او د هغې دفع کول** : بعینه هم دا ترجمة او حدیث په کتاب اللباس کښې تیر شوې دې. (۴) په ظاهر کښې تکرار دې، شیخ الحدیث مولانا محمد زکریا رحمه الله فرمائی:

﴿وعندی یمکن ان یقال فی وجه الفرق بینهما: ان المصنف ذکره سابقا لمناسبة اللباس، لاحتمال الکشف فی هذه الصورة، وههنا ذکره لبیان الجواز، لورود النهی عنه ..... ویمکن ایضا ان یقال: ان المقصود فی الترجمة السابقة هو الجزء الثانی من الترجمة، وهو وضع الرجل علی الاخری والمقصود ههنا نفس الاستلقاء﴾ (۵)

یعنی: زما په نزد په دواړو ترجمو کښې فرق داسې بیانیدلې شی چه امام بخاری رحمه الله اول دا د کتاب اللباس سره د مناسبت د وجې نه ذکر کړې دې، ځکه چه د استلقاء صورت کښې د کشف عورت احتمال وی. او دلته د استلقاء د جواز د بیانولو دپاره ذکر کړې شوې دې ځکه چه د دې متعلق نهی راغلې ده. او دا هم وئیلې کیدې شی چه په مخکښې ترجمة کښې د ترجمة جزء ثانی مقصود وو یعنی یوې خپې لره په بله خپله باندې کیخودل، او حال دا چه دلته د نفس استلقاء بیان مقصود دې.

(۱) عمدة القاری ۲۶۵/۲۲، فتح الباری ۹۷/۱۱

(۲) الابواب والتراجم، کتاب الاستیذان، باب من ناجی بَنَن یدی الناس: ۱۲۵/۲

(۳) ارشاد الساری ۲۹۳/۱۳، فتح الباری ۹۹/۱۱، عمدة القاری ۲۶۸/۲۲

(۴) صحیح البخاری، کتاب اللباس، باب الاستلقاء ووضع الرجل علی الاخری: ۱۲۷۱، رقم الحدیث ۵۹۶۹

(۵) الابواب والتراجم، کتاب الاستیذان، باب من ناجی بَنَن یدی الناس: ۱۲۵/۲

## ۴۵: باب لَا يَتَنَاجَى اثْنَانِ دُونَ الثَّالِثِ

وَقَوْلُهُ تَعَالَى ( يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا إِذَا تَنَاجَيْتُمْ فَلَا تَتَنَاجَوْا بِالْإِثْمِ وَالْعُدْوَانِ وَمَعْصِيَةِ الرَّسُولِ وَتَنَاجَوْا بِالْبِرِّ وَالتَّقْوَى ). إِلَى قَوْلِهِ (وَعَلَى اللَّهِ فَلْيَتَوَكَّلِ الْمُؤْمِنُونَ ) المجادلة: ۹، ۱۰
وَقَوْلُهُ ( يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا إِذَا نَاجَيْتُمُ الرَّسُولَ فَقَدِّمُوا بَيْنَ يَدَيْ نَجْوَاكُمْ صَدَقَةً ذَلِكَ خَيْرٌ لَكُمْ وَأَطْهَرُ فَإِنْ لَمْ تَجِدُوا فَإِنَّ اللَّهَ غَفُورٌ رَحِيمٌ ) إِلَى قَوْلِهِ (وَاللَّهُ خَبِيرٌ بِمَا تَعْمَلُونَ ) المجادلة: ۱۲، ۱۳

[۵۹۳۰][1] حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ يُوسُفَ أَخْبَرَنَا مَالِكٌ. وَحَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ قَالَ حَدَّثَنِي مَالِكٌ عَنْ نَافِعٍ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ رضي الله عنه أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - قَالَ « إِذَا كَانُوا ثَلَاثَةً فَلَا يَتَنَاجَى اثْنَانِ دُونَ الثَّالِثِ»

**د ترجمة الباب مقصد** : په دې باب کښې يو ادب بيان کړې شوې دې چه که درې سړي په يو مجلس کښې دي نو په هغوی کښې دوه کسانو لره خپل مينځ کښې پټې خبرې نه دی کول پکار امام بخاري رحمه الله د قرآن کريم د سورة مجادلة دوه آيتونه نقل فرمائيلي دی. اول آيت کريمه نمبر ۹ دې. چه د هغې ترجمه دا ده:

اې ايمان والو! چه کله تاسو خپل مينځ کښې پټې خبرې کوئ نو د گناه. ظلم او د رسول الله ﷺ د نافرمانئ خبرې مه کوئ، بلکه د نيکئ او تقوی خبرې کوئ

يعنی رشتينی مسلمان لره د منافقانو د خوئی نه ځان ساتل پکار دی. د هغوی پټې خبرې د ظلم. زياتی او د رسول الله ﷺ د نافرمانئ دپاره نه. بلکه د نيکئ تقوی او د معقول خبرو د اشاعت دپاره کيدل پکار دی.

دويم آيت کريمه نمبر ۱۱ دی. چه په هغې کښې مومنانو ته حکم کړې شوې وو چه رسول الله ﷺ سره د خبرو کولو نه مخکښې صدقه کوئ مولانا شبير احمد عثمانی رحمه الله د دې آيت کريمه په تفسير کښې ليکلي دی:

" منافقانو به بې فائدې خبرې د رسول الله ﷺ په غوږونو مبارکو کښې کولې چه په خلقو کښې خپل لوئې والې بيان کړی او بعض مسلمانانو به غير مبهم خبرې پټې کولې او دومره وخت به ئې اخستلو چه نورو خلقو ته به د رسول الله ﷺ نه د مستفيد کيدو موقع نه ملاويده. يا به يو وخت هغوی خلوت غوښتلو نو په هغې کښې به هم تنگی وه خو د مروت او اخلاقو په وجه باندې به ئې څوک نه منع کولو. هغه وخت دا حکم اوشو چه کوم قدرت والا سړې د رسول الله ﷺ سره پټه خبره کول غواړی هغه دې د دې نه مخکښې خيرات کولو سره راځی. په دې کښې ډير فائدې دی. د غريبانانو خدمت. د صدقه کونکی د نفس تزکيه.

---

[1] (۵۹۳۰) اخرجه مسلم فی السلام. باب تحريم مناجاة الاثنين دون الثالث بغير رضاه : ۱۷۱۷/٤ (رقم الحديث ۲۱۸۳). وابوداؤد فی الادب. باب فی التناجی : ۲۶۳/٤. (رقم الحديث : ٤۸۵۱). وابن ماجة فی الادب باب لا يتناجی اثنان دون الثالث ۱۲٤۱/۲. (رقم الحديث : ۳۷۷۵) واخرجه الترمذی فی کتاب الادب. باب ما جاء لا يتناجی اثنان دون الثالث (رقم الحديث ۲۸۲۵)

د مخلص او د منافق تميز. د پټو خبرو كونكو تقليل وغيره. او چا سره چه د خيرات كولو
دپاره هيڅ نه وى د هغه نه دا قيد معاف دې. چه كله دا حكم نازل شو نو منافقانو د بخل د
وجې نه هغه عادت پريخودلو او مسلمانان هم پوهه شو چه زياتې پټې خبرې كول د الله پاك
ناخوښې دى. په دې وجه ئې دا قيد اولګولو. آخر ئې دا حكم په وروستو آيت كريمه كښې
منسوخ اوفرمائيلو[1]

مفسرين فرمائى چه په دې آيت كريمه باندې صرف على رضي الله عنه عمل كړې وو[2]

**د دواړو ايتونو د ترجمة الباب سره مناسبت** د اول دوه آيتونو د ترجمة الباب سره مناسبت
اكثر شارحينو ليكلې دې او هغه دا چه د دريم سړى په موجودګئ كښې د دوه سړو په مينځ
كښې پټې خبرې كول جائز نه دى. خو كه د دريو نه زياتى وى نو بيا جائز دى. خو جواز هغه
وخت دې چه كله هغه پټې خبرې په ګناه. ظلم او د الله او د هغه د رسول ﷺ په نافرمانئ
باندې مشتمل وى.

او تاسو داسې هم وئيلې شئ چه د درې كسانو په موجودګئ كښې د دوه كسانو پټې خبرې
كول ګناه ده. چه د هغې نه په آيت كريمه كښې منع فرمائيلې شوې ده.

خو په ترجمة الباب كښې د ذكر شوى دريم آيت مناسبت شارحينو نه دې بيان كړې. علامه
ګنګوهى رحمه الله دا مناسبت بيان كړې دې. هغوى فرمائى:

﴿ومناسبته الآيتين بالترجمة خفية، الا ان يقال: ان تناجى اثنين اذا كان سببا لمساءة الثالث، كان ذلك
تناجيا بالاثم والعدوان، وهو منهى عنه، فكان ايراد الاية تعميما لها حتى يدخل فيه تلك الجزئية، وان التناجى لا
بد وان يكون على حسب قواعد المقررة وآدابه المعلومة، دل عليه الاية الثانية، فان خصوص تقديم الصدقة،
وان كان منسوخا، غيران ما تضمنه هذه الاية من كون النجوى على حسب الادب غير منسوخ، سواء كان النجوى
بالرسول صلى الله عليه وسلم، اوغيره﴾[3]

يعنى د دواړو آيتونو د ترجمة الباب سره مناسبت كښې څه خفاء ده. خو داسې مناسبت پيدا
كيدلې شى چه د دوه سړو پټې خبرې كه د دريم كس د زړه د خفه كولو سبب وى نو دا به د
ګناه او عدوان پټې خبرې وى چه د هغې نه په آيت كريمه كښې ممانعت راغلې دې. نو د آيت
ذكر كولو مقصد د دې ممنوعه صورت د شامل كولو دپاره دې. چه دا مخصوص جزئيه (د
دريو په موجودګئ كښې د دوه كسانو پټې خبرې، هم په دې كښې داخله شى او دويم د دې
خبرې طرف ته اشاره كول دى چه پټې خبرې د مقرر كړې شوې قاعدو او معروف آداب سره
كيدل پكار دى. په دې مقصد باندې بل آيت دلالت كوى ځكه چه د پټو خبرو كولو نه

---

[1]) تفسير عثمانى، سورة المجادلة: ٧٢١

[2]) الجامع لاحكام القرآن ٣٠٢/١٧، والتفسير الكبير ٢٧١/٢٩، وروح المعانى، المجلد الرابع عشر، الجزء الثانى: ٣١.

[3]) لامع الدرارى، كتاب الاستئذان، باب: لا يتناجى اثنان ... ٦١/١٠، الابواب والتراجم كتاب الاستئذان، باب: لا يتناجى اثنان دون الثالث، ١٢٥/٢

مخکښې د صدقې کولو نص اګر چه منسوخ دې، خو د آيت کريمه مضمون چه پټې خبرې د آدابو مطابق کيدل پکاردي، منسوخ نه دى. که پټې خبرې د رسول الله ﷺ سره يا بل چا سره.

## ۴۶: باب حِفْظِ السِّرِّ

[۵۹۳۱] (۱) حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ صَبَّاحٍ حَدَّثَنَا مُعْتَمِرُ بْنُ سُلَيْمَانَ قَالَ سَمِعْتُ أَبِي قَالَ سَمِعْتُ أَنَسَ بْنَ مَالِكٍ أَسَرَّ إِلَى النَّبِيِّ -صلى الله عليه وسلم- سِرًّا فَمَا أَخْبَرْتُ بِهِ أَحَدًا بَعْدَهُ، وَلَقَدْ سَأَلَتْنِي أُمُّ سُلَيْمٍ فَمَا أَخْبَرْتُهَا بِهِ.

**د ترجمة الباب غرض**: د راز افشاء کول جائز نه دى، د سيدنا جابر رضي الله عنه روايت ابن ابى شيبة نقل کړې دې، رسول الله ﷺ فرمائى: «إِذَا حَدَّثَ الرَّجُلُ بِالْحَدِيثِ ثُمَّ الْتَفَتَ فَهِيَ أَمَانَةٌ» (۲) يعنى که يو سړى يو خبره اوکړه او د خبرې د کولو په وخت هغه يو خوا بل خوا اوکتل چه څوک خو اورى نه، نو هغه خبره امانت دې.

هم دغه شان په مصنف د عبدالرزاق کښې يو مرسل روايت دې: «إِنَّمَا يَتَجَالَسُ الْمُتَجَالِسَانِ بِالْأَمَانَةِ فَلَا يَحِلُّ لِأَحَدٍ أَنْ يُفْشِيَ عَلَى صَاحِبِهِ مَا يَكْرَهُ» (۳) يعنى چه دوه ملګرى د امانت د رعايت سره کينى، پس د چا دپاره جائز نه دى چه هغه د خپل ملګرى د يو داسې خبرې افشاء اوکړى چه د هغې افشاء هغه ته بده لګي.

حديث الباب د سيدنا انس رضي الله عنه نه روايت دې، هغوى فرمائى چه رسول الله ﷺ ماته د راز يو خبره اوکړه کومه چه ما چاته هم نه ده کړې.

د مسلم شريف په روايت کښې دى چه رسول الله ﷺ زه د څه کار دپاره اوليږلم، په هغې کښې وخت اولګيدو، چه کله زه کور ته راغلم نو زما مور ام سليم رضي الله عنها زما نه د تاخير وجه اوتپوسله، ما اووې چه رسول الله ﷺ زه په څه کار پسې ليږلې اوم، هغې اووې: څه کار وو؟ ما اووې: هغه راز دې. هغوې اووې: بيا خو د رسول الله ﷺ راز چاته هم مه بيانوه (۴)

بعض حضراتو فرمائيلې دى چه دا راز کيدې شى چه د رسول الله ﷺ د ازواج مطهرات متعلق وو، د علم او عمل متعلق څه خبره نه وه، ګينې انس رضي الله عنه به هغه څنګه پټوله (۵).

راز ښکاره کول هغه وخت ناجائز دى چه د هغې په افشاء کولو کښې صاحب راز يا يو بل سړى ته څه نقصان رسيدلې شى. (۶)

---

(۱) اخرجه مسلم فى فضائل الصحابة، باب: من فضائل انس بن مالک رضى الله تعالى عنه: ۱۹۲۸/۴، (رقم الحديث: ۲۴۸۲)

(۲) ارشاد السارى ۲۹۲/۱۳، فتح البارى ۹۹/۱۱

(۳) فتح البارى ۹۹/۱۱

(۴) صحيح مسلم، کتاب فضائل الصحابة، باب: من فضائل انس بن مالک رضى الله تعالى عنه: ۱۹۲۹/۴، رقم الحديث ۲۴۸۲.

(۵) فتح البارى ۹۹/۱۱، عمدة القارى ۲۶۸/۲۲

(۶) فتح البارى ۹۹/۱۱، عمدة القارى ۲۶۸/۲۲، شرح صحيح البخارى لابن بطال ۶۴/۹

## ۴۷: باب إذا كانوا أكثر من ثلاثة فلا بأس بالمسارة والمناجاة

۵۹۳۲| حدثنا عثمان حدثنا جرير عن منصور عن أبي وائل عن عبد الله - رضي الله عنه - قال النبي - صلى الله عليه وسلم - «إذا كنتم ثلاثة فلا يتناجى رجلان دون الآخر، حتى تختلطوا بالناس، أجل أن يحزنه».

سیدنا عبدالله بن مسعود رضی الله عنه روایت کوی چه رسول الله ﷺ اوفرمائیل چه کله تاسو درې کسان یئ نو دوه کسان دې دریم لره پریخودلو سره پټې خبرې نه کوی. چه ترڅو پورې ډیر کسان نه وی. ځکه چه دا خبره به غه لره خفه کوی.

۵۹۳۳| حدثنا عبدان عن أبي حمزة عن الأعمش عن شقيق عن عبد الله قال قسم النبي - صلى الله عليه وسلم - يوما قسمة فقال رجل من الأنصار إن هذه لقسمة ما أريد بها وجه الله. قلت أما والله لآتين النبي - صلى الله عليه وسلم - فأتيته وهو في ملإ، فساررته فغضب حتى احمر وجهه ثم قال رحمة الله على موسى أوذي بأكثر من هذا فصبر. [ر: ۲۹۸۱]

سیدنا عبدالله بن مسعود رضی الله عنه روایت کوی چه رسول الله ﷺ یوه ورځ څه مال تقسیم کړو نو یو انصاری اووې چه دا هغه تقسیم دې په کوم باندې چه د الله پاک د رضا اراده نه ده کړې شوې. ما اووې قسم په الله پاک! زه به رسول الله ﷺ ته ځم او هغوی ته به بیان کوم پس زه د هغوی په خدمت کښې حاضر شوم هغه وخت هغوی د جماعت سره وو. ما په پټه رسول الله ﷺ ته خبره اوکړه نو هغوی غصه شو. تردې چه د هغوی د مخ مبارک رنګ سور شو. بیا رسول الله ﷺ اوفرمائیل: الله پاک دې په موسی علیه السلام باندې رحم اوکړی. هغوی ته ډیر تکلیف ورکړې شو. خو هغوی صبر اوکړو.

چه کله په مجلس کښې د درې کسانو نه زیات وی نو د دوه کسانو خپل مینځ کښې پټې خبرې جائزدی. په باب کښې د ذکرشوې دواړو احادیثو مناسبت د ترجمة الباب سره ظاهر دې.

د باب په اول حدیث کښې ﴿ اجل ﴾ د مفعول له کیدو د وجې نه منصوب دې، او دا د خپل مابعد ﴿ ان یحزنه ﴾ طرف ته مضاف دې.

## ۴۸: باب طول النجوى

وقوله: (وإذ هم نجوى) الاسراء: ۴۷ مصدر من ناجيت، فوصفهم بها، والمعنى يتناجون.

۵۹۳۴| حدثنا محمد بن بشار حدثنا محمد بن جعفر حدثنا شعبة عن عبد العزيز عن أنس - رضي الله عنه - قال: أقيمت الصلاة ورجل يناجي رسول الله - صلى الله عليه وسلم - فما زال يناجيه حتى نام أصحابه، ثم قام فصلى. [ر: ۶۱۲]

**د ترجمة الباب مقصد**: د ترجمة الباب مقصد دا دې چه د ضرورت په وخت په پټه باندې ډیر وخت خبرې هم کیدې شی، د قرآن کریم په سورة مجادلة کښې دی ﴿ واذ هم نجوی ﴾ نجوی

مصدر دي. د مصدر حمل په ذات باندې مبالغة كيدې شي. مقصد دا دې چه هغوی خپل مينځ كښې په كثرت سره پټې خبرې كوی.
په روايت كښې دی چه يو سړی د رسول الله ﷺ سره ډير وخته پورې پټې خبرې كولې.
شارحينو ليكلې دی چه د دې سړی نوم معلوم نه شو.[1]

## ۴۹: باب لَا تُتْرَكُ النَّارُ فِي الْبَيْتِ عِنْدَ النَّوْمِ

[۵۹۳۵] [2] حَدَّثَنَا أَبُو نُعَيْمٍ حَدَّثَنَا ابْنُ عُيَيْنَةَ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ سَالِمٍ عَنْ أَبِيهِ عَنِ النَّبِيِّ - صلى الله عليه وسلم - قَالَ «لَا تَتْرُكُوا النَّارَ فِي بُيُوتِكُمْ حِينَ تَنَامُونَ».

سالم د خپل پلار (عبدالله بن عمر ﷺ) نه او هغوی د رسول الله ﷺ نه روايت كوی چه رسول الله ﷺ اوفرمائيل: چه كله تاسو اوده كيږئ نو په خپلو كورونو كښې اور مه پريږدئ

[۵۹۳۶] [3] حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْعَلَاءِ حَدَّثَنَا أَبُو أُسَامَةَ عَنْ بُرَيْدِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ عَنْ أَبِي بُرْدَةَ عَنْ أَبِي مُوسَى - رضى الله عنه - قَالَ احْتَرَقَ بَيْتٌ بِالْمَدِينَةِ عَلَى أَهْلِهِ مِنَ اللَّيْلِ، فَحُدِّثَ بِشَأْنِهِمُ النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - قَالَ «إِنَّ هَذِهِ النَّارَ إِنَّمَا هِيَ عَدُوٌّ لَكُمْ، فَإِذَا نِمْتُمْ فَأَطْفِئُوهَا عَنْكُمْ».

د سيدنا ابوموسی اشعری ﷺ نه روايت دې چه په مدينه منوره كښې يو كور. د شپې د ټول كور دخلقو سره اوسوزيدل. دهغه خلقو واقعه چه د رسول الله ﷺ مخكښې بيان كړې شوه نو هغوی اوفرمائيل: دا اور ستاسو دشمن دې په دې وجه چه كله تاسو اوده كيږئ نو دا مړ كوئ

[۵۹۳۷] حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ حَدَّثَنَا حَمَّادٌ عَنْ كَثِيرٍ عَنْ عَطَاءٍ عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ - رضى الله عنهما - قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - «خَمِّرُوا الآنِيَةَ وَأَجِيفُوا الأَبْوَابَ، وَأَطْفِئُوا الْمَصَابِيحَ، فَإِنَّ الْفُوَيْسِقَةَ رُبَّمَا جَرَّتِ الْفَتِيلَةَ فَأَحْرَقَتْ أَهْلَ الْبَيْتِ». [ر: ۳۱۰۶]

په دې باب كښې دا خبره بيان كړې شوې ده چه د اوده كيدو په وخت په كور كښې اور نه دی پريخودل پكار ځكه چه ډير كرته هغه خور شی او نقصان پيدا شی. په باب كښې په دويم حديث كښې دی چه دا اور ستاسو دشمن دې. امام ابن العربی ﷫ په شرح د ترمذی كښې فرمائی: (معنى كون النار عدوا لنا انها تنافى ابداننا واموالنا منافاة العدو، وان كانت لنا بها منفعة لكن لا

[1]) فتح الباری فی الاذان، باب الامام تعرض له الحاجة بعد الاقامة ۱۶۳/۲

[2]) الحديث اخرجه مسلم فی كتاب الاشربة، باب الامر بتغطية الاناء، وايكاء السقاء (رقم الحديث : ۲۰۱۵) واخرجه ابوداؤد فی كتاب الادب، باب فی اطفاء النار بالليل ۳۶۳/۴، (رقم الحديث : ۵۲۴۶)، واخرجه الترمذی فی كتاب الاطعمة، باب ما جاء فی تخمير الاناء، واطفاء السراج والنار عند المنام ۲۶۳/۴، (رقم الحديث: ۱۸۱۳) واخرجه ابن ماجة فی كتاب الادب، باب اطفاء النار عند المبيت (رقم الحديث ۳۷۶۹)

[3]) (۵۹۳۶) الحديث اخرجه مسلم فی كتاب الاشربة، باب الامر بتغطية الاناء، وايكاء السقاء (رقم الحديث: ۲۱۰۶) واخرجه ابن ماجة فی كتاب الادب، باب اطفاء النار عند المبيت ۱۲۳۹/۲ (رقم الحديث ۱۷۷۰)

يحصل لنا منها الا بواسطة ﴾ يعنى په اور کښې اګر چه فائده هم ده خو براه راست چونکه هغه د انسان مال او بدن لره سيزى. په دې وجه باندې په هغه د دشمن اطلاق اوکړې شو [۱]
د باب په دريم حديث کښې دى «د اوده کيدو نه مخکښې، لوښې پټ کړئ. دروازې بندې کړئ. ډيوې مړې کړئ. ځکه چه ډير کرته مږه باتئ په راښکلو يوسى او د کور خلق او سيزى
﴿اجيفوا﴾: بند کړئ.

**د فويسقة مصداق او وجه تسمية** : د ﴿ فويسقة ﴾ نه مراد مږه ده. د طحاوى په روايت کښې دى چه د سيدنا ابو سعيد خدرى رضی الله عنه نه د دې د وجې تپوس اوکړې شو چه مږې ته ﴿ فويسقة ﴾ ولې وئيلې شى؟ هغوى اوفرمائيل : رسول الله ﷺ يوه شپه ويخ وو. مږه راغله او باتئ ئې راښکله چه کور لره اوسيزى. رسول الله ﷺ اودريدلو او هغه ئې قتل کړه او د هغې وژل ئې د محرم او غير محرم ټولو دپاره جائز کړل [۲]
**فائده** : په اور کښې دننه الله پاک حرکت، حرارت، خشکى. لطافت او رڼرا پنځه صفتونه پيدا فرمائيلې دى. د حرکت د وجې نه هغه ايشول کوى. د حرارت د وجې نه ګرمول کوى. د خشکئ د وجې نه اوچول کوى. د لطافت د وجې نه په انسانى بدن کښې داخليږى او د رڼرا د وجې نه خوا کښې څيزونه روښانه کوى. دا د انسان دپاره مضر هم دې او مفيد هم [۳]

## ۵۰: باب إغلاق الأبواب بالليل

[۵۹۳۸] حدثنا حسان بن أبى عباد حدثنا همام عن عطاء عن جابر قال قال رسول الله -صلى الله عليه وسلم- «أطفئوا المصابيح بالليل إذا رقدتم، وغلقوا الأبواب، وأوكوا الأسقية، وخمروا الطعام والشراب». -قال همام وأحسبه قال- (ولو بعود يعرضه) [ر: ۳۱۰۶]
د سيدنا جابر رضی الله عنه نه روايت دې، رسول الله ﷺ فرمائى چه د شپې کله تاسو اوده کيږئ نو ډيوې مړې کوئ، دروازې بندوئ، د مشکو خولۀ تړئ او د ځکلو څيزونه پټوئ.

او د همام بيان دې چه زما خيال دې، چه رسول الله ﷺ دا هم اوفرمائيل ﴿ ولو بعود ﴾ يعنى اګر که په يو لرګى سره ولې نه وى.
د شپې دروازې بندولو سره اوده کيدل پکار دى.
﴿وأوكوا الأسقية﴾: يعنى مشکونه په څه اوتړئ.

**قوله**: ﴿قال همام وأحسبه قال ولو بعود﴾ : همام بن يحيى رحمه الله فرمائى چه زما شيخ امام عطاء رحمه الله د ﴿ ولو بعود ﴾ اضافه هم کړې وه. يعنى د خوراک څکاک څيزونه پټ کړئ اګر

---

[۱] فتح البارى ۱۰۳/۱۱، عمدة القارى ۲۷۰/۲۲
[۲] شرح معانى الآثار، كتاب مناسک الحج، باب ما يقتل المحرم من الدواب ۴۱۱/۱
[۳] ارشاد السارى ۲۹۶/۱۳، ۲۹۷

چه په یو لږکی سره وی.

## ۵۱: باب الختان بعد الکبر ونتف الإبط

[۵۹۳۹] (۱) حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ قَزَعَةَ حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ سَعْدٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ سَعِيدِ بْنِ الْمُسَيَّبِ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ - رضى الله عنه - عَنِ النَّبِيِّ - صلى الله عليه وسلم - قَالَ «الْفِطْرَةُ خَمْسٌ الْخِتَانُ، وَالاِسْتِحْدَادُ، وَنَتْفُ الإِبْطِ، وَقَصُّ الشَّارِبِ، وَتَقْلِيمُ الأَظْفَارِ». [ر: ۵۵۵۲]

[۵۹۴۰] حَدَّثَنَا أَبُو الْيَمَانِ أَخْبَرَنَا شُعَيْبُ بْنُ أَبِي حَمْزَةَ حَدَّثَنَا أَبُو الزِّنَادِ عَنِ الأَعْرَجِ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - قَالَ « اخْتَتَنَ إِبْرَاهِيمُ بَعْدَ ثَمَانِينَ سَنَةً، وَاخْتَتَنَ بِالْقَدُومِ». مُخَفَّفَةً.
حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ حَدَّثَنَا الْمُغِيرَةُ عَنْ أَبِي الزِّنَادِ وَقَالَ «بِالْقَدُّومِ».

[۵۹۴۱] حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ الرَّحِيمِ أَخْبَرَنَا عَبَّادُ بْنُ مُوسَى حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ بْنُ جَعْفَرٍ عَنْ إِسْرَائِيلَ عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ عَنْ سَعِيدِ بْنِ جُبَيْرٍ قَالَ سُئِلَ ابْنُ عَبَّاسٍ مِثْلُ مَنْ أَنْتَ حِينَ قُبِضَ النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - قَالَ أَنَا يَوْمَئِذٍ مَخْتُونٌ. قَالَ وَكَانُوا لاَ يَخْتِنُونَ الرَّجُلَ حَتَّى يُدْرِكَ.

**د ترجمة الباب مقصد**: امام بخاری رحمه الله په دې باب کښې د ختنة اهمیت لره بیانول غواړی. مقصد دا دې چه سنت په ابتدائی عمر کښې کول پکار دی. خو که د چا سنت نه وی شوې نو د غټیدو نه پس هم کول پکار دی، د څه نه چه د دې اهمیت معلومیږی لکه چه په روایت الباب کښې دی چه سیدنا ابراهیم علیه السلام د اتیا کالو نه پس ختنة کړې وه.

**د ختنې (سنت کولو) حکم**: ختنة د امام شافعی او امام احمد رحمهما الله په نزد واجب ده. (۲)
د بعض مالکیانو هم دا مسلک دې (۳) او د امام ابوحنیفه رحمه الله نه هم یو روایت د وجوب منقول دې. (۴)
دامام مالک رحمه الله دمشهور روایت اوداحناف حضراتو رحمهم الله په نزد ختنه (سنت) مسنون دې. (۵)

**ونتف الابط**: د ترخونو په ویښتو کښې سنت طریقه دا ده چه هغه د ویخ نه ویستلې شی او خرئیل ئې هم جائز دی، که په لاس باندې راویستلو سره چاته تکلیف وی نو هغه حلق هم

---

(۱) (۵۹٤۱) الحدیث اخرجه البخاری ایضا فی کتاب الاستئذان فی هذا الباب (رقم الحدیث : ۶۳۰۰) والحدیث من افراده: انظر : (عمدة القاری ۲۲/۲۳ ٤)
(۲) ردالمختار، کتاب الختنی، مسائل شتی: ۵/۵۳۰، والمغنی لابن قدامة، باب ما تکون الطهارة من الماء: ۱/۶۳
(۳) اوجز المسالک ۱۶/۲۶۹
(٤) فتح الباری ۱۰/٤۱۹
(۵) رد المختار، کتاب الختنی، مسائل شتی: ۵/۵۳۰، والمنتقی للباجی کتاب : ۷/۲۳۲

كولې شي [۱]

**قوله:** اختتن ابراهيم بعد ثمانين سنة : په موطاء كښې د سيدنا ابوهريره رضي الله عنه يو موقوف روايت موجود دې. په هغې كښې دى چه سيدنا ابراهيم عليه السلام د ټولو نه اول ختنة كړې وه. هغه وخت د هغوى عمر شپږ شلې كاله وو. [۲]

خو اكثر او مشهور روايات د اتيا كالو دى. حافظ ابن حجر رحمه الله په دواړه قسم رواياتو كښې تطبيق كړې دې چه اتيا كاله د خپل قوم نه د جدا كيدو د وخت نه او شپږ شلې كاله د ولادت د مودې د وخت نه [۳]

**قوله:** واختتن بالقدوم: ﴿قدوم﴾ د دال په تخفيف سره د آله نوم هم دې او د يو كلي نوم هم دې. كوم چه د شام ښهر حلب ته نزدې واقع دې.

او يو روايت ﴿قدوم﴾ د دال د تشديد سره دې. مهلب فرمائى چه په تشدي سره د ځائې نوم دې او د دال په تخفيف سره د آلې نوم دې. [۴]

يعنى سيدنا ابراهيم عليه السلام په قدوم مقام كښې ختنة اوكړه يا قدوم آله استعمالول سره ئې ختنة اوكړه.

په يو روايت كښې د ﴿قدوم﴾ تفسير په تبر سره كړې شوې دې. [۵]

د باب په آخرى روايت كښې دى چه د سيدنا عبدالله بن عباس رضي الله عنهما نه تپوس اوكړې شو چه د رسول الله صلى الله عليه وسلم د وفات په وخت هغه د كوم عمر د سړى په شان وو؟ د ابن عباس رضي الله عنهما څه عمر وو، هغوى جواب وركړو چه هغه وخت زما ختنة شوې وه. راوى وائى چه خلقو به د بلوغ نه مخكښې ختنة نه كوله ګويا د رسول الله صلى الله عليه وسلم د وفات په وخت سيدنا ابن عباس رضي الله عنهما بالغ وو

**د ختنه سنت، كولو عمر** : ختنه په كوم عمر كښې كول پكار دى. په دې كښې اختلاف دې.

په در مختار كښې دى ﴿ وقته غير معلوم ﴾ يعنى د دې هيڅ وخت نه دې معلوم [۶]، د امام ابوحنيفه او حضرات صاحبين رحمهم الله نه هم هيڅ وخت نه دې نقل شوې. امام ابوحنيفه رحمه الله فرمائى ﴿لاعلم لى بوقته﴾ يعنى ماته د دې وخت نه دې معلوم [۷]

---

[۱]) المغنى لابن قدامة، باب ما تكون الطهارة من الماء ۶۴/۱

[۲]) وتعقبه الشيخ محمد زكريا الكاندهلوى فى اوجز المسالك بان ما حكى الحفاظ من رواية الموطاء ليست ههنا فى النسخ المصرية، ولا الهندية، كتاب صفة النبى صلى الله عليه وسلم، باب ما جاء فى السنة فى الفطرة : ۲۸۳/۱۶

[۳]) فتح البارى : ۱۰۷/۱۱

[۴]) فتح البارى : ۱۰۷/۱۱

[۵]) فتح البارى : ۱۰۷/۱۱، ارشاد السارى ۲۹۸/۱۳

[۶]) الدر المختار، كتاب الختنى، مسائل شتى، ۵۳۰/۵

[۷]) قال فى الدر المختار : وقته غير معلوم، وقيل : سبع سنين. كذا فى الملتقى، وقيل: عشر، وقيل: اقصاه اثنا عشر سنة، وقيل:العبرة بطاقته، وهو الاشبه، كتاب الختنى، مسائل شتى، ۵۳۰/۵، والبحر الرائق، مسائل شتى: ۴۵۸/۸.

په البحر الرائق کښې دی چه د يو قول مطابق د دې اول وخت اووۀ کاله او انتهائی وخت دولس کاله دې او په يو قول کښې انتهائی وخت لس کاله دې. [1]
يو قول دا هم دې چه د ولادة په اووۀ ورځ باندې ختنه کول مستحب دی، خو ابن المنذر رحمه الله د امام مالک رحمه الله نه د دې کراهت نقل کړې دې، هغوی فرمائی دا د يهودو فعل دې. [2]
**د باب د كتاب الاستيذان سره مناسبت** : د ختان مناسبت بيانولو سره علامه کرمانی رحمه الله ليکی : ﴿ان الختان يستدعی الاجتماع فی المنازل غالبا﴾
يعنی د ختنې په وخت چونکه عموما خلق په کورونو کښې جمع وی. د دې مناسبت د وجې نه ئې دا په کتاب الاستيذان کښې ذکر کړو. چونکه چرته خلق جمع کيږی هلته به د اجازت اخستلو ضرورت وی. [3]

# ٥٢: باب كُلُّ لَهْوٍ بَاطِلٌ إِذَا شَغَلَهُ عَنْ طَاعَةِ اللَّهِ. وَمَنْ قَالَ لِصَاحِبِهِ تَعَالَ أُقَامِرْكَ.

وَقَوْلُهُ تَعَالَى: وَمِنَ النَّاسِ مَنْ يَشْتَرِي لَهْوَ الْحَدِيثِ لِيُضِلَّ عَنْ سَبِيلِ اللَّهِ. لقمان: ٦
[٥٩٤٢] حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ بُكَيْرٍ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ عُقَيْلٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ قَالَ أَخْبَرَنِي حُمَيْدُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ أَنَّ أَبَا هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - «مَنْ حَلَفَ مِنْكُمْ فَقَالَ فِي حَلِفِهِ بِاللاَّتِ وَالْعُزَّى. فَلْيَقُلْ لاَ إِلَهَ إِلاَّ اللَّهُ. وَمَنْ قَالَ لِصَاحِبِهِ تَعَالَ أُقَامِرْكَ. فَلْيَتَصَدَّقْ». [ر: ٤٥٧٩]

**د ترجمة الباب مقصد** : امام ابوداؤد او امام احمد رحمهما الله د سيدنا عقبة بن عامر رضی الله عنه نه يو مرفوع روايت نقل کړې دې، د هغې الفاظ دی : ﴿كُلُّ مَا يَلْهُو بِهِ الْمَرْءُ الْمُسْلِمُ بَاطِلٌ إِلَّا رَمْيَهُ بِقَوْسِهِ، وَتَأْدِيبَهُ فَرَسَهُ، وَمُلَاعَبَتَهُ أَهْلَهُ﴾ [4] چونکه دا روايت د امام بخاری رحمه الله په شرط نه وو، په دې وجه ئې هغه په ترجمة الباب کښې ذکر کړو، حاصل دا دې چه هر هغه لوبه کومه چه انسان د الله پاک د طاعت او د نورو ذمه داريانو نه غافل کړی، هغه جائز نه ده.
د ترجمة الباب دويم جزء دې ﴿وَمَنْ قَالَ لِصَاحِبِهِ تَعَالَ أُقَامِرْكَ﴾ دا هم د حديث مرفوع حصه ده کوم چه په کتاب الادب کښې تيرشوې دې، په دې کښې دی ﴿وَمَنْ قَالَ لِصَاحِبِهِ تَعَالَ أُقَامِرْكَ. فَلْيَتَصَدَّقْ﴾

---
[1] البحر الرائق، مسائل شتى : ٤٥٨/٨.
[2] اوجز المسالک، کتاب صفة النبی صلی الله عليه وسلم، باب ما جاء فی السنة فی الفطرة ٢٧٣/١٦
[3] ارشاد السارى ٣٠/١٣، هم دغه شان اوګورئ : شرح الكرماني : ١٢٠/٢٢
[4] سنن الترمذی، کتاب فضائل الجهاد، باب ما جاء فی فضل الرمی فی سبيل الله : ١٧٤/٤، رقم الحديث : ١٦٣٨، ورواه ابوداؤد فی سننه بلفظ : ليس من اللهو الا ثلاث : تاديب الرجل فرسه، وملاعبته اهله، ورميه بقوسه ونبله، کتاب الجهاد، باب الرمی : ١٣/٣، رقم الحديث ٢٥١٣

د دې تشريح په كشف البارى، كتاب التفسير كښې تيره شوې ده.[1]

د ترجمة الباب دريم جزء د قرآن كريم آيت كريمه دې ﴿ وَمِنَ النَّاسِ مَنْ يَشْتَرِي لَهْوَ الْحَدِيثِ لِيُضِلَّ عَنْ سَبِيلِ اللهِ ﴾

په دې آيت كريمه كښې د ﴿ لهو الحديث ﴾ تفسير امام حسن بصرى رحمه الله كړې دې. ﴿ كل ما شغلك عن عبادة الله وذكره من السمر والاضاحيك والخرافات والغناء ونحوها ﴾ يعنى د لهو الحديث نه هر هغه څيز مراد دې، چه د الله پاک د فرمانبردائ نه لرې كونكې وى. مثلا فضول قصې بيانول، توقې ټقالې كول، واهيات مشغلې او سندرې وغيره.

**د حديث د باب او د باب د كتاب سره مناسبت** : د حديث د باب سره مناسبت او د ترجمة الباب د كتاب الاستيذان سره مناسبت بيانولو باندې علامه قسطلانى رحمه الله ليكى:

﴿ ان الداعى الى القمار لا ينبغى ان يؤذن له فى دخول المنزل، ثم لكونه يتضمن اجتماع الناس، ومناسبة بقية حديث الباب للترجمة ان الحلف باللات لهو يشغل عن الحق بالخلق فهو باطل ﴾ [2]

يعنى جوارئ ته دعوت وركونكى لره كور ته د داخليدو اجازت نه دى وركول پكار. بيا جوارى د خلقو اجتماع لره هم متضمن ده. او د حديث الباب د ترجمة الباب سره مناسبت دا دې چه د لات قسم خوړل داسې لهو ده چه د الله پاک نه غافل كولو سره د مخلوق طرف ته متوجه كونكې ده. لهذا دا باطل ده.

## ۵۳: باب مَا جَاءَ فِي الْبِنَاءِ

وَقَالَ أَبُو هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ - صلى الله عليه وسلم - « مِنْ أَشْرَاطِ السَّاعَةِ إِذَا تَطَاوَلَ رِعَاءُ الْبَهْمِ فِي الْبُنْيَانِ ». [ر: ۵۰]

**د ترجمة الباب غرض** : په دې باب كښې امام بخارى رحمه الله د تعميراتو متعلق حكم بيان كړې دې چه بغير د ضرورت نه پورته او لوئې كورونه جوړول غوره او جائز نه دى.

په استدلال كښې ئې د ابوهريره رضي الله عنه د حديث يو حصه دلته تعليقا ذكر كړې ده ﴿ مِنْ أَشْرَاطِ السَّاعَةِ إِذَا تَطَاوَلَ رِعَاءُ الْبَهْمِ فِي الْبُنْيَانِ ﴾ يعنى د قيامت د علاماتو يو علامت به دا وى چه شپونكيان به لوئې تعميرات كولو سره خپل مينځ كښې فخر كوى، مقصد دا دې چه د ذليل او رذيل خلقو په لاسونو كښې به دولت راډير شى، او بغير د ضرورت نه به لوئې لوئې كورونه جوړولو سره فخر او تقابل كوى.

﴿ رعاء ﴾ (د راء په كسرې سره) د راعى جمع ده په معنى د شپونكى. ﴿ البهم ﴾ (د باء په فتحې او د هاء په سكون سره) د ﴿ بهيمة ﴾ جمع ده، د ګډو بيزو بچى ته وائى او يا دا د ﴿ بهم ﴾ (د باء

[1] كشف البارى، كتاب التفسير، باب : افرايتم اللات والعزى ۶۳۹.
[2] ارشاد السارى ۳۱/۱۳

په ضمې او د هاء په سکون سره، د ﴿ ابهم ﴾ جمع ده علامه عینی رحمه الله د دې په تشریح کښې فرمائی ﴿ الابهم : هو الذی یخلط لونه شئ سوی لونه ﴾ [1] یعنی : هغه څیز چه د هغه د رنګ سره بل څیز ګډ شوې وی او د هغه رنګ د دۀ د رنګ نه مختلف وی. بهر حال د ﴿ رعاة البهم ﴾ نه مراد د ګډوبیزو شپونکیان دی

**د بې فائدې اوچتو تعمیراتو مذمت** : امام بخاری رحمه الله د حدیث دا حصه د اوچت او پورته بې فائدې تعمیراتو په مذمت کښې پیش کړې ده چه داسې کول د قیامت علامت دې. د دې په مذمت کښې بل یو صریح حدیث هم راغلې دې

د سیدنا خباب رضی الله عنه مرفوع روایت دې : ﴿ یُؤجَرُ الرَّجُلُ فِی نَفَقَتِهِ کُلِّهَا إلاَّ التُّرَابَ ﴾ یعنی انسان ته د هغه په پوره نفقه او خرچ باندې اجر ورکولې شی. سوا د خاورې نه، (تعمیرات کولو نه) [2]

په یو روایت کښې دی ﴿ إِذَا أَرَادَ بِعَبْدٍ هَوَاناً أَنْفَقَ مَالَهُ فِی الْبُنْیَانِ ﴾ [3]

یعنی الله پاک چه کله د یو انسان سره د بدئ معامله کول غواړی نو هغه خپل مال په تعمیراتو کښې خرچ کول شروع کړی.

هم دغه شان ابن ابی الدنیا د عماره بن عامر نه یو موقوف روایت نقل کړې دې. ﴿واذا رفع الرجل بناء، فوق سبعة اذرع، نودی، یا فاسق الی این ﴾ [4] یعنی کله چه څوک د اووۀ ذراع نه اوچت کور جوړوی نو هغه ته آواز کولې شی چه اې فاسقه: ته چرته روان ئې؟

۵۹۴۳ [5] حَدَّثَنَا أَبُو نُعَیْمٍ حَدَّثَنَا إِسْحَاقُ - هُوَ ابْنُ سَعِیدٍ - عَنْ سَعِیدٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ - رضی الله عنهما - قَالَ رَأَیْتُنِی مَعَ النَّبِیِّ - صلی الله علیه وسلم - بَنَیْتُ بِیَدِی بَیْتًا، یُکِنُّنِی مِنَ الْمَطَرِ، وَیُظِلُّنِی مِنَ الشَّمْسِ، مَا أَعَانَنِی عَلَیْهِ أَحَدٌ مِنْ خَلْقِ اللَّهِ.

---

[1] ) عمدة القاری ۲۷۱/۲۲

[2] ) قال الامام انور شاه الکاشمیری رحمه الله تعالی : واعلم أنّک لا تجدُ الشرعَ إلاّ وهو یَذمُّ البناءَ. حتّی أنّه ذمّ تزخرفَ المساجد أیضاً. وجعل التباهی فیها من أمارات الساعة. وذلک هو منصبُه. فإنه لا یقولُ لنا إلاّ نُصْحاً نصیحاً. ولا یبیّنُ لنا إلاّ حقّاً حقیقاً. فسدّ علینا سُبُلَ الشیاطین من کل جانب. فلو کان وسّع فیه من أوّل الأمر. لبلغ الیوم حالهم إلی حدّ لا یُقاس. فإنّهم إذا فعلوا بعد هذا التضییق ما فعلوا. فلو کان الأمرُ موسّعاً مصرّحاً. لرأیتَ الحالَ ما کان. فلذا لم یَردْ الشرعُ فیه بالتوسیع. إلاّ أنه یجب علینا أن لا نَهْدرَ المصالحَ الشرعیة. فقد رأینا الیومَ أن المساجدَ لو کانت علی حالها فی السلف. ونحن فی دار الکفر. لانهدمت ألوفٌ منها. ولمّا وجدتَ لها الیومَ رَسْماً ولا اسماً. فالأنسبُ لنا الیومَ أن نُجَصِّصَ المساجدَ. لتکونَ شعائر الله هی العلیا. ولا تندرسُ بمرور الأیام. فَیَغْصبها الکفّارُ. ویَجْعَلُوها نَسْیاً مَنْسیاً. والله تعالی أعلم. فیض الباری. کتاب الاستئذان. باب ما جاء فی البناء : ٤/٤١٤.

[3] ) فتح الباری ۱۱۱/۱۱... (اخرجناه من الاوسط لان ابن حجر قد اخطاء فی نقله عنه)

[4] ) فتح الباری ۱۱۱/۱۱

[5] ) الحدیث اخرجه ابن ماجة فی کتاب الزهد. باب فی البناء والخراب : ۱۶۹۳/۲ (رقم الحدیث : ٤١٦٢)

سيدنا ابن عمر رضي الله عنهما فرمائی چه ما د رسول الله ﷺ په زمانه کښې خپله په خپل لاس باندې يو کور جوړ کړې وو چه ماته به ئې د باران نه پناه راکوله او د ګرمئ نه به ئې سورې راکولو. د هغې په جوړولو کښې د الله پاک په مخلوق کښې چا هم زما مدد نه دې کړې. په دې کښې اشاره وه چه هغه کور معمولي او وړوکې شان وو

[۵۹۴۴] حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ قَالَ عَمْرٌو قَالَ ابْنُ عُمَرَ وَاللَّهِ مَا وَضَعْتُ لَبِنَةً عَلَى لَبِنَةٍ، وَلاَ غَرَسْتُ نَخْلَةً، مُنْذُ قُبِضَ النَّبِيُّ صلى الله عليه وسلم قَالَ سُفْيَانُ فَذَكَرْتُهُ لِبَعْضِ أَهْلِهِ قَالَ وَاللَّهِ لَقَدْ بَنَى بَيْتًا. قَالَ سُفْيَانُ قُلْتُ فَلَعَلَّهُ قَالَ قَبْلَ أَنْ يَبْنِيَ.

سيدنا عبد الله بن عمر رضي الله عنهما فرمائی چه د رسول الله ﷺ د وفات نه پس نه خو ما يوه ښخته په بلې ښخته ايخې ده او نه مې يو بوټې لګولې دې.

سفيان رحمه الله فرمائی چه ما دا حديث د هغوی بعض د کور خلقو ته بيان کړو نو هغوی اووې چه عبد الله بن عمر رضي الله عنهما خو کور جوړ کړې دې.... سفيان فرمائی چه جواب ورکړو چه کيدې شی د کور د جوړولو نه مخکښې ئې داسې وئيلې وی.



**د کتاب الاستيذان په ابوابو باندې يو نظر:** امام بخاری رحمه الله په کتاب الاستيذان کښې لاندې ذکر شوې درې پنځوس (۵۳) ابواب قائم فرمائيلې دی!

۱: باب بدء السلام ۲: باب سورة النور (الايات ۲۷-۲۹)

۳: باب السلام اسم من اسماء الله تعالى ۴: باب تسليم القليل على الكثير

۵: باب تسليم الراكب على الماشى ۶: باب تسليم الماشى على القاعد

۷: باب تسليم الصغير على الكبير ۸: باب افشاء السلام

۹: باب السلام للمعرفة وغير المعرفة ۱۰: باب اية الحجاب

۱۱: باب الاستئذان من اجل البصر ۱۲: باب زنا الجوارح دون الفرج

۱۳: باب التسليم والاستئذان ثلاثا ۱۴: باب اذا دعى الرجل فجاء هل يستاذن؟

۱۵: باب التسليم على الصبيان ۱۶: باب تسليم الرجال على النساء والنساء على الرجال

۱۷: باب اذا قال: من ذا؟ فقال: انا ۱۸: باب من رد فقال: عليك السلام

۱۹: باب اذا قال فلان يقرئك السلام

۲۰: باب التسليم فی مجلس فيه اخلاط من المسلمين والمشركين

۲۱: باب من لم يسلم على من اقترف ذنبا ولم يرد سلامه حتى تتبين توبته وإلى متى تتبين توبة العاصى.

۲۲: باب كيف الرد على أهل الذمة بالسلام

۲۳: باب من نظر فى كتاب من يحذر على المسلمين ليستبين أمره

۲۴: باب كيف يكتب الكتاب إلى أهل الكتاب. ۲۵: باب بمن يبدأ فى الكتاب

۲۶: باب قول النبى صلى الله عليه وسلم قوموا إلى سيدكم ۲۷: باب المصافحة

۲۸: باب الاخذ باليدين ۲۹: باب المعانقة وقول الرجل كيف اصبحت؟

۳۰: باب من اجاب لبيك وسعديك ۳۱: باب لا يقيم الرجل الرجل من مجلسه

۳۲: باب سورة المجادلة (الاية ۱۱) ۳۳: باب من قام من مجلسه او بيته

۳۴: باب احتباء باليد وهو القرفصاء ۳۵: باب من اتكاء بين يدى اصحابه

۳۶: باب من اسرع فى مشيه لحاجة او قصد ۳۷: باب السرير

۳۸: باب من القى له وسادة ۳۹: باب القائلة بعد الجمعة

۴۰: باب القائلة فى المسجد ۴۱: باب من زار قوما فقال عندهم

۴۲: باب الجلوس كيفما تيسر ۴۳: باب من ناجى بين يدى الناس

۴۴: باب الاستلقاء ۴۵: باب لا يتناجى اثنان دون الثالث

۴۶: باب حفظ السر ۴۷: باب اذا كانوا اكثر من ثلاثة فلا باس بالمسارة

۴۸: باب طول النجوى ۴۹: باب لا تترك النار فى البيت عند النوم

۵۰: باب اغلاق الابواب بالليل ۵۱: باب الختان بعد الكبر ونتف الابط

۵۲: باب كل لهو باطل اذا شغله عن طاعة الله ۵۳: باب ما جاء فى البناء

✵✵✵✵

په دې کښې بعض ابواب خو داسې دی چه د هغوی د استئذان سره تعلق واضح نه دې. لکه چه د امام بخارى رحمه الله صنيع دې چه هغوی په معمولی مناسبتونو سره هم ابواب او احاديث راوړی او ډير کرته هغه نسبت ډير خفی او دقيق وی. مثلاً آخر باب د تعميراتو متعلق دې، د دې باب په ظاهر کښې د استئذان سره هيڅ تعلق نشته ځکه چه په دې باب کښې د بې فائدې اوچتو کړې شوو اباډو کراهت بيان کړې شوې دې خو چونکه استئذان، چاته د تلو او د داخليدو اجازت طلب کولو ته وائی او د سړی د ملاقات دپاره يو کور يا آبادئ ته تلل وی. په دې مناسبت سره ئې د آبادئ متعلق باب هم امام بخارى رحمه الله په کتاب الاستئذان کښې ذکر اوفرمائيلو.

د دې نه مخکښې يو باب د شپې د دروازو د بندولو سره متعلق دې او په هغې کښې دا بيان کړې شوې دی چه د شپې دروازې بندول پکار دی.... چونکه په استئذان کښې انسان د

دروازې خوا له ورځى. په دې مناسبت سره امام د ﴿خلق الابواب﴾ باب د كتاب الاستئذان د لاندې ذكر اوفرمائيلو.

هم دغه شان باب اية الحجاب امام بخارى رحمه الله قائم فرمائيلې دې، د استئذان د مشروعيت ډير زيات مصالح دى، په هغې كښې يو مصلحت دا هم دې چه بې پردګى نه وى او په يو پردى سړى او غير محرم باندې نظر پرې نه اوځى، په دې مناسبت سره د حجاب په آيت باندې مستقل باب قائمولو سره امام بخارى رحمه الله د كتاب الاستئذان د لاندې ذكر فرمائيلې دې.

هم دغه شان په كتاب الاستئذان كښې امام بخارى رحمه الله باب قائم كړې دې باب الختان بعد الكبرونتف الابط، په ظاهر كښې د ختنان مناسبت د استئذان سره نشته، خو چونكه د ختنة په موقع باندې عموما خلق په كورونو كښې جمع كيږى او د استئذان ضرورت وى. په دې وجه امام بخارى رحمه الله په كتاب الاستئذن كښې ذكر اوفرمائيلو. والله اعلم



## ۸۳: كتاب الدعوات

### (الاحاديث: ۵۹۴۵-۶۰۴۸)

كتاب الدعوات په ۶۹ ..... ابواب او ۱۴۵ ..... احاديثو مرفوعه باندې مشتمل دې، چه په هغې كښې څوارلس احاديث معلق دى ... او باقى ۱۰۴ احاديث موصول دى. چه په هغې كښې ۱۲۱ ..... احاديث مكرره دى او باقى ۲۴ ..... احاديث غير مكرر دى، يعنى كتاب الدعوات يا د دې نه مخكښې امام بخارى رحمه الله هغه مكرر نه دى ذكر كړى، په دې كښې د اتهٔ (۸) احاديثو نه علاوه د باقى احاديثو تخريج امام مسلم رحمه الله هم كړې دې او هغه متفق عليه دى ... په كتاب الدعوات كښې امام بخارى د حضرات صحابه كرامو او تابعينو رضي الله عنهم نهه آثار ذكر فرمائيلې دى.

# دعا او د هغې اداب

دعا د مومن وسله، د عبادت او بندګئ نچوړ، د درمند زړه علاج او د بې قرار زړه اسره ده. چه کله ټولې ظاهری أسرې بيکاره شی. د توقعاتو او اميدونو دروازې بندې شی. د خواهش شين ښاخ. د ارمان د بې رنګه ازغی صورت خپل کړی. هر طرف ته تيارۀ خوره شی. د نااميدئ په حالت کښې د مومن بنده سره صرف يو د دعا ډيوه پاتې کيږی. هغه لاس اوچتوی. د رب دربار ته ځی په عاجزئ سره فريادونه کوی د اسمان نه د رحم راوړلو او د ورکړې مونډلو دپاره د هغه د محبت ژړاګانې شروع شی. د هغه اهونه اوچت شی. او د هغه اوښکې روانې او د هغه فريادی آوازونه اوچتيږی... د هغه په زړه کښې د خپلو بدعملو. د شيطان د دهوکو. او د نفس د زخمونو درد تازه شی. د هغه په زړه کښې د دروغژنو خدايانو نه د اميدونو کم عقل توب. د زمانې بې وفائی. د لارې تکليفونه. د منزل د مشکلاتو او د ژوند د شکايتونو درد راويخ شی. د جذباتو په سيلاب کښې د هغه اينختونکې ژبه ﴿ رب، رب ﴾ (اې زما ربه! اې زما ربه) نه مخکښې نه ځی. د احساساتو بيړه د الفاظو د شکال اختيارولو په ځائې د سلګو رخ اختيار کړی او د سرکشئ تيزې چپې. د پښيمانتيا د ساحل سره لګيدو باندې فناء شی. هغه ويريږی هم او غواړی هم. رپيږی هم او آواز هم کوی. هغه ته ويره هم وی او اميد هم چه د ويرې او اميد دا يوځائې کيفيت د ايمان نخښه ده. د هغه يقين پيدا شی چه د دې در په سوالګر جوړيدو کښې د قسمت مالداری او د بې نوايئ نه خلاصی ده. د ذلت هم دا ادا د بندګئ معراج. د بنده او خالق ترمينځه عجز ونياز او د نصرت خدواندئ د وصول کولو موثر ذريعه ده. حديث قدسی دې الله پاک وائی زه د ماتو زړونو سره يم.[1] زړه ماتيږی. خواهش شکست خوری او د تمنا آئينه زره زره کيدو سره خوريږی نو د عجز او بندګئ جوهر پرقيږی:

تو بچا بچا کے نہ رکھ اسے تیرا آئینہ ہے وہ آئینہ
کہ شکستہ ہو تو عزیز تر ہے نگاہ آئینہ ساز میں

هسې خو هر سړې په خپله ژبه کښې د خپل فهم او ضرورت مطابق د الله پاک د ذات نه دعاګانې غواړی خو د احاديث مبارکه د ذخيرې نه چه کومې دعاګانې منقول دی. د هغې فصاحت او بلاغت. د هغې سلاست او روانی. د هغې جامعيت او شيرنی او د هغې برابروالی او روغ والی ته کتلو سره بيشکه دا وئيلې کيدې شی چه د آسمانی کتابونو او صحيفو نه علاوه د دې دومره ښکلی کلام هيڅ مثال نشته، د دنيا هيڅ خير داسې نه دې

---

[1]) ولفظه ﴿ انا عند المنكسرة قلوبهم من اجلى ﴾ ذكره السخاوى فى المقاصد الحسنة ص ۱۰۶.قال العجلونى : قال فى المقاصد ذكره فى البداية للغزالى . وقال القارى عقبه : ولا يخفى أن الكلام فى هذا المقام لم يبلغ الغاية . قلت وتمامه " وأنا عند المندرسة قلوبهم لأجلى " . ولا أصل لهما فى المرفوع . انتهى. كشف الخفاء (۲۰۳/۱)، رقم ۶۱۶.

کوم چه په هغې کښې نه وی غوښتلې شوې. هیڅ شر داسې نشته چه د هغې نه پکښې پناه نه وی غوښتلې شوې. په هغه دعاګانو کښې د هر ضرورت او قسم خیر احاطه کړې شوې ده. د هر قسم پریشانئ نه د نجات دپاره وظیفه ښودلې شوې ده. د هر مقام مناسبت سره د ذکر تلقین کړې شوې دې. دا دومره موثر او بابرکته دعاګانې دی چه که انسان د هغې اهتمام کوی نو د هغوی د شپې او ورځې ټول ساعتونه د الله پاک د ذکر او مناجات نه معطر معطر شی. په قول د مولانا ابوالحسن ندوی رحمه الله

دا دعاګانې مستقل معجزات او د نبوت دلائل دی. د دې الفاظ شهادت ورکوی چه صرف د یو پیغمبر د ژبې مبارکې نه راوتلې دی. په هغې کښې د نبوت نور دې. د پیغمبر یقین دې. د عهد کامل نیاز دې. د محبوب رب العالمین اعتماد او ناز دې. د فطرت نبوت معصومیت او سادګی ده. د دردمند او پریشانه زړه بې تکلفی او بې قراری ده. د صاحب عرض او حاجت مند اصرار او اضطرار هم دې او د بارګاه الوهیت ادب شناس احتیاط هم. د زړه زخم او د درد سړیکه هم ده او کارساز کارسازی او د زړه د آبادئ یقین او سرور هم.

لږ اوګورئ! د زبان رسالت نه په رپید رپیدو ادا شوې دا بلیغ دعاګانې په کوم عالم کښې وئیلې شوې دی او د رحمت په دریاب کښې هغې څومره بدلون پیدا کړې دې:

﴿ اللَّهُمَّ إِنَّكَ تَسْمَعُ كَلَامِي وَتَرَى مَكَانِي وَتَعْلَمُ سِرِّي وَعَلَانِيَتِي لَا يَخْفَى عَلَيْكَ شَيْءٌ مِنْ أَمْرِي أَنَا الْبَائِسُ الْفَقِيرُ الْمُسْتَغِيثُ الْمُسْتَجِيرُ الْوَجِلُ الْمُشْفِقُ الْمُقِرُّ الْمُعْتَرِفُ بِذَنْبِهِ أَسْأَلُكَ مَسْأَلَةَ الْمِسْكِينِ وَأَبْتَهِلُ إِلَيْكَ ابْتِهَالَ الْمُذْنِبِ الذَّلِيلِ وَأَدْعُوكَ دُعَاءَ الْخَائِفِ الضَّرِيرِ مَنْ خَضَعَتْ لَكَ رَقَبَتُهُ وَفَاضَتْ لَكَ عَيْنَاهُ وَذَلَّ لَكَ جَسَدُهُ وَرَغِمَ أَنْفُهُ لَكَ اللَّهُمَّ لَا تَجْعَلْنِي بِدُعَائِكَ شَقِيًّا وَكُنْ بِي رَءُوفًا رَحِيمًا، يا ارحم الراحمين، يا ارحم الراحمين، يا ارحم الراحمين ﴾ [1]

اې الله: ته زما آواز اورې! او زما مقام وینې. زما په باطن او ظاهر باندې عالم ئې. زما هیڅ معامله ستا نه پټه نه ده. زه مصیبت زده. محتاج. فریادی. پناه طلب کونکې. په ویره او رپیدو سره د خپلو ګناهونو اعتراف کونکې او اقراری، د مسکین په شان ستا نه غوښتنه کوم او د ګناه ګار عاجز په شان ستا نه دعا غواړم، د هغه غمژن، په لړزان سړی په شان دعا چه د هغه سټ ستا مخکښې ښکته شو. چه د هغه اوښکې ستا دپاره اوبهیدلې، چه د هغه بدن ستا دپاره ښکته شو او د چا پوزه چه ستا دپاره په خاورو ککړه شوه.... اې زما ربه! زما الله! ما د دې دعا نه مه محروم کوه ما سره د شفقت او کرم معامله اوکړه. اې ارحم الراحمین. اې ارحم الراحمین

چه کله د ایمان دا کیفیت. د عجز او بندګئ دې احساس او بې اعتدالیانو باندې د ندامت د دې جذباتو سره مومن بنده دعا کوی. د رب نه غواړی او د هغه په حضور کښې لاسونه حوروی. نو بیا د رحمت وریځ وریږی. د برکتونو تالې پرانستلې شی او د نصرت دروازې

---

[1] اخرجه الطبرانی فی المعجم الصغیر ص ۱۴۴. اورده الهیثمی فی مجمع الزوائد ۱۵۲/۳. وفی المجمع: یا خَيْرَ الْمَسْئُولِينَ وَيَا خَيْرَ الْمُعْطِينَ مكان يا ارحم الراحمين.

آزادیږی، د زړه بوجهـ سپکیږی او د باطن غبار په لرې کیدو محسوسیږی... بعض ناپوهو ته شکایت وی چه په دعاګانو پاندې سترې شو، او قبلیږی نه... دا غلط فهمی ده، حقیقت دا دې چه په دې دربار کښې یو آواز هم فضول نه ځی، که د څه مصلحت د وجې نه په دنیا کښې یو دعا قبوله نه شی نو د آخرت دپاره ذخیره کولې شی یا د هغې په عوض کښې راتلونکې یو آفت ختم کړې شی او یا قبوله خو شی خو مصلحتا پکښې تاخیر اوکړې شی. (۱)

دعا صرف د لویو حاجتونو د حل کولو دپاره نسخه نه ده، بلکه د وړو وړو ضرورتونو. او لږو پریشانو دپاره هم، هم د دې رب د بارګاه طرف ته د رجوع کولو حکم ورکړې شوې دې. په حدیث کښې دی چه که د چا د پیزار تسمه ماته شی، د هغې دپاره هم د الله پاک نه دعا کول پکار دی. (۲)

**اداب دعا**: د قرآن او حدیث نه ماخوذ، د دعا څه آداب دی. چه د هغې رعایت اوکړې شی نو د دعا قبولیت یقینی شی او د هغې زر د قبلیدو امکانات روښانه شی، امام بخاری رحمه الله هم د کتاب الدعوات په مختلف بابونو کښې د هغه آدابو طرف ته اشاره فرمائیلې ده، دلته د هغه آدابو مختصر ذکر کولې شی.

① په اودس کښې دعا کول د دعا د آدابو نه دی، سیدنا ابو موسی اشعری رضی الله عنه د رسول الله ﷺ نه د دعا درخواست اوکړو نو رسول الله ﷺ اوبه راطلب کړې، اودس ئې اوکړو. او بیا ئې دواړه لاسونه اوچتولو سره دعا اوفرمائیله. (۳) د دې روایت نه یو ادب د دعا معلوم شو خو ظاهره ده چه دا هم هغه وخت ممکن دې چه کله د اودس دپاره وخت وی، چرته چه د اودس دپاره موقع ملاؤ نه شی، د هغې نه بغیر هم دعا کیدلې شی.

② قبلې ته مخ کولو سره دعا کول هم د دعا د آدابو نه دی، امام بخاری رحمه الله وړاندې مستقل باب قائم کړې دې، باب الدعاء مستقبل القبلة، په دې باب سره ئې هم دې طرف ته اشاره فرمائیلې ده. د رسول الله ﷺ نه په ډیرو احادیثو کښې د قبلې طرف ته مخ کولو سره د دعا ثبوت ملاویږی، د صحیح بخاری او صحیح مسلم په روایت کښې دی:

﴿ اسْتَقْبَلَ النَّبِيُّ صلى الله عليه وسلم الْكَعْبَةَ فَدَعَا عَلَى نَفَرٍ مِنْ قُرَيْشٍ ﴾ (۴) یعنی: رسول الله ﷺ قبلې طرف ته مخ مبارک اوګرځولو او د قریشو د یو جماعت خلاف ئې بددعا اوکړه.

---

(۱) لما رواه ابو سعيد الخدرى رضى الله عنه قال قال رسول الله صلى الله عليه وسلم : مَا مِنْ مُسْلِمٍ يَدْعُو بِدَعْوَةٍ لَيْسَ فِيهَا إِثْمٌ ، وَلاَ قَطِيعَةُ رَحِمٍ ، إِلاَّ أَعْطَاهُ اللَّهُ بِهَا إِحْدَى ثَلاَثٍ : إِمَّا أَنْ تُعَجَّلَ لَهُ دَعْوَتُهُ ، وَإِمَّا أَنْ يَدَّخِرَهَا لَهُ فِي الآخِرَةِ ، وَإِمَّا أَنْ يَصْرِفَ عَنْهُ مِنَ السُّوءِ مِثْلَهَا قَالُوا : إِذًا نُكْثِرُ . قَالَ : اللَّهُ أَكْثَرُ . (الجامع لاحكام القرآن : ۳۲۰/۲) (اسناده جيد)

(۲) لفظه عن انس رضى الله تعالى عنه : لِيَسْأَلْ أَحَدُكُمْ رَبَّهُ حَاجَتَهُ كُلَّهَا حَتَّى يَسْأَلَ شِسْعَ نَعْلِهِ إِذَا انْقَطَعَ . (سنن الترمذى، كتاب الدعوات، باب يسأل الحاجة وان صغرت)

(۳) صحيح البخارى، كتاب الدعوات باب الدعاء عند الوضوء رقم الحديث ۱۳۸۳

(۴) صحيح البخارى كتاب المغازى،باب دعاء النبى صلى الله عليه وسلم على كفارقريش،رقم الحديث: ۳۹۶۰

④ په دعا کښې دننه لاس اوچتول هم د آداب نه دی، د صحیح بخاری روایت دې:
﴿ رَفَعَ النَّبِيُّ صلی الله علیه وسلم يَدَيْهِ اللَّهُمَّ إِنِّي أَبْرَأُ إِلَيْكَ مِمَّا صَنَعَ خَالِدٌ ﴾ (۱)
یعنی رسول اللهﷺ دواړه لاسونه مبارک اوچت کړل او دعا ئې اوکړه: اې الله! زه د خالد بن ولید رضي الله عنه د عمل نه براءت کوم.
او په سنن ترمذی او سنن ابی داؤد کښې د سیدنا سلمان فارسی رضي الله عنه روایت دې چه رسول اللهﷺ اوفرمائیل:
﴿ إِنَّ اللهَ حَيِيٌّ كَرِيمٌ يَسْتَحِي أَنْ يَرْفَعَ الْعَبْدُ يَدَيْهِ فَيَرُدَّهُمَا صِفْرًا ﴾ (۲)
یعنی: د الله پاک ذات ډیر حیاء والا او سخی دې، چه کله بنده خپل دواړه لاسونه د هغه په دربار کښې اوچت کړی نو د هغې په خالی او محروم واپس کولو باندې هغه له حیاء ورځی.
امام بخاری رحمه الله په کتاب الدعوات کښې ﴿ باب رفع الایدی فی الدعا ﴾ قائم کولو سره، هم دا ادب ثابت کړې دې.
د لاس اوچتولو مسنون طریقه دا ده چه د دواړو لاسونو تلی پورته طرف ته وی. د سنن ابی داؤد په روایت کښې دی: ﴿ إِذَا سَأَلْتُمُ اللهَ فَاسْأَلُوهُ بِبُطُونِ أَكُفِّكُمْ، وَلَا تَسْأَلُوهُ بِظُهُورِهَا ﴾ (۳)
چه کله تاسو د الله پاک نه غواړئ نو د تلو دننه حصې مخامخ کولو سره غواړئ. لاسونو الټه کولو سره ترې مه غواړئ.
لاسونه دې د اوږو د برابرئ پورې اوچت کړې شی، د سیدنا عبدالله بن عباس رضي الله عنهما روایت، امام ابوداؤد رحمه الله نقل فرمائیلې دی ﴿ الْمَسْأَلَةُ أَنْ تَرْفَعَ يَدَيْكَ حَذْوَ مَنْكِبَيْكَ أَوْ نَحْوَهُمَا ﴾ (۴) (د دعا کولو په وخت دې لاسونه د اوږو برابر یا هغې ته نزدې اوچت کړې شی).
او په صحیح بخاری کښې د سیدنا ابو موسی اشعری رضي الله عنه نه روایت دې هغوی فرمائی ﴿ ثُمَّ رَفَعَ يَدَيْهِ وَقَالَ: رَأَيْتُ بَيَاضَ إِبْطَيْهِ ﴾ (۵) (رسول اللهﷺ دعا اوفرمائیله نو هغوی خپل دواړه لاسونه اوچت کړل او ما د هغوی د ترخونو سپین والې اولیدو)
سیدنا ابن عباس رضي الله عنهما فرمائی: لاسونه دې ښه خوارهٔ کړې شی ﴿ وَالِابْتِهَالُ أَنْ تَمُدَّ يَدَيْكَ جَمِيعًا ﴾ (۶) یعنی عاجزی او زاری دا ده چه ته خپل دواړه لاسونه خوارهٔ کړې.

---

(۱) صحیح البخاری، کتاب المغازی، باب بعث النبی صلی الله علیه وسلم خالد بن الولید الی بنی جذیمة، رقم الحدیث ۴۳۳۹
(۲) سنن الترمذی، کتاب الدعوات، باب بلاعنوان، (رقم الحدیث: ۳۵۵۶) ۵/۵۵۶، ۵۵۷. وسنن ابی داؤد، کتاب الصلاة، باب الدعاء، (رقم الحدیث: ۱۴۸۸)، ۲/۷۸، واللفظ للترمذی.
(۳) سنن ابی داؤد، کتاب الصلاة، باب الدعاء (رقم الحدیث ۱۴۸۶) ۲/۷۸
(۴) سنن ابی داؤد، کتاب الصلاة، باب الدعاء (رقم الحدیث ۱۴۸۹) ۲/۷۸
(۵) صحیح البخاری، کتاب الدعوات، باب رفع الایدی فی الدعاء: ص ۱۶۰۲
(۶) سنن ابی داؤد، کتاب الصلاة، باب الدعاء (رقم الحدیث ۱۴۸۹) ۲/۷۹

④ د دعا نه مخکښې او د دعا په آخر کښې د الله پاک حمد او ثناء او درود شريف لوستل هم د دعاء د آدابو يو اهم ادب دې. په سنن ترمذی کښې، د سيدنا فضالة بن عبيد رضي الله عنه نه روايت دې. چه رسول الله ﷺ تشريف فرما وو، يو سړې داخل شو، مونځ ئې اوکړو او په دې الفاظو سره ئې دعا کوله ﴿ اللهم اغفرلي وارحمني ﴾ رسول الله ﷺ اوفرمائيل اې مونځ کونکيه! تا تندي اوکړه چه کله تاسو د مونځ کولو نه پس کيېنئ نو د الله پاک شايان شان حمد کوئ. درود شريف لولئ او بيا د الله پاک نه دعا کوئ د دې نه پس يو بل صاحب راغلو. هغوی د مونځ کولو نه پس د الله پاک حمد او ثناء بيان کړه، درود ئې اولوستلو نو رسول الله ﷺ هغه ته خطاب کولو سره اوفرمائيل ﴿ ايها المصلي ادع تجب ﴾ (اې مونځ کونکيه! دعا کوه ستاسو دعا به قبلولې شی) [1]

د الله پاک حمد و ثناء او په رسول الله ﷺ باندې درود ليږل د الله پاک په دربار کښې نه رد کيږی او د خبره د الله پاک د شان کريمی نه بعيد دې چه د دعا اول او آخر حصه قبوله کړی او په مينځ کښې د خپل بنده غوښتلې شوې حاجت دې رد کړی، په دې وجه د دعا په اول او آخر کښې د الله پاک حمد او ثناء او په رسول الله ﷺ باندې درود د دعا قبوليت لره يقينی کوی. [2]

⑤ د دعا نه مخکښې، خپل عجز، خپلې کوتاهيانې او د خپلو گناهونو اعتراف هم. د دعا د آدابو نه دې. رسول الله ﷺ فرمائی:

﴿ إِنَّ اللهَ لَيَعْجَبُ مِنَ الْعَبْدِ إِذَا قَالَ: لَا إِلٰهَ إِلَّا أَنْتَ، إِنِّي قَدْ ظَلَمْتُ نَفْسِي، فَاغْفِرْ لِي ذُنُوبِي، إِنَّهُ لَا يَغْفِرُ الذُّنُوبَ إِلَّا أَنْتَ، قَالَ: عَبْدِي عَرَفَ أَنَّ لَهُ رَبًّا يَغْفِرُ وَيُعَاقِبُ ﴾ [3]

يعنی: الله پاک ته د خپل بنده دا ادا ډيره خوښه ده، چه کله هغه ﴿ لَا إِلٰهَ إِلَّا أَنْتَ، إِنِّي قَدْ ظَلَمْتُ نَفْسِي، فَاغْفِرْ لِي ذُنُوبِي، إِنَّهُ لَا يَغْفِرُ الذُّنُوبَ إِلَّا أَنْتَ ﴾ وائی نو الله پاک فرمائی: زما بنده ته معلومه ده چه د هغه يو رب دې. چه هغه بخښنه کوی او سزا ورکوی.

⑥ دعا د زړه په دې يقين سره کول پکار دی چه هغه به د الله پاک په دربار کښې قبليږی او نه به شی رد کولې. سيدنا ابوهريره رضي الله عنه د رسول الله ﷺ ارشاد نقل کړې دې.

---

[1]) سنن الترمذی، (رقم الحديث ۳٤۸٦، ۲۸۲/۵، وسنن النسائی (رقم الحديث ۱۲۸٤) : ۳/٤٤. ومسند الامام احمد ۱۸/٦

[2]) قال السيوطی رحمه الله فی جلاء الافهام :
قال ابن القيم رحمه الله : فمفتاح الدعاء الصلاة على النبی كما أن مفتاح الصلاة الطهور.... ثم نقل عن احمد بن ابی الحوراء قال سمعت أبا سليمان الدارانی يقول من اراد أن يسأل الله حاجته فليبدأ بالصلاة على النبی وليسأل حاجته وليختم بالصلاة على النبی فإن الصلاة على النبی مقبولة والله اكرم أن يرد ما بينهما. (جلاء الافهام : ۲٦۲)

[3]) اخرجه احمد فی مسنده ۹۷/۱، ۱۱۵، ۱۲۸، من حديث علی رضی الله تعالى عنه.

﴿ ادعوا الله وانتم موقنون بالإجابة واعلموا أن الله لا يستجيب دعاء من قلب غافل لاه ﴾ [۱]

دعا کوئ. په دې يقين سره چه ستاسو دعا به قبليږى او په دې خبره خان پوهه کړئ چه الله پاک د بې پرواه زړه دعا نه قبلوى،

هم دغه شان دعا د پوره عزم او کلک والى او صفا الفاظو سره کول پکار دى. په شک او تردد سره نه شى قبليدې. امام بخارى رحمه الله په كتاب الدعوات کښې په دې باندې مستقل باب قائم کړې دې ﴿ باب ليعزم المسألة، فانه لا مكره ﴾ او د هغې د لاندې ئې د رسول الله ﷺ ارشاد نقل کړې دې چه په تاسو کښې دې څوک داسې دعا نه کوى چه اې الله که ته غواړې نو ماته بخښنه اوکړه. بلکه په پوره عزم او کلک والى سره دې دعا کوى

⑥ د دعا الفاظ درې کرته يا بار بار مکرر کول هم د دعا د آدابو نه دى: پس په صحيح بخارى او صحيح مسلم کښې د عبدالله بن مسعود رضى الله عنه روايت دې. هغوى فرمائى ﴿ كان إذا دعا دعا ثلاثا، وإذا سأل سأل ثلاثا ﴾ [۲] يعنى رسول الله ﷺ به چه کله دعا کوله او د الله پاک نه به ئې څه غوښتل نو درې کرته به ئې دعا کوله او درې کرته به ئې غوښتل،

په سنن ابن ماجة کښې د سيدنا انس بن مالک رضى الله عنه روايت دې. رسول الله ﷺ اوفرمائيل کوم سړې چه د الله پاک نه درې کرته جنت اوغواړى نو جنت وائى. اې الله : دې جنت ته داخل کړه. او کوم سړې چه درې کرته د جهنم نه پناه اوغواړى نو جهنم وائى اې الله دې د جهنم نه بچ کړه [۳]

⑧ دعا به په زارئ سره کول پکار دى. په قرآن کريم کښې هم د دې حکم کړې شوې دې.

﴿ادعوا ربكم تضرعا وخفية﴾ [۴] تاسو د الله پاک نه په زارئ او رو آواز دعاګانې غواړئ.

خپله به رسول الله ﷺ. د الله پاک په دربار کښې په زارئ سره دعا فرمائيله چه هم دا شان عبديت دې. سيدنا عبدالله بن عمرو بن العاص رضى الله عنهما فرمائى

﴿ أتيت النبي صلى الله عليه وسلم، وهو يصلي، ولجوفه أزيز كأزيز المرجل ﴾ [۵]

يعنى زه د رسول الله ﷺ په خدمت کښې راغلم. هغوى په مانځه کښې مشغول وو. او د هغوى د سينې مبارکې نه داسې آواز راوتلو لکه چه د کټوئ د خوټکيدو په وخت آواز راوځى

---

[۱] صحيح مسلم. كتاب الجهاد والسير. باب ما لقى النبى صلى الله عليه وسلم من اذى المشركين والمنافقين. رقم الحديث ۴۶۴۹

[۲] صحيح مسلم. كتاب الجهاد والسير. باب ما لقى النبى صلى الله عليه وسلم من اذى المشركين والمنافقين. رقم الحديث ۴۶۴۹

[۳] سنن ابن ماجة. ابواب الزهد. باب صفة الجنة. رقم الحديث : ۴۳۴۰

[۴] سورة الاعراف : ۵۵

[۵] سنن النسائى. ابواب السهو. باب البكاء فى الصلاة. رقم الحديث : ۱۲۱۵

امام مسلم رحمه الله په صحیح مسلم کښې د عبدالله بن عمرو بن العاص رضي الله عنهما روایت نقل کړې دې. هغوی فرمائی

﴿ أَنَّ النَّبِيَّ -صلى الله عليه وسلم- تَلاَ قَوْلَ اللَّهِ عَزَّ وَجَلَّ فِي إِبْرَاهِيمَ (رَبِّ إِنَّهُنَّ أَضْلَلْنَ كَثِيرًا مِنَ النَّاسِ فَمَنْ تَبِعَنِي فَإِنَّهُ مِنِّي) الآيَةَ، وَقَالَ عِيسَى عَلَيْهِ السَّلاَمُ (إِنْ تُعَذِّبْهُمْ فَإِنَّهُمْ عِبَادُكَ وَإِنْ تَغْفِرْ لَهُمْ فَإِنَّكَ أَنْتَ الْعَزِيزُ الْحَكِيمُ) فَرَفَعَ يَدَيْهِ وَقَالَ «اللَّهُمَّ أُمَّتِي أُمَّتِي». وَبَكَى فَقَالَ اللَّهُ عَزَّ وَجَلَّ يَا جِبْرِيلُ اذْهَبْ إِلَى مُحَمَّدٍ وَرَبُّكَ أَعْلَمُ فَسَلْهُ مَا يُبْكِيكَ فَأَتَاهُ جِبْرِيلُ -عَلَيْهِ الصَّلاَةُ وَالسَّلاَمُ- فَسَأَلَهُ فَأَخْبَرَهُ رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- بِمَا قَالَ. وَهُوَ أَعْلَمُ. فَقَالَ اللَّهُ يَا جِبْرِيلُ اذْهَبْ إِلَى مُحَمَّدٍ فَقُلْ إِنَّا سَنُرْضِيكَ فِي أُمَّتِكَ وَلاَ نَسُوءُكَ ﴾[1]

رسول الله ﷺ د سیدنا ابراهیم علیه السلام په سلسله کښې د الله پاک دا قول ﴿ رَبِّ إِنَّهُنَّ أَضْلَلْنَ كَثِيرًا ﴾ اولوستلو. یعنی اې زما ربه: بیشکه دې بتانو ډېر زیات خلق گمراه کړی دی. پس چا چه زما اتباع اوکړه هغه زما نه دې او څوک چه زما نافرمانی اوکړی نو ته بیشکه زیات معاف کونکې او ډېر رحم کونکې دې. او د سیدنا عیسی علیه السلام دا قول ﴿ ان تعذبهم فانهم عبادك ﴾ یعنی اې الله: که ته هغوی ته عذاب ورکړې نو دا ستا بندگان دی او که ته هغوی معاف کړې نو ته غالب او حکمت والا ئې، بیا رسول الله ﷺ خپل دواړه لاسونه اوچت کړل او وې فرمائیل: اې الله: زما امت زما امت؛ او په ژړا شو. الله پاک اوفرمائیل: اې جبرائیل علیه السلام! محمد ﷺ ته لاړ شه. د هغوی نه تپوس اوکړه چه کوم څیز ته اوژړولې؟ حال دا چه الله پاک ته حقیقت معلوم وو. جبرائیل علیه السلام رسول الله ﷺ ته راغلو او سوال ئې اوکړو. رسول الله ﷺ هغوی ته حقیقت بیان کړو. بیا الله پاک ارشاد اوفرمائیلو: اې جبرائیل: محمد ﷺ ته لاړ شه او ورته اووایه چه مونږ به تاسو ستاسو د امت په باره کښې خوشحاله کړو. تاسو به نه ناراضه کوو.

د دې نه علاوه په نورو ډېرو احادیثو کښې هم د رسول الله ﷺ د ژړا، زارئ او فریاد او خپل رب ته سوال او زاری کولو سره د خپلې دعا او د خپل مراد پوره کولو ذکر ملاویږی، بهر حال په دعا کښې ژړل او د رب په حضور کښې اوښکې بهیول، دعا لره قبولیت ته نزدې کوی او د رحمت دریاب لره متحرک او عنایت الهی لره د متوجه کولو سبب دې.

⑨ دعاء په مزه او رو آواز کښې کول پکار دی، په چغو او شور او هنگامې سره دعا کول، د دعا د آدابو خلاف دی. د الله پاک ارشاد دې ﴿ ادْعُوا رَبَّكُمْ تَضَرُّعًا وَخُفْيَةً ﴾ په دې آیت کریمه کښې په مزه مزه د دعا غوښتلو حکم کړې شوې دې.

⑩ د دعا یو اهم ادب دا دې چه دعا کولو سره انسان تنگ او بې صبره نه شی، د قبولیت دعا په سلسله کښې جلد بازی، بې صبری او تنگیدلو اظهار کول، د دعا د غیر مقبول جوړیدو سبب جوړیدې شی، دعا په تسلسل، استقامت، او دوام سره کول پکار دی او په

---

[1] صحیح مسلم، کتاب الایمان، باب دعاء النبی صلی الله علیه وسلم لامته، رقم: ٤٩٩

یو موقع باندې هم دا نه دی وئیل پکار چه زه دعا خو کوم خو قبلیږی نه. پس په صحیح مسلم او سنن ترمذی کښې د سیدنا ابوهریره رضی الله عنه روایت دې چه بنده تر څو پورې د جلد بازئ نه کار وانخلی، د هغه دعا قبلولې شی، د جلد بازئ مطلب چه کله د رسول الله ﷺ نه اوتپوسلې شو نو هغوی اوفرمائیل چه سړې دې داسې اوائی چه ما ډیرې دعاګانې اوکړې خو زما خیال دې چه زما دعاګانې نه قبلیږی.[1]

⑧ دعا لره د قبلولو دپاره، د هغې په آخر کښې لفظ د ﴿آمین﴾ وئیل مؤثر دی، امام حاکم په مستدرک کښې د رسول الله ﷺ ارشاد نقل کړې دې چه په کوم مجلس کښې یو سړې دعا کوی او نور خلق په هغې باندې ﴿آمین﴾ وائی نو الله پاک د هغوی دعا قبلوی.[2]

او د سنن ابی داؤد په یو روایت کښې دی چه رسول الله ﷺ په دعا کښې د زاری او فریاد کونکی یو سړی په خوا کښې اودریدلو ﴿اوجب ان ختم﴾ یعنی هغه دعا قبولیت ته اورسوله، که دې دعا ختم کړی؟ تپوس اوشو په کوم څیز باندې؟ رسول الله ﷺ اوفرمائیل: په ﴿امین﴾ باندې، پس د رسول الله ﷺ نه هغه تپوس کونکې صحابی دعا کونکی ته راغلو او ورته ئې اووې چه د دعا په آخر کښې ﴿آمین﴾ اووایه او زیرې واخله.[3]

بهرحال د دعا اختتام په دې مبارکې کلمې سره کول پکار دی او هم دا د اسلافو او مشرانو معمول هم دې.

⑨: دعا آخری ادب دا دې چه د دعا نه د فراغت نه پس دواړه لاسونه په مخ باندې راښکلې شی. سیدنا عبدالله بن عباس رضی الله عنهما د رسول الله ﷺ ارشاد نقل اوفرمائیلو:

﴿سَلُوا اللهَ عَزَّوَجَلَّ بِبُطُونِ أَكُفِّكُمْ، وَلَا تَسْأَلُوهُ بِظُهُورِهَا، فَإِذَا فَرَغْتُمْ فَامْسَحُوا بِهَا وُجُوهَكُمْ﴾[4]

یعنی د لاس دننه حصه غوړولو سره د الله پاک نه غواړئ او کله چه فارغ شئ نو دواړه لاسونه په مخ باندې راکاږئ.

هم دغه شان د سیدنا عمر رضی الله عنه روایت، امام ترمذی رحمه الله نقل کړې دې:

﴿كَانَ رَسُولُ اللهِ صلى الله عليه وسلم إِذَا رَفَعَ يَدَيْهِ فِي الدُّعَاءِ لَمْ يَحُطَّهُمَا حَتَّى يَمْسَحَ بِهِمَا وَجْهَهُ﴾[5]

رسول الله ﷺ به چه کله په دعا کښې لاس اوچت کړل نو لاندې کول به ئې نه چه تر څو پورې به ئې په مخ مبارک نه وو راښکلې.

---

[1] صحیح مسلم، کتاب الذکر والدعاء، باب بیان انه یستجاب للداعی ما لم یعجل رقم الحدیث ۲۷۳۵، وسنن الترمذی، کتاب الدعوات، باب ما جاء فی من یستعجل فی دعائه: رقم الحدیث ۳۳۸۷.

[2] المستدرک: کتاب معرفة الصحابة ۳۴۷/۳

[3] سنن ابی داؤد، کتاب الصلاة، باب التامین وراء الامام: ۲۴۷/۱، رقم الحدیث ۹۳۸

[4] سنن ابی داؤد، کتاب الصلاة، باب الدعاء (رقم الحدیث ۱۴۸۵): ۷۸/۲. (اسناده ضعیف)

[5] سنن الترمذی، کتاب الدعاء، باب ما جاء فی رفع الایدی عند الدعاء، (رقم الحدیث: ۳۳۸۶) ۴۸/۵، ۴۹ (ضعیف جدا)

د دې آدابو رعایت کولو سره که دعا اوکړې شي نو انشاء الله د الله پاک د دربار نه به نه شي رد کولې

خو دې خبرې ته دې پکښې اوکتلې شي چه د دې آدابو سره سره دې د دعا د قبولیت د دې شرط هم خیال ساتلې شوې وی چه دعا کونکې حرام خور نه وی. د کوم سړې غذا. جامه او د معاش ذریعه چه حرام وی. د هغه دعا نه قبلیږی. د رسول الله ﷺ حدیث دې:

﴿ الرَّجُلَ يُطِيلُ السَّفَرَ أَشْعَثَ أَغْبَرَ يَمُدُّ يَدَيْهِ إِلَى السَّمَاءِ يَا رَبِّ يَا رَبِّ وَمَطْعَمُهُ حَرَامٌ وَمَشْرَبُهُ حَرَامٌ وَمَلْبَسُهُ حَرَامٌ وَغُذِيَ بِالْحَرَامِ فَأَنَّى يُسْتَجَابُ لِذَلِكَ ﴾ [1]

یعنی یو سړې اوږد سفر کولو سره د خورو او متغیر ویښتو او پریشانه حالت او هیئت سره د آسمان طرف ته لاس اوچتولو سره ﴿ یا رب یا رب ﴾ وئیلو سره دعا غواړی. (چه د هغې تقاضه دا ده چه الله پاک هغه قبول اوفرمائی)، خو د هغه خوراک، د هغه څکاک او د هغه اغوستل د حرامو وی، په حرام مال سره هغه لوئې شوې وی. په داسې صورت کښې به د هغه دعا څنګه قبوله شی؟

**د ابراهیم بن ادهم رحمة الله علیه یو قول:** او په آخر کښې د مشهور بزرګ حضرت ابراهیم بن ادهم رحمة الله علیه یو قول نقل کولې شي. د هغوی نه چا تپوس اوکړو چه مونږ دعا کوو. خو زمونږ دعاګانې نه قبلیږی. هغوی اوفرمائیل:

﴿ لأنكم عرفتم الله فلم تطيعوه، وعرفتم الرسول فلم تتبعوا سنته، وعرفتم القرآن فلم تعملوا به، وأكلتم نعم الله فلم تؤدوا شكرها، وعرفتم الجنة فلم تطلبوها، وعرفتم النار فلم تهربوا منها، وعرفتم الشيطان فلم تحاربوه ووافقتموه، وعرفتم الموت فلم تستعدوا له، ودفنتم الأموات فلم تعتبروا، وتركتم عيوبكم واشتغلتم بعيوب الناس ﴾ [2]

یعنی تاسو ته د الله پاک معرفت حاصل دې خو د هغه اطاعت نه کوئ. د الله پاک د رسول پیژندګلو درته حاصل ده خو. د هغوی د سنت اتباع نه کوئ، په قرآن کریم باندې سره د پوهې عمل نه کوئ. د الله پاک نعمتونه خورئ خو شکر نه ادا کوئ. د جنت نه خبر یئ خو د هغې طلب نه کوئ. جهنم پیژنئ خو د هغې نه تیخته نه کوئ. د شیطان د دشمنئ معلومیدو باوجود د هغه سره جنګ نه کوئ بلکه هم د هغه موافقت کوئ. د مرګ د حقیقت معلومیدو باوجود د هغې دپاره تیاری نه کوئ او د مړو د ښخولو باوجود عبرت نه حاصلوئ. خپل عیبونه ستاسو د سترګو نه ورک دی او د خلقو په عیبونو کښې تاسو خپل ځان مشغول کړې دې:

---

[1]) الصحيح لمسلم، كتاب الزكاة، باب قبول الصدقة من الكسب الطيب وتربيتها، رقم ۲۳۴۶، وسنن الترمذي، ابواب تفسير القرآن، رقم ۲۹۸۹، وسنن الدارمي، كتاب الرقاق، باب في اكل الطيب ۳۸۹/۲، رقم : ۲۷۱۷، مسند الامام احمد بن حنبل : ۳۲۸/۲

[2]) الجامع لاحكام القرآن للقرطبي : ۳۱۲/۲

﴿بسم الله الرحمٰن الرحیم﴾

# ۸۳: کتاب الدعوات

وَقَوْلِ اللهِ تَعَالٰی: ادْعُوْنِیْٓ أَسْتَجِبْ لَكُمْ ۚ إِنَّ الَّذِيْنَ يَسْتَكْبِرُوْنَ عَنْ عِبَادَتِیْ سَيَدْخُلُوْنَ جَهَنَّمَ دٰخِرِيْنَ﴾ «غافر: ۶۰»

**د کتاب الاستیذان سره مناسبت** دعوات، د دال او عین په زبر سره، د دعوة جمع ده. دعوة. د دعا په معنی ده (۱)، امام بخاری رحمه الله په دې کتاب کښې دعاګانې او د هغې متعلقات ذکر فرمائیلي دی. د دعا معنی د حاجت طلب کولو هم راځی او د آواز کولو هم راځی (۲).

حافظ ابن حجر رحمه الله وغیره فرمائی چه استیذان د بندو دروازو د پرانستلو دپاره وی. دعا هم د پورته دروازو د پرانستلو دپاره کولې شی.

**د دعا اهمیت او فضیلت** په ترجمة الباب کښې امام بخاری رحمه الله د قرآن کریم آیت ذکر فرمائیلي دي. د الله پاک ارشاد دې: ما رابلئ، زه به ستاسو دعا قبلوم. بیشکه کوم خلق چه زما د بندګئ نه تکبر کوی هغوی به نزدې جهنم ته ذلیله داخل شی.

په دعا باندې په حدیث کښې د عبادت اطلاق هم کړې شوې دې. د سیدنا نعمان بن بشیر رضی الله عنه روایت امام ترمذی او امام احمد رحمهما الله مرفوع نقل فرمائیلي دي. ﴿الدُّعَاءُ هُوَ الْعِبَادَةُ﴾ (۳)، یعنی دعا سراسر عبادت دې.

د سیدنا ابوهریرہ رضی الله عنه نه امام احمد رحمه الله یو مرفوع روایت په دې الفاظو نقل کړې دې ﴿مَنْ لَمْ يَدْعُ اللهَ، غَضِبَ اللهُ عَلَيْهِ﴾ (۴)، یعنی څوک د الله پاک نه دعا نه غواړی الله پاک په هغه باندې غضبناک کیږی.

هم دغه شان امام ترمذی رحمه الله د سیدنا انس رضی الله عنه یو مرفوع حدیث نقل فرمائیلي دي ﴿الدُّعَاءُ مُخُّ الْعِبَادَةِ﴾ (۵)، یعنی دعا د عبادت مغز دې.

د امام ترمذی او امام ابن ماجه د یو مرفوع روایت الفاظ دی: ﴿لَيْسَ شَيْءٌ أَكْرَمَ عَلَى اللهِ سُبْحَانَهُ مِنَ الدُّعَاءِ﴾ (۶)، یعنی د الله پاک په نزد د دعا نه عزت مند بل یو څیز هم نشته

---

(۱) عمدة القاری ۲۲/ ۲۸۶، فتح الباری ۱۱۳/۱۱، ارشاد الساری ۳۰۳/۱۳

(۲) عمدة القاری ۲۸۶/۲۲، فتح الباری ۱۱۳/۱۱

(۳) مسند الامام احمد: ۲۶۷/۴، واخرجه الترمذی فی کتاب التفسیر، باب سورة المؤمن ۳۷۴/۵، رقم الحدیث ۳۲۴۷

(۴) مسند الامام احمد ۴۴۳/۲ (حسن الاسناد)

(۵) اخرجه الترمذی، فی کتاب الدعوات، باب ما جاء فی فضل الدعاء: ۴۵۶/۵، رقم الحدیث ۳۳۷۱ (سند: ضعیف)

د سیدنا عبد الله بن مسعود رضی الله عنه یو مرفوع حدیث دې. د هغې الفاظ دی: ﴿سَلُوا اللّٰهَ مِنْ فَضْلِهِ فَإِنَّ اللّٰهَ عَزَّوَجَلَّ يُحِبُّ أَنْ يُسْأَلَ﴾ [۲] یعنی د الله پاک نه د هغه د فضل سوال کوئ. ځکه چه د الله پاک نه غوښتل د هغه خوښ دی. هم دغه شان د سیدنا ابن عمر رضی الله عنهما یو حدیث امام ترمذی رحمه الله نقل کړې دې د هغې په سند کښې اګر چه ضعف دې خو امام حاکم په مستدرک کښې هغه ته صحیح وئیلې دې [۳] د هغې الفاظ دا دی:

﴿ان الدُّعاءَ يَنْفَعُ مِمَّا نَزَلَ وَمِمَّا لَمْ يَنْزِلْ فَعَلَيْكُمْ عِبادَ اللهِ بِالدُّعاءِ﴾ [۴]

یعنی دعا په ټولو آفتونو کښې نافع ده. که هغه نازل شوې وی یا تر اوسه پورې نه دی نازل شوی. نو د الله پاک بندګانو! د دعا ضرور اهتمام کوئ.

د سیده عائشه رضی الله عنها یو مرفوع روایت طبرانی نقل کړې دې. د هغې الفاظ دی ﴿إِنَّ اللّٰهَ عَزَّوَجَلَّ يُحِبُّ الْمُلِحِّيْنَ فِي الدُّعَاءِ﴾ [۵] یعنی الله پاک هغه خلق خوښوی چه په زاری سره دعاګانې کوی حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی اګر چه د دې حدیث راویان ثقة دی خو په یو ځائې کښې عنعنه ده. [۶]

**په ایت کریمه کښې د دعا مصداق**: د قرآن کریم ذکر کړې شوې آیت کښې ﴿ادعونى﴾ نه مراد د اکثر حضراتو په نزد دعا ده. بعضو وئیلې دی چه د دې نه عبادت مراد دې ځکه چه وړاندې په وعید ﴿يستكبرون عن عبادتى﴾ کښې د عبادت لفظ ذکر شوې دې. [۷] خو جمهور فرمائی چه دعا هم چونکه عبادت دې. په دې اول خاص او د هغې نه پس عام ذکر کړې شوه. ځکه چه څوک د عام عبادت نه اعراض کوی هغه به د دعا نه هم اعراض کوی. [۸]

---

[۱]) اخرجه الترمذی، فی کتاب الدعوات، باب ما جاء فی فضل الدعاء: ۴۵۵/۵، رقم الحدیث ۳۳۷۰، واخرجه الامام ابن ماجة فی کتاب الدعاء، باب فضل الدعاء: ۲/ ۱۲۵۸، رقم الحدیث ۳۸۲۹ (اسناده حسن)

[۲]) اخرجه الترمذی، فی کتاب الدعوات، باب فی انتظار الفرج وغیر ذلک. ۵۶۵/۵، رقم الحدیث: ۳۵۷۱ (اسناده ضعیف)

[۳]) المستدرک للحاکم، کتاب الدعاء، باب الدعاء مما نزل ومما لم ینزل: ۴۹۳/۱

[۴]) سنن الترمذی، فی کتاب الدعوات، باب فی دعاء النبی صلی الله علیه وسلم: ۲۵۲/۵، رقم الحدیث ۳۵۴۸، وقال الترمذی: هذا حدیث غریب لا نعرفه الا من حدیث عبدالرحمن بن ابی بکر القرشی، هو ضعیف فی الحدیث، ضعفه بعض اهل العلم من قبل حفظه، وقال المنذی فی الترغیب والترهیب، وقد طعن فی عبدالرحمن بن ابی بکر الملیکی فقال: وهو ذاهب الحدیث، کتاب الدعوات، باب: ان الدعاء ینفع مما لم نزل ومما لم ینزل: ۴۸۰/۲

[۵]) فتح الباری. ۱۱۴/۱۱

[۶]) فتح الباری: ۱۱۴/۱۱

[۷]) روح المعانی، المجلد الثالث عشر، الجزء الاول: ۸۱

[۸]) تفسیر القرطبی: ۳۲۶/۱۵، ۳۲۷، روح المعانی، المجلد الثالث عشر، الجزء الاول: ۸۱

**د قبولیت دعا معنی** د قرآن کریم په دې آیت کښې دی چه الله پاک به د دعا غوښتلو نه پس قبول فرمائی. ډیر کرته دعا غوښتلې شی خو قبلیږی نه. په دې سلسله کښې دا خبره یاد ساتل پکار دی چه د دعا د قبولیت مختلف صورتونه دی. کله بعینه هم هغه څیز ورکولې شی. چه د کوم بنده سوال کوی او کله هغه څیز چونکه د مصلحت خلاف وی په دې وجه هغه دعا د هغه دپاره د آخرت ذخیره کړې شی او که د هغې په عوض کښې څه بل آفت ختم کړې شی پس امام احمد بن حنبل رحمه الله د سیدنا ابوسعید رضی الله عنه یو مرفوع حدیث نقل کړې دې.

(مَا مِنْ مُسْلِمٍ يَدْعُو بِدَعْوَةٍ لَيْسَ فِيهَا إِثْمٌ، وَلَا قَطِيعَةُ رَحِمٍ، إِلَّا أَعْطَاهُ اللهُ بِهَا إِحْدَى ثَلَاثٍ: إِمَّا أَنْ تُعَجَّلَ لَهُ دَعْوَتُهُ، وَإِمَّا أَنْ يَدَّخِرَهَا لَهُ فِي الْآخِرَةِ، وَإِمَّا أَنْ يَصْرِفَ عَنْهُ مِنَ السُّوءِ مِثْلَهَا)

یعنی هر مسلمان چه داسې دعا اوغواړی چه د گناه او قطع رحمی سره متعلق نه وی نو الله پاک د هغې په بدل کښې د دریو څیزونو نه یو ضرور ورکوی یا خو فورا هغه ته مطلوب څیز ورکړی. یا هغه دعا د هغه دپاره د آخرت ذخیره اوگرځوی. یا د هغې په مثل د هغه نه څه آفت لرې کړی [1] امام حاکم رحمه الله په مستدرک کښې دې حدیث ته صحیح ونیلې دې [2]

## ① بَابٌ وَلِكُلِّ نَبِيٍّ دَعْوَةٌ مُسْتَجَابَةٌ

[۵۹۴۵] [3] حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ قَالَ حَدَّثَنِي مَالِكٌ عَنْ أَبِي الزِّنَادِ عَنِ الْأَعْرَجِ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ أَنَّ رَسُولَ اللهِ - صلى الله عليه وسلم - قَالَ «لِكُلِّ نَبِيٍّ دَعْوَةٌ يَدْعُو بِهَا، وَأُرِيدُ أَنْ أَخْتَبِئَ دَعْوَتِي شَفَاعَةً لِأُمَّتِي فِي الْآخِرَةِ». [۷۰۳۲]

[۵۹۴۶] وَقَالَ لِي خَلِيفَةُ قَالَ مُعْتَمِرٌ سَمِعْتُ أَبِي عَنْ أَنَسٍ عَنِ النَّبِيِّ - صلى الله عليه وسلم - قَالَ «كُلُّ نَبِيٍّ سَأَلَ سُؤْلًا - أَوْ قَالَ لِكُلِّ نَبِيٍّ دَعْوَةٌ قَدْ دَعَا بِهَا - فَاسْتُجِيبَ، فَجَعَلْتُ دَعْوَتِي شَفَاعَةً لِأُمَّتِي يَوْمَ الْقِيَامَةِ».

**د رسول الله ﷺ مخصوص دعا** رسول الله ﷺ فرمائی چه د هر نبی یو خاص دعا وی کومه چه هغه کوی او هغه مقبول وی، او زه غواړم چه زه خپله دعا په آخرت کښې د خپل امت د شفاعت دپاره محفوظ کړم

دویم روایت د سیدنا انس رضی الله عنه نه دې. فرمائی. چه رسول الله ﷺ اوفرمائیل هر نبی خپل مطلوب غوښتلې دې یا ئې اوفرمائیل د هر یو نبی یو دعا قبلیږی. پس هغوی دعا هم اوکړه او قبوله هم شوه خو ما خپله دعا د قیامت په ورځ باندې د خپل امت د شفاعت دپاره

---

[1] مسند الامام احمد : ۱۸/۳

[2] المستدرک للامام حاکم. کتاب الدعوات ۴۹۳/۱ (قال حسین سلیم اسد فی تعلیق مسند ابی یعلی : اسناده جید)

[3] الحدیث اخرجه مسلم فی کتاب الایمان. باب احتباء النبی صلی الله علیه وسلم دعوة الشفاعة لامته (رقم الحدیث : ۲۰۰)

محفوظ کړي ده
**یو اشکال او د هغې جواب** په دې باندې په ظاهر کښې اشکال واردیږي چه د هر نبي خو د یو ه رنبي د دعاګانې قبلیږي. دلته د یو تحدید څنګه اوکړې شو؟
د دې جواب دا دې چه د یوې دعا قبولیت یقیني دې. مطلب دا دې چه د هر نبي یوه دعا یقیني قبلیږي. د باقي دعاګانو د قبولیت په باره کښې په یقین سره نه شي وئیلې کیدې چه هغه به قبلیږي. اګر چه په هغې کښې هم د قبولیت امید دې
پس حافظ ابن حجر رحمه الله لیکي: ﴿ والجواب ان المراد بالاجابة فى الدعوة المذكورة القطع بها، وما سوا ذلك من دعائهم فهوعلى رجاء الاجابة ﴾ [1]
د معتمر روایت امام مسلم رحمه الله موصولاً نقل کړې دې [2] په اکثر نسخو کښې ﴿ وقال معتمر ﴾ دې خو د اصیلي په نسخه کښې ﴿ وقال لى خليفة : حدثنا معتمر ﴾ دې. د دې نسخې مطابق دا تعلیق نه دې. بلکه موصول دې. [3]

# ② باب أَفْضَلِ الاِسْتِغْفَارِ

وَقَوْلِهِ تَعَالَى ( اسْتَغْفِرُوا رَبَّكُمْ إِنَّهُ كَانَ غَفَّارًا * يُرْسِلِ السَّمَاءَ عَلَيْكُمْ مِدْرَارًا * وَيُمْدِدْكُمْ بِأَمْوَالٍ وَبَنِينَ وَيَجْعَلْ لَكُمْ جَنَّاتٍ وَيَجْعَلْ لَكُمْ أَنْهَارًا ) نوح: ۱۰ ـ ۱۲
( وَالَّذِينَ إِذَا فَعَلُوا فَاحِشَةً أَوْ ظَلَمُوا أَنْفُسَهُمْ ذَكَرُوا اللَّهَ فَاسْتَغْفَرُوا لِذُنُوبِهِمْ وَمَنْ يَغْفِرُ الذُّنُوبَ إِلَّا اللَّهُ وَلَمْ يُصِرُّوا عَلَى مَا فَعَلُوا وَهُمْ يَعْلَمُونَ ).آل عمران ۱۳۵
**د ترجمة الباب مقصد** امام بخاري رحمه الله په دې باب کښې د استغفار افضل کلمات نقل فرمائیلي دی. په حدیث کښې هغې ته﴿ سيد الاستغفار ﴾ وئیلې شوې دې. په 'فضل الاستغفار' سرد ترجمه قائم کولو باندې ئې اشاره اوفرمائیله چه په حدیث کښې ﴿ سيد ﴾ په معنی د افضل دې. د سیادت نه فضیلت مراد دې [4]
په ترجمة الباب کښې امام د سورة النور درې آیتونه او د سورة آل عمران یو آیت کریمه نقل فرمائیلي دې. په دې آیتونو کښې د استغفار ذکر دې. د سورة نوح د آیتونو حاصل دا دې چه تاسو استغفار کوئ. الله پاک بخښنه کونکې ذات دې. د استغفار په نتیجه کښې به الله پاک په تاسو باندې په شیبو باران اوکړي. مال او دولت او ځامن درکولو سره به ستاسو مدد اوکړي. باغونه او نهرونه به تاسو ته درکړي
**څلور مرضونه، یو علاج** : امام حسن بصري رحمه الله ته یو سړي د قحط سالۍ شکایت اوکړو. یو

[1] فتح الباری ۱۱۶/۱۱
[2] صحیح مسلم. کتاب الایمان. باب احتباء النبی صلی الله علیه وسلم. دعوة الشفاعة لامته ۱۹۰/۱
[3] فتح الباری : ۱۱۷/۱۱
[4] عمدة القاری ۲۷۷/۲۲. ۲۷۸. فتح الباری ۱۱۸/۱۱

ورته د فقر او غربت. يو ورته د باغونو د اوچيدلو او يو ورته د خوئى د نه كيدو شكايت اوكړو. هغوى ټولو ته د استغفار وئيلو اووې او د قرآن كريم د دې آيتونو نه ئې استدلال اوكړو چه د استغفار په نتيجه كښې الله پاك د دې نعمتونو د وركړې ذكر فرمائيلې دے[1]

د سورة آل عمران د آيت كريمه مفهوم دے. هغه خلق چه هغوى د بې حيايئ ارتكاب كړې دے يائې په خپل ځان باندې د الله پاك احكام ماتولو سره، ظلم كړې دے. بيا هغوى ته الله پاك راياد شو او د خپلو گناهونو معافى ئې طلب كړه. په داسې حال كښې چه دا خلق په خپله گناه باندې اصرار هم نه كوى

**قوله: اذا فعلوا فاحشة او ظلموا انفسهم:** د فاحشه نه زنا او بې حيائى مراد ده او د ظلم نه عام گناه مراد ده[2]

﴿ذكروا الله﴾ د الله پاك ياد راغلو چه د الله پاك د وعدې او وعيد دواړو خيال ورته راغلو.

﴿وهم يعلمون﴾ يعنى هغوى ته معلومه شوه چه هغوى چه كوم كار كړې دې هغه حرام دې. ځكه چه د عدم علم په صورت كښې هغوى معذور حساب كيدلې شو[3]

[۵۹۴۷] [4] حَدَّثَنَا أَبُو مَعْمَرٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَارِثِ حَدَّثَنَا الْحُسَيْنُ حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ بُرَيْدَةَ عَنْ بُشَيْرِ بْنِ كَعْبٍ الْعَدَوِيِّ قَالَ حَدَّثَنِي شَدَّادُ بْنُ أَوْسٍ -رضى الله عنه- عَنِ النَّبِيِّ -صلى الله عليه وسلم- «سَيِّدُ الاِسْتِغْفَارِ أَنْ تَقُولَ اللَّهُمَّ أَنْتَ رَبِّي، لاَ إِلَهَ إِلاَّ أَنْتَ، خَلَقْتَنِي وَأَنَا عَبْدُكَ، وَأَنَا عَلَى عَهْدِكَ وَوَعْدِكَ مَا اسْتَطَعْتُ، أَعُوذُ بِكَ مِنْ شَرِّ مَا صَنَعْتُ، أَبُوءُ لَكَ بِنِعْمَتِكَ عَلَىَّ وَأَبُوءُ بِذَنْبِي، اغْفِرْ لِي، فَإِنَّهُ لاَ يَغْفِرُ الذُّنُوبَ إِلاَّ أَنْتَ». قَالَ «وَمَنْ قَالَهَا مِنَ النَّهَارِ مُوقِنًا بِهَا، فَمَاتَ مِنْ يَوْمِهِ قَبْلَ أَنْ يُمْسِيَ، فَهُوَ مِنْ أَهْلِ الْجَنَّةِ، وَمَنْ قَالَهَا مِنَ اللَّيْلِ وَهُوَ مُوقِنٌ بِهَا، فَمَاتَ قَبْلَ أَنْ يُصْبِحَ، فَهُوَ مِنْ أَهْلِ الْجَنَّةِ». [۵۹۷۴]

**سيد الاستغفار او د هغې فضيلت:** سيدنا شداد بن اوس رضى الله عنه د رسول الله صلى الله عليه وسلم نه روايت نقل كړې دې چه سيد الاستغفار دا دې چه ته داسې اوائې: ﴿اللهم انت ربى الخ﴾ يعنى اې الله! ته

---

[1] عمدة القارى ۲۷۷/۲۲، ۲۷۸. فتح البارى ۱۱۸/۱۱. ارشاد السارى ۳۰۶/۱۳

[2] تفسير القرطبى. سورة آل عمران. رقم الاية: ۱۳۵: ۲۱۰/٤. التفسير الكبير. سورة آل عمران رقم الاية ۱۳۵: ۹/۱۰، ۱۱

[3] تفسير القرطبى. سورة آل عمران. رقم الاية: ۱۳۵: ۲۱۰/٤. التفسير الكبير. سورة آل عمران رقم الاية ۱۳۵: ۹/۹، ۱۰

[4] الحديث اخرجه الترمذى فى كتاب الدعوات. باب منه: ٤٦٨/٥. (رقم الحديث: ۳۳۹۳) واخرجه ابوداؤد فى كتاب الادب. باب ما يقول اذا اصبح (رقم الحديث: ۵۰۷۰) واخرجه ابن ماجة فى كتاب الدعاء باب ما يدعو به الرجل اذا اصبح واذا امسى (رقم الحديث: ۳۸۷۲)

زما رب ئې: ستا نه سوا بل څوک معبود نشته. هم تا زه پيدا کړې يم او زه صرف هم ستا بنده يم او زه د خپل استطاعت مطابق ستا په عهد او ستا په وعده قائم يم. زه د خپلو بدعملونو د بدئ نه ستا پناه غواړم. تا چه کوم نعمتونه ماته راکړې دی. د هغې اقرار او د خپلو گناهونو اعتراف کوم. ماته بخښنه اوکړه بيشکه ستا نه سوا هيڅ څوک د گناهونو بخښلو والا نشته

رسول الله ﷺ فرمائی چا چه دا کلمات د زړه د صدق نه سحر اووې او د ماښام کيدو نه مخکښې هم په دې ورځ باندې مړ شو نو هغه جنتی دې او چا چه دا کلمات د زړه د صدق نه ماښام اووې او د سحر کيدو نه مخکښې مړ شو نو هغه هم جنتی دې

**دې کلماتو ته د سيد الاستغفار وئيلو وجه** : دې کلماتو ته سيد الاستغفار وئيلې شوې دې. صاحب د بهجة النفوس ليکی:

(وقد جمع صلى الله عليه و سلم في هذا الحديث من بديع المعاني وحسن الألفاظ ما يحق له انه يسمى سيد الاستغفار ففيه الإقرار لله وحده بالالهية والعبودية والاعتراف بأنه الخالق والاقرار بالعهد الذى اخذه عليه والرجاء بما وعده به والاستعاذة من شر ما جنى العبد على نفسه واضافة النعماء إلى موجدها واضافة الذنب إلى نفسه ورغبته في المغفرة واعترافه بأنه لا يقدر أحد على ذلك الا هو وفي كل ذلك الإشارة إلى الجمع بين الشريعة والحقيقة فإن تكاليف الشريعة لا تحصل الا اذا كان في ذلك عون من الله تعالى) [1]

يعنی : دا حديث چه په کومو بهترين الفاظو او شاندار معانی باندې مشتمل دې. د هغې په وجه دا د دې خبرې انتهائی مستحق دې چه دې ته (سيد الاستغفار) اووئيلې شی. پس په دې کښې د الله پاک الوهيت او عبوديت او د هغه د خالق کيدو اعتراف دې او د هغه عهد او وعدې اقرار دې کومه چه هغه د خپل بنده نه په دې باندې اخستلې وه او په دې کښې د هغه وعدې هم اظهار دې کومه چه الله پاک د بنده سره کړې ده. او دغه شان په دې کښې پناه غوښتلې شوې ده د هغه گناهونو د شر نه کومې چه بندگانو کړې دی هم دغه شان په دې کښې د نعمتونو نسبت د هغې موجد او د گناه او تقصير نسبت خپله د بنده طرف ته کړې شوې دې. د دې نه علاوه په دې کښې د مغفرت ربانی د شوق او رغبت د اظهار سره د دې خبرې هم اعتراف دې چه په مغفرت باندې صرف الله پاک قادر دې هم دغه شان په دې کښې د شريعت او د حقيقت د جمع کيدو طرف ته هم اشاره ده او د دې خبرې طرف ته هم چه د احکام شرعيه پابندی د الله پاک د مدد نه بغير ممکن نه ده.

**د استغفار برکات** : د استغفار ډير برکتونه او فضائل دی : انسان د الله پاک حقوق د هغه شايان شان نه شی ادا کولې. کمې ته ضرور کيږی. گناهونه ترې کيږی هغه کمې پوره کول. صرف د الله پاک نه د معافئ غوښتلو په صورت کښې کيدې شی. په سنن ابی داؤد او سنن ترمذی کښې د سيدنا صديق اکبر ﷺ مرفوع روايت دې : (مَا أَصَرَّ مَنِ اسْتَغْفَرَ وَإِنْ عَادَ فِي الْيَوْمِ

[1] فتح الباری، ١١/١٢٠، ١٢١

سَبْعِينَ مَرَّةً ﴾ [١] يعنى استغفار كونكې په گناه باندې اصرار كونكې نه شمارلې كيږى. اګر چه هغه په ورځ كښې اويا كرته گناه كوى

خو د دې دپاره شرط دا دې چه گناه ئې پريخودلې وى، دا نه چه په گناه كښې مشغول هم دې او په ژبه باندې استغفار هم كوى [٢]

د عهد او وعدې مصداق : ﴿ وَأَنَا عَلَى عَهْدِكَ وَوَعْدِكَ ﴾ د عهد نه يا خو عام عهد مراد دې يعنى د ايمان عهد او الله پاک سره د چا نه شريكولو عهد

شارح بخارى علامه ابن بطال رحمه الله فرمائى چه د عهد نه ﴿ عهد الست ﴾ مراد دې او د وعدې نه مراد د الله پاک هغه وعده ده چه د هغې ذكر په يو حديث كښې دې ﴿ ان من مات لا يشرك بالله شيئا وادى ما افترض عليه ان يدخله الجنة ﴾ [٣] يعنى كوم سړې چه په داسې حال كښې فوت شو چه هغه د الله پاک سره څوک شريک كړې نه وى او ټول فرائض او واجبات ئې ادا كړې وى نو (وعده ده چه) الله پاک به هغه جنت ته داخل كړى.

## ③ باب اسْتِغْفَارِ النَّبِيِّ - صلى الله عليه وسلم - فِي الْيَوْمِ وَاللَّيْلَةِ

[٥٩٤٨] حَدَّثَنَا أَبُو الْيَمَانِ أَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ أَخْبَرَنِي أَبُو سَلَمَةَ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ قَالَ قَالَ أَبُو هُرَيْرَةَ سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - يَقُولُ «وَاللَّهِ إِنِّي لَأَسْتَغْفِرُ اللَّهَ وَأَتُوبُ إِلَيْهِ فِي الْيَوْمِ أَكْثَرَ مِنْ سَبْعِينَ مَرَّةً».

په دې باب كښې امام بخارى رحمه الله د رسول الله ﷺ نه د استغفار وقوع او د دې د مقدار بيان فرمائى

په روايت كښې دى . رسول الله ﷺ فرمائى چه په ورځ او شپه كښې اويا كرته نه زيات استغفار غواړم ﴿ سبعين ﴾ عدد د كثرت دپاره هم راځى او د عدد معين دپاره هم؛ دلته دواړه كيدې شى [٤]

د سيدنا ابوهريره رضي الله عنه په روايت كښې دى ﴿ انى استغفر الله فى اليوم مائة مرة ﴾ الفاظ دى.

په دې باندې اشكال راځى چه رسول الله ﷺ خو معصوم دې نو هغوى ته د استغفار كولو څه ضرورت دې؟

① د دې جواب دا دې چه انبياء عليهم السلام د صغائر او كبائر نه خو معصوم وى. خو د صغائر نه

---

[١] سنن ابى داؤد، ابواب الوتر، باب فى الاستغفار ٨٤/٢، (رقم الحديث : ١٥١٤) سنن الترمذى، كتاب الدعوات : باب ١٠٧ : ٥٥٨/٥ (رقم الحديث : ٣٥٥٩)

[٢] فتح البارى ١١٨/١١، التفسير الكبير، سورة آل عمران رقم الاية : ١٣٥، ١٠/٩

[٣] حديث عبدالله بن مسعود رضى الله عنه، فتح البارى ١٢٠/١١

[٤] فتح البارى، ١٢١/١١، عمدة القارى ٢٧٩/٢٢، هم دغه شان اوګورئ : ارشاد السارى ٣٠٩/١٣

معصوم نه وی. استغفار د صغائر د وجې نه کوی [1]

② د بعض علماء کرامو په نزد انبياء ﷺ د کبائرو او صغائرو نه معصوم وی. د هغوی په نزد جواب دا دې چه ډير کرته خلاف اولی کارونه د انبياء ﷺ نه صادريږی هغه اګر چه د ګناه په شمير کښې داخل نه وی خو د انبياء ﷺ د اوچت شان او رفع مقام وجې نه (حسنات الابرار سيئات المقربين) د قاعدې په بناء باندې انبياء ﷺ هغه هم په خپل حق کښې ګناه ګڼړی او استغفار کوی [2]

## ④ باب التَّوْبَةِ

قَالَ قَتَادَةُ (تُوبُوا إِلَى اللَّهِ تَوْبَةً نَصُوحًا) التحريم: ۸ _ الصَّادِقَةُ النَّاصِحَةُ.

**د استغفار او توبې ابواب په شروع کښې د ذکر کولو وجه:** امام بخاری رحمه الله د باقی دعاګانو نه مخکښې. د کتاب الدعوات په ابتداء کښې د استغفار او توبې په ابواب ذکر کولو سره د دې خبرې طرف ته اشاره اوکړه چه د دعاګانو د قبوليت امکانات هغه وخت زيات وی. چه کله دعا کونکې د معاصی نه پاک وی او لرې وی. په دې وجه د دعا نه مخکښې د خپلو ګناهونو معافی او توبه کول پکار دی دې دپاره چه کومه دعا اوکړې شی. هغه زر قبوله شی [3]

استغفار د توبې يو جزء دې د توبې لفظی معنی د واپس کيدو او رجوع کولو ده. مراد د ګناه نه واپس کيدل او رجوع کول دی. توبه د درې څيزونو نوم دې. اول په کړې ګناه باندې پښيمانه کيدل. دويم د الله پاک نه د هغه د بخښنې دعا کول. دريم د بيا دپاره د دغه ګناه نه کولو عزم [4]

**د توبه نصوح تفسير قوله:** (قَالَ قَتَادَةُ: تَوْبَةً نَصُوحًا: الصَّادِقَةُ النَّاصِحَةُ): د قرآن کريم په سورة تحريم کښې دی (يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا تُوبُوا إِلَى اللهِ تَوْبَةً نَصُوحًا) امام قرطبی رحمه الله فرمائی چه په د (توبة نصوح) په تفسير کښې د اهل علم ديرويشت (۲۳) اقوال دی. [5]

امام قتادة د توبة نصوح تشريح په ريشتينې توبې سره کړې ده [6] نصوح که د نصح او نصيحت نه واخستلې شی نو د دې معنی د خالص کولو راځی. توبة نصوح يعنی ريا او نمود نه خالص او رشتينې توبه.

---

[1] فتح البارى ۱۲۲/۱۱. وعمدة القارى ۲۷۹/۲۲

[2] فتح البارى ۱۲۲/۱۱. وعمدة القارى ۲۷۹/۲۲

[3] فتح البارى : ۱۲۳/۱۱

[4] فتح البارى ۱۲٤/۱۱. عمدة القارى ۲۷۹/۲۲

[5] تفسير القرطبى : ۱۹۷/۱۸

[6] تفسير القرطبى : ۱۹۷/۱۸

او که دا د نصاحت نه مشتق اومنلې شي نو د دې معنی د کپړې گنډلو او جوړ لگولو راځي توبۀ نصوح یعنی پیوند کونکې توبه. مطلب دا شو چه د گناهونو د وجې نه د تقوی په لباس کښې چه کوم سورې پیدا شوې دې. دا توبه هغې لره یوځائې کونکې دې [۱].
امام حسن بصری رحمه الله فرمائی چه توبۀ نصوح دا ده چه سړې په خپلو تیرو گناهونو باندې نادم کیدو سره د بیا دپاره د نه کیدو کلک اراده اوکړی [۲] توبه که په حقوق العباد کښې د کوتاهئ سره متعلق ده نو په دې صورت کښې. متعلقه حق لره ادا کول ضروری دی. مثلاً د چا مال که غصب کړې شې نو په دې کښې صرف استغفار کول کافی نه دی. بلکه هغه مال واپس کول ضروری دی [۳].

۵۹۴۹ [۴] حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ يُونُسَ حَدَّثَنَا أَبُو شِهَابٍ عَنِ الأَعْمَشِ عَنْ عُمَارَةَ بْنِ عُمَيْرٍ عَنِ الْحَارِثِ بْنِ سُوَيْدٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ حَدِيثَيْنِ أَحَدُهُمَا عَنِ النَّبِيِّ - صلى الله عليه وسلم - وَالآخَرُ عَنْ نَفْسِهِ قَالَ «إِنَّ الْمُؤْمِنَ يَرَى ذُنُوبَهُ كَأَنَّهُ قَاعِدٌ تَحْتَ جَبَلٍ يَخَافُ أَنْ يَقَعَ عَلَيْهِ، وَإِنَّ الْفَاجِرَ يَرَى ذُنُوبَهُ كَذُبَابٍ مَرَّ عَلَى أَنْفِهِ». فَقَالَ بِهِ هَكَذَا قَالَ أَبُو شِهَابٍ بِيَدِهِ فَوْقَ أَنْفِهِ. ثُمَّ قَالَ «لَلَّهُ أَفْرَحُ بِتَوْبَةِ عَبْدِهِ مِنْ رَجُلٍ نَزَلَ مَنْزِلاً، وَبِهِ مَهْلَكَةٌ، وَمَعَهُ رَاحِلَتُهُ عَلَيْهَا طَعَامُهُ وَشَرَابُهُ، فَوَضَعَ رَأْسَهُ فَنَامَ نَوْمَةً، فَاسْتَيْقَظَ وَقَدْ ذَهَبَتْ رَاحِلَتُهُ، حَتَّى اشْتَدَّ عَلَيْهِ الْحَرُّ وَالْعَطَشُ أَوْ مَا شَاءَ اللَّهُ، قَالَ أَرْجِعُ إِلَى مَكَانِي. فَرَجَعَ فَنَامَ نَوْمَةً، ثُمَّ رَفَعَ رَأْسَهُ، فَإِذَا رَاحِلَتُهُ عِنْدَهُ». تَابَعَهُ أَبُو عَوَانَةَ وَجَرِيرٌ عَنِ الأَعْمَشِ.
وَقَالَ أَبُو أُسَامَةَ حَدَّثَنَا الأَعْمَشُ حَدَّثَنَا عُمَارَةُ سَمِعْتُ الْحَارِثَ.
وَقَالَ شُعْبَةُ وَأَبُو مُسْلِمٍ عَنِ الأَعْمَشِ عَنْ إِبْرَاهِيمَ التَّيْمِيِّ عَنِ الْحَارِثِ بْنِ سُوَيْدٍ. وَقَالَ أَبُو مُعَاوِيَةَ حَدَّثَنَا الأَعْمَشُ عَنْ عُمَارَةَ عَنِ الأَسْوَدِ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ وَعَنْ إِبْرَاهِيمَ التَّيْمِيِّ عَنِ الْحَارِثِ بْنِ سُوَيْدٍ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ.

حارث بن سوید فرمائی چه زمونږ نه سیدنا عبدالله بن مسعود رضی الله عنه دوه احادیث بیان کړل. یو خو د رسول الله صلی الله علیه وسلم نه او دویم خپله نقل کوی. هغوی وائی چه مومن خپل گناهونه داسې محسوس کوی لکه د یو غر نه لاندې ناست او ویریږی چه چرته دا په هغه باندې راګزار نه شی او فاسق خپل گناهونه د هغه مچ په شان معمولی گڼړی کوم چه د هغه په پوزه باندې

---

[۱] روح المعانی، المجلد الرابع عشر، الجزء الثانی : ۱۵۷
[۲] روح المعانی، المجلد الرابع عشر، الجزء الثانی : ۱۵۷
[۳] تفسیر القرطبی : ۱۸/ ۱۹۷. ۱۹۸
[۴] الحدیث اخرجه مسلم فی کتاب التوبة. باب فی الخص علی التوبة والصرح بها (رقم الحدیث : ۲۷۴۴). واخرجه الترمذی فی کتاب الزهد فی ابواب صفة القیامة. باب ما جاء فی استعظام المؤمن ذنوبه (رقم الحدیث : ۲۴۹۷. ۲۴۹۸) واخرجه النسائی فی کتاب النعوت. باب قوله : ﴿ ولتصنع علی عینی ﴾ ۴۱۵/۴. (رقم الحدیث : ۷۷۴۱)

تیریږی «راوی ابو شهاب په خپله پوزه باندې لاس راښکلو سره د دې منظر طرف ته اشاره اوکړه»
بیا هغوی اووې چه الله پاک د خپل بنده په توبه باندې د هغه سړی نه هم زیات خوشحالیږی چه په یو مهلک او خطرناک ځائې کښې دمه کوی. هغه سره د هغه سورلی وی چه په هغې باندې د هغه خوراک او اوبه وی. هغه سر کیخودلو سره اوده شو او چه کله بیدار شو نووې کتل چه د هغه سورلی غائبه ده. هغه سمدستی د هغې په لټون کښې اوتلو. تردې چه د ګرمئ او تندې شدت پیدا شونو هغه اووې زه خپل ځائې ته دوباره ځم. هلته تلو سره هغه لږ ساعت اوده شو. چه بیا ئې سر راوچت کړو نو وې کتل چه د هغه سورلی. د هغه خوا کښې ده «نو د سورلئ په خپله خوا کښې لیدو باندې چه دا سړی څومره خوشحالیږی. الله پاک د بنده په توبه باندې هم دغه شان خوشحالیږی»

**قوله**: احدهما عن النبی صلی الله علیه وسلم والاخر عن نفسه: یعنی سیدنا عبدالله بن مسعود رضی الله عنه دوه احادیث بیان فرمائیلي دی. یو د رسول الله ﷺ د طرف نه او دویم د خپل طرف نه. یعنی یو حدیث مرفوع وو. او دویم حدیث موقوف. ﴿إِنَّ الْمُؤْمِنَ يَرَى ذُنُوبَهُ﴾ دا حدیث موقوف دې. او ﴿لَلّٰهُ أَفْرَحُ بِتَوْبَةِ عَبْدِهِ﴾ دا حدیث مرفوع دې [1]

**قوله**: ان المؤمن یری ذنوبه کانه قاعد تحت جبل: په ﴿ یری ذنوبه ﴾ کښې د ﴿ یری ﴾ مفعول ثانی حذف دې ﴿ای یری ذنوبه کالجبال﴾ [2] یعنی مومن خپل ګناهونه دغرپه شان درانه ګنړی

**فقال هکذا**: د ﴿ به ﴾ ضمیر د باب طرف ته راجع دې یعنی هغوی په لاس سره اشاره کولو باندې بیان اوکړو چه داسې.

**وبه مهلکة**: مهلکة د میم او لام په فتحې سره د هلاکت ځائې ته وائی او ﴿ مهلکة ﴾ د میم په ضمې او د لام په کسرې سره د اسم فاعل مؤنث صیغه ده په معنی هلاکونکې [3]

په دې روایت کښې د بنده په توبه باندې د الله پاک د راضی کیدو او خوشحالیدو یو مثال بیان فرمائیلي شوې دې. یو سړې په صحرا کښې دې او د هغه د ژوند د ضرورت ټول خوراک څکاک څیزونه د هغه په سورلئ باندې بار دی. د سړی سترګې ورشی او هغه سورلئ غائبه شی. د سترګو غړیدو نه پس هغه ته لوږه تنده محسوس شی. د سورلئ په لټون کښې یو خوا بل خوا اوځی. خو هغه په نظر نه راځی. ظاهره ده، ځنګل بیابان دې او د چرته نه هم خوراک څکاک نه ملاویږی، هغه مرګ لره مخامخ لیدو سره واپس خپل ځائې ته لاړ شی چه د هغه دوباره سترګې ورشی اوچه کله ئې سترګې اوغړیږی نو د هغه سورلی د هغه د خوراک او څکاک د څیزونو سره موجود وی، اوس ظاهره ده چه د هغې په لیدو باندې هغه ته کومه

---

[1] فتح الباری ۱۲۸/۱۱، عمدة القاری : ۲۸۰/۲۲، ارشاد الساری : ۳۱۳/۱۳
[2] ارشاد الساری ۳۱۱/۱۳
[3] فتح الباری ۱۲۸/۱۱، عمدة القاری : ۲۸۱/۲۲، ارشاد الساری : ۲۱۲/۱۳



خوشحالى ملاويږى. د هغې اندازه نه شى كيدلې د صحيح مسلم په روايت كښې دومره اضافه هم دى

(فَبَيْنَا هُوَ كَذٰلِكَ إِذَا هُوَ بِهَا قَائِمَةً عِنْدَهُ فَأَخَذَ بِخِطَامِهَا ثُمَّ قَالَ مِنْ شِدَّةِ الْفَرَحِ اللّٰهُمَّ أَنْتَ عَبْدِى وَأَنَا رَبُّكَ، أَخْطَأَ مِنْ شِدَّةِ الْفَرَحِ)[1]

يعنى هغه هم د دې پريشانئ په حالت كښې وى چه د هغه سورلئ ناڅاپه د هغه په خوا كښې وى نو هغه د هغې واږې اونيسى، بيا ئې د خوشحالئ نه بې اختياره دا الفاظ د خولې نه اوځى اې الله! ته زما بنده ئې او زه دې رب يم د ډيرې خوشحالئ د وجې نه د هغه نه غلطى اوشى الله پاک هم د بنده په توبه باندې دومره خوشحاليږى او راضى كيږى

**قوله:** حتى اشتد عليه الحر والعطش اوماشاء الله: راوى ابو شباب ته دلته شک دې چه (اشْتَدَّ عَلَيْهِ الْحَرُّ وَالْعَطَشُ) ئې اوفرمائيل يا كه (اشْتَدَّ عَلَيْهِ مَا شَاءَ اللهُ) ئې اووې

**د حديث نه مستنبط اداب:** حافظ ابن حجر رحمه الله د ابن ابى جمره په حوالې سره د دې حديث فوائد بيانولو سره ليكى:

(وفى حديث بن مسعود من الفوائد جواز سفر المرء وحده لأنه لا يضرب الشارع المثل الا بما يجوز... وفيه ان من ركن إلى ما سوى الله يقطع به أحوج ما يكون إليه لان الرجل ما نام فى الفلاة وحده الا ركونا إلى ما معه من الزاد فلما اعتمد على ذلك خانه ... وفيه بركة الاستسلام لامر الله لان المذكور لما ايس من وجدان راحلته استسلم للموت فمن الله عليه برد ضالته وفيه ضرب المثل بما يصل إلى الإفهام من الأمور المحسوسة والارشاد إلى الحض على محاسبة النفس واعتبار العلامات الدالة على بقاء نعمة الإيمان)[2]

يعنى د عبدالله بن مسعود رضى الله عنه په حديث كښې ډير فوائد دى

① د سړى دپاره ځانله سفر كول جائز دى. ځكه چه شارع صرف د هغه څيزونو سره مثال بيانوى كوم چه جائز وى، او حديث د نهى په كراهت باندې محمول دى او د دې حديث نه د نهى حكمت هم ښكاره كيږى

② كوم سړى چه په غير الله باندې اعتماد اوكړو نو الله پاک د هغه نه د هغه د ټولو نه اهم او ضرورى څيز منقطع كوى. ځكه چه هغه سړې په صحرا كښې يواځې په دې وجه اوده شوې وو چه د هغه په خپله توښه باندې اعتماد وو چه كله هغه په توښه باندې اعتماد اوكړو نو هغې هغه سره خيانت اوكړو

③ د الله پاک حكم ته سر ښكته كولو كښې بركت دې. ځكه چه دا سړې چه د خپلې سورلئ د ملاويدو نه مايوس شو نو د مرګ مخكښې تسليم شو، نو الله پاک په هغه باندې احسان كولو سره د هغه ورک شوې څيز راواپس كړو

---

[1] صحيح مسلم، كتاب التوبة، باب فى الحض على التوبة والفرح بها: ۲۱۰٤/٤

[2] فتح البارى ۱۰۸/۱۱ (المكتبة الشاملة)

④ مثال د هغه امور محسوسه سره بیانول پکار دی چه د هغې په فهم کښې آسانی وی
⑤ د نفس د محاسبه کولو ترغیب پکښې ورکړې شوې دی او د هغه علاماتو د اظهار حکم ورکړې شوې دې کوم چه د نعمت په باقی کیدو باندې دلالت کوی

**قوله:** تابعه ابوعوانة وجریر عن الاعمش: پوره په سند کښې ترتیب دا دې ﴿ ابوشهاب عن الاعمش عن عمارة عن الحارث ﴾ ... د ابوشهاب متابعت ابو عوانة وضاح بن عبدالله یشکری رحمه الله او جریر بن عبدالحمید رحمه الله کړې دې. د ابوعوانة متابعت اسماعیلی او د جریر متابعت بزار موصولا نقل کړې دې.[1]

**قوله:** ﴿ وَقَالَ أَبُو أُسَامَةَ، حَدَّثَنَا الأَعْمَشُ، حَدَّثَنَا عُمَارَةُ سَمِعْتُ الحَارِثَ ﴾: ابو اسامة حماد بن اسامة هم د اعمش نه دا روایت نقل کړې دې. خو په هغې کښې د عنعنه په ځائې د سماع تصریح ده. دا تعلیق امام مسلم رحمه الله موصولا نقل کړې دې.[2]

**قوله:** ﴿ وَقَالَ شُعْبَةُ، وَأَبُو مُسْلِمٍ، عَنِ الأَعْمَشِ، عَنْ إِبْرَاهِيمَ التَّيْمِيِّ، عَنِ الحَارِثِ بْنِ سُوَيْدٍ ﴾: شعبه بن الحجاج او ابو مسلم عبیدالله هم دا روایت د اعمش نه نقل کړې دې خو په دې طریق کښې د اعمش شیخ عمارة نه دې بلکه ابراهیم تیمی دې. د دې نه مخکښې چه کوم طرق تیر شوې دی په هغې کښې د اعمش شیخ عمارة دې.

**قوله:** ﴿ وَقَالَ أَبُو مُعَاوِيَةَ، حَدَّثَنَا الأَعْمَشُ عَنْ عُمَارَةَ، عَنِ الأَسْوَدِ، عَنْ عَبْدِ اللهِ، وَعَنْ إِبْرَاهِيمَ التَّيْمِيِّ، عَنِ الحَارِثِ بْنِ سُوَيْدٍ، عَنْ عَبْدِ اللهِ ﴾: د ابو معاویة بن حازم دا طریق نور هم مختلف دې. هغه د اعمش په واسطه باندې او ابراهیم دواړو نه نقل کوی خو د عماره د شیخ په ځائې اسود دې. او په ما قبل ټولو طرق کښې د هغوی شیخ حارث دې او د ابراهیم په طریق کښې د هغوی شیخ حارث بن سوید دې او په اول طریق کښې هغه د عماره شیخ دې

دغه شان دا څو طرق راجمع شو او په دې کښې د دې جزوی اختلاف نشاندهی هم امام بخاری رحمه الله اوکړه. خو امام مسلم رحمه الله چونکه صرف د ابو شهاب طریق ذکر کړې دې[3] امام بخاری رحمه الله هم موصولا هم هغه طریق ذکر کړې دې. په دې وجه هم هغه قابل ترجیح دې. شارحینو لیکلې دی چه دغه شان اختلاف قادح او مضر نه وی.[4]

---

[1] ) عمدة القاری ۲۸۱/۲۲، ارشاد الساری ۳۱۲/۱۳

[2] ) فتح الباری ۱۲۹/۱۱

[3] ) فتح الباری ۱۲۹/۱۱، عمدة القاری : ۲۸۲/۲۲، ارشاد الساری : ۳۱۳/۱۳

[4] ) فتح الباری ۱۲۹/۱۱، عمدة القاری : ۲۸۲/۲۲، ارشاد الساری : ۳۱۳/۱۳

[۵۹۵۰] حَدَّثَنَا إِسْحَاقُ أَخْبَرَنَا حَبَّانُ حَدَّثَنَا هَمَّامٌ حَدَّثَنَا قَتَادَةُ حَدَّثَنَا أَنَسُ بْنُ مَالِكٍ عَنِ النَّبِيِّ - صلى الله عليه وسلم - . وَحَدَّثَنَا هُدْبَةُ حَدَّثَنَا هَمَّامٌ حَدَّثَنَا قَتَادَةُ عَنْ أَنَسٍ - رضي الله عنه - قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - «اللَّهُ أَفْرَحُ بِتَوْبَةِ عَبْدِهِ مِنْ أَحَدِكُمْ سَقَطَ عَلَى بَعِيرِهِ، وَقَدْ أَضَلَّهُ فِي أَرْضِ فَلَاةٍ»

سیدنا انس بن مالک ﷜ د رسول الله ﷺ نه روایت کوی. رسول الله ﷺ فرمائی الله پاک د خپل بنده په توبه باندې د هغه سړي نه هم زیات خوشحالیږي. چه هغه ته په ځنګل کښې د هغه ورک شوي اوښ دوباره ملاؤ شي

امام بخاری ﷫ دا روایت په دوه طریق سره نقل کړې دې. اول طریق کښې د هغوی شیخ اسحاق بن حبان دې او په دویم طریق کښې د هدبه بن خالد نه دې.

امام مسلم ﷫ هم په کتاب التوبة کښې دا حدیث ذکر کړې دې. هغوی د هدبة په طریق سره نقل کړې دې[۲]

# ⑤ باب الضَّجْعِ عَلَى الشِّقِّ الأَيْمَنِ

[۵۹۵۱] حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا هِشَامُ بْنُ يُوسُفَ أَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ عُرْوَةَ عَنْ عَائِشَةَ - رضي الله عنها كَانَ النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - يُصَلِّي مِنَ اللَّيْلِ إِحْدَى عَشْرَةَ رَكْعَةً، فَإِذَا طَلَعَ الْفَجْرُ صَلَّى رَكْعَتَيْنِ خَفِيفَتَيْنِ، ثُمَّ اضْطَجَعَ عَلَى شِقِّهِ الأَيْمَنِ، حَتَّى يَجِيءَ الْمُؤَذِّنُ فَيُؤْذِنَهُ. [ر: ۱۹٤۹]

د سیده عائشه ﷝ نه روایت دې هغوی بیان اوکړو چه رسول الله ﷺ به د شپې یوولس رکعته کول. بیا چه به کله صبا راوختلو. نو دوه سپک سپک رکعتونه به ئې اوکړه. بیا به په خپل ښی طرف باندې سملاستلو. تردې چه مؤذن به راغلو او هغوی ته به ئې خبر ورکړو

**د ترجمة الباب مقصد** په ښی طرف باندې سملاستل مستحب دی. امام بخاری ﷫ په دې باب کښې ددې استحباب بیانول غواړی. په کتاب الدعوات کښې د دې مناسبت بیان کړې شوې دې چه رسول الله ﷺ به په ملاسته باندې دعاګانې لوستلې. لکه چه وړاندې راځی.[۳] بعض حضراتو وئیلي دی چه دا ئې د وړاندې بابونو دپاره په طور د تمهید او توطئه ذکر فرمائیلي دې[۴]

---

[۱] الحدیث اخرجه مسلم فی کتاب التوبة. باب فی الحض علی التوبة والفرح بها. (رقم الحدیث : ۲۷٤۷) واخرجه الترمذی فی کتاب الدعوات. باب فی فضل التوبة والاستغفار وما ذکر من رحمة الله لعباده. (رقم الحدیث : ۳۵۳۸). واخرجه ابن ماجة فی کتاب الزهد. باب ذکر التوبة (رقم الحدیث : ٤۲٤۷).

[۲] صحیح مسلم. کتاب التوبة. باب فی الحض علی التوبة والفرح بها : ۲۱۰۵/٤. رقم الحدیث : ۱۷٤۷

[۳] عمدة القاری : ۲۸۲/۲۲. ارشاد الساری : ۳۱٤/۱۳

[۴] فتح الباری ۱۳۱/۱۱. ارشاد الساری : ۳۱٤/۱۳

**په ښی طرف باندې د سملاستلو فوائد**: په ښی طرف باندې د سملاستلو ډیرې فائدې دی. زړه عموما چونکې ګس طرف ته وی. په دې وجه په ښی طرف باندې سملاستلو کښې په هغه باندې بوجهه نه راځی. خوب هم ډیر زیات ژور نه وی چه د انسان نه مونځ فوت شی. د زړه حرکت هم په مناسب رفتار سره وی نور هم ډیر فوائد بیان کړې شوې دی.[1]

# ⑥ باب إذا بات طاهرًا

[۵۹۵۲] حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا مُعْتَمِرٌ قَالَ سَمِعْتُ مَنْصُورًا عَنْ سَعْدِ بْنِ عُبَيْدَةَ قَالَ حَدَّثَنِي الْبَرَاءُ بْنُ عَازِبٍ رضی الله عنهما قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صلی الله علیه وسلم «إِذَا أَتَيْتَ مَضْجَعَكَ فَتَوَضَّأْ وُضُوءَكَ لِلصَّلَاةِ، ثُمَّ اضْطَجِعْ عَلَى شِقِّكَ الْأَيْمَنِ، وَقُلِ اللَّهُمَّ أَسْلَمْتُ نَفْسِي إِلَيْكَ، وَفَوَّضْتُ أَمْرِي إِلَيْكَ، وَأَلْجَأْتُ ظَهْرِي إِلَيْكَ، رَهْبَةً وَرَغْبَةً إِلَيْكَ، لَا مَلْجَأَ وَلَا مَنْجَا مِنْكَ إِلَّا إِلَيْكَ، آمَنْتُ بِكِتَابِكَ الَّذِي أَنْزَلْتَ، وَبِنَبِيِّكَ الَّذِي أَرْسَلْتَ. فَإِنْ مُتَّ مُتَّ عَلَى الْفِطْرَةِ، فَاجْعَلْهُنَّ آخِرَ مَا تَقُولُ» فَقُلْتُ أَسْتَذْكِرُهُنَّ وَبِرَسُولِكَ الَّذِي أَرْسَلْتَ قَالَ «لَا، وَبِنَبِيِّكَ الَّذِي أَرْسَلْتَ» [ر ۲۴۴]

**د ترجمة الباب مقصد**: د ترجمة الباب مقصد دا دې چه انسان په اودس کښې اوده شی. د دې فضیلت دې. په سنن ابی داؤد کښې د سیدنا معاذ بن جبل رضی الله عنه مرفوع روایت دې:

﴿ مَا مِنْ مُسْلِمٍ يَبِيتُ عَلَى ذِكْرٍ طَاهِرًا فَيَتَعَارُّ مِنَ اللَّيْلِ فَيَسْأَلُ اللهَ خَيْرًا مِنَ الدُّنْيَا وَالْآخِرَةِ إِلَّا أَعْطَاهُ إِيَّاهُ ﴾[2]
یعنی کوم مسلمان چه اودس کولو سره ذکر کولو سره اوده شی او د شپې د هغه سترګې اوغړیږی او هغه د الله پاک نه د دنیا او آخرت د څه خیر سوال اوکړی نو الله پاک ئې ورته ضرور ورکوی.

**د باب د کتاب سره مناسبت**: د کتاب الدعوات سره د دې باب د مناسبت په باره کښې علامه عینی رحمه الله لیکی: هوان فیه دعاء عظیما[3] یعنی د کتاب الدعوات سره د دې باب مناسبت دا دې چه په دې کښې د یوې عظیم الشان دعا ذکر دې.

په روایت الباب کښې دی. رسول الله ﷺ اوفرمائیل چه کله تاسو د اوده کیدو اراده اوکړئ نو اودس اوکړئ. څنګه چه د مانځه دپاره اودس کولې شی او دا دعا اولوله:

﴿ قُلِ اللَّهُمَّ أَسْلَمْتُ وَجْهِي إِلَيْكَ وَفَوَّضْتُ أَمْرِي إِلَيْكَ وَأَلْجَأْتُ ظَهْرِي إِلَيْكَ رَغْبَةً وَرَهْبَةً إِلَيْكَ لَا مَلْجَأَ، وَلَا مَنْجَا مِنْكَ إِلَّا إِلَيْكَ اللَّهُمَّ آمَنْتُ بِكِتَابِكَ الَّذِي أَنْزَلْتَ وَبِنَبِيِّكَ الَّذِي أَرْسَلْتَ ﴾

یعنی اې الله! زما خپل نفس ستا اطاعت کونکې جوړ کړو. ما خپله معامله تاته اوسپارله. ما خپل ذات ستا طرف ته متوجه کړو او ما ته د خپلې شا اسره جوړه کړې ستا طرف ته د رغبت او شوق او ستا د ویرې د وجې نه. (ځکه چه) ستا نه علاوه ستا نه د تیختې او پناه

---

[1] الابواب والتراجم ۱۲۷/۲. فیض الباری ۴۱۶/۴
[2] سنن ابی داؤد. ابواب النوم. باب فی النوم علی طهارة ۳۱۰/۴. رقم الحدیث: ۵۰۴۲
[3] عمدة القاری: ۵۰۴۲

اخستلو ځائي نشته. ما ايمان راوړې دې ستا په کتاب کوم چه تا نازل کړې دې او ستا په نبي ﷺ کوم چه تا رالیږلې دې.
که د دې دعا لوستلو سره تاسو اوده شئ او مړه شئ نو ستاسو مرګ به په فطرت باندې وی.
دا کلمات د ټولو خبرو په آخره کښې لولئ چه د هغې نه پس بيا هيڅ خبره نه وی.

**يو اشکال او د هغې جواب**

**قوله:** ﴿فَإِنْ مُتَّ مُتَّ عَلَى الْفِطْرَةِ﴾: په دې باندې اشکال کړې شوې دې چه کله دا کلمات او نه لولي او په اوده کيدو سره د هغه وفات اوشی نو د هغه مرګ به بيا هم په فطرت وی نو بيا د دې کلماتو د لوستلو څه خصوصيت او فائده ده؟ علامه قسطلانی رحمه الله په جواب کښې ليکی:

﴿اجيب بتنويع الفطرة، فطرة القائلين فطرة المقربين الصالحين، وفطرة الآخرين فطرة عامة المؤمنين﴾ [1]
يعنی د فطرت څو قسمونه دی. يو د عام مومنانو فطرت دې او يو د مقربين او صالحينو فطرت دې. د دې کلماتو د لوستونکو مرګ به د صالحينو په فطرت باندې وی. او د هغوی نه علاوه د نورو خلقو مرګ به د عام مومنانو په فطرت باندې وی او دغه شان د دې دعا امتياز واضح کيږی.

**په ماثور دعاګانو کښې د روايت بالمعنی حکم:**

**قوله:** ﴿فقلت: استذکرهن: وبرسولك الذي ارسلت﴾: سعد بن عبيد رحمه الله د سيدنا براء بن عازب رضي الله عنه نه تپوس اوکړو چه په دې دعا کښې د ﴿وبرسولك الذي ارسلت﴾ الفاظ تاسو ته ياد دی؟ هغوی اوفرمائيل نه؛ بلکه ﴿وبنبيك الذي ارسلت﴾ الفاظ ماته ياد دی.
روايت بالمعنی اګر چه جائز دې او د رسول په ځائې د نبي وئيلو او لوستلو ګنجائش دې خو په ماثور دعاګانو کښې روايت باللفظ کيدل پکار دی. ځکه چه د اذکار او دعاګانو الفاظ توقيفي وی. پس حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی.

﴿ان الفاظ الاذکار توقيفية، ولها خصائص واسرار لا يدخلها القياس، فتجب المحافظة على اللفظ الذي وردت به﴾ [2]

يعنی: د اذکار او دعاګانو الفاظ توقيفي وی او د دې خپل اسرار او خصوصيات وی. په قياس او عقل سره د دې ادراک نه شی کيدلې، لهذا په کومو الفاظو سره چه دا د اذکار او دعاګانې وارد دی د هغې رعايت ضروری دې.

سيدنا براء بن عازب رضي الله عنه د رسول الله ﷺ مخکښې دا دعا مکرر کړې وه او ﴿وبرسولك الذي ارسلت﴾ ئې لوستلې وو نو رسول الله ﷺ ئې اصلاح اوفرمائيله او د ﴿برسولك﴾ په ځائې ئې

[1] ارشاد الساری: ۳۱۵/۱۳
[2] فتح الباری ۱۳۵/۱۱

(وبنبيك) لوستلو حكم او كړو

**د اودهٔ کیدو دری سنت** امام نووی رحمه الله فرمائی چه په دې حدیث کښې درې سنن دی. یو د اودهٔ کیدو په وخت اودس. که د مخکښې نه ئې اودس وی نو د نوی اودس ضرورت نشته ځکه چه مقصود نوم علی الطهارت دې کوم چه د مخکښې نه حاصل دې. دویم په ښی طرف باندې سملاستل او دریم ختم بذکر الله. [1]

**د اودهٔ کیدو یو بل ادب**: د اودهٔ کیدو په آدابو کښې یو ادب خو په ښی طرف باندې اودس او د طهارت په حالت کښې اودهٔ کیدل دی او په وړاندې ابوابو کښې د هغه دعاګانو ذکر دې کومې چه د اودهٔ کیدو په وخت د رسول الله ﷺ نه منقول دی. خو قبلې ته د مخ کولو سره د اودهٔ کیدو ذکر نه دې کړې شوې. امام ابوداؤد رحمه الله په سنن کښې باب قائم کړې دې (باب كيف يتوجه الرجل عند النوم) او د هغې د لاندې ئې د سیدنا ابوقلابة رضی الله عنه روایت نقل کړې دې. چه د هغې الفاظ دا دی.

(كَانَ فِرَاشُ النَّبِيِّ -صلى الله عليه وسلم- نَحْوًا مِمَّا يُوضَعُ الإِنْسَانُ فِي قَبْرِهِ وَكَانَ الْمَسْجِدُ عِنْدَ رَأْسِهِ) [2]

یعنی د رسول الله ﷺ بستره به داسې وه څنګه چه انسان د هغه په قبر کښې کیخودلې شی او مسجد (په کوم کښې چه به رسول الله ﷺ مونځ کولو) به د هغوی د سر سره وو د دې حدیث نه د رسول الله ﷺ د اودهٔ کیدو هیئت معلوم شو چه د هغوی مخ به د قبلې طرف ته وو ځکه چه په قبر کښې مړی لره د قبلې طرف ته مخ کولو سره سملولې شی.

## ⑦ باب مَا يَقُولُ إِذَا نَامَ

٥٩٥٣ [3] حَدَّثَنَا قَبِيصَةُ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ عَبْدِ الْمَلِكِ عَنْ رِبْعِيِّ بْنِ حِرَاشٍ عَنْ حُذَيْفَةَ قَالَ كَانَ النَّبِيُّ -صلى الله عليه وسلم- إِذَا أَوَى إِلَى فِرَاشِهِ قَالَ «بِاسْمِكَ أَمُوتُ وَأَحْيَا». وَإِذَا قَامَ قَالَ «الْحَمْدُ لِلَّهِ الَّذِي أَحْيَانَا بَعْدَ مَا أَمَاتَنَا وَإِلَيْهِ النُّشُورُ». [٥٩٥٥، ٥٩٦٥، ٦٩٥٩]

---

[1] شرح صحيح مسلم للنووی، كتاب الذكر والدعاء والتوبة والاستغفار، باب الدعاء عند النوم ٣٤٨/٢

[2] سنن ابی داؤد، كتاب الادب، ابواب النوم، باب كيف يتوجه: ٣١٠/٤، رقم الحديث: ٥٠٤٤ (اسناده ضعيف)

[3] (٥٩٥٣) : الحديث اخرجه البخاری ايضا فی كتاب الدعوات، باب وضع اليد اليمنى تحت الخد الايمن (رقم الحديث : ٦٣١٤)، واخرجه ايضا فی باب ما يقول اذا صح (رقم الحديث : ٦٣٢٤)، واخرجه ايضا فی كتاب التوحيد، باب السوال باسماء الله تعالى والاستعاذة بها (رقم الحديث : ٧٣٩٤)، واخرجه ابوداؤد فی كتاب الادب، باب : ما يقال عند النوم ٣١١/٤ (رقم الحديث : ٥٠٤٩) واخرجه الترمذی فی كتاب الدعوات، باب منه : ٤٨١/٥، (رقم الحديث : ٣٤١٧) واخرجه النسائی فی كتاب عمل اليوم والليلة، باب ما يقول من يفزع فی منامه : ١٩٢/٦ (رقم الحديث : ١٠٦٠٨)، واخرجه ابن ماجة فی كتاب الدعاء، باب ما يدعو به اذا انتبه من الليل ١٢٧٧/٢ (رقم الحديث : ٣٨٨٠) واخرجه مسلم فی كتاب الذكر والدعاء والاستغفار، باب : ما يقول عند النوم واخذ المضجع (رقم الحديث : ٢٧١١)

«ننشزها» البقرة: ۲۵۹: نخرجها

**د اودهٔ کیدو دعا** د اودهٔ کیدو په وخت ماثور دعا په دي باندي کښي امام بخاري رحمه الله بیان فرمائیلي ده. په روایت کښي دی چه رسول الله ﷺ به کله د بستري طرف ته د آرام فرمائیلو دپاره تلو نو ﴿ اللّٰهُمَّ بِاسْمِكَ أَمُوتُ وَأَحْيَا ﴾ به لوستل (یعني اې الله! زه هم ستا په نوم باندي مرم او ژوندي کیږم) او چه کله به پاسیدو نو ﴿ الْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِي أَحْيَانَا بَعْدَ مَا أَمَاتَنَا وَإِلَيْهِ النُّشُور ﴾ (یعني ټول د کمال صفات د الله پاک دپاره دی چه هغه مونږ ته د مرګ راکولو نه پس دوباره ژوند راکړو او هم د هغه طرف ته د مرګ نه پس واپس کیدل دی).

د ﴿ النشور ﴾ معنی بعث بعد الموت او د مرګ نه پس د الله پاک طرف ته د واپس کیدو ده (۱)

[۵۹۵۴] حَدَّثَنَا سَعِيدُ بْنُ الرَّبِيعِ وَمُحَمَّدُ بْنُ عَرْعَرَةَ قَالَا حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ سَمِعَ الْبَرَاءَ بْنَ عَازِبٍ أَنَّ النَّبِيَّ -صلى الله عليه وسلم- أَمَرَ رَجُلًا.

وَحَدَّثَنَا آدَمُ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ حَدَّثَنَا أَبُو إِسْحَاقَ الْهَمْدَانِيُّ عَنِ الْبَرَاءِ بْنِ عَازِبٍ أَنَّ النَّبِيَّ -صلى الله عليه وسلم- أَوْصَى رَجُلًا فَقَالَ «إِذَا أَرَدْتَ مَضْجَعَكَ فَقُلِ اللَّهُمَّ أَسْلَمْتُ نَفْسِي إِلَيْكَ، وَفَوَّضْتُ أَمْرِي إِلَيْكَ، وَوَجَّهْتُ وَجْهِي إِلَيْكَ، وَأَلْجَأْتُ ظَهْرِي إِلَيْكَ، رَغْبَةً وَرَهْبَةً إِلَيْكَ، لَا مَلْجَأَ وَلَا مَنْجَا مِنْكَ إِلَّا إِلَيْكَ، آمَنْتُ بِكِتَابِكَ الَّذِي أَنْزَلْتَ، وَبِنَبِيِّكَ الَّذِي أَرْسَلْتَ. فَإِنْ مُتَّ مُتَّ عَلَى الْفِطْرَةِ».

د سیدنا براء بن عازب رضی الله عنه نه روایت دي چه رسول الله ﷺ یو سړی ته حکم اوکړو او په بل سند کښي دی چه رسول الله ﷺ یو سړی ته وصیت اوکړو او وې فرمائیل چه کله ته بستري ته د تلو اراده اوکړې نو دا دعا لوله

﴿ اللّٰهُمَّ أَسْلَمْتُ وَجْهِي إِلَيْكَ وَفَوَّضْتُ أَمْرِي إِلَيْكَ وَأَلْجَأْتُ ظَهْرِي إِلَيْكَ رَغْبَةً وَرَهْبَةً إِلَيْكَ لَا مَلْجَأَ، وَلَا مَنْجَا مِنْكَ إِلَّا إِلَيْكَ اللّٰهُمَّ آمَنْتُ بِكِتَابِكَ الَّذِي أَنْزَلْتَ وَبِنَبِيِّكَ الَّذِي أَرْسَلْتَ ﴾ پس که ته د دې دعا د لوستلو نه پس مړ شې نو په فطرت به مړ شې

## ⑧ باب وَضْعِ الْيَدِ الْيُمْنَى تَحْتَ الْخَدِّ الْأَيْمَنِ

[۵۹۵۵] حَدَّثَنِي مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ حَدَّثَنَا أَبُو عَوَانَةَ عَنْ عَبْدِ الْمَلِكِ عَنْ رِبْعِيٍّ عَنْ حُذَيْفَةَ - رضى الله عنه قَالَ كَانَ النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - إِذَا أَخَذَ مَضْجَعَهُ مِنَ اللَّيْلِ وَضَعَ يَدَهُ تَحْتَ خَدِّهِ ثُمَّ يَقُولُ «اللَّهُمَّ بِاسْمِكَ أَمُوتُ وَأَحْيَا». وَإِذَا اسْتَيْقَظَ قَالَ «الْحَمْدُ لِلَّهِ الَّذِي أَحْيَانَا بَعْدَ مَا أَمَاتَنَا وَإِلَيْهِ النُّشُورُ». [ر ۵۹۵۳]

د سیدنا حذیفه رضی الله عنه نه روایت دې هغوی بیان کوی چه رسول الله ﷺ به چه کله د شپې بستري ته راتلو نو خپلې لاس به ئې د خپل اننګی د لاندې کیخودلو. بیا به ئې فرمائیل

(۱) النهایة لابن الاثیر، مادة: نشر: ۵/۵٤

﴿اللّٰهُمَّ بِاسْمِكَ أَمُوتُ وَأَحْيَا﴾ او چه كله به د خوب نه بيدار شو نو فرمائيل به ئې ﴿الْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِى أَحْيَانَا بَعْدَ مَا أَمَاتَنَا وَإِلَيْهِ النُّشُور﴾.
رسول الله ﷺ به د اودهٔ كيدو په وخت ښي لاس د اننګۍ مبارك نه لاندې كيخودلو. په روايت الباب كښې لاس د اننګۍ نه د لاندې كيخودلو ذكر دې. د ښى رخسار تصريح پكښې نشته
امام ترمذى رحمه الله د سيدنا براء بن عازب رضى الله عنه نه روايت نقل كړې دې. په هغې كښې دا تصريح دد. په هغې كښې دى ﴿كَانَ رَسُولُ اللّٰهِ - صلى الله عليه وسلم - يَتَوَسَّدُ يَمِينَهُ عِنْدَ الْمَنَامِ ثُمَّ يَقُولُ: رَبِّ قِنِى عَذَابَكَ يَوْمَ تَبْعَثُ عِبَادَكَ﴾[1]، يعنى: رسول الله ﷺ به د اودهٔ كيدو په وخت خپل ښي لاس د سر د لاندې د تكيه په شان كيخودلو بيا به ئې دا دعا لوستله. اې زما ربه: ته ما د خپل عذاب نه محفوظ اوساته چه په كومه ورځ به ته خپل بندګان اوچتوې
چونكه دا روايت د امام بخارى رحمه الله په شرط باندې نه وو. په دې وجه هغوى د خپل عادت مطابق په ترجمة الباب كښې ﴿ الخد اليمنى ﴾ ذكر كولو سره د دې روايت طرف ته اشاره اوفرمائيله

## ⑨ باب النَّوْمِ عَلَى الشِّقِّ الأَيْمَنِ

٥٩٥٦| حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَاحِدِ بْنُ زِيَادٍ حَدَّثَنَا الْعَلاَءُ بْنُ الْمُسَيَّبِ قَالَ حَدَّثَنِى أَبِى عَنِ الْبَرَاءِ بْنِ عَازِبٍ قَالَ كَانَ رَسُولُ اللّٰهِ - صلى الله عليه وسلم - إِذَا أَوَى إِلَى فِرَاشِهِ نَامَ عَلَى شِقِّهِ الأَيْمَنِ ثُمَّ قَالَ «اللّٰهُمَّ أَسْلَمْتُ نَفْسِى إِلَيْكَ، وَوَجَّهْتُ وَجْهِى إِلَيْكَ، وَفَوَّضْتُ أَمْرِى إِلَيْكَ، وَأَلْجَأْتُ ظَهْرِى إِلَيْكَ، رَغْبَةً وَرَهْبَةً إِلَيْكَ، لاَ مَلْجَأَ وَلاَ مَنْجَا مِنْكَ إِلاَّ إِلَيْكَ، آمَنْتُ بِكِتَابِكَ الَّذِى أَنْزَلْتَ، وَنَبِيِّكَ الَّذِى أَرْسَلْتَ. وَقَالَ رَسُولُ اللّٰهِ - صلى الله عليه وسلم - «مَنْ قَالَهُنَّ ثُمَّ مَاتَ تَحْتَ لَيْلَتِهِ مَاتَ عَلَى الْفِطْرَةِ».
د سيدنا براء بن عازب رضى الله عنه نه روايت دې هغوى بيان اوكړو چه رسول الله ﷺ به كله خپلې بسترې ته تلو نو په خپل ښى طرف به اودهٔ كيدو. بيا به ئې فرمائيل.
﴿ قُلِ اللّٰهُمَّ أَسْلَمْتُ وَجْهِى إِلَيْكَ وَفَوَّضْتُ أَمْرِى إِلَيْكَ وَأَلْجَأْتُ ظَهْرِى إِلَيْكَ رَغْبَةً وَرَهْبَةً إِلَيْكَ لاَ مَلْجَأَ، وَلاَ مَنْجَا مِنْكَ إِلاَّ إِلَيْكَ اللّٰهُمَّ آمَنْتُ بِكِتَابِكَ الَّذِى أَنْزَلْتَ وَبِنَبِيِّكَ الَّذِى أَرْسَلْتَ ﴾
رسول الله ﷺ اوفرمائيل: چا چه دا كلمات اووئيل. او بيا هم په دغه شپه باندې وفات شى نو هغه به په فطرت يعنى دين اسلام باندې وفات شى.

[1]) اخرجه الترمذى فى كتاب الدعوات. باب ما جاء فى فى الدعاء اذا اوى الى فراشه ٤٧١/٥، رقم الحديث: ٣٣٩٩. قال الترمذى: هذا حديث غريب من هذا الوجه. ورواه ابوداؤد فى ابواب النوم. باب ما يقال عند النوم: ٣١٠/٤، ٣١١. رقم الحديث: ٥٠٤٥

د ترجمة الباب مقصد د دې نه مخکښې د ﴿ضجع على الشق الايمن﴾ ذکر وو او په دې باب کښې د ﴿نوم على الشق الايمن﴾ ذکر دې. په ضجع او نوم دواړو کښې د عموم خصوص من وجه نسبت دې. ډير کرته انسان سملې خو خوب نه کيږي. او خوب ډير کرته د سملاستلو نه بغير په ناسته ناسته هم راشي [1]

د امام بخارى رحمه الله مقصد دا دې چه سملاستل او اوده کيدل دواړه په ښى طرف باندې کول پکار دى. پس په روايت کښې د ﴿نَامَ عَلَى شِقِّهِ الأَيْمَنِ﴾ الفاظ دى.

(اسْتَرْهَبُوهُمْ) الاعراف: ۱۱۶: مِنَ الرَّهْبَةِ، مَلَكُوتٌ الانعام: ۷۵: مُلْكٌ مَثَلُ رَهَبُوتٌ خَيْرٌ مِنْ رَحَمُوتٍ، تَقُولُ تَرْهَبُ خَيْرٌ مِنْ أَنْ تَرْحَمَ.

امام بخارى رحمه الله فرمائى چه د سورة اعراف په آيت کريمه ﴿فَلَمَّا أَلْقَوْا سَحَرُوا أَعْيُنَ النَّاسِ وَاسْتَرْهَبُوهُمْ وَجَاءُوا بِسِحْرٍ عَظِيمٍ﴾ کښې ﴿اسْتَرْهَبُوهُمْ﴾ د ﴿رهبة﴾ نه مشتق دې. چونکه په حديث الباب کښې ﴿رهبة﴾ لفظ راغلې وو. په دې وجه امام بخارى رحمه الله د خپل عادت مطابق د معمولى مناسبت د وجې نه د ﴿استرهبوهم﴾ طرف ته لاړو. د ﴿رهبة﴾ نه يو لفظ ﴿رهبوت﴾ راځى. وئيلې شى ﴿رهبوت خير من رحموت﴾ يعنى چه ته اويرولې شې. دا د دې نه غوره ده چه په تا باندې رحم اوکړې شى. د ﴿رهبوت﴾ په وزن باندې يو لفظ ﴿ملكوت﴾ دې. کوم چه په سورة انعام آيت ۷۵ کښې واقع دې. ﴿وَكَذَلِكَ نُرِي إِبْرَاهِيمَ مَلَكُوتَ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ﴾ په دې کښې ﴿ملكوت﴾ د ملک په معنى کښې دې. په بعض نسخو کښې دا کلمات نشته. علامه عينى رحمه الله فرمائى ﴿هذا لم يقع فى بعض النسخ، وليس لذكره مناسبة هنا﴾ [2]

## ⑩ باب الدُّعَاءِ إِذَا انْتَبَهَ بِاللَّيْلِ

۵۹۵۷۱ حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ حَدَّثَنَا ابْنُ مَهْدِيٍّ عَنْ سُفْيَانَ عَنْ سَلَمَةَ عَنْ كُرَيْبٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ - رضى الله عنهما - قَالَ بِتُّ عِنْدَ مَيْمُونَةَ فَقَامَ النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - فَأَتَى حَاجَتَهُ، غَسَلَ وَجْهَهُ وَيَدَيْهِ، ثُمَّ نَامَ، ثُمَّ قَامَ فَأَتَى الْقِرْبَةَ فَأَطْلَقَ شِنَاقَهَا، ثُمَّ تَوَضَّأَ وُضُوءًا بَيْنَ وُضُوءَيْنِ لَمْ يُكْثِرْ، وَقَدْ أَبْلَغَ، فَصَلَّى، فَقُمْتُ فَتَمَطَّيْتُ كَرَاهِيَةَ أَنْ يَرَى أَنِّي كُنْتُ أَتَّقِيهِ، فَتَوَضَّأْتُ، فَقَامَ يُصَلِّي، فَقُمْتُ عَنْ يَسَارِهِ، فَأَخَذَ بِأُذُنِي فَأَدَارَنِي عَنْ يَمِينِهِ، فَتَتَامَّتْ صَلاَتُهُ ثَلاَثَ عَشْرَةَ رَكْعَةً ثُمَّ اضْطَجَعَ فَنَامَ حَتَّى نَفَخَ - وَكَانَ إِذَا نَامَ نَفَخَ - فَآذَنَهُ بِلاَلٌ بِالصَّلاَةِ، فَصَلَّى وَلَمْ يَتَوَضَّأْ، وَكَانَ يَقُولُ فِي دُعَائِهِ «اللَّهُمَّ اجْعَلْ فِي قَلْبِي نُورًا، وَفِي بَصَرِي نُورًا،

[1] الابواب والتراجم ۱۲۷/۲

[2] ارشاد السارى ۳۲۰/۱۳، عمدة القارى: ۴۴۴/۲۲

وفي سمعي نورًا، وعن يميني نورًا، وعن يساري نورًا، وفوقي نورًا، وتحتي نورًا، وأمامي نورًا، وخلفي نورًا، واجعل لي نورًا».

قال كريب وسبع في التابوت. فلقيت رجلا من ولد العباس فحدثني بهن، فذكر عصبي ولحمي ودمي وشعري وبشري، وذكر خصلتين. [ر: ۱۱۷]

**د شپې د پاسیدو دعا** په دې باب کښې د شپې د پاسیدو سره د دعا لوستلو بیان دې. د باب په دې اول روایت کښې سیدنا عبدالله بن عباس رضي الله عنهما فرمائی چه زه یوه شپه د سیده میمونه رضي الله عنها سره اوم نو رسول الله ﷺ پاسیدو. د خپل ضرورت نه چه فارغ شو نو خپل مخ مبارک او لاسونه ئې وینځل. بیا اوده شو او بیا ئې پاسیدو سره د مشک طرف ته تشریف راوړلو. د هغې خوله ئې پرانستله بیا ئې د مینځنئ درجې اودس اوکړو. داسې چه زیاتی اوبه ئې استعمال نه کړې خو اوبه ئې خپلو ټولو اندامونو ته اورسولې. بیا رسول الله ﷺ مونځ اولوستلو.

د سیدنا عبدالله بن عباس رضي الله عنهما بیان دې چه زه اوس پاسیدم. خو ما په پاسیدو کښې ناوخته کړو. په دې وجه چه ما دا خبره ناخوښه کڼله چه رسول الله ﷺ دا اوګڼړی چه زه هغوی ته ګورم. پس ما اودس اوکړو. رسول الله ﷺ اودریدلو او مونځ ئې شروع کړو نو زه د هغوی ګس طرف ته اودریدم. هغوی زما غوږ اونیولو او ښی طرف ته ئې راوستلم رسول الله ﷺ پوره دیارلس رکعته مونځ اوکړو. بیا سملاستلو او اوده شو. تردې چه د هغوی د اوده کیدو آوازونه راتلل. چه کله به رسول الله ﷺ اوده کیدو نو د خړاری آواز به راتلو. د دې نه پس سیدنا بلال رضي الله عنه هغوی ته د مانځه خبر ورکړو نو هغوی مونځ اوکړو خو اودس ئې اونکړو او په خپله دعا کښې به ئې دا فرمائیل:

﴿اللهم اجعل في قلبي نورا وفي بصري نورا وفي سمعي نورا وعن يميني نورا وعن يساري نورا وفوقي نورا وتحتي نورا وأمامي نورا وخلفي نورا واجعل لي نورا﴾

یعنی اې الله! زما په زړه کښې نور پیدا کړه. زما په سترګو کښې نور پیدا کړه. زما په غوږونو کښې نور پیدا کړه. زما ښی طرف ته نور پیدا کړه. زما ګس طرف ته نور پیدا کړه. زما د پاسه نور پیدا کړه. زما نه لاندې نور پیدا کړه. زما مخې ته نور پیدا کړه. زما نه شاته نور پیدا کړه. او ته ما ته د ټولو انواراتو جامع عظیم نور راکړه.

**قوله: فأطلق شناقها:** ﴿شناق﴾ نه هغه رسئ مراد ده چه په هغې سره د مشک خوله تړلې شی

﴿وقد أبلغ أی أوصل الماء الی ما یجب ایصاله الیه﴾ یعنی چرته چه اوبه رسول ضروری وو. هلته ئې اوبه اورسولې.

**﴿فتمطيت﴾:** یعنی ما ناوخته کړو. تاخیر مې اوکړو

**﴿انی کنت ارقبه﴾:** ﴿ارقب﴾ معنی ئې د نګرانئ کولو ده. په یو رایت کښې د ﴿اتقیه﴾ دې. د

تنقيب معنى د تفتيش دي (۱)

**قوله: ﴿فتتامت صلاته﴾:** تتامت لازم استعماليږي په معنى د ﴿تكاملت﴾ مكمل كيدل.

**د جهات ستة او اندامونو دپاره د نور دعا غوښتلو وجه** : رسول الله ﷺ د خپل بدن د اندامونو دپاره اود خپل جهات ستة دپاره د نور دعا اوغوښتله. علامه قسطلاني رحمه الله د شيخ اكمل الدين په حوالې سره د دې تشريح ليكى !

﴿ اما النور الذى عن يمينه، فهو المؤيد له والمعين على ما يطلبه من النور الذى بين يديه، والذى عن يساره، نور الوقاية، والذى خلفه فهو النور الذى يسعى بين يدى من يقتدى به ويتبعه، فهولهم من بين ايديهم، وهو له صلى الله عليه وسلم من خلفه، فيتبعونه على بصيرة، كما ان المتبع على بصيرة، قال الله تعالى ﴿ قل هذه سبيلى ادعوالى الله على بصيرة انا ومن اتبعنى ﴾ واما النور الذى فوقه فهوتنزل نور الهى قدسى بعلم غريب لم يتقدمه خبر، ولا يعطيه نظر، وهو الذى يعطى من العلم بالله ماترده الادلة العقلية، اذالم يكن لها ايمان، فاذا كان لها ايمان نورانى قبلته بتاويل لتجمع بين الامرين، وقوله : واجعل لى نورا : يجوز انه ادا نورا عظيما جامعا للانوار كلهايعنى التى ذكرها هنا، والتى لم يذكرها كانوار السماء الالهية، وانوار الارواح وغيره ذلك ﴾ (۲)

يعنى : هر چه هغه نور دي كوم چه د رسول الله ﷺ ښى طرف ته دي نو هغه د هغه نور په طلب كښې د رسول الله ﷺ موئد او مددګار دي كوم چه د رسول الله ﷺ مخې ته دې او هغه نور كوم چه د رسول الله ﷺ ګس طرف ته دې نو هغه حفاظتى نور دې او هغه نور كوم چه د رسول الله ﷺ نه شاته دې هغه داسې نور دې كوم چه د رسول الله ﷺ د منونكو او تابعدارو مخې ته روان وى. نو دا داسې نور دې كوم چه د رسول الله ﷺ د تابعدارو دپاره دې كوم چه د هغوى نه وړاندې وړاندې وى او هم دا نور د رسول الله ﷺ دپاره دې كوم چه د رسول الله ﷺ نه شاته شاته وى. چه د هغې د وجې نه صحابه كرام رضي الله عنهم په بصيرت او فهم سره د رسول الله ﷺ اتباع كوى پس د الله پاک فرمان دې : تاسو اوفرمايئ دا زما لاره ده چه زه د الله پاک طرف ته رابللې كوم په بصيرت باندې زه هم او زما تابعدار هم

او پاتې شو هغه نور كوم په رسول الله ﷺ دپاسه دې نو د هغې نه مراد هغه قدسى او الهى نور دې كوم چه د داسې عجيب او ناآشنا علم راوړلو سره راكوزيږى چه د هغې مخكښې نه څه خبر وركړې شوې دې او نه چاته عقل او نظر هغه وركوى دا هغه نور دې كوم چه د الله پاک سره متعلق داسې علم وركوى چه د هغې ادلة عقلية ترديد كوى كله چه هغه د نور ايمان نه خالى وى او كه هغه ادلة عقليه په نور ايمان باندې كامل وى نو هغه ئې قبلوى.

لهذا هغه عقل او نقل دواړو لره جامع وى. د ﴿واجعل لى نورا﴾ دا معنى كيدې شى چه رسول الله ﷺ هغه عظيم نور مراد كړې دې كوم چه دې ټولو انواراتو لره جامع دې. هغه انوراتو ته

---

۱) النهاية لابن الاثير. مادة : نقب : ۱۰۱/۵

۲) ارشاد السارى: ۳۲۱/۱۳

هم کوم چه په دعا کښې مذکور دی. او هغې ته هم د کومو ذکر چه رسول الله ﷺ نه دې کړې. مثلاً اسماني. الهي انوارات. د ارواح انوارات

**قوله:** ﴿قَالَ كُرَيْبٌ وَسَبْعٌ فِي التَّابُوتِ فَلَقِيتُ رَجُلاً مِنْ وَلَدِ الْعَبَّاسِ فَحَدَّثَنِي بِهِنَّ فَذَكَرَ عَصَبِي وَلَحْمِي وَدَمِي وَشَعَرِي وَبَشَرِي وَذَكَرَ خَصْلَتَيْنِ﴾:

**د تابوت تشریح:** کریب وائی چه اووه کلمات په تابوت کښې دی. دلته د تابوت په باره کښې درې اقوال مشهور دی:

① د تابوت نه سینه مراد ده. د کریب مطلب دا دې چه رسول الله ﷺ چه د مختلفو څیزونو دپاره د نور کومه دعا غوښتلې ده. په هغې کښې د اووه نورو څیزونو دپاره هم دعا کړې شوې ده. هغه زما په سینه کښې خو دی خو ماته یاد نه دی پاتې. پس زه د دې نه پس د عباس رضي الله عنهما په اولاد کښې د یو سړی سره ملاؤ شوم نو هغوی هغه اووه څیزونه ماته بیان کړل. پس هغوی عصب. لحم. دم. شعر او بشر ذکر اوکړو (چه رسول الله ﷺ اللهم اجعل في عصبي نورا، وفي لحمي نورا، وفي دمي نورا، وفي شعري نورا وفي بشري نورا ﴾ هم فرمائیلي وو. او د دوه نورو خصلتونو ذکر ئې اوکړو [1] د دې خصلتونو یا عظم او مخ (هډوکي او مغز) مراد دې. یا شحم او عظم (وازګه او هډوکي) مراد دي دغه شان دا ټول اووه څیزونه جوړیږی [2].

② دویم قول د علامه ابن الجوزی رحمه الله دې. هغه دا چه د تابوت نه صندوق مراد دې او مطلب دا دې چه پاتې اووه ماته یاد نه دی. بلکه په صندوق کښې دننه لیکلې شوې محفوظ دی [3].

③ دریم قول دا دې چه د تابوت نه بدن مراد دې او د کریب مطلب دا دې چه رسول الله ﷺ د خپلو جهات ستة دپاره د نور دعا غوښتلې ده او د اووه داسې څیزونو دپاره ئې هم دعا اوغوښتله چه د هغې تعلق د جهات او معانی سره نه دې بلکه د انسانی بدن سره دې. پس د سیدنا عباس رضي الله عنه په اولاد کښې یو سړی د هغې وضاحت په عصبي، لحمي ... وغیره زما په تپوس کولو باندې اوکړو [4].

**قوله:** ﴿فَلَقِيتُ رَجُلاً مِنْ وَلَدِ الْعَبَّاسِ﴾: شارحینو لیکلې دی چه د رجل نه مراد علی بن عبدالله بن عباس دې [5]

په بعض روایاتو کښې د ﴿اللَّهُمَّ أَعْظِمْ لِي نُورًا وَأَعْطِنِي نُورًا﴾ اضافه هم ده [6].

---

[1] عمدة القاری ۲۸۷/۲۲، فتح الباری : ۱۴۱/۱۱، ارشاد الساری : ۳۲۲/۱۳
[2] عمدة القاری ۲۸۷/۲۲، فتح الباری : ۱۴۲/۱۱، ارشاد الساری : ۳۲۲/۱۳
[3] عمدة القاری ۲۸۷/۲۲، فتح الباری : ۱۴۱/۱۱، ارشاد الساری : ۳۲۲/۱۳
[4] فتح الباری : ۱۴۲/۱۱، ارشاد الساری : ۳۲۲/۱۳
[5] فتح الباری : ۱۴۲/۱۱، ارشاد الساری : ۳۲۲/۱۳
[6] الحدیث اخرجه الامام مسلم فی کتاب صلاة المسافرین وقصرها، باب الدعاء ... [بقیه برصفحه آئنده...

حافظ ابن حجر رحمه الله ليکي

﴿ ويجتمع من اختلاف الروايات كما قال ابن العربي خمس وعشرون خصلة ﴾ [1] يعنى چه په مختلف رواياتو کښې دا ذکر شوې خصلتونه راجمع کړې شي نو تعداد ئې پنځويشتو (۲۵) ته رسيږي لکه چه ابن العربى رحمه الله فرمائيلې دى

علامه طيبى رحمه الله فرمايى:

﴿ معنى طلب النور للأعضاء عضواً عضواً أن يتحلى بأنوار المعرفة والطاعة ويتعرى عن الظلمة الجهالة والمعصية لأن الإنسان ذو سهو وطغيان رأى أنه قد أحاطت به خطيئة ظلمات الحيلة معتورة عليه من فرقه إلى قدمه والأدخنة الثائرة من ميزان الشهوات من جوانبه ورأى الشيطان يأتيه من الجهات الست بوساوسه وشبهاته ظلمات بعضها فوق بعض لم ير للتخليص منها مساغاً إلا بأنوار سادة لتلك الجهات.... وكل هذه الأنوار راجعة إلى هداية وبيان وضياء للحق وإلى مطالع هذه الأنوار قوله {الله نور السماوات والأرض ـ إلى قوله ـ نور على نور يهدى الله لنوره من يشاء} ﴾ [2]

يعنى: د يو اندام دپاره د نور د دعا غوښتلو مطلب دا دې چه دا اندامونه د الله پاک په معرفت او طاعت سره منور او روښانه شي او د جهالت او ګناهونو تيرې د هغوی نه ختمې شي ځکه چه انسان د سرکشئ او خطاء کالبوت دې. رسول الله ﷺ اوکتله چه د فطرت او جبلت تيرو انسان د تندى نه تر خپو پورې مسلسل ګير کړې دې. د شهوات نفسانيه د اور نه اوچتيدونکو لوږو هغه د هر طرف نه راګير کړې دې. رسول الله ﷺ اوکتل چه شيطان انسان ته د شپږو طرفونو نه د خپلو وسوسو او شبهاتو سره راځى. غرض دا چه انسان ښکته پورته په سختو تيرو کښې ډوب دې. نو رسول الله ﷺ د دې نه د خلاصى دپاره صرف يوه ذريعه اوموندله. يعنى دا عظيم انوارات کوم چه د شپږو واړو طرفونو دپاره محافظ او پرده ده. دا ټول انوارات د هدايت او حق د رڼا او بيان طرف ته راجع دى او د دې انواراتو د مطالع طرف ته دالله پاک دا فرمان رهنمائى کوى ﴿ الله نور السموات والارض ﴾ الله پاک نور دې د اسمانونو او د زمکو. ﴿ نور على نور ﴾ رڼا دپاسه رڼا. الله پاک چه په خپله رڼا سره چاته غواړى هدايت کوى

[۵۹۵۸] حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ سَمِعْتُ سُلَيْمَانَ بْنَ أَبِي مُسْلِمٍ عَنْ طَاوُسٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ كَانَ النَّبِيُّ -صلى الله عليه وسلم- إِذَا قَامَ مِنَ اللَّيْلِ يَتَهَجَّدُ قَالَ « اللَّهُمَّ لَكَ الْحَمْدُ ، أَنْتَ نُورُ السَّمَوَاتِ وَالأَرْضِ وَمَنْ فِيهِنَّ ، وَلَكَ الْحَمْدُ أَنْتَ قَيِّمُ السَّمَوَاتِ

...بقيه ازحاشيه گذشته] فى صلاة الليل وقيامه : ۵۳۰/۱. رقم الحديث : ۱۸۹. ۱۹۰. والحاكم فى مستدركه. كتاب معرفة الصحابة. ذكر عبدالله بن عباس بن عبدالمطلب رضى الله تعالى عنهما : ۵۳۶/۳. ۵۳۵.

[1]) فتح البارى : ۱۴۲/۱۱

[2]) شرح الطيبى. كتاب الصلاة . باب الليل : ۹۸/۳

وَالأَرْضِ وَمَنْ فِيهِنَّ، وَلَكَ الْحَمْدُ، أَنْتَ الْحَقُّ وَوَعْدُكَ حَقٌّ، وَقَوْلُكَ حَقٌّ، وَلِقَاؤُكَ حَقٌّ، وَالْجَنَّةُ حَقٌّ، وَالنَّارُ حَقٌّ، وَالسَّاعَةُ حَقٌّ، وَالنَّبِيُّونَ حَقٌّ، وَمُحَمَّدٌ حَقٌّ، اللَّهُمَّ لَكَ أَسْلَمْتُ وَعَلَيْكَ تَوَكَّلْتُ وَبِكَ آمَنْتُ، وَإِلَيْكَ أَنَبْتُ، وَبِكَ خَاصَمْتُ، وَإِلَيْكَ حَاكَمْتُ، فَاغْفِرْ لِي مَا قَدَّمْتُ وَمَا أَخَّرْتُ، وَمَا أَسْرَرْتُ، وَمَا أَعْلَنْتُ، أَنْتَ الْمُقَدِّمُ وَأَنْتَ الْمُؤَخِّرُ لاَ إِلَهَ إِلاَّ أَنْتَ - أَوْ- لاَ إِلَهَ غَيْرُكَ». [ر: ۱۰۶۹]

د سيدنا ابن عباس رضي الله عنهما نه روايت دې، هغوی فرمائی چه رسول الله ﷺ به کله د شپې پاسيدو نو تهجد به ئې کول او فرمائيل به ئې ﴿ اللهم لك الحمد ﴾ اې الله! ستا دپاره ټول تعريفونه دی. ته د آسمانونو او د زمکو. او ټوم کائنات چه د دې دواړو ترمينځه دې. د هغې نور ئې، ټول تعريفونه ستا دپاره دی، ته د اسمانونو او د زمکې او څه چه د دې دواړو ترمينځه دی. د هغې نګران ئې، او ټول تعريفونه ستا دپاره دی، ستا ذات. ستا وعده. ستا قول او ستا ملاقات حق دی. جنت. جهنم. قيامت. انبياء عليهم السلام او محمد رسول الله ﷺ حق دی. اې الله! ما ستا اطاعت اوکړو، په تا باندې مې ځان اوسپارلو. په تا باندې مې ايمان راولو. هم ستا طرف ته زما واپس کيدل دی او هم ستا په توفيق باندې ما جهګړا اوکړه. هم په تا باندې زما فيصله کول دی. د وړاندې، روستو. پټ او ښکاره ګناهونو راته بخښنه اوکړه. هم ته وړاندې کونکې او هم ته روستو کونکې ئې، او ستا نه سوا بل څوک د عبادت حقدار نشته

دا دويمه دعا ده کومه چه به رسول الله ﷺ د شپې د تهجد په وخت پاسيدلو سره کوله. د مختلف مواقع دپاره د رسول الله ﷺ نه دعاګانې منقول دی. په يو موقع باندې د يو نه زياتې دعاګانې هم منقول دی. پس د شپې پاسيدو سره به رسول الله ﷺ دا دعاګانې هم کولې. او د دې نه په مخکښې روايت کښې مذکور دعا به ئې هم لوستله. دا حديث د کتاب الصلاة په آخر کښې د تهجد په ابوابو کښې تير شوې دی. (۱)

## ⑪ باب التَّكْبِيرِ وَالتَّسْبِيحِ عِنْدَ الْمَنَامِ

۵۹۵۹ | حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ حَرْبٍ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنِ الْحَكَمِ عَنِ ابْنِ أَبِي لَيْلَى عَنْ عَلِيٍّ أَنَّ فَاطِمَةَ - عَلَيْهِمَا السَّلاَمُ - شَكَتْ مَا تَلْقَى فِي يَدِهَا مِنَ الرَّحَى، فَأَتَتِ النَّبِيَّ - صلى الله عليه وسلم - تَسْأَلُهُ خَادِمًا، فَلَمْ تَجِدْهُ، فَذَكَرَتْ ذَلِكَ لِعَائِشَةَ، فَلَمَّا جَاءَ أَخْبَرَتْهُ. قَالَ فَجَاءَنَا وَقَدْ أَخَذْنَا مَضَاجِعَنَا، فَذَهَبْتُ أَقُومُ فَقَالَ «مَكَانَكِ». فَجَلَسَ بَيْنَنَا حَتَّى وَجَدْتُ بَرْدَ قَدَمَيْهِ عَلَى صَدْرِي فَقَالَ «أَلاَ أَدُلُّكُمَا عَلَى مَا هُوَ خَيْرٌ لَكُمَا مِنْ خَادِمٍ، إِذَا أَوَيْتُمَا إِلَى فِرَاشِكُمَا، أَوْ أَخَذْتُمَا مَضَاجِعَكُمَا، فَكَبِّرَا ثَلاَثًا وَثَلاَثِينَ، وَسَبِّحَا ثَلاَثًا وَثَلاَثِينَ، وَاحْمَدَا ثَلاَثًا وَثَلاَثِينَ، فَهَذَا خَيْرٌ لَكُمَا مِنْ خَادِمٍ».

(۱) اخرجه الامام البخاری فی کتاب الصلاة، باب التهجد بالليل : ۲۳۸، رقم الحديث : ۱۱۲۰

وَعَنْ شُعْبَةَ عَنْ خَالِدٍ عَنِ ابْنِ سِيرِينَ قَالَ التَّسْبِيحُ أَرْبَعٌ وَثَلَاثُونَ. [ر: ۲۹۴۵]

**د اوده کیدو په وخت د تسبیح فضیلت** د اوده کیدو نه مخکښې د ﴿سبحان الله، الحمد لله او الله اکبر﴾ فضیلت بیان کړې شوې دې، روایت الباب مشهور دې چه سیده فاطمه رضي الله عنها د رسول الله ﷺ نه خادم او غوښتلو ځکه چه خپله میچن کولو کولو سره د هغوی لاسونه پولی شوې وو. رسول الله ﷺ د هغې د راتلو په وخت کور کښې نه وو. سیده عائشه رضي الله عنها خبر ورکړو نو رسول الله ﷺ د هغې کور ته لاړو. هغوی ښځه خاوند اوده کیدل. د رسول الله ﷺ په لیدو باندې سیده فاطمه رضي الله عنها پاسیدله نو رسول الله ﷺ منع کړه او په بې تکلفئ سره د دواړو ښځه او خاوند ترمینځه تشریف فرما شو او هغوی ته ئې اوفرمائیل چه تاسو دواړو ته د خادم نه زیات غوره څیز نه ښائم؟ چه کله تاسو اوده کیږئ نو دړې دیرش کرته الله اکبر. دړې دیرش کرته سبحان الله او دړې دیرش کرته الحمد الله وایئ. دا ستاسو دپاره د خادم نه غوره دی.

د شعبه په روایت کښې ۳۴ کرته سبحان الله دې، په بعض روایاتو کښې الحمد لله ۳۴ کرته دی. او په اکثر روایاتو کښې الله اکبر ۳۴ کرته راغلې دې (۱)

په روایت کښې بیان کړې شوې دې ذکر ته تسبیحات فاطمه وئیلې شي. په ډیرو احادیثو کښې د هر فرض مانځه نه پس د تسبیحات فاطمه فضیلت راغلې دې. (۲) دلته د اوده کیدو په وخت د دې د لوستلو فضیلت راغلې دې.

رسول الله ﷺ دا د خادم نه غوره کړل. چونکه دې وخت کښې هغوی سره د ورکولو دپاره خادم موجود نه وو. په دې وجه رسول الله ﷺ د هغې په بدل کښې هغوی ته یو داسې ذکر بیان کړو کوم چه د هغوی دپاره اخروی اعتبار سره فائده مند وو. (۳)

د رسول الله ﷺ دې دواړو ته ورتلل او د هغوی ترمینځه داسې کیناستل بې تکلفی او د ډیر محبت د وجې نه وو. حافظ ابن حجر رحمه الله لیکی:

﴿وفیه جواز دخول الرجل علی ابنته وزوجها وجلوسه بینهما فی فراشهما ومباشرة قدمیه بعض جسدهما.... ودفع بعضهم الاستدلال المذکور لعصمته صلی الله علیه وسلم فلا یلحق به غیره ممن لیس بمعصوم﴾ (۴)

یعنی د دې حدیث نه معلومیږی چه انسان خپلې لور او د هغې خاوند ته ورتلې شی. د هغوی ترمینځه کیناستلې شی او خپلې خپې د هغوی د بدن سره لګولې شی... بعض حضراتو دا مذکوره استدلال په دې وئیلو سره مسترد کړې دې چه رسول الله ﷺ معصوم

---

(۱) اخرجه مسلم فی کتاب الذکر والدعاء والتوبة والاستغفار، باب التسبیح اول النهار وعند النوم: ۲۰۹۱/۴، ۲۰۹۲، رقم الحدیث ۲۷۲۷، ۲۷۲۸، والترمذی فی کتاب الدعوات، باب ما جاء فی التسبیح والتکبیر والتحمید عند المنام: ۴۷۷/۵، ۴۷۹، رقم الحدیث: ۳۴۱۲، ۳۴۱۳، ۳۴۰۸

(۲) سنن الترمذی، کتاب الدعوات، باب ما جاء فی التسبیح والتکبیر والتحمید عند المنام: ۴۷۹/۵، رقم الحدیث: ۲۴۱۲، ۲۴۱۳

(۳) فتح الباری ۱۴۹/۱۱

(۴) فتح الباری ۱۴۹/۱۱

دي. لهذا يو غير معصوم لره په رسول الله ﷺ باندې نه شي قياس كيدلې
د سيدنا على رضي الله عنه نه منقول دى چه د رسول الله ﷺ د دې اذكار ښودلو نه پس دا وظيفه كله په ژوند كښې هم نه ده پاتې شوې. چه كله د هغوى نه تپوس اوكړې شو چه د جنګ صفين په موقع باندې هم نه دې پاتې شوې؟ نو هغوى اووې : او د صفين په شپه هم نه دى پاتې شوې (١)

## ⑫ باب التَّعَوُّذِ وَالْقِرَاءَةِ عِنْدَ الْمَنَامِ

٥٩٦٠ | حَدَّثَنَا عَبْدُ اللهِ بْنُ يُوسُفَ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ قَالَ حَدَّثَنِي عُقَيْلٌ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ أَخْبَرَنِي عُرْوَةُ عَنْ عَائِشَةَ -رضي الله عنها- أَنَّ رَسُولَ اللهِ -صلى الله عليه وسلم- كَانَ إِذَا أَخَذَ مَضْجَعَهُ نَفَثَ فِي يَدَيْهِ، وَقَرَأَ بِالْمُعَوِّذَاتِ، وَمَسَحَ بِهِمَا جَسَدَهُ. [ر: ٤١٧٥]

د سيده عائشه رضي الله عنها نه روايت دې چه رسول الله ﷺ به كله خپلې بسترې ته تشريف يوړلو نو په خپلو دواړو لاسونو باندې به ئې پو كړل او معوذات (سورة اخلاص. سورة فلق. سورة ناس) لوستلو سره په خپل بدن باندې دواړه لاسونه راښكل.

**د اودهٔ كيدو په وخت نور ذكرونه** : رسول الله ﷺ به د اودهٔ كيدو په وخت سورة اخلاص. سورة فلق اوسورة الناس لوستلو. په حديث كښې درې واړوته تغليباً معوذات وئيلې شوې دى (٢)
رسول الله ﷺ نه د دې درې سورتونو نه علاوه د اودهٔ كيدو په وخت آية الكرسى. د سورة بقرة آخرى آيتونه. سورة كافرون. سورة ملک. سورة الم تنزيل لوستل هم ثابت دى (٣)

هم دغه شان د ﴿اعوذ بكلمات الله التامة من شر ما خلق﴾ وئيلې هم راغلى دى چه د هغې ترجمه دا ده زه د الله پاک د كامل كلماتو سره د هغه د مخلوق د شر نه پناه غواړم (٤)
امام ابو داؤد رحمه الله د سيدنا على رضي الله عنه په حوالې سره دا دعا هم نقل كړې ده:
﴿اللَّهُمَّ إِنِّي أَعُوذُ بِوَجْهِكَ الْكَرِيمِ وَكَلِمَاتِكَ التَّامَّةِ مِنْ شَرِّ مَا أَنْتَ آخِذٌ بِنَاصِيَتِهِ﴾ (٥) يعنى اې الله: زه ستا د كريم ذات او ستا د كامل كلماتو سره د هر هغه څيز د شر نه پناه نيسم، چه د هغه تندې ستا په قبضه كښې دې.

---

(١) صحيح مسلم، كتاب الذكر والدعاء والتوبة والاستغفار، باب التسبيح اول النهار وعند النوم، ٢٠٩١/٤، ٢٠٩٢، رقم الحديث : ٢٧٢٧

(٢) عمدة القارى ٢٨٩/٢٢، ارشاد السارى ٣٢٥/١٣

(٣) سنن الترمذى، كتاب الدعوات، باب ما جاء فيمن يقراء القرآن عند المنام، ٤٧٤/٥، ٤٧٥، (رقم الحديث: ٣٤٠٣، ٣٤٠٤، ٣٤٠٥)

(٤) فتح البارى ١٥١/١١، سنن ابى داؤد، ابواب النوم، باب ما يقال عند النوم : ٣١٢/٤

(٥) سنن ابي داؤد، ابواب النوم، باب ما يقال عند النوم ٣١٢/٤، رقم الحديث ٥٠٥٢ (وتمامه : اللَّهُمَّ أَنْتَ تَكْشِفُ الْمَغْرَمَ وَالْمَأْثَمَ اللَّهُمَّ لاَ يُهْزَمُ جُنْدُكَ وَلاَ يُخْلَفُ وَعْدُكَ وَلاَ يَنْفَعُ ذَا الْجَدِّ مِنْكَ الْجَدُّ سُبْحَانَكَ وَبِحَمْدِكَ. واسناده ضعيف)

## باب:

[۵۹۶۱] [۱] حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ يُونُسَ حَدَّثَنَا زُهَيْرٌ حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللَّهِ بْنُ عُمَرَ حَدَّثَنِي سَعِيدُ بْنُ أَبِي سَعِيدٍ الْمَقْبُرِيُّ عَنْ أَبِيهِ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ -صلى الله عليه وسلم- «إِذَا أَوَى أَحَدُكُمْ إِلَى فِرَاشِهِ فَلْيَنْفُضْ فِرَاشَهُ بِدَاخِلَةِ إِزَارِهِ، فَإِنَّهُ لاَ يَدْرِي مَا خَلَفَهُ عَلَيْهِ، ثُمَّ يَقُولُ بِاسْمِكَ رَبِّي وَضَعْتُ جَنْبِي، وَبِكَ أَرْفَعُهُ، إِنْ أَمْسَكْتَ نَفْسِي فَارْحَمْهَا، وَإِنْ أَرْسَلْتَهَا فَاحْفَظْهَا بِمَا تَحْفَظُ بِهِ عِبَادَكَ الصَّالِحِينَ».

تَابَعَهُ أَبُو ضَمْرَةَ وَإِسْمَاعِيلُ بْنُ زَكَرِيَّاءَ عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ. وَقَالَ يَحْيَى وَبِشْرٌ عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ عَنْ سَعِيدٍ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ - صلى الله عليه وسلم -. وَرَوَاهُ مَالِكٌ وَابْنُ عَجْلاَنَ عَنْ سَعِيدٍ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ -صلى الله عليه وسلم- [۲۹۵۸]

**د اودهٔ کیدو د یو بل ادب بیان** : دا باب بغیر د ترجمې نه دی. په بعض نسخو کښې دا باب نشته. حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی چه باب دلته کیدل پکار دی. هم دا راجح ده [۲]

په دې باب کښې یو بل ادب د اودهٔ کیدو متعلق بیان کړې شوې دې او هغه دا چه د اودهٔ کیدو نه مخکښې بسترې لره څنډل پکار دی. پس په روایت کښې د رسول الله ﷺ ارشاد دې چه کله په تاسو کښې څوک د خپلې بسترې طرف ته د اودهٔ کیدو دپاره راشی نو هغه دې د خپل لنګ په دننه حصه باندې بستره او څنډی ځکه چه هغه ته معلومه نه ده چه د هغه نه شاته په بستره کښې څه ورداخل شوې دې. او بیا دې دا دعا اولولی:

﴿ بِاسْمِكَ رَبِّ وَضَعْتُ جَنْبِي وَبِكَ أَرْفَعُهُ إِنْ أَمْسَكْتَ نَفْسِي فَارْحَمْهَا وَإِنْ أَرْسَلْتَهَا فَاحْفَظْهَا بِمَا تَحْفَظُ بِهِ الصَّالِحِينَ ﴾

یعنی اې زما ربه ! ما ستا په نوم باندې خپل اړخ کیخودلو او هم ستا په نوم باندې به دا اوچتوم. که تا زما روح منع کړو (ماته دې مرګ راکړو)، نو ته په دې باندې رحم اوکړه او که تا راواپس کولو سره پریخودلو نو د دهٔ حفاظت اوکړه په هغه څیز سره چه په کوم سره ته د صالحینو حفاظت کوې

---

[۱] (۵۹۶۱) : الحديث اخرجه البخارى ايضا فى كتاب التوحيد. باب السؤال باسماء الله تعالى والاستعاذة بها (رقم الحديث ۷۳۹۴). واخرجه مسلم فى كتاب الذكر والدعا. باب : ما يقول عند النوم واخذ المضجع ۲۰۸۴/۴. (رقم الحديث : (۲۷۱۴). واخرجه ابوداؤد فى كتاب الادب. باب : ما يقال عند النوم : ۳۱۱/۴. (رقم الحديث : ۵۰۵۰). واخرجه النسائى فى كتاب عمل اليوم والليلة. باب : ما يقول من يفزع من منامه : ۹۸/۶. (رقم الحديث : ۱۰۶۲۷). واخرجه الترمذى فى كتاب الدعوات. باب منه (دعا : باسمک ربى وضعت جنبى) رقم الحديث : ۳۴۰۱). واخرجه ابن ماجة فى كتاب الدعاء. باب : ما يدعو به اذا اوى الى فراشه (رقم الحديث : ۳۸۷۴)

[۲] فتح البارى : ۱۵۱/۱۱

امام بخاری رحمه الله د روایت په آخر کښې متابعات ذکر کړې دی. د ابو ضمره انس بن عیاض متابعت امام بخاری رحمه الله په الادب المفرد کښې او امام مسلم رحمه الله په صحیح کښې موصولا نقل کړې دی [۱]، د اسماعیل بن زکریا متابعت حارث بن ابی سلمة په خپل مسند کښې موصولا نقل کړې دی [۲]، د یحیی بن سعید تعلیق امام نسائی رحمه الله او د بشیر بن المفضل تعلیق مسدد موصولا نقل کړې دی [۳]

**قوله:** ﴿وَرَوَاهُ مَالِكٌ، وَابْنُ عَجْلَانَ، عَنْ سَعِيدٍ﴾: امام مالک او محمد بن عجلان هم دا ذکر شوې حدیث د سعید مقبری نه نقل کړې دی. د امام مالک رحمه الله روایت وړاندې په کتاب التوحید کښې موصولا راروان دې [۴]، او د ابن عجلان روایت امام احمد رحمه الله په مسند کښې موصولا نقل کړې دې [۵]

**د لنګ په دننه حصه باندې د بسترې څنډلو حکمت:** ﴿فَلْيَنْفُضْ فِرَاشَهُ بِدَاخِلَةِ إِزَارِهِ﴾ خپله بستره د لنګ په دننه حصه باندې څنډل پکار دی. مطلب دا دې چه بسترې ته د تلونه مخکښې دې لنګ پرانیزی او د هغې په دننه غاړه باندې دې بستره او څنډی. د دننه غاړې نه هغه طرف مراد دې کوم چه د بدن سره لګیدلې وی. په دې حصې سره د څنډلو حکمت بیانولو سره علامه قسطلانی رحمه الله لیکی:

﴿وحكمة ذلك لعله لسر طبي يمنع من قرب بعض الحيوانات استاثر الشارع بعلمه﴾ [۶].

یعنی: د دې حکمت کیدې شی چه یو طبی راز وی. چه د دې د وجې نه بعض حیوانات بسترې ته نزدې نه شی راتلې. شارع د دې علم صرف خپل ځان پورې محدود ساتلې دې.

او علامه کرمانی رحمه الله لیکی:

﴿ولينفض ويده مستورة بطرف ازاره لئلا يحصل في يده مكروه، ان كان شيء هناك﴾ [۷].

یعنی: د څنډلو په وخت انسان له خپل لاس د لنګ په طرف باندې پټول پکار دی چه د هغه لاس ته څه تکلیف او نه رسیږی که په بستره کښې داسې څه څیز وی.

او علامه بیضاوی رحمه الله فرمائی: ﴿انما امر بالنفض بها، لان الذي يريد النوم يحل بيمينه خارج الازار وتبقى الداخلة معلقة، فينفض بها﴾ [۸].

---

[۱]) فتح الباری ۱۵٤/۱۱. عمدة القاری ۲۹۰/۲۲. ارشاد الساری ۳۲۶/۱۳

[۲]) فتح الباری ۱۵٤/۱۱. عمدة القاری ۲۹۰/۲۲. ارشاد الساری ۳۲۶/۱۳

[۳]) فتح الباری ۱۵٤/۱۱. عمدة القاری ۲۹۰/۲۲. ارشاد الساری ۳۲۶/۱۳

[٤]) صحیح البخاری، کتاب التوحید، باب السؤال باسماء الله تعالی والاستعاذة بها (رقم الحدیث ۷۳۹۳)

[۵]) مسند احمد: ۲۹۵/۲. مرویات ابی هریرة رضی الله تعالی عنه

[٦]) ارشاد الساری ۳۲۶/۱۳

[۷]) شرح الکرمانی ۱۳۵/۲۲

[۸]) فتح الباری ۱۵۲/۱۱. عمدة القاری ۲۸۹/۲۲. ارشاد الساری ۳۲۶/۱۳

يعنى د لنگ په دننه غاړه باندې د څنډلو حکم په دې وجه ورکړې شوې دې چه اودۀ کېدونکې انسان په خپل ښى لاس باندې چه کله د لنگ دننه حصه پرانيزى نو دننه غاړه به معلق پاتې شى. لهذا هغه به هم په دې غاړې سره بستره اوڅنډى

فائده : د روايت الباب په سند کښې درې راويان تابعى دى او درې واړه مدنى دى. عبيدالله بن عمر. د هغوى شيخ سعيد بن ابى سعيد المقبرى او د هغوى شيخ او والد ابوسعيد کيسان درې واړه تابعين دى.[1]

د روايت الباب د دعا په شان. يوه دعا امام احمد رحمه الله د سيدنا عبدالله بن عمر رضي الله عنهما نه نقل فرمائيلې ده چه رسول الله ﷺ يو سړى ته اوفرمائيل چه هغه دې د اودۀ کېدو نه مخکښې دا دعا لولى:

(اللّٰهُمَّ إِنَّكَ خَلَقْتَ نَفْسِي، وَأَنْتَ تَوَفَّاهَا، لَكَ مَمَاتُهَا وَمَحْيَاهَا، إِنْ أَحْيَيْتَهَا فَاحْفَظْهَا، وَإِنْ أَمَتَّهَا فَاغْفِرْ لَهَا)[2]

يعنى اې الله! هم تا زما نفس پيدا کړې دې او هم ته به ئې وفات کوې. د دۀ مرګ او ژوند ستا دپاره دې. که تا دا ژوندې اوساتلو نو حفاظت ئې اوکړه او که مرګ دې پرې راوستلو نو بخښنه ورته اوکړه

## ⑬ باب الدُّعَاءِ نِصْفَ اللَّيْلِ

۵۹۶۲) حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيزِ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ حَدَّثَنَا مَالِكٌ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ أَبِي عَبْدِ اللَّهِ الأَغَرِّ وَأَبِي سَلَمَةَ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ - رضى الله عنه - أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - قَالَ «يَتَنَزَّلُ رَبُّنَا تَبَارَكَ وَتَعَالَى كُلَّ لَيْلَةٍ إِلَى السَّمَاءِ الدُّنْيَا حِينَ يَبْقَى ثُلُثُ اللَّيْلِ الآخِرُ يَقُولُ مَنْ يَدْعُونِي فَأَسْتَجِيبَ لَهُ، مَنْ يَسْأَلُنِي فَأُعْطِيَهُ، وَمَنْ يَسْتَغْفِرُنِي فَأَغْفِرَ لَهُ». ار ۱۰۹۴)

د سيدنا ابوهريرة رضي الله عنه نه روايت دې چه رسول الله ﷺ اوفرمائيل زمونږ رب تبارک وتعالى هر شپه د دنيا آسمان ته راکوزيږى. چه کله د شپې آخرى دريمه حصه باقى شى نو فرمائى څوک دې؟ چه زما نه دعا اوغواړى چه زه ورله دعا قبوله کړم. څوک دې؟ چه زما نه سوال اوکړى او زه ئې هغه ته ورکړم. او څوک دې چه زما نه بخښنه اوغواړى او زه ورته بخښنه اوکړم

**د ترجمة الباب مقصد** د الله پاک په دربار کښې د ښکته کېدو. د خپلو ګناهونو د معافئ غوښتلو او د خپلو مرادونو دپاره د دعاګانو غوښتلو دپاره د شپې د آخرى حصې نه زياته بوه موقع هم موزون او اهم نه ده. په احاديث کښې د دې ډېر فضيلت راغلې دې. امام بخارى رحمه الله هم په دې باب کښې د دې وخت د دعا ذکر کړې دې. په روايت کښې د شپې د

[1] فتح البارى ۱۵۱/۱۱. عمدة القارى ۲۸۹/۲۲. ارشاد السارى ۳۲۶/۱۳

[2] مسند احمد ۷۹/۲. مرويات ابن عمر رضى الله عنهما (وتمامه : اللهم أسألک العافيه. ورواه مسلم والبزار وابن حبان وهو حديث صحيح)

آخرى ثلث ذكر دي. امام بخارى رحمه الله په ترجمة الباب كښې د ﴿ نصف الليل ﴾ ذكر كړې دې كيدې شى چه هغوى د هغه روايت طرف ته اشاره فرمائى كوم چه امام احمد رحمه الله په مسند كښې د سيدنا ابوهريره رضي الله عنه نه نقل كړې دې.

**قوله:** ﴿ يَنْزِلُ رَبُّنَا تَبَارَكَ وَتَعَالَى كُلَّ لَيْلَةٍ حِينَ يَبْقَى ثُلُثُ اللَّيْلِ إِلَى سَمَاءِ الدُّنْيَا ﴾:[1] يعنى زمونږ رب هره شپه چه كله د شپې آخرى دريمه حصه باقى پاتې شى. د دنيا د اسمان طرف ته نزول فرمائى.

د دارقطنى په روايت كښې د ﴿ شطر الليل ﴾ الفاظ بغير د تردد نه دى[2]

علامه كرمانى رحمه الله فرمائى: ﴿ فان قلت: فى الترجمة نصف الليل، وفى الحديث الثلث، قلت: حين يبقى الثلاث، يكون قبل الثلث، وهو المقصود من النصف ﴾[3]

يعنى كه تاسو دا اعتراض اوكړئ چه په ترجمة الباب كښې د نصف الليل ذكر دې. او په حديث كښې ثلث راغلي دې. زه به په جواب كښې وايم چه د ثلث بقاء به د ثلث نه مخكښې وى او د نصف نه هم دا مقصود دې.

په روايت الباب كښې دى: ﴿ يَتَنَزَّلُ رَبُّنَا تَبَارَكَ وَتَعَالَى ﴾

**د اسمان دنيا طرف ته د نزول مطلب** . د آسمان دنيا طرف ته د الله پاک د نزول نه. د الله پاک رحمت. د الله پاک متوجه كيدل يا د الله پاک په حكم باندې د رحمت د فرشتو نزول مراد دې. يا دا په خپله حقيقى معنى باندې دې. الله پاک د جسم نه پاک دې. د نزول كيفيت او حقيقت د انسان د محدود عقل د دائرې نه وړاندې څيز دې[4] د دې تفصيل به وړاندې په كتاب التوحيد كښې راځى ان شاء الله.

حديث الباب په كتاب الصلاة كښې د باب التهجد لاندې تير شوې دې[5]

## ⑭ باب الدُّعَاءِ عِنْدَ الْخَلَاءِ

[۵۹۲۳] حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَرْعَرَةَ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ عَبْدِ الْعَزِيزِ بْنِ صُهَيْبٍ عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ - رضى الله عنه - قَالَ كَانَ النَّبِىُّ - صلى الله عليه وسلم - إِذَا دَخَلَ الْخَلَاءَ قَالَ «اللَّهُمَّ إِنِّى أَعُوذُ بِكَ مِنَ الْخُبُثِ وَالْخَبَائِثِ». [ر: ۱۴۲]

---

[1] مسند احمد: ۲/۲۶۴، مرويات ابى هريرة رضى الله تعالى عنه.

[2] فتح البارى ۱۱/۱۵۵. عمدة القارى ۲۲/۲۹۱. ارشاد السارى ۱۳/۳۲۷

[3] شرح الكرمانى: ۲۲/۱۳۶

[4] ارشاد السارى ۳۲۷. فتح البارى ۱۱/۱۵۵

[5] الصحيح للبخارى. كتاب التهجد. باب الدعاء والصلاة من اخر الليل: ۲۲۵. رقم الحديث ۱۱۴۵

د سیدنا انس بن مالک رضی الله عنه نه روایت دې چه رسول الله ﷺ به کله بیت الخلاء ته تشریف اوړولو نو فرمائیل به ئې ﴿اللّٰهُمَّ إِنِّي أَعُوذُ بِكَ مِنَ الْخُبُثِ وَالْخَبَائِثِ﴾ «اې الله: زه ستا پناه غواړم د خبث او خبائث نه»

**د خبث او خبائث تشریح**: ﴿خبث﴾ د خبیث جمع ده. د باء په ضمې سره دې. خو کله د تخفیف دپاره په باء باندې سکون لوستل هم جائز دی [۱] او ﴿خبائث﴾ جمع د خبیثة ده. د خبث نه نر شیاطین او د خبائث نه مؤنث شیاطین مراد دی [۲].
یو قول دا دې چه د خبث نه شیاطین او د خبائث نه بول وبراز او گنده څیزونه مراد دی [۳]. بهر حال دا ټول مراد کیدلې شی او مطلب دا دې چه هر هغه څیز چه په هغې کښې دغه د انسان د دنیوی یا اخروی ژوند دپاره د خباثت اړخ موندلې شی. د هغې نه په دې مبارکه دعا کښې پناه غوښتلې شوې ده.
دا دعا بیت الخلاء ته د تلو نه مخکښې لوستل پکار دی [۴]

## ⑮ باب مَا يَقُولُ إِذَا أَصْبَحَ

[۵۹۷۴] حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ زُرَيْعٍ حَدَّثَنَا حُسَيْنٌ حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ بُرَيْدَةَ عَنْ بُشَيْرِ بْنِ كَعْبٍ عَنْ شَدَّادِ بْنِ أَوْسٍ عَنِ النَّبِيِّ -صلى الله عليه وسلم- قَالَ:
«سَيِّدُ الاِسْتِغْفَارِ اللَّهُمَّ أَنْتَ رَبِّي لاَ إِلَهَ إِلاَّ أَنْتَ، خَلَقْتَنِي وَأَنَا عَبْدُكَ، وَأَنَا عَلَى عَهْدِكَ وَوَعْدِكَ مَا اسْتَطَعْتُ، أَبُوءُ لَكَ بِنِعْمَتِكَ، وَأَبُوءُ لَكَ بِذَنْبِي، فَاغْفِرْ لِي، فَإِنَّهُ لاَ يَغْفِرُ الذُّنُوبَ إِلاَّ أَنْتَ، أَعُوذُ بِكَ مِنْ شَرِّ مَا صَنَعْتُ. إِذَا قَالَ حِينَ يُمْسِي فَمَاتَ دَخَلَ الْجَنَّةَ -أَوْ كَانَ مِنْ أَهْلِ الْجَنَّةِ- وَإِذَا قَالَ حِينَ يُصْبِحُ فَمَاتَ مِنْ يَوْمِهِ». مِثْلَهُ. [ر: ۵۹۴۷]

سیدنا شداد بن اوس رضی الله عنه د رسول الله ﷺ نه روایت کوی، رسول الله ﷺ اوفرمائیل: سید الاستغفار یعنی د استغفار د ټولو صیغو سردار او په هغه ټولو کښې افضل دا لاندې کلمات دی:

﴿اللَّهُمَّ أَنْتَ رَبِّي لَا إِلَهَ إِلَّا أَنْتَ خَلَقْتَنِي وَأَنَا عَبْدُكَ وَأَنَا عَلَى عَهْدِكَ وَوَعْدِكَ مَا اسْتَطَعْتُ أَبُوءُ لَكَ بِنِعْمَتِكَ وَأَبُوءُ لَكَ بِذَنْبِي فَاغْفِرْ لِي فَإِنَّهُ لَا يَغْفِرُ الذُّنُوبَ إِلَّا أَنْتَ أَعُوذُ بِكَ مِنْ شَرِّ مَا صَنَعْتُ﴾
«اې الله! ته زما رب ئې! ستا نه سوا بل څوک معبود نشته. هم تا زه پیدا کړې یم او زه صرف هم ستا بنده یم او زه د خپل استطاعت مطابق ستا په عهد او ستا په وعده قائم یم، تا چه

---

[۱] ارشاد الساری: ۱۳/۳۲۸
[۲] عمدة القاری: ۲۲/۲۹۱
[۳] ارشاد الساری: ۱۳/۳۲۸
[۴] فتح الباری ۱/۳۲۱، ارشاد الساری: ۱۳/۳۲۸

كوم نعمتونه ماته راكړې دى. د هغې اقرار او د خپلو ګناهونو اعتراف كوم. ماته بخښنه اوكړه بيشكه ستا نه سوا هيڅ څوک د ګناهونو بخښلو والا نشته. زه د خپلو بدعملونو د بدئ نه ستا پناه غوارم.

رسول الله ﷺ فرمائى: چه كله يو سړې دا دعا د ماښام په وخت اولولى او مړ شى نو جنت ته به داخليږى يا (وې فرمائيل) د جنت والو نه به وى او كله چه ئې د سحر په وخت اولولى او هم په هغه ورځ باندې مړ شى نو هم دغه شان (هغه به هم جنت ته داخليږى).

[۵۹۲۵] حَدَّثَنَا أَبُو نُعَيْمٍ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ عَبْدِ الْمَلِكِ بْنِ عُمَيْرٍ عَنْ رِبْعِيِّ بْنِ حِرَاشٍ عَنْ حُذَيْفَةَ قَالَ كَانَ النَّبِيُّ -صلى الله عليه وسلم- إِذَا أَرَادَ أَنْ يَنَامَ قَالَ «بِاسْمِكَ اللَّهُمَّ أَمُوتُ وَأَحْيَا». وَإِذَا اسْتَيْقَظَ مِنْ مَنَامِهِ قَالَ «الْحَمْدُ لِلَّهِ الَّذِى أَحْيَانَا بَعْدَ مَا أَمَاتَنَا، وَإِلَيْهِ النُّشُورُ». [ر ۵۹۵۳]

ـ حذيفه رضی الله عنه نه روايت دې چه رسول الله ﷺ به كله د اوده كيدو اراده اوفرمائيله نو فرمائيل به ئې ﴿بِاسْمِكَ اللَّهُمَّ أَمُوتُ وَأَحْيَا﴾ او چه كله به د خوب نه بيدار شو نو فرمائيل به ئې ﴿الْحَمْدُ لِلَّهِ الَّذِى أَحْيَانَا بَعْدَ مَا أَمَاتَنَا وَإِلَيْهِ النُّشُور﴾.

[۵۹۲٦] حَدَّثَنَا عَبْدَانُ عَنْ أَبِى حَمْزَةَ عَنْ مَنْصُورٍ عَنْ رِبْعِيِّ بْنِ حِرَاشٍ عَنْ خَرَشَةَ بْنِ الْحُرِّ عَنْ أَبِى ذَرٍّ -رضى الله عنه- قَالَ كَانَ النَّبِيُّ -صلى الله عليه وسلم- إِذَا أَخَذَ مَضْجَعَهُ مِنَ اللَّيْلِ قَالَ «اللَّهُمَّ بِاسْمِكَ أَمُوتُ وَأَحْيَا». فَإِذَا اسْتَيْقَظَ قَالَ «الْحَمْدُ لِلَّهِ الَّذِى أَحْيَانَا بَعْدَ مَا أَمَاتَنَا وَإِلَيْهِ النُّشُورُ». [۲۹۲۰]

د سيدنا ابوذر رضی الله عنه نه روايت دې چه رسول الله ﷺ به كله بسترې ته تشريف راوړلو نو فرمائيل به ئې ﴿اللَّهُمَّ بِاسْمِكَ أَمُوتُ وَأَحْيَا﴾ او چه كله به بيدار نو بيا به ئې فرمائيل ﴿الْحَمْدُ لِلَّهِ الَّذِى أَحْيَانَا بَعْدَ مَا أَمَاتَنَا وَإِلَيْهِ النُّشُور﴾.

د سحر په وخت سيد الاستغفار لوستل پكار دى چه د هغې تفصيل تير شوې دې. د خوب نه د پاسيدو نه پس دعا والا حديث هم امام بخارى رحمه الله ذكر كړو ځكه چه عموما انسان د شپې اوده كيدو سره سحرپاسى. په دې وجه هغه د سحر په دعاګانو كښې شمار كيدلې شى

## (۱٦) باب الدُّعَاءِ فِى الصَّلاَةِ

[۵۹۲۷] حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ يُوسُفَ أَخْبَرَنَا اللَّيْثُ قَالَ حَدَّثَنِى يَزِيدُ عَنْ أَبِى الْخَيْرِ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو عَنْ أَبِى بَكْرٍ الصِّدِّيقِ -رضى الله عنه- أَنَّهُ قَالَ لِلنَّبِيِّ -صلى الله عليه وسلم- عَلِّمْنِى دُعَاءً أَدْعُو بِهِ فِى صَلاَتِى. قَالَ «قُلِ اللَّهُمَّ إِنِّى ظَلَمْتُ نَفْسِى ظُلْمًا كَثِيرًا، وَلاَ يَغْفِرُ الذُّنُوبَ إِلاَّ أَنْتَ، فَاغْفِرْ لِى مَغْفِرَةً مِنْ عِنْدِكَ، وَارْحَمْنِى، إِنَّكَ أَنْتَ الْغَفُورُ الرَّحِيمُ».

وَقَالَ عَمْرٌو عَنْ يَزِيدَ عَنْ أَبِي الْخَيْرِ إِنَّهُ سَمِعَ عَبْدَ اللهِ بْنَ عَمْرٍو قَالَ أَبُوبَكْرٍ -رضي الله عنه- لِلنَّبِي -صلى الله عليه وسلم- ار ۷۹۹]

: سیدنا ابوبکرصدیق رضی الله عنه نه روایت دې چه هغوی رسول اللهﷺ ته عرض اوکړو چه ماته یو داسې دعا اوښایئ. چه زه ئې په خپل مونځ کښې لولم. رسول اللهﷺ اوفرمائیل چه دا دعا لوله ﴿ اللَّهُمَّ إِنِّي ظَلَمْتُ نَفْسِي ظُلْمًا كَثِيرًا ، وَلاَ يَغْفِرُ الذُّنُوبَ إِلاَّ أَنْتَ فَاغْفِرْ لِي مَغْفِرَةً مِنْ عِنْدِكَ وَارْحَمْنِي إِنَّكَ أَنْتَ الْغَفُورُ الرَّحِيمُ ﴾ اې الله ! ما په خپل خان باندې ډیر ظلم کړې دې. او هم ته ګناهونه معاف کوې. پس د خپل طرف نه ماته بخښنه اوکړه. او په ما باندې رحم اوکړه. بیشکه ته ډیر بخښنه کونکې او مهربان ئې.

په مانځه کښې دننه د دعا ذکر دې. د باب په دې اول روایت کښې چه کومه دعا نقل کړې شوې دہ. په مانځه کښې د دې محل متعین نه کړې شو. بعض وئیلي دی چه دا دعا په سجده کښې کول پکار دی. ځکه چه په یو بل حدیث کښې دی ﴿ وَأَمَّا السُّجُودُ فَاجْتَهِدُوا فِي الدُّعَاءِ ﴾[1]، بعض وئیلي دی چه د تشهد نه پس لوستل پکار دی [2]:

**د دعا دحسن ترتیب بیان:** علامه قسطلانی رحمه الله د دې دعا د حسن ترتیب په باره کښې لیکی.

﴿ وهذا الدعاء من احسن الادعية لا سيائی ترتيبه، فان فيه تقديم نداء الرب واستغاثته بقوله : اللهم، ثم الاعتراف بالذنب فی قوله : ظلمت نفسی، ثم الاعتراف بالتوحيد الى غيرذلك مما لايخفى مع ما اشتمل عليه من التاكيد بقوله:انك انت الغفور الرحيم بلكمة:ان،وضمير الفصل،وتعريف الخبر باللام، وبصيغة المبالغة ﴾[3] دا په غوره او عمده دعاګانو کښې یوه ده خصوصا د خپل ترتیب په لحاظ سره. ځکه چه په دې کښې د ټولو نه مخکښې ﴿ اللهم ﴾ وئیلو سره الله پاک ته آواز او د هغه نه مدد غوښتلې شوې دې. بیا ﴿ ظلمت نفسی ﴾ وئیلو سره د خپلو ګناهونو اعتراف او د دې نه پس د الله پاک د توحید اقرار کړې شوې دې. غرض دا حدیث په ډیرو بهترینو امورو باندې مشتمل دې. ددې نه علاوه ﴿انك انت الغفور الرحيم ﴾ کښې لفظ د ﴿ ان ﴾،ضمیر فصل او خبر لره په لام تعریف سره معرفه کولو او د مبالغې د صیغې په استعمال سره تاکید کړې شوې دې.

۵۹۲۸] حَدَّثَنَا عَلِي حَدَّثَنَا مَالِكُ بْنُ سُعَيْرٍ حَدَّثَنَا هِشَامُ بْنُ عُرْوَةَ عَنْ أَبِيهِ عَنْ عَائِشَةَ (وَلاَ تَجْهَرْ بِصَلاَتِكَ وَلاَ تُخَافِتْ بِهَا ) أُنْزِلَتْ فِي الدُّعَاءِ.[۴۴۴۲]

---

[1] صحیح مسلم.کتاب الصلاة، باب النهی عن قراءة القرآن فی الرکوع والسجود : ۳۴۸/۱. رقم الحدیث : ۳۴۹

[2] فتح الباری : کتاب الآذان، باب الدعاء قبل السلام : ۴۱۴/۲. عمدة القاری، کتاب الآذان باب الدعاء قبل السلام ۱۱۹/۶

[3] ارشاد الساری ۳۳۱/۱۳

**په ایت کریمه کښې د دعا مصداق** : د باب دا دویم روایت د قرآن کریم د آیت ﴿ وَلَا تَجْهَرْ بِصَلَاتِكَ وَلَا تُخَافِتْ بِهَا ﴾ په باره کښې دې، سیده عائشه رضي الله عنها فرمائی چه دا دعا په باره کښې نازل شوې دې، د هغوی په نزد د صلاة نه مراد دعا ده او مطلب دا دې چه دعا نه په ډیر زور غوښتل پکار دی او نه ډیره رو. خو د ډیرو مفسرینو په نزد دا آیت کریمه د دعا په باره کښې نه دې، بلکه په مانځه کښې دننه د قرآن کریم د تلاوت په باره کښې دې. ﴿ وَلَا تَجْهَرْ بِصَلَاتِكَ اى بقراءة صَلَاتِكَ ﴾ مضاف محذوف دې. [1]

[۵۹۲۹] حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ حَدَّثَنَا جَرِيرٌ عَنْ مَنْصُورٍ عَنْ أَبِي وَائِلٍ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ -رضي الله عنه- قَالَ كُنَّا نَقُولُ فِي الصَّلَاةِ السَّلَامُ عَلَى اللَّهِ، السَّلَامُ عَلَى فُلَانٍ. فَقَالَ لَنَا النَّبِيُّ -صلى الله عليه وسلم- ذَاتَ يَوْمٍ «إِنَّ اللَّهَ هُوَ السَّلَامُ، فَإِذَا قَعَدَ أَحَدُكُمْ فِي الصَّلَاةِ فَلْيَقُلِ التَّحِيَّاتُ لِلَّهِ إِلَى قَوْلِهِ الصَّالِحِينَ . فَإِذَا قَالَهَا أَصَابَ كُلَّ عَبْدٍ لِلَّهِ فِي السَّمَاءِ وَالْأَرْضِ صَالِحٍ، أَشْهَدُ أَنْ لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ، وَأَشْهَدُ أَنَّ مُحَمَّدًا عَبْدُهُ وَرَسُولُهُ. ثُمَّ يَتَخَيَّرُ مِنَ الثَّنَاءِ مَا شَاءَ». [ر: ۷۹۷]

د سیدنا عبدالله بن مسعود رضي الله عنه نه روایت دې چه مونږ به په مانځه کښې لوستل ﴿ السَّلَامُ عَلَى اللهِ السَّلَامُ عَلَى فُلَانٍ ﴾ نو مونږ ته یوه ورځ رسول الله ﷺ اوفرمائیل چه الله پاک خو خپله سلام دې. نو څوک چه په تاسو کښې په مانځه کښې کیني نو هغه دې ﴿ التَّحِيَّاتُ لِلّٰهِ .... الصَّالِحِينَ ﴾ پورې اوائی. چه کله هغه دا کلمات اوائی نو د آسمان او زمکې هر هغه بنده ته به دا اورسیږی چه صالح وی (بیا دې په دې الفاظو سره تشهد اوکړی، ﴿ أَشْهَدُ أَنْ لَا إِلٰهَ إِلَّا اللهُ وَأَشْهَدُ أَنَّ مُحَمَّدًا عَبْدُهُ وَرَسُولُهُ ﴾ او د دې نه پس چه کومه دعا کول غواړی هغه دې اوکړی.

**د ترجمة الباب سره د احادیثو مناسبت**: حافظ ابن حجر رحمه الله د ترجمة الباب سره د احادیثو مناسبت بیانولو سره لیکی :

﴿ وأخذ الترجمة من هذه الأحاديث الا ان الأول نص في المطلوب والثاني يستفاد منه صفة من صفات الداعي وهي عدم الجهر والمخافتة فيسمع نفسه ولا يسمع غيره ﴾ [2]

یعنی : ترجمه د دې احادیثو نه اخستلې شوې ده، خو اول حدیث په مطلوب کښې نص دې او د دویم حدیث نه د داعی یو صفت مستفاد کیږی او هغه دې زیات په زوره نه وئیل او په مزه وئیل. په داسې طریقه چه هغه ئې خپله واوری، بل څوک ئې وانوری.

---

[1] ) روح المعانی ۱۹۴/۱۵، سورة الاسراء، رقم الاية ۱۱۰، هم دغه شان اوګورئ الجامع لاحکام القرآن، سورة الاسراء ۳۴۴/۱

[2] ) فتح الباری : ۱۵۸/۱۱

قوله: ﴿أَصَابَ كُلَّ عَبْدٍ لِلّٰهِ فِي السَّمَاءِ وَالْأَرْضِ صَالِحٍ﴾: په دې کښې د صالح عبد صفت دې، د باب دا اخری حدیث په کتاب الصلاة کښې تیر شوې دې. (۱)

## ⑮ باب الدُّعَاءِ بَعْدَ الصَّلَاةِ

[۵۹۷۰] حَدَّثَنِي إِسْحَاقُ أَخْبَرَنَا يَزِيدُ أَخْبَرَنَا وَرْقَاءُ عَنْ سُمَيٍّ عَنْ أَبِي صَالِحٍ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ. قَالُوا يَا رَسُولَ اللَّهِ ذَهَبَ أَهْلُ الدُّثُورِ بِالدَّرَجَاتِ وَالنَّعِيمِ الْمُقِيمِ. قَالَ «كَيْفَ ذَاكَ». قَالَ صَلَّوْا كَمَا صَلَّيْنَا، وَجَاهَدُوا كَمَا جَاهَدْنَا، وَأَنْفَقُوا مِنْ فُضُولِ أَمْوَالِهِمْ، وَلَيْسَتْ لَنَا أَمْوَالٌ. قَالَ «أَفَلاَ أُخْبِرُكُمْ بِأَمْرٍ تُدْرِكُونَ مَنْ كَانَ قَبْلَكُمْ، وَتَسْبِقُونَ مَنْ جَاءَ بَعْدَكُمْ، وَلاَ يَأْتِي أَحَدٌ بِمِثْلِ مَا جِئْتُمْ، إِلاَّ مَنْ جَاءَ بِمِثْلِهِ، تُسَبِّحُونَ فِي دُبُرِ كُلِّ صَلاَةٍ عَشْرًا، وَتَحْمَدُونَ عَشْرًا، وَتُكَبِّرُونَ عَشْرًا».

تَابَعَهُ عُبَيْدُ اللَّهِ بْنُ عُمَرَ عَنْ سُمَيٍّ.

وَرَوَاهُ ابْنُ عَجْلاَنَ عَنْ سُمَيٍّ وَرَجَاءِ بْنِ حَيْوَةَ.

وَرَوَاهُ جَرِيرٌ عَنْ عَبْدِ الْعَزِيزِ بْنِ رُفَيْعٍ عَنْ أَبِي صَالِحٍ عَنْ أَبِي الدَّرْدَاءِ.

وَرَوَاهُ سُهَيْلٌ عَنْ أَبِيهِ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ -صلى الله عليه وسلم- [ر:۸۰۷]

د سیدنا ابوهریره رضی الله عنه نه روایت دې چه خلقو عرض اوکړو یا رسول الله ﷺ! دولت مند خلق خو په درجات او نعمتونو کښې مخکښې شو. رسول الله ﷺ اوفرمائیل (څنګه؟) هغوی اووې کوم خلق چه مونځ کوی، څنګه چه مونږ مونځ کوو او جهاد کوو، څنګه چه مونږ جهاد کوو او خپل بچ شوې مال هم خرچ کوو خو مونږ سره مال نشته، رسول الله ﷺ اوفرمائیل آیا زه تاسو ته داسې څیز او نه ښائم چه د هغې په ذریعه تاسو د هغوی برابر شئ. کوم چه ستاسو نه مخکښې تیر شوې دی، او د هغوی نه مخکښې شئ کوم چه ستاسو نه پس راځی او یو سړې به هم ستاسو برابر نه وی مګر هغه سړې کوم چه دا اولولی. د هر مانځه نه پس سبحان الله لس کرته، او الحمد لله لس کرته او لس کرته الله اکبر وایئ.

[۵۹۷۱] حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ حَدَّثَنَا جَرِيرٌ عَنْ مَنْصُورٍ عَنِ الْمُسَيَّبِ بْنِ رَافِعٍ عَنْ وَرَّادٍ مَوْلَى الْمُغِيرَةِ بْنِ شُعْبَةَ قَالَ كَتَبَ الْمُغِيرَةُ إِلَى مُعَاوِيَةَ بْنِ أَبِي سُفْيَانَ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- كَانَ يَقُولُ فِي دُبُرِ كُلِّ صَلاَةٍ إِذَا سَلَّمَ «لاَ إِلَهَ إِلاَّ اللَّهُ، وَحْدَهُ لاَ شَرِيكَ لَهُ، لَهُ الْمُلْكُ، وَلَهُ الْحَمْدُ، وَهُوَ عَلَى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ، اللَّهُمَّ لاَ مَانِعَ لِمَا أَعْطَيْتَ، وَلاَ مُعْطِيَ لِمَا مَنَعْتَ، وَلاَ يَنْفَعُ ذَا الْجَدِّ مِنْكَ الْجَدُّ». وَقَالَ شُعْبَةُ عَنْ مَنْصُورٍ قَالَ سَمِعْتُ الْمُسَيَّبَ. [ر:۸۰۸]

د سیدنا مغیره بن شعبه رضی الله عنه آزاد کړده غلام وراد نه روایت دې هغوی بیان کوی چه سیدنا مغیره رضی الله عنه سیدنا معاویه بن ابی سفیان رضی الله عنهما ته اولیکل چه رسول الله ﷺ به د هر مانځه نه

(۱) الصحیح للبخاري: کتاب الاذان، باب التشهد فی الاخرة: ۱۸۲، رقم الحدیث: ۸۳۱

پس چه کله سلام واړولو نو دا به ئې لوستل: ﴿ لَاۤ إِلٰهَ إِلَّا اللّٰهُ وَحْدَهٗ لَاشَرِيْكَ لَهٗ لَهُ الْمُلْكُ وَلَهُ الْحَمْدُ وَهُوَ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيْرٌ اَللّٰهُمَّ لَا مَانِعَ لِمَا أَعْطَيْتَ، وَلَا مُعْطِيَ لِمَا مَنَعْتَ، وَلَا يَنْفَعُ ذَا الْجَدِّ مِنْكَ الْجَدُّ ﴾ ، د الله پاک وحده لا شریک نه سوا څوک هم معبود برحق نشته. هم د هغه دپاره بادشاهت دې. او هم د هغه دپاره ټول تعریفونه دی. هغه په هر څیز باندې قادر دې. اې الله! هیڅ منع کونکې نشته د هغه څیز دپاره کوم چه تاسو ورکوئ. او هیڅ څوک ورکونکې نشته د هغه څیز کوم چه تاسو منع کړئ او د یو مالدار یو مالداری ستا نه بغیر فائده منده نه شی کیدې.

**د فرض مانځه نه پس د دعا حکم** : په دې ترجمة الباب سره د امام بخاری رحمه الله مقصد دا دې چه د فرض مانځه نه پس دعا غوښتل د رسول الله ﷺ نه ثابت دی. امام صاحب په هغه خلقو باندې رد کول غواړی چه وائی د فرض مونځونو نه پس دعا مشروع نه ده. [1]

علامه ابن القیم رحمه الله په زاد المعاد کښې د دې نفی کړې ده او وئیلې ئې دی چه دا د رسول الله ﷺ نه ثابت نه دی [2]

خو حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی چه د هغوی دا مطلقا نفی کول صحیح نه دی ځکه چه په سنن ابی داؤد کښې د سیدنا معاذ رضی الله عنه روایت دې چه رسول الله ﷺ هغوی ته اوفرمائیل:

﴿ يَا مُعَاذُ إِنِّيْ وَاللّٰهِ لَأُحِبُّكَ، فلا تدع دبر كل صلاة ان تقول: اَللّٰهُمَّ أَعِنِّيْ عَلٰى ذِكْرِكَ وَشُكْرِكَ وَحُسْنِ عِبَادَتِكَ ﴾ [3]

هم دغه شان د زید بن ارقم روایت په سنن ابی داؤد او سنن نسائی کښې دې:

﴿ سمعت رسول الله ﷺ يدعو في دُبُرِ صَلَاتِهٖ «اَللّٰهُمَّ رَبَّنَا وَرَبَّ كُلِّ شَيْءٍ ﴾ [4]

---

[1]) فتح الباری ۱۱/ ۱۵۹

[2]) زاد المعاد. فصل فی هدیه صلی الله علیه وسلم فی الصلاة : ۲۵۷/۱ (قلت : هذا بعید من الانصاف لان ابن القیم رحمه الله قد ذکر الادعیة الماثورة فی فصل فقال : فصل: فیما کان رسولُ الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ یقوله بعد انصرافه من الصلاة، وجلوسه بعدَها، وسرعة الانتقال منها، وما شرعه لأمته من الأذكار والقراءة بعدها ۲۹۵/۱، وحذه الاذکار قد اوردَها البخاری ههنَا وقد رد ابن القیم الادعیة التی برفع الایدی بعد الفرائض او السنن الرواتب بهینة الاجتماع کهینة الدعاء فی هذا الزمان فتدبر! قال : وأما الدعاء بعد السلام من الصلاة مستقبل القبلة أو المأمومین، فلم یکن ذلک من هدیه صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أصلاً، ولا روي عنه بإسناد صحیح، ولا حسن، وقال فی اخر البحث : استحبّ له أن يُصلی علی النبيّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بعد ذلک. (ای بعد الاذکار والادعیة الماثورة) ویدعو بما شاء، ویکون دعاؤه عقیبَ هذه العبادة الثانیة، لا لکونه دبر الصلاة...۲۵۸/۱، فابن القیم رحمه الله فی واد وهولاء فی واد. والله المستعان)

[3]) سنن ابی داؤد، کتاب الصلاة، باب فی الاستغفار : ۸۶/۲، رقم الحدیث : ۱۵۲۲، ورواه الامام احمد فی مسنده عن معاذ بن جبل ان النبی صلی الله علیه وسلم اخذ بیده یوما، ثم قال : یا معاذ انی لاحبک. فقال له معاذ : بابی وامی انت یا رسول الله! وانا احبک. قال یا معاذ : اوصیک یا معاذ لا تدعن فی دبر کل صلاة ان تقول : اَللّٰهُمَّ أَعِنِّيْ عَلٰى ذِكْرِكَ وَشُكْرِكَ وَحُسْنِ عِبَادَتِكَ. حدیث معاذ بن جبل ۲٤٥/٥

[4]) سنن ابی داوُد، کتابَ الصلاة، بابَ ما یقول الرّجل اذا سلم : ۸۲/۲، رقم الحدیث : ۱۵۰۸، مسند احمد بن حنبل : حدیث زید بن ارقم : ۳٦۹/٤، رقم الحدیث : ۱۹۵۰۸)

يعنى ما د رسول الله ﷺ نه د هر مانځه نه پس دا دعا اوريدله ده. اې الله ! اې زمونږ او د هر يو څيز ربه!
امام احمد رحمه الله د ابوبكره رضي الله عنه يو روايت هم نقل فرمائيلې دې هغوى وائى چه رسول الله ﷺ به د هر مانځه نه پس دا دعا لوستله. «اللّٰهُمَّ إِنِّي أَعُوذُ بِكَ مِنَ الْكُفْرِ، وَالْفَقْرِ، وَعَذَابِ الْقَبْرِ» [1] يعنى اې الله ! زه د كفر. فقر او عذاب قبر نه ستا پناه غواړم
په دې وجه د دې رواياتو په موجودګۍ دا وئيل چه دعا بعد الصلاة ثابت نه ده. صحيح نه دى. پس علامه انور شاه كشميرى رحمه الله فرمائى.
«لا ريبَ أن الأدعيةَ دُبُرَ الصلوات قد تواترت تواتراً لا يُنكَرُ. أمّا رفعُ الأيدى، فثبت بعد النافلة مرّةً، أو مرّتين، فألحق بها الفقهاءُ المكتوبةَ أيضاً. وذهب ابن تيميّة، وابن القيّم إلى كونه بدعةً. بقى أن المواظبةَ على أمرٍ لم يثبُت عن النبىّ صلى الله عليه وسلّم إلا مرّةً، أو مرّتين، كيف هى؟ فتلك هى الشاكلة فى جميع المستحبّات، فإنها تثبُتُ طوراً فطوراً، ثم الأمةُ تواظبُ عليها. نعم نحكُمُ بكونها بدعةً إذا أفضى الأمرُ إلى النكير على من تركَها» [2]
يعنى بيشكه د مونځونو نه پس دعا په تواتر سره ثابت ده. چه د هغې انكار نه شى كيدې. او هر چه لاسونه اوچتول دى نو د نفلو نه پس يو كرت دوه كرته ثابت دى. بيا فقهاء كرامو په دې باندې قياس كولو سره فرائض هم د دې سره ملحق كړې دى پاتې شود دا خبره چه په داسې امر باندې مواظبت څنګه دې كوم چه د رسول الله ﷺ نه په ټول عمر كښې يو كرت يا دوه كرته ثابت وى نو په ټولو مستحباتو كښې هم دا طريقه پاتې شوې ده څكه چه د رسول الله ﷺ د هغوى ثبوت كله كله شته، بيا روستو امت په دې باندې مواظبت كوى. خو كه څوك د دې په ترک كولو باندې چاته بدې ردې اوائى نو په دې باندې به د بدعت كيدو حكم لګولې شى.
**په هيئت اجتماعى باندې د دعا بعد الفرائض حكم** . په يو بل مقام باندې هم علامه انور شاه كشيمرى رحمه الله فرمائيلې دى چه په موجوده اجتماعى هيئت سره د فرضو نه پس دعا ته سنت نه شى وئيلې كيدې يعنى دا نه شى وئيلې كيدې چه رسول الله ﷺ به په دې هيئت باندې دعا فرمائيله خو دې ته بدعت نه شى وئيلې كيدې چه په دين كښې د دې اصل او بنياد نشته. [3] حاصل دا چه په دې هيئت سره نه دا سنت ده او نه بدعت ده.
د روايات الباب مناسبت د ترجمة الباب سره ښكاره دې

[1] مسند احمد بن حنبل. حديث ابى بكرة ٣٧/٥، رقم الحديث : ٢١٦٥٢
[2] فيض البارى : ٤١٧/٤
[3] فيض البارى ٤١٧/٤

# ⑱ باب قَوْلِ اللّٰهِ تَعَالٰى (وَصَلِّ عَلَيْهِمْ).
# وَمَنْ خَصَّ أَخَاهُ بِالدُّعَاءِ دُونَ نَفْسِهِ

**د ترجمة الباب مقصد** : په دې باب كښې امام بخاری رحمه الله د نورو دپاره د دعا غوښتلو ذكر كول غواړى، په قرآن كريم كښې الله پاک رسول الله ﷺ ته حكم اوفرمائيلو ﴿ وَصَلِّ عَلَيْهِمْ ﴾ يعنى د دوى دپاره دعا كوئ.

**صرف د بل دپاره دعا غوښتل** : ﴿ وَمَنْ خَصَّ أَخَاهُ بِالدُّعَاءِ دُونَ نَفْسِهِ ﴾ : يعنى چه انسان د بل دپاره دعا كوى او د خپل ځان ذكر په دعا كښې نه كوى، د دې ګنجائش دې. امام بخارى رحمه الله غالبا په هغه خلقو باندې رد كول غواړى چه د هغوى وينا ده چه د نورو دپاره د دعا كولو نه مخكښې د خپل ځان دپاره دعا كول پكار دى، د ابراهيم نخعى رحمه الله وغيره نه دا قول منقول دې.[1]

دا حضرات د ابى بن كعب رضى الله عنه د يو مرفوع حديث نه استدلال كوى كوم چه امام ترمذى رحمه الله موصولا نقل كړې دې. په دې كښې دى :

﴿ أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ ـ صلى الله عليه وسلم ـ كَانَ إِذَا ذَكَرَ أَحَدًا فَدَعَالَهُ بَدَأَ بِنَفْسِهِ ﴾[2]

يعنى رسول الله ﷺ به چه د چا ذكر فرمائيلو سره د هغه دپاره د دعا كولو اراده كوله نو اول به ئې د خپل ځان دپاره دعا كوله.

خو د روايات الباب نه د دې ترديد كيږى، رسول الله ﷺ د مختلفو حضراتو دپاره دعا اوفرمائيله چه په هغې كښې ئې خپل ذكر نه دې كړې.

بهر حال د دې ګنجائش دې چه انسان د نورو دپاره دعا اوكړى او خپل ذكر نه كوى، خو غوره دا ده او په حصن حصين كښې دا د دعا ګانو په آداب كښې شمار كړې شوې دى چه انسان د ځان دپاره دعا اوكړى . بيا د نورو خلقو دپاره اوكړى.[3]

مولانا رشيد احمد ګنګوهى رحمه الله په الكوكب الدري كښې ليكلې دى چه د نورو خلقو دپاره دعا كول او خپل ځان پريخودل... په دې كښې يو قسم اعراض او د دعا نه د استغنا وهم راځى او هغه صحيح نه دې.[4]

او په دې كښې دا تفصيل هم كيدې شى چه كه د اهتمام سره د دعا موقع وى نو په هغې كښې انسان له د خپل ځان دپاره دعا كول پكار دى، د هغې نه پس د نورو دپاره! خو كه د چا تذكره راغله يا چا څه احسان اوكړو نو په داسې مواقع باندې د خپل ذكر كولو

---

[1]) فتح البارى : ۱۱/۱۶۴، عمدة القارى ۲۲/۲۹۵

[2]) اخرجه الترمذى فى كتاب الدعوات، باب مَا جَاءَ أَنَّ الدَّاعِيَ يَبْدَأُ بِنَفْسِهِ : ۵/۴۶۳، (رقم الحديث : ۳۳۸۵)

[3]) حصن حصين : ۸۲

[4]) الكوكب الدرى ۳/۳۳۵

نه بغير د متعلقه سړی دپاره دعا کيدلې شی، په روايات الباب کښې اکثر هم دغه شان مواقع دی.

د باب د لاندې امام بخاری رحمه الله اووه احاديث ذکر فرمائيلي دی او هغه ټول مخکښې تير شوې دی، په دې ټولو احاديثو کښې رسول الله ﷺ د يو نه يو صحابی دپاره دعا کړې ده. لاندې هغه احاديث د ترجمې سره ذکر کولې شی.

وَقَالَ أَبُومُوسَى قَالَ النَّبِيُّ -صلى الله عليه وسلم- «اللَّهُمَّ اغْفِرْ لِعُبَيْدٍ أَبِي عَامِرٍ، اللَّهُمَّ اغْفِرْ لِعَبْدِ اللَّهِ بْنِ قَيْسٍ ذَنْبَهُ».

[۵۹۷۲] حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا يَحْيَى عَنْ يَزِيدَ بْنِ أَبِي عُبَيْدٍ مَوْلَى سَلَمَةَ حَدَّثَنَا سَلَمَةُ بْنُ الأَكْوَعِ قَالَ خَرَجْنَا مَعَ النَّبِيِّ -صلى الله عليه وسلم- إِلَى خَيْبَرَ، قَالَ رَجُلٌ مِنَ الْقَوْمِ أَيَا عَامِرُ لَوْ أَسْمَعْتَنَا مِنْ هُنَيْهَاتِكَ. فَنَزَلَ يَحْدُو بِهِمْ يُذَكِّرُ.

تَاللَّهِ لَوْلاَ اللَّهُ مَا اهْتَدَيْنَا. وَذَكَرَ شِعْرًا غَيْرَ هَذَا، وَلَكِنِّي لَمْ أَحْفَظْهُ. قَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- «مَنْ هَذَا السَّائِقُ». قَالُوا عَامِرُ بْنُ الأَكْوَعِ. قَالَ «يَرْحَمُهُ اللَّهُ». وَقَالَ رَجُلٌ مِنَ الْقَوْمِ يَا رَسُولَ اللَّهِ لَوْلاَ مَتَّعْتَنَا بِهِ، فَلَمَّا صَافَّ الْقَوْمَ قَاتَلُوهُمْ، فَأُصِيبَ عَامِرٌ بِقَائِمَةِ سَيْفِ نَفْسِهِ فَمَاتَ، فَلَمَّا أَمْسَوْا أَوْقَدُوا نَارًا كَثِيرَةً فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- «مَا هَذِهِ النَّارُ عَلَى أَيِّ شَيْءٍ تُوقِدُونَ». قَالُوا عَلَى حُمُرٍ إِنْسِيَّةٍ. فَقَالَ «أَهْرِيقُوا مَا فِيهَا، وَكَسِّرُوهَا». قَالَ رَجُلٌ يَا رَسُولَ اللَّهِ أَلاَ نُهَرِيقُ مَا فِيهَا وَنَغْسِلُهَا قَالَ «أَوْ ذَاكَ». [ر: ۲۳۴۵]

د سيدنا سلمة بن الاکوع رضی الله عنه نه روايت دې چه مونږ د رسول الله ﷺ سره د خيبر طرف ته روان شونو په جماعت کښې يو سړی اووې اې عامر! ارمان چه تاسو خپل اشعار اورولې وې؟ هغوی د سورلئ نه راکوز شو، اوپه دې الفاظو سره ئې اشعار رئيل شروع کړل: ﴿تَاللَّهِ لَوْلاَ اللَّهُ مَا اهْتَدَيْنَا﴾ (قسم په الله پاک! که الله پاک (هدايت کونکې نه وې) نو مونږ به چرې هم هدايت نه وې موندلې)، او د دې نه علاوه ئې هم څو اشعار اولوستل خو هغه ماته ياد پاتې نه شو. رسول الله ﷺ اوفرمائيل، دا راښکونکې څوک دې؟ خلقو اووې عامر بن اکوع رضی الله عنه (دې)، رسول الله ﷺ اوفرمائيل: الله پاک دې په هغه باندې رحم اوکړی. يو سړی عرض اوکړو: يا رسول الله ﷺ ارمان چه د هغه (عامر) نه تاسو ته نوره هم فائده رسولې وې (يعنی هغه نور هم ژوندې پاتې شوې وې ځکه چه رسول الله ﷺ به کله د چا په باره کښې د ﴿يرحم الله﴾ يا ﴿رحمه الله﴾ الفاظ اوفرمائيل نو په دې کښې به د دې خبرې طرف ته اشاره وه چه هغه وفات کيدونکې دې)، پس چه کله خلقو صفونه برابر کړل او جنګ ئې شروع کړو نو عامر پخپله توره باندې زخمی شو چه د هغې د وجې نه وفات شو، چه کله ماښام شو نو خلقو ډير زيات اوربل کړو، رسول الله ﷺ اوفرمائيل دا اور څنګه دې؟کوم څيزباندې تاسو اوربل کړو؟ خلقو اووې د کورنو خروپه غوښې باندې (يعنی دهغوی غوښه پخوو) رسول الله ﷺ اوفرمائيل

اوغورځوئ هغه څيز کوم چه په دې کښې دې يعنی غوښې لره او لوښې مات کړئ. يو سړي عرض اوکړو يا رسول الله ﷺ: آيا څه چه په لوښی کښې دی که هغه مونږ اوغورځوو او لوښي وينځو ،نو غوره به نه وی؟، رسول الله ﷺ اوفرمائيل : څئ هم دغه شان اوکړئ.

[۵۹۷۳] حَدَّثَنَا مُسْلِمٌ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ عَمْرٍو سَمِعْتُ ابْنَ أَبِي أَوْفَى - رضى الله عنهما كَانَ النَّبِيُّ -صلى الله عليه وسلم- إِذَا أَتَاهُ رَجُلٌ بِصَدَقَةٍ قَالَ «اللَّهُمَّ صَلِّ عَلَى آلِ فُلاَنٍ». فَأَتَاهُ أَبِي فَقَالَ «اللَّهُمَّ صَلِّ عَلَى آلِ أَبِي أَوْفَى».[ر ۱۴۲۶]

د سيدنا ابن ابی اوفی رضی الله عنه نه روايت دې چه رسول الله ﷺ ته به چه کله چا صدقه راوړه. نو هغوی به فرمائيل . ﴿اللَّهُمَّ صَلِّ عَلَى آلِ فُلاَنٍ﴾، يعنی اې الله د فلانی په آل باندې رحمت نازل کړه. پس زما پلار هغوی ته څه راوړل نو رسول الله ﷺ اوفرمائيل : اې الله ! په آل د ابی اوفی رضی الله عنه باندې رحمت نازل کړه.

[۵۹۷۴] حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ إِسْمَاعِيلَ عَنْ قَيْسٍ قَالَ سَمِعْتُ جَرِيرًا قَالَ قَالَ لِي رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- «أَلاَ تُرِيحُنِي مِنْ ذِي الْخَلَصَةِ». وَهُوَ نُصُبٌ كَانُوا يَعْبُدُونَهُ يُسَمَّى الْكَعْبَةَ الْيَمَانِيَةَ. قُلْتُ يَا رَسُولَ اللَّهِ إِنِّي رَجُلٌ لاَ أَثْبُتُ عَلَى الْخَيْلِ ،فَصَكَّ فِي صَدْرِي فَقَالَ «اللَّهُمَّ ثَبِّتْهُ وَاجْعَلْهُ هَادِيًا مَهْدِيًّا». قَالَ فَخَرَجْتُ فِي خَمْسِينَ مِنْ أَحْمَسَ مِنْ قَوْمِي -وَرُبَّمَا قَالَ سُفْيَانُ فَانْطَلَقْتُ فِي عُصْبَةٍ مِنْ قَوْمِي- فَأَتَيْتُهَا فَأَحْرَقْتُهَا، ثُمَّ أَتَيْتُ النَّبِيَّ -صلى الله عليه وسلم- فَقُلْتُ يَا رَسُولَ اللَّهِ، وَاللَّهِ مَا أَتَيْتُكَ حَتَّى تَرَكْتُهَا مِثْلَ الْجَمَلِ الأَجْرَبِ. فَدَعَا لأَحْمَسَ وَخَيْلِهَا.[ر: ۲۸۵۷]

د قيس رحمه الله نه روايت دې چه ما د سيدنا جرير رضی الله عنه نه واوريدل چه ماته رسول الله ﷺ اوفرمائيل : آيا ته به ماته د ذی الخلصة نه نجات رانکړې؟ دا يو بت وو چه د هغې به خلقو عبادت کولو او د دې نوم کعبه يمانيه وو. ما عرض اوکړو يا رسول الله ﷺ! زه يو داسې سړې يم چه په اس باندې نيغ نه شم کيناستلې. هغوی زما په سينه باندې لاس راښکلو او وې فرمائيل : اې الله ! دې ثابت قدم کړه او هدايت کونکې او هدايت يافته ئې کړه. د سيدنا جرير رضی الله عنه بيان دې چه زه د خپل قوم احمس د پنځوس کسانو سره اوتلم. او سفيان به کله په روايت کښې دا الفاظ وئيل ﴿فَانْطَلَقْتُ فِي عُصْبَةٍ مِنْ قَوْمِي﴾ زه د خپل قوم د يو جماعت سره اوتلم، ما هلته رسيدو سره هغه اوسيزلو. بيا زه د رسول الله ﷺ په خدمت کښې حاضر شوم او اومې وئيل يا رسول الله ﷺ! قسم په الله پاک ! زه تاسو ته تر هغه وخته پورې رانغلم چه ترڅو پورې مې هغه د خارختی اوښ په شان جوړ نه کړلو. نو رسول الله ﷺ د قبيله احمس و د هغې د شهسوارانو دپاره دعا اوفرمائيله.

۵۹۷۵/ حَدَّثَنَا سَعِيدُ بْنُ الرَّبِيعِ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ قَتَادَةَ قَالَ سَمِعْتُ أَنَسًا قَالَ قَالَتْ أُمُّ سُلَيْمٍ لِلنَّبِيِّ -صلى الله عليه وسلم- أَنَسٌ خَادِمُكَ. قَالَ «اللَّهُمَّ أَكْثِرْ مَالَهُ وَوَلَدَهُ، وَبَارِكْ لَهُ فِيمَا أَعْطَيْتَهُ». [ر: ۱۸۸۱]

د امام قتادة رحمه الله نه روايت دې چه ما د سيدنا انس رضي الله عنه نه واوريدل چه (زما مور) سيده ام سليم رضي الله عنها رسول الله ﷺ ته عرض اوکړو: انس رضي الله عنه ستاسو خادم دې. رسول الله ﷺ اوفرمائيل. اې الله! هغه ته په کثرت سره مال او اولاد ورکړه. او څه چه دې ورته ورکړي دي په هغې کښې ورته برکت واچوه.

۵۹۷۶/ حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ حَدَّثَنَا عَبْدَةُ عَنْ هِشَامٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ عَائِشَةَ -رضى الله عنها- قَالَتْ سَمِعَ النَّبِيُّ -صلى الله عليه وسلم- رَجُلاً يَقْرَأُ فِي الْمَسْجِدِ فَقَالَ «رَحِمَهُ اللَّهُ، لَقَدْ أَذْكَرَنِي كَذَا وَكَذَا آيَةً أَسْقَطْتُهَا فِي سُورَةِ كَذَا وَكَذَا». [ر: ۲۵۱۲]

د سيده عائشه صديقه رضي الله عنها نه روايت دې چه رسول الله ﷺ د يو سړى نه په مسجد کښې قرآن کريم واوريدلو نو وې فرمائيل: الله پاک دې په هغه باندې رحم اوکړى. هغه ماته فلانې فلانې آيت رایاد کړو. کوم چه زما نه په فلانى فلانى سورة کښې هير شوې وو.

۵۹۷۷/ حَدَّثَنَا حَفْصُ بْنُ عُمَرَ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ أَخْبَرَنِي سُلَيْمَانُ عَنْ أَبِي وَائِلٍ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ قَالَ قَسَمَ النَّبِيُّ -صلى الله عليه وسلم- قَسْمًا فَقَالَ رَجُلٌ إِنَّ هَذِهِ لَقِسْمَةٌ مَا أُرِيدَ بِهَا وَجْهُ اللَّهِ. فَأَخْبَرْتُ النَّبِيَّ -صلى الله عليه وسلم- فَغَضِبَ حَتَّى رَأَيْتُ الْغَضَبَ فِي وَجْهِهِ وَقَالَ «يَرْحَمُ اللَّهُ مُوسَى، لَقَدْ أُوذِيَ بِأَكْثَرَ مِنْ هَذَا فَصَبَرَ» [ر: ۲۹۸۱]

او د سيدنا عبدالله بن مسعود رضي الله عنه نه روايت دې چه رسول الله ﷺ مال غنيمت تقسيم کړو. نو يو سړى اووې: په دې تقسيم سره د الله پاک رضا مقصود نه ده، ما چه رسول الله ﷺ ته دا خبره بيان کړه نو هغوى غصه شو، تردې چه د غصې آثار ما د هغوى په مخ مبارک کښې اوليدل او وې فرمائيل: الله پاک دې په موسى (عليه السلام) باندې رحم اوفرمائى: چاته چه د دې نه زيات تکليفونه ورکړې شوې وو خو هغوى صبر اوکړو

## ⑲ بَابُ مَا يُكْرَهُ مِنَ السَّجْعِ فِي الدُّعَاءِ

۵۹۷۸/ حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ مُحَمَّدِ بْنِ السَّكَنِ حَدَّثَنَا حَبَّانُ بْنُ هِلاَلٍ أَبُو حَبِيبٍ حَدَّثَنَا هَارُونُ الْمُقْرِئُ حَدَّثَنَا الزُّبَيْرُ بْنُ الْخِرِّيتِ عَنْ عِكْرِمَةَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ حَدِّثِ النَّاسَ كُلَّ جُمُعَةٍ مَرَّةً، فَإِنْ أَبَيْتَ فَمَرَّتَيْنِ، فَإِنْ أَكْثَرْتَ فَثَلاَثَ مِرَارٍ، وَلاَ تُمِلَّ النَّاسَ هَذَا الْقُرْآنَ، وَلاَ أُلْفِيَنَّكَ تَأْتِي الْقَوْمَ وَهُمْ فِي حَدِيثٍ مِنْ حَدِيثِهِمْ فَتَقُصُّ عَلَيْهِمْ، فَتَقْطَعُ عَلَيْهِمْ حَدِيثَهُمْ فَتُمِلُّهُمْ، وَلَكِنْ أَنْصِتْ، فَإِذَا أَمَرُوكَ فَحَدِّثْهُمْ وَهُمْ يَشْتَهُونَهُ، فَانْظُرِ السَّجْعَ مِنَ الدُّعَاءِ فَاجْتَنِبْهُ، فَإِنِّي عَهِدْتُ رَسُولَ اللَّهِ صلى الله عليه وسلم وَأَصْحَابَهُ لاَ يَفْعَلُونَ إِلاَّ ذَلِكَ. يَعْنِي لاَ يَفْعَلُونَ إِلاَّ ذَلِكَ الاِجْتِنَابَ

**په دعا کښې د قافيه لګولو حکم**: په دعا کښې دننه سجع او تکلف اختيارولو سره مقفى عبارتونو جوړولو سره پيش کول مکروه دی. دعا چونکه د الله پاک نه غوښتل، طلب کول او د خپلې عاجزئ د اظهار نوم دې، په دې وجه په دې موقع باندې قافيه لګول او عقلى عبارتونه لګول مناسب نه دی، خو که بغير د قصد او تکلف نه په الفاظو کښې روانى، سلاست او قافيه بندى راشى نو په دې کښې هيڅ باک نشته، د رسول الله ﷺ نه چه کومې دعاګانې منقول دی، په هغې کښې ډير دعاګانې مسجع دی، خو هغه سجع د څه تکلف او تصنع والا نه ده، بلکه يو صاحب ذوق خپله اندازه لګولې شی چه دا بې ساخت الهامى دعاګانې دی او په دې کښې د څه صنع لږ شان دخل هم نشته.[1]

د باب په اول روايت کښې د سيدنا ابن عباس رضي الله عنهما نصيحت نقل کړې شوې دې، هغوى فرمائى: په هفته کښې يو کرت يا دوه کرته او زيات نه زيات درې کرته وعظ کوئ، خلق د قرآن کريم نه مه ستړى کوئ او زه دې تاسو داسې بيا نه مومم چه تاسو يو جماعت ته راشئ او په خپلو خبرو کښې مشغول شئ او تاسو د هغه خبرې پرې کولو سره وعظ شروع کړئ او دغه شان هغوى تنګ کړئ، بلکه خاموش اوسيږئ چه کله هغوى تاسو ته پخپله د وعظ کولو اوائى او د هغې خواهش ظاهر کړی نو وعظ کوئ خو په دعا کښې د مقفى کلام نه ځان ساتئ، ځکه چه ما رسول الله ﷺ او د هغوى صحابه کرام رضي الله عنهم داسې ليدلې دی، يعنى هغوى به د دې نه ځان ساتلو.

**قوله:** ﴿فَانْظُرِ السَّجْعَ مِنَ الدُّعَاءِ فَاجْتَنِبْهُ﴾: يعنى په دعا کښې قافيه لګول موخر کړه، د هغې قصد او اراده مه کوه او خپل فکر او سوچ په هغې باندې مه مشغوله کوئ، ځکه چه په دعا کښې خشوع مطلوب ده، او په قافيه لګولو کښې تکلف دې، کوم چه د خشوع نه دې.

## ⑳ باب لِيَعْزِمِ الْمَسْأَلَةَ، فَإِنَّهُ لَا مُكْرِهَ لَهُ

[۵۹۷۹] حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ أَخْبَرَنَا عَبْدُ الْعَزِيزِ عَنْ أَنَسٍ - رضى الله عنه - قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - «إِذَا دَعَا أَحَدُكُمْ فَلْيَعْزِمِ الْمَسْأَلَةَ، وَلَا يَقُولَنَّ اللَّهُمَّ إِنْ شِئْتَ فَأَعْطِنِي. فَإِنَّهُ لَا مُسْتَكْرِهَ لَهُ». [۷۰۲۶]

**د دعا د يو بل ادب بيان**: امام بخارى رحمه الله په دې باب کښې يو بل ادب ذکر کړې دې او هغه دا چه دعا په کامل يقين سره کول پکار دی، ځکه چه په الله پاک باندې هيڅ څوک جبر کونکې نشته، پس د باب دا اول روايت د سيدنا انس رضي الله عنه نه دې، هغوى فرمائى چه رسول الله ﷺ اوفرمائيل چه کله په تاسو کښې يو سړى دعا غواړى، نو دا دې نه وائى چه يا الله! که ته غواړې نو ماته راکړه، ځکه چه په الله پاک باندې هيڅ څوک جبر کونکې نشته.

---

[1] فتح البارى ۱۶۷/۱۱، عمدة القارى ۲۹۸/۲۲، ارشاد السارى ۳٤۲/۱۳

[۵۹۸۰] حَدَّثَنَا عَبْدُ اللهِ بْنُ مَسْلَمَةَ عَنْ مَالِكٍ عَنْ أَبِي الزِّنَادِ عَنِ الأَعْرَجِ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ -رضى الله عنه- أَنَّ رَسُولَ اللهِ -صلى الله عليه وسلم- قَالَ: «لَا يَقُولَنَّ أَحَدُكُمُ اللَّهُمَّ اغْفِرْ لِي، اللَّهُمَّ ارْحَمْنِي، إِنْ شِئْتَ لِيَعْزِمِ الْمَسْأَلَةَ، فَإِنَّهُ لَا مُكْرِهَ لَهُ». [۷۰۳۹]

د باب دا دويم روايت د سيدنا ابوهريره رضي الله عنه نه دی، رسول الله ﷺ فرمائی: چه په تاسو کښې دې يو سړې داسې نه وائی چه يا الله! که ته غواړې نو ماته بخښنه اوکړه او په ما باندې رحم اوکړه بلکه په يقين سره غوښتل پکار دی ځکه چه الله پاک باندې هيڅ څوک جبر کونکې نشته.

علامه توريشتى رحمه الله ليکی: ﴿ اراد ادعوه معتقدين وقوع الاجابة، لان الداعى اذا لم يكن متحققا فى الرجاء لم يكن رجاؤه صادقا، واذا لم يكن الرجاء خالصا، والداعى مخلصا، فان الرجاء هو الباعث على الطلب، ولا يتحقق الفرع لا بتحقيق الاصل ﴾[1]

يعنى: د رسول الله ﷺ مطلب دا دې چه د الله پاک نه په دې يقين او اعتقاد سره دعاګانې غواړئ چه الله پاک به دا ضرور قبلوی، ځکه چه دعا کونکی ته به د دعا د قبوليت اميد نه وی نو د هغه اميد به صادق نه وی او چه کله اميد صادق نه دې نو دعا به هم خالص نه وی او داعى به هم مخلص نه وی، ځکه اميد د دعا غوښتلو باعث دې، او فرع د اصل نه بغير نه متحقق کيږی.

**قوله:** ﴿لَا يَقُولَنَّ أَحَدُكُمْ﴾: په دې کښې نهى د تحريم دپاره ده يا که د کراهت تنزيهى دپاره، دواړه اقوال دی، د امام نووی رحمه الله نه کراهت تنزيهى باندې محمول دې.[2]

خلاصه دا چه دعا کونکې دې پوره اميد ساتی چه الله پاک به د هغه دعا قبلوی او هغه به د څه استثناء او تعليق نه بغير مکمل په الحاح او زارئ سره د الله پاک په دربار کښې خپل مراد پيش کړی.

## ۲۱: بَابٌ يُسْتَجَابُ لِلْعَبْدِ مَا لَمْ يَعْجَلْ

[۵۹۸۱][3] حَدَّثَنَا عَبْدُ اللهِ بْنُ يُوسُفَ أَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ أَبِي عُبَيْدٍ مَوْلَى ابْنِ أَزْهَرَ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ أَنَّ رَسُولَ اللهِ -صلى الله عليه وسلم- قَالَ «يُسْتَجَابُ لِأَحَدِكُمْ مَا لَمْ يَعْجَلْ يَقُولُ دَعَوْتُ فَلَمْ يُسْتَجَبْ لِي».

[1] كتاب الميسر فى شرح مصابيح السنة، كتاب الدعوات، ۵۱۶/۲، (رقم الحديث: ۱۵۴۶)

[2] قال الحافظ ابن حجر: وحمل النووى النهى فى ذلک على كراهة التتنزيه، فتح البارى ۱۶۸/۱۱، تقول: لم يصرح النووى به، الا ان فحوى كلامه فى شرح هذا الحديث يدل على ذلک، (شرح مسلم للنووى، كتاب الذكر والدعاء والتوبة والاستغفار، باب العزم بالدعاء ولا يقل: ان شئت ۳۴۲/۲)

[3] (۵۹۸۱) الحديث اخرجه مسلم فى كتاب الذكر والدعاء، باب بيان انه يستجاب للداعى مالم يعجل (رقم الحديث: ۲۷۳۵) واخرجه ابوداؤد فى كتاب الصلاة، باب الدعاء: ۷۸/۲، ...

[بقيه برصفحه آئنده...

**د ترجمة الباب مقصد**: په دې باب کښې امام بخاری رحمه الله د دعا يو بل ادب بيان کړې دې. او هغه دا دې چه دعا مسلسل کول پکار دی او په يو موقع باندې هم دا نه دی ونيل پکار چه زه دعا خو کوم خو قبليږی نه. پس په روايت الباب کښې رسول الله ﷺ فرمائی چه د هر سړی دعا قبليږی په دې شرط چه هغه تندی اونکړی چه داسې او نه وائی چه ما دعا اوغوښتله خو قبوله نه شوه.

**په دعا کښې ستړې والې د قبوليت نه مانع دې**: په صحيح مسلم او سنن ترمذی کښې د سيدنا ابوهريره رضی الله عنه روايت دې. د هغې الفاظ دی:

﴿ لَا يَزَالُ يُسْتَجَابُ لِلْعَبْدِ مَا لَمْ يَدْعُ بِإِثْمٍ أَوْ قَطِيعَةِ رَحِمٍ مَا لَمْ يَسْتَعْجِلْ. قِيلَ يَا رَسُولَ اللهِ مَا الِاسْتِعْجَالُ قَالَ: يَقُولُ قَدْ دَعَوْتُ وَقَدْ دَعَوْتُ فَلَمْ أَرَ يَسْتَجِيبُ لِي فَيَسْتَحْسِرُ عِنْدَ ذَلِكَ وَيَدَعُ الدُّعَاءَ ﴾ (١)

يعنی د بنده دعا مسلسل قبليږی چه ترڅو پورې هغه د ګناه يا د قطع رحمئ دعا اونکړی او ترڅو پورې چه هغه د جلد بازئ مظاهره اونکړی، چا تپوس اوکړو د تندئ نه د کار اخستلو څه مطلب دې؟ رسول الله ﷺ اوفرمائيل: چه داسې اوائی چه ما بار بار دعا اوغوښتله. خو ماته نه ښکاری چه زما دعا به قبوله شی، نو هغه په دې وخت کښې د ستړی کيدو مظاهره کولو سره دعا پريږدی.

مطلب دا دې چه هغه دعا کولو کولو سره تنګ شو او هغه دا جمله اووئيله.

علامه قسطلانی رحمه الله د مظهری په حوالې سره ليکلې دی چه په کومه دعا کښې انسان تنګ شی هغه نه قبليږی ځکه چه دعا عبادت دې او د مومن شان دا نه دې چه هغه د خپل رب په عبادت کښې د ستړی والی اظهار اوکړی. (٢) دعا که هغه وخت سره قبوله شی او که نه شی. خپله د څو رحمتونو او برکتونو ذريعه او باعث وی.

امام ترمذی رحمه الله د سيدنا ابن عمر رضی الله عنهما يو مرفوع حديث نقل فرمائيلې دې، په هغې کښې دی

﴿ مَنْ فُتِحَ لَهُ مِنْكُمْ بَابُ الدُّعَاءِ فُتِحَتْ لَهُ أَبْوَابُ الرَّحْمَةِ ﴾ (٣)

يعنی: په تاسو کښې چه د چا دپاره د دعا دروازه پرانستلې شوه. د هغه دپاره د رحمت دروازې پرانستلې شوې.

---

...بقيه ازحاشيه گذشته] (رقم الحديث: ١٤٨٤)، واخرجه الترمذی فی کتاب الدعاء، باب ما جاء فيمن يستعجل فی دعائه: ٤٦٤/٥، (رقم الحديث: ٣٣٨٧) واخرجه ابن ماجة فی کتاب الدعاء، باب يستجاب لاحدکم ما لم يعقل (رقم الحديث: ٣١٥٣)

(١) صحيح مسلم، کتاب الذکر والدعاء والتوبة والاستغفار، باب بيان انه يستجاب للداعی مالم يعجل، فيقول: دعوت فلم يستجب لی: ٢٠٩٦/٤، رقم الحديث: ٢٧٣٥، ورواه الترمذی ولفظه: عن أبی هريرة: عن النبی صلی الله عليه و سلم قال يستجاب لأحدکم مالم يعجل يقول دعوت فلم يستجب لی. کتاب الدعوات، باب ما جاء فيمن يستعجل فی دعائه: ٤٦٤/٥، رقم الحديث: ٣٣٨٧

(٢) ارشاد الساری: ٤٣٣/١٣

(٣) سنن الترمذی، کتاب الدعوات، باب فی دعاء النبی صلی الله عليه وسلم: ٥٥١/٥، رقم الحديث: ٣٥٤٧

هم دغه شان په يو روايت كښې دى ﴿مَنْ رُزِقَ الدُّعَاءَ لَمْ يُحْرَمِ الْإِجَابَةَ﴾ [1]
يعنى چاته چه د دعا توفيق ملاؤ شو هغه د قبوليت نه نه محروم كيږى

## ۲۲: بَاب رَفْعِ الأَيْدِي فِي الدُّعَاءِ

وَقَالَ أَبُو مُوسَى الأَشْعَرِيُّ دَعَا النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - ثُمَّ رَفَعَ يَدَيْهِ، وَرَأَيْتُ بَيَاضَ إِبْطَيْهِ. [ر: ۴۰۶۸] وَقَالَ ابْنُ عُمَرَ رَفَعَ النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - يَدَيْهِ «اللَّهُمَّ إِنِّي أَبْرَأُ إِلَيْكَ مِمَّا صَنَعَ خَالِدٌ». [۴۰۸۴]

قَالَ أَبُو عَبْدِ اللَّهِ وَقَالَ الأُوَيْسِيُّ حَدَّثَنِي مُحَمَّدُ بْنُ جَعْفَرٍ عَنْ يَحْيَى بْنِ سَعِيدٍ وَشَرِيكٍ سَمِعَا أَنَسًا عَنِ النَّبِيِّ - صلى الله عليه وسلم - رَفَعَ يَدَيْهِ حَتَّى رَأَيْتُ بَيَاضَ إِبْطَيْهِ. [ر: ۹۸۴]

**په دعا كښې د رفع اليدين ثبوت**: د رسول الله ﷺ نه لاسونه اوچتول په ډيرو احاديثو كښې ثابت دى، پس په باب كښې چه امام بخارى رحمه الله كوم درې معلق روايتونه ذكر كړې دى. په هغې كښې د رفع اليدين ذكر دې، د سيدنا ابو موسى اشعرى رضي الله عنه تعليق په كتاب المغازى كښې، د سيدنا ابن عمر رضي الله عنهما تعليق هم په مغازى كښې موصولا ذكر شوې دې او د اويسى تعليق ابو نعيم موصولا نقل كړې دې. [2] د اويسى نوم عبدالعزيز بن عبدالله دې. [3]
امام بخارى رحمه الله په دې احاديثو سره كيدې شى چه دهغه خلقو رد كول غواړى كوم چه د استسقاء نه علاوه په باقى خايونو كښې د لاس اوچتولو قائل نه دى، هغوى د سيدنا انس رضي الله عنه د حديث نه استدلال كوى چه په هغې كښې دى:
﴿كَانَ النَّبِيُّ صلى الله عليه وسلم: لَا يَرْفَعُ يَدَيْهِ فِي شَيْءٍ مِنْ دُعَائِهِ إِلَّا فِي الِاسْتِسْقَاءِ﴾ [4]
يعنى رسول الله ﷺ د استسقاء نه علاوه كله هم په دعا كښې لاس نه دى اوچت كړې.
**په حديث استسقاء او احاديث الباب كښې تطبيق**: حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى چه دا حديث اګر چه صحيح دې خو په دې حديث او هغه احاديثو كښې په كوم كښې چه رفع اليدين ثابت

---

[1] لم اجد بهذا اللفظ فى كتب الحديث المتوفرة لدى. ووجدت ما يقارب لذلک وهو ما ذكره ابن عساكر. ولفظه عن ابى هريرة، انه كان يقول : ما اخاف ان احرم الاجابة، ولكنى اخاف ان احرم الدعاء (التمهيد لابن عبدالبر : ۲۹۸/۱۰) (قلت : وجدت هذا الحديث فى شعب الايمان للبيهقى باسناد ضعيف عن ابن مسعود رضى الله تعالى عنه ۲۹٤/۶ (رقم الحديث : ۴۲۱۰) والاحاديث المختارة للضياء المقدسى عن انس بن مالک رضى الله تعالى عنه ۳۴۵/۲ (رقم الحديث : ۱۸۱٤) وفيه : مَنْ أُعْطِيَ الدُّعَاءَ لَمْ يُحْرَمِ الْإِجَابَةَ، وقال عبد الملک بن عبد الله بن دهيش : إسناده صحيح)

[2] فتح البارى ۱۷۰/۱۱، ارشاد السارى ۳۴۵/۱۳

[3] عمدة القارى ۳۰۰/۲۲، ارشاد السارى : ۲۴۵/۱۳، فتح البارى ۱۷۰/۱۱

[4] صحيح البخارى، كتاب الاستسقاء، باب رفع الامام يده فى الاستسقاء ص : ۲۲۱، (رقم الحديث : ۱۰٤۱) وصحيح مسلم : كتاب الاستسقاء : باب رفع اليدين بالدعاء فى الاستسقاء ۶۱۶/۲، (رقم الحديث : ۷۹۵)

دی تطبیق داسې کیدې شی چه د سیدنا انس رضی الله عنه په حدیث کښې په حقیقت کښې مطلقا د رفع الیدین نفی نه ده شوې. بلکه په مخصوص صفت سره د رفع الیدین نفی کړې شوې ده او مطلب دا دې چه رسول الله ﷺ به چه څنګه د استسقاء په وخت لاسونه ډیر اوچتول تردې چه لاسونه مبارک به ئې د مخ مبارک برابر شو. په دې وصف سره به ئې داسې په عام دعا کښې لاسونه نه اوچتول، په عام دعاګانو کښې به ئې لاسونه د اوږو برابر اوچتول. پس هغوی لیکی:

﴿ لکن جمع بینه وبین احادیث الباب وما فی معناها بان المنفی صفة خاصة لا اصل الرفع..... وحاصله ان الرفع فی الاستسقاء یخالف غیره اما بالمبالغة إلی ان تصیر الیدان فی حذو الوجه مثلا وفی الدعاء إلی حذو المنکبین... واما ان الکفین فی الاستسقاء یلیان الأرض وفی الدعاء یلیان السماء ﴾ [۱]

یعنی په حدیث استسقاء او احادیث الباب کښې داسې تطبیق ورکړې شوې دې چه په حدیث الاستسقاء کښې مطلقا د رفع الیدین نفی نه ده کړې شوې بلکه په یو خاص صفت سره د هغې نفی کړې شوې ده. د دې تطبیق حاصل دا دې چه په استسقاء کښې رفع الیدین په کوم صفت سره وی، په هغه صفت سره په دعا کښې نه وی یا خو په دې طریقه چه په استسقاء کښې لاس اوچتولو کښې دومره مبالغه کولې شی چه هغه مخ ته مخامخ راشی او حال دا چه په دعا کښې اوږو ته مخامخ اوچتولې شی. یا په داسې طریقه چه په استسقاء کښې د لاسونو رخ د زمکې طرف ته، او په دعا کښې د آسمان طرف ته وی.

امام منذری رحمه الله فرمائی چه د جمع او تطبیق د متعذر کیدو په صورت کښې به د ترجیح طریقه اختیارولې شی او د اثبات روایات د صحت او کثرت په اعتبار سره راجح دی. [۲]

خپله امام بخاری رحمه الله د جزء رفع الیدین په نوم سره یو مستقل رسالة لیکلې ده چه په هغې کښې هغوی هغه احادیث راجمع کړې دی چه په هغې کښې د رسول الله ﷺ نه په دعا کښې رفع الیدین ثابت دی. د سیده عائشه، عبدالرحمن بن سمرة، ابوهریره، عبدالله بن عمرو بن العاص، عمر فاروق، اسامة بن زید او د قیس بن سعد رضی الله عنهم روایات حافظ ابن حجر رحمه الله ذکر کړې دی چه په هغې کښې د دعا په وخت د لاس اوچتولو ذکر دې. [۳]

د سنن ابی داؤد او جامع ترمذی په یو مرفوع روایت کښې دی:

﴿ إِنَّ رَبَّكُمْ تَبَارَكَ وَتَعَالَىٰ حَيِيٌّ كَرِيمٌ يَسْتَحْيِي مِنْ عَبْدِهِ إِذَا رَفَعَ يَدَيْهِ إِلَيْهِ أَنْ يَرُدَّهُمَا صِفْرًا ﴾ [٤]

یعنی ستاسو رب حیا کونکې او رحم کونکې دې بنده چه کله د دعا دپاره هغه ته لاسونه اوچت کړی نو هغه د هغې په خالی واپس کولو باندې حیاء کوی.

---

[۱] فتح الباری ۱۱/۱۷۰. ۱۷۱

[۲] فتح الباری: ۱۱/ ۱۷۱

[۳] فتح الباری ۱۱/۱۷۱

[٤] سنن ابی داؤد، کتاب الصلاة، باب الدعاء: ۲/۷۸، (رقم الحدیث: ۱٤۷۸)

**په دعا کښې د لاس اوچتولو حد** : لاس د کوم ځائې پورې اوچتول پکار دی، په دې سلسله کښې روایات مختلف دی، د سينې برابر، د اوږو برابر، د مخ برابر او د سر برابر.[1] د سينې برابر اوچتولو ته ابن عباس رضي الله عنهما د دعا وصل وئيلې دې.[2]

## ۲۳: بَابُ الدُّعَاءِ غَيْرَ مُسْتَقْبِلِ الْقِبْلَةِ

[۵۹۸۲] حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ مَحْبُوبٍ حَدَّثَنَا أَبُو عَوَانَةَ عَنْ قَتَادَةَ عَنْ أَنَسٍ - رضى الله عنه - قَالَ بَيْنَا النَّبِىُّ -صلى الله عليه وسلم- يَخْطُبُ يَوْمَ الْجُمُعَةِ فَقَامَ رَجُلٌ فَقَالَ يَا رَسُولَ اللَّهِ ادْعُ اللَّهَ أَنْ يَسْقِيَنَا . فَتَغَيَّمَتِ السَّمَاءُ وَمُطِرْنَا، حَتَّى مَا كَادَ الرَّجُلُ يَصِلُ إِلَى مَنْزِلِهِ، فَلَمْ تَزَلْ تُمْطَرُ إِلَى الْجُمُعَةِ الْمُقْبِلَةِ، فَقَامَ ذَلِكَ الرَّجُلُ أَوْ غَيْرُهُ فَقَالَ ادْعُ اللَّهَ أَنْ يَصْرِفَهُ عَنَّا، فَقَدْ غَرِقْنَا . فَقَالَ « اللَّهُمَّ حَوَالَيْنَا وَلاَ عَلَيْنَا » . فَجَعَلَ السَّحَابُ يَتَقَطَّعُ حَوْلَ الْمَدِينَةِ ، وَلاَ يُمْطِرُ أَهْلَ الْمَدِينَةِ.[ر: ۸۹۰]

د سيدنا انس رضي الله عنه روايت دې چه يو کرت رسول الله صلی الله علیه وسلم د جمعې په ورځ باندې خطبه ورکوله، يو سړې اودريدلو اوعرض ئې اوکړو چه يا رسول الله صلی الله علیه وسلم دعا اوکړئ چه په مونږ خلقو باندې باران اوشی، آسمان باندې وريځ راغله او باران شروع شو، تردې چه خلق خپلو کورونو ته نه شی رسيدلې، د بلې جمعې پورې باران وريدلو، نو هم هغه سړې يا بل سړې اودريدلو او عرض ئې اوکړو چه الله پاک نه اوغواړئ چه زمونږ نه باران واړوی مونږ خو ډوب شو، رسول الله صلی الله علیه وسلم اوفرمائيل : اې الله ! زمونږ نه چاپيره ئې او وروه او په مونږ ئې مه وروه، پس وريځ د مدينې نه ګير چاپيره خوره شوه (او باران کيدو) خو په مدينه کښې باران نه کيدلو.

**د ترجمة الباب مقصد** : د دې باب مقصد دا دې چه د دعا په آدابو کښې يو ادب اګر چه دا دې چه قبلې ته مخ کولو سره دې دعا اوکړې شی خو دا ضروری نه دې، بعض موقعو باندې انسان د قبلې نه مخ اړولو سره هم دعا کولې شی لکه چه په روايت الباب کښې دی چه رسول الله صلی الله علیه وسلم د باران دپاره د خطبې دوران کښې دعا اوفرمائيله، په مسجد کښې د خطبې په وخت د خطيب مخ د خلقو طرف ته وی، هغه قبلې ته نه وی مخ کړې. معلومه شوه چه داسې دعا غوښتل ثابت دی.[3]

---

[1] عمدة القاری ۳۰۱/۲۲، فتح الباری : ۱۷۲/۱۱

[2] عمدة القاری ۳۰۱/۲۲، فتح الباری : ۱۷۲/۱۱

[3] فتح الباری : ۱۷۲/۱۱، عمدة القاری : ۳۰۱/۲۲، ارشاد الساری: ۳۴۶/۳

## ٢٤: باب الدُّعَاءِ مُسْتَقْبِلَ الْقِبْلَةِ

[٥٩٨٣] حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ حَدَّثَنَا وُهَيْبٌ حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ يَحْيَى عَنْ عَبَّادِ بْنِ تَمِيمٍ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ زَيْدٍ قَالَ خَرَجَ النَّبِي - صلى الله عليه وسلم - إِلَى هَذَا الْمُصَلَّى يَسْتَسْقِي، فَدَعَا وَاسْتَسْقَى ثُمَّ اسْتَقْبَلَ الْقِبْلَةَ وَقَلَبَ رِدَاءَهُ. [ر: ٩٦٠]

**د ترجمة الباب مقصد**: په حديث کښې د دعا ذکر نشته. بلکه صرف دومره خبره ده چه رسول الله ﷺ د عيدګاه طرف ته اوتلو. د باران دپاره ئې دعا اوکړه. بيا ئې د قبلې طرف ته مخ کولو سره څادر الټه کړو.

اسماعيلي رحمه الله فرمائی چه د قبلې طرف ته مخ کولو په وخت څادر الټه کولو سره رسول الله ﷺ دعا کړې ده د دې صراحتاً اګر چه په روايت الباب کښې نشته. خو د دې حديث په نورو طرقو کښې د هغې ذکر شته. امام بخاري رحمه الله د خپل عادت مطابق په ترجمة الباب سره د هغې طرف ته اشاره کړې ده.[1]

د دې نه علاوه په نورو ډيرو احاديثو کښې هم دی. چه په هغې کښې قبلې ته مخ کولو سره د رسول الله ﷺ د دعا کولو تذکره ده.

په صحيح مسلم کښې د سيدنا عبدالله بن عباس رضي الله عنهما نه روايت دې:

﴿ لَمَّا كَانَ يَوْمُ بَدْرٍ نَظَرَ رَسُولُ اللهِ - صلى الله عليه وسلم - إِلَى الْمُشْرِكِينَ فَاسْتَقْبَلَ الْقِبْلَةَ ثُمَّ مَدَّ يَدَيْهِ فَجَعَلَ يَهْتِفُ بِرَبِّهِ ﴾.[2]

يعنى د غزوه بدر په ورځ رسول الله ﷺ د مشرکينو طرف ته اوکتل. بيا ئې قبلې طرف ته مخ کولو سره خپل دواړه لاسونه خوارهٔ کړل او خپل رب ئې راوبللو.

د سيدنا عبدالله بن مسعود رضي الله عنه روايت دې: ﴿ اسْتَقْبَلَ النَّبِيُّ صلى الله عليه وسلم الْكَعْبَةَ فَدَعَا عَلَى نَفَرٍ مِنْ قُرَيْشٍ ﴾.[3]

يعنى رسول الله ﷺ د خانه کعبې طرف ته مخ کړو. بيا ئې د قريشو يو جماعت ته بددعا اوکړه.

[1]) فتح البارى: ١١/١٧٣. عمدة القارى: ٢٢/٣٠١. ارشاد السارى: ٣/٣٤٧

[2]) صحيح مسلم، كتاب الجهاد والسير، باب الإمداد بالملائكة فى غزوة بدر وإباحة الغنائم: ٣/١٣٧٣، رقم الحديث (١٧٦٣)

[3]) صحيح بخارى، كتاب المغازى، باب دعاء النبى صلى الله عليه وسلم على كفار قريش ص ٨٣٠ (رقم الحديث: ٣٩٦٠)

## ۲۵: باب دَعْوَةِ النَّبِيِّ صلى الله عليه وسلم لِخَادِمِهِ بِطُولِ الْعُمُرِ وَبِكَثْرَةِ مَالِهِ

[۵۹۸۴] حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ أَبِي الأَسْوَدِ حَدَّثَنَا حَرَمِيٌّ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ قَتَادَةَ عَنْ أَنَسٍ -رضي الله عنه- قَالَ قَالَتْ أُمِّي يَا رَسُولَ اللَّهِ خَادِمُكَ أَنَسٌ ادْعُ اللَّهَ لَهُ. قَالَ «اللَّهُمَّ أَكْثِرْ مَالَهُ وَوَلَدَهُ، وَبَارِكْ لَهُ فِيمَا أَعْطَيْتَهُ». [ر ۱۸۸۱]

رسول الله ﷺ د سيدنا انس رضي الله عنه دپاره د كثرت مال او اولاد او اوږد عمر دعا فرمائيلې وه، په روايت الباب كښې اګر چه د طول عمر ذكر نشته، خو د دې روايت په دويم طريق كښې د دې ذكر دې. د هغې الفاظ دا دی ﴿اللَّهُمَّ، أَكْثِرْ مَالَهُ وَوَلَدَهُ، وَأَطِلْ حَيَاتَهُ، وَاغْفِرْ لَهُ﴾ اې الله ! ته هغه ته د مال او اولاد كثرت وركړه، او د هغه ژوند اوږد كړه او د هغه مغفرت اوكړه. امام بخارى رحمه الله په الادب المفرد كښې د دې تخريج كړې دې. [۱]

پس الله پاك هغوی ته د رسول الله ﷺ د دعا په وجه باندې مال او دولت هم وركړو او هغوی ډير اوږد عمر هم بيا موندلو، د هغوی په ژوند باندې د هغوی د ځامنو او نمسو وغيره تعداد سلو ته رسيدلې وو. [۲]

په بصره كښې يو باغ وو چه هغې به په كال كښې دوه كرته ميوه وركوله. په هغې كښې يو ګل وو چه د هغې نه به د مشكو خوشبوئى راتله. [۳] د هغوى عمر هم يو سل او درې يا يو سل او اووۀ كلونه وو. [۴]

## ۲۶: باب الدُّعَاءِ عِنْدَ الْكَرْبِ

[۵۹۸۵، ۵۹۸۶] [۵] حَدَّثَنَا مُسْلِمُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ حَدَّثَنَا هِشَامٌ حَدَّثَنَا قَتَادَةُ عَنْ أَبِي الْعَالِيَةِ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ -رضي الله عنهما- قَالَ كَانَ النَّبِيُّ -صلى الله عليه وسلم- يَدْعُو عِنْدَ الْكَرْبِ «لاَ إِلَهَ إِلاَّ اللَّهُ الْعَظِيمُ الْحَلِيمُ، لاَ إِلَهَ إِلاَّ اللَّهُ رَبُّ السَّمَوَاتِ وَالأَرْضِ، رَبُّ الْعَرْشِ الْعَظِيمِ».

---

[۱] الادب المفرد (مع فضل الله الصمد) باب من دعا بطول العمر : ۱۰۶/۲، (رقم الحديث : ۶۵۳) (قلت : اسناده صحيح)

[۲] فتح البارى : ۱۷٤/۱۱، عمدة القارى : ۳۰۲/۲۲، ارشاد السارى: ۳٤۷/۳

[۳] فتح البارى : ۱۸٤/۱۱، عمدة القارى : ۲۹۷/۲۲

[۴] فتح البارى : ۱۸٤/۱۱، عمدة القارى : ۲۹۷/۲۲

[۵] (۵۹۸۵/۵۹۸۶) الحديث اخرجه البخارى ايضا فى كتاب الدعوات، باب الدعاء عند الكرب (رقم الحديث : ۶۳٤۶) واخرجه ايضا فى كتاب التوحيد، باب قول الله تعالى (تعرج الملائكة والروح اليه) (المعارج : ٤) (رقم الحديث : ۷٤۳۱)، واخرجه مسلم فى كتاب الذكر والدعاء باب الدعاء للكرب (رقم

[۵۹۸۲] حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا يَحْيَى عَنْ هِشَامِ بْنِ أَبِي عَبْدِ اللَّهِ عَنْ قَتَادَةَ عَنْ أَبِي الْعَالِيَةِ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صلى الله عليه وسلم كَانَ يَقُولُ عِنْدَ الْكَرْبِ «لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ الْعَظِيمُ الْحَلِيمُ، لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ رَبُّ الْعَرْشِ الْعَظِيمِ، لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ رَبُّ السَّمَوَاتِ، وَرَبُّ الْأَرْضِ وَرَبُّ الْعَرْشِ الْكَرِيمِ» وَقَالَ وَهْبٌ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ قَتَادَةَ مِثْلَهُ. [۶۹۹۰، ۶۹۹۴]

**د مصيبت د وخت خاص دعاء**: رسول اللهﷺ به د سخت غم او پريشانئ په وخت چه کومه دعا لوستله. امام بخاری رحمه الله هغه دلته ذکر فرمائيلي ده. د هغې الفاظ دا دی: ﴿لَا إِلَهَ إِلَّا اللهُ الْعَظِيمُ الْحَلِيمُ لَا إِلَهَ إِلَّا اللهُ رَبُّ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ رَبُّ الْعَرْشِ الْعَظِيمِ﴾ يعنی د الله پاک نه سوا بل معبود نشته. کوم چه د آسمانونو او زمکې رب دې (او) د عرش عظيم رب دې

د اول روايت الفاظ د مخکښې روايت نه مختلف دی.

**قوله**: ﴿حَدَّثَنَا قَتَادَةُ، عَنْ أَبِي الْعَالِيَةِ﴾: د ابوالعاليه نوم رفيع دې. د هغوی نه دا روايت قتادة نقل کړې دې خو په عنعنه سرد دې. او قتادة مدلس دې. د مدلس عنعنه قبول نه وی.

پس امام ابوداؤد رحمه الله په سنن ابی داؤد کښې د کتاب الطهارت د لاندې د امام شعبه رحمه الله قول نقل کړې دې چه د ابوالعاليه نه قتادة صرف څلور احاديث اوريدلې دی (۱) او په هغه څلورو احاديثو کښې حديث الباب شامل نه دې

ابن ابی حاتم په مراسيل کښې د څلورو په ځائې د دريو ذکر کړې دې. (۲)

خو د امام بخاری رحمه الله په نزد د څلورو او دريو دا حصه غير معتبر ده. وجه د دې دا ده چه شعبه د مدلس راويانو عنعنه نه نقل کوی چه تر څو پورې د سماع تصريح نه وی او دا حديث خپله شعبه هم د قتادة نه نقل کړې دې کوم چه د دې خبرې دليل دې چه امام قتادة د سماع د تصريح سره هم دا روايت د ابوالعاليه نه نقل کړې دی (۳)

کيدې شی چه هم په دې وجه باندې امام بخاری رحمه الله د باب په آخر کښې د وهب تعليق ذکر فرمائيلي وی. وقال وهب: **وَقَالَ وَهْبٌ، حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، عَنْ قَتَادَةَ مِثْلَهُ.**

**د مصيبت د دعاء فضيلت**: ابن بطال رحمه الله ليکلې دی چه ابوبکر رازی په اصبهان کښې د علم

---

الحديث: ۲۷۳) واخرجه الترمذی فی کتاب الدعوات، باب ما جاء ما يقول عند الكرب (رقم الحديث: ۳۴۳۵) واخرجه ابن ماجة فی کتاب الدعاء باب الدعاء عند الكرب: (رقم الحديث: ۳۸۸۳).

(۱) سنن ابی داؤد، کتاب الطهارة، باب فی الوضوء من النوم، تحت رقم الحديث: ۲۰۲، ولفظه: وَقَالَ شُعْبَةُ إِنَّمَا سَمِعَ قَتَادَةُ مِنْ أَبِي الْعَالِيَةِ أَرْبَعَةَ أَحَادِيثَ حَدِيثَ يُونُسَ بْنِ مَتَّى وَحَدِيثَ ابْنِ عُمَرَ فِي الصَّلَاةِ وَحَدِيثَ الْقُضَاةُ ثَلَاثَةٌ وَحَدِيثَ ابْنِ عَبَّاسٍ حَدَّثَنِي رِجَالٌ مَرْضِيُّونَ مِنْهُمْ عُمَرُ وَأَرْضَاهُمْ عِنْدِي عُمَرُ. فتح البارى: ۱۷۴/۱۱، عمدة القارى: ۳۰۲/۲۲، ارشاد السارى: ۳۴۹/۳

(۲) فتح البارى: ۱۷۵/۱۱

(۳) فتح البارى: ۱۷۵/۱۱، عمدة القارى: ۳۰۲/۲۲

حديث په سلسله کښې مقيم وو. هلته د ابوبکر بن علي په نوم يو مفتي عالم دين وو. په څه وجه باندې د هغه خانې امير د هغوی نه خفه شو او هغوی ئې گرفتار کړل او جيل ته ئې اوليږل. ابوبکر رازی په خوب کښې رسول الله ﷺ اوليدو چه هغوی فرمائي ابوبکر بن علي ته لاړ شه او وايه چه په صحيح بخاری کښې ذکر شوې د مصيبت دعا اولوله. الله پاک به ستا دا مصيبت لرې کړي واپس هغوی لاړل او د دې خوب ذکر ئې هغوی ته اوکړو. هغوی چه څنګه دا دعا لوستل شروع کړل. د ښهر امير هغوی آزاد کړل [1].

**د پريشانئ او مصيبت په وخت نورې ماثور دعاګانې** د پريشانئ او مصيبت په وخت په احاديثو کښې دا دعاګانې هم منقول دی:

① ﴿ اللهُ اللهُ رَبِّي لَا أُشْرِكُ بِهِ شَيْئًا ﴾، په سنن ابی داؤد کښې د اسماء بنت عميس رضي الله عنها نه منقول ده [2]، چه د هغې ترجمه دا ده: الله! الله زما رب دې. زه د هغه سره هيڅ نه شريکوم

② ﴿ اللَّهُمَّ رَحْمَتَكَ أَرْجُو فَلَا تَكِلْنِي إِلَى نَفْسِي طَرْفَةَ عَيْنٍ وَأَصْلِحْ لِي شَأْنِي كُلَّهُ لَا إِلَهَ إِلَّا أَنْتَ ﴾ په سنن ابی داؤد کښې د سيدنا ابوبکر رضي الله عنه نه منقول ده. [3] (د دې ترجمه دا ده: اې الله! زه ستاسو د رحمت اميدوار يم. پس ته ما سترګې د رپيدلو په قدر هم زما نفس ته مه حواله کوه او ته زما ټول امور برابر کړې. ستا نه سوا بل معبود نشته).

③ ﴿ لَا إِلَهَ إِلَّا أَنْتَ سُبْحَانَكَ إِنِّي كُنْتُ مِنَ الظَّالِمِينَ ﴾ په سنن ترمذی او مستدرک حاکم کښې دی ﴿ لَمْ يَدْعُ بِهَا رَجُلٌ مُسْلِمٌ فِي شَيْءٍ قَطُّ إِلَّا اسْتُجِيبَ لَهُ ﴾ [4] يعنی يو مسلمان چه په څه سلسله کښې هم په دې کلماتو سره دعا کړي ده الله پاک د هغه دعا قبول فرمائيلي ده.

## ۲۷: بَابُ التَّعَوُّذِ مِنْ جَهْدِ الْبَلَاءِ

[۵۹۸۷] حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ حَدَّثَنِي سُمَيٌّ عَنْ أَبِي صَالِحٍ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ كَانَ رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - يَتَعَوَّذُ مِنْ جَهْدِ الْبَلَاءِ، وَدَرَكِ الشَّقَاءِ، وَسُوءِ الْقَضَاءِ، وَشَمَاتَةِ الْأَعْدَاءِ.

قَالَ سُفْيَانُ الْحَدِيثُ ثَلَاثٌ زِدْتُ أَنَا وَاحِدَةً، لَا أَدْرِي أَيَّتُهُنَّ هِيَ. [۶۹۴۲]

﴿جَهْد﴾ (د جيم په فتحې او د هاء په سکون سره) مشقت ته وئيلې شي او ﴿بلاء﴾ ازميښت ته وائي.

---

[1] فتح البارى : ۱۷۵/۱۱ وشرح ابن بطال : ۱۱۳/۱۰

[2] سنن ابى داؤد. كتاب الادب. باب فى الاستغفار. رقم الحديث ۱۵۲۵. وسنن ابن ماجة فى كتاب الدعوات. باب الدعاء عند الكرب. رقم الحديث : ۳۸۸۲. وفتح البارى : ۱۷۶/۱۱

[3] سنن ابى داؤد. كتاب الادب. فى اخر باب ما يقول اذا اصبح. رقم الحديث : ۵۰۹۰. وفتح البارى: ۷۶/۱۱

[4] سنن الترمذى فى كتاب الدعوات. باب. رقم الحديث : ۳۵۰۵. واخرجه الحاكم فى المستدرک فى كتاب الدعاء والتكبير والتهليل والتسبيح والذكر : ۵۰۵/۱. فتح البارى : ۱۷۶/۱۱. (قلت : لم اجده بلفظ صاحب كشف البارى فاخرجته من المستدرک باحدى ثلاثة طرق)

سيدنا ابوهريره رضي الله عنه فرمائي چه رسول الله ﷺ به د ازمېښت د مشقت نه، د بدبختئ نه، د بدو فيصلو نه او د دشمنانو د خندا نه پناه غوښتله. د سفيان بيان دې، چه په حديث کښې درې خبرې وې په هغې باندې ما يوه زياته کړه ماته ياد نه دى چه هغه کومه خبره ده.

**د جهد البلاء تشريح**: د ﴿ جهد الهلاء ﴾ تشريح بعض شارحينو په دې الفاظو سره کړې ده.

﴿الحالة التي يمتحن بها الانسان وتشق عليه بحيث يتمنى فيها الموت ويختاره عليها ﴾ [1] يعنى هغه حالت چه په هغې سره بنده ازمېښتلې شى او په بنده باندې دومره گران شى چه بنده په هغې کښې د مرگ غوښتنه کوى او په دې باندې مرگ ته ترجيح ورکوى.

د سيدنا ابن عمر رضي الله عنهما نه د ﴿ جهد الهلاء ﴾ تشريح د مال کم والې او د بال بچ ډيريدل نقل دى [2]،

علامه ابن بطال رحمه الله د ﴿ جهد الهلاء ﴾ وضاحت داسې کړې دې!

﴿ كل ما اصاب المرء من شدة المشقة والجهد ومالا طاقة له بحمله ولا يقدر على دفعه من نفسه ﴾ [3]

يعنى: د دې نه مراد انسان ته پيښيدونکې هغه سخت تکليف دې، چه د هغې د برداشت کولو هغه طاقت نه لرى او نه د هغې په دفع کولو باندې قادر وى.

**قوله: درك الشقاء**: ﴿ دَرك ﴾ (د راء په فتحې او سکون سره، ﴿ دَرك ﴾ په معنى د ادراک او الحاق. د ﴿ شقاء ﴾ معنى هلاکت او بدبختى. ﴿ سوٴ القضاء ﴾: داسې فيصله چه د انسان په حق کښې بده وى. ﴿ شماتة ﴾ د دشمن خندا او خوشحالئ ته وائى کومه چه د انسان په مصيبت کښې د اخته کيدو نه پس وى. [4]

**قوله: ﴿ قَالَ سُفْيَانُ الْحَدِيثُ ثَلَاثٌ زِدْتُ أَنَا وَاحِدَةً ﴾**: سفيان بن عيينه رحمه الله فرمائى چه په اصل حديث کښې د درې څيزونو ذکر وو. ما دلته څلور څيزونه، جهد بلاء، درک شقاء، سوء قضاء او شماتة اعداء ذکر کړى دى. په دې کښې د يو اضافه ما د خپل طرف نه کړې ده. خو اوس ماته معلومه نه ده چه هغه کومه يوه ده.

د اسماعيلى په روايت کښې د دې تصريح راغلې ده چه هغه ﴿ شماتة الاعداء ﴾ دې. [5] سفيان نه اول ياد وو لکه چه د اسماعيلى په روايت کښې دى خو بيا ترې هير شو او هغوى ته ياد پاتې نه شو لکه چه دلته ذکر شوې دى. [6]

---

[1]) ارشاد السارى ۱۳/۳۵۰

[2]) فتح البارى: ۱۱/۱۷۸، عمدة القارى: ۲۲/۳۰۲، ارشاد السارى: ۳/۳۵۰

[3]) شرح ابن بطال: ۱۰/۱۱۳، فتح البارى: ۱۱/۱۷۸، عمدة القارى: ۲۲/۳۰۲

[4]) فتح البارى: ۱۱/۱۷۸، عمدة القارى: ۲۲/۳۰٤، ارشاد السارى: ۳/۳۵۰

[5]) فتح البارى: ۱۱/۱۷۸، ارشاد السارى ۱۳/۳۵۰

[6]) فتح البارى: ۱۱/۱۷۸، عمدة القارى: ۲۲/۳۰٤، ارشاد السارى: ۳/۳۵۰

## ۲۸: باب دُعَاءِ النَّبِي صلى الله عليه وسلم «اللّٰهُمَّ الرَّفِيقَ الأَعْلَى»

[۵۹۸۸] حَدَّثَنَا سَعِيدُ بْنُ عُفَيْرٍ قَالَ حَدَّثَنِي اللَّيْثُ قَالَ حَدَّثَنِي عُقَيْلٌ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ أَخْبَرَنِي سَعِيدُ بْنُ الْمُسَيَّبِ وَعُرْوَةُ بْنُ الزُّبَيْرِ فِي رِجَالٍ مِنْ أَهْلِ الْعِلْمِ أَنَّ عَائِشَةَ - رضى الله عنها - قَالَتْ كَانَ رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - يَقُولُ وَهُوَ صَحِيحٌ «لَنْ يُقْبَضَ نَبِيٌّ قَطُّ حَتَّى يَرَى مَقْعَدَهُ مِنَ الْجَنَّةِ ثُمَّ يُخَيَّرَ». فَلَمَّا نَزَلَ بِهِ وَرَأْسُهُ عَلَى فَخِذِي، غُشِيَ عَلَيْهِ سَاعَةً، ثُمَّ أَفَاقَ فَأَشْخَصَ بَصَرَهُ إِلَى السَّقْفِ ثُمَّ قَالَ «اللَّهُمَّ الرَّفِيقَ الأَعْلَى». قُلْتُ إِذًا لاَ يَخْتَارُنَا، وَعَلِمْتُ أَنَّهُ الْحَدِيثُ الَّذِي كَانَ يُحَدِّثُنَا، وَهُوَ صَحِيحٌ. قَالَتْ فَكَانَتْ تِلْكَ آخِرَ كَلِمَةٍ تَكَلَّمَ بِهَا «اللَّهُمَّ الرَّفِيقَ الأَعْلَى». [ر: ۴۱۷۱]

سیده عائشه رضی الله عنها بیان کوی چه رسول الله ﷺ به د خپل صحت په حالت کښې فرمائیل چه هر نبی ته د وفات نه مخکښې د هغه مقام په جنت کښې ښودلې شی. بیا ورته اختیار ورکولې شی پس چه کله د رسول الله ﷺ وفات اوشو نو هغه وخت د هغوی سر مبارک زما په پټون باندې وو. لږ ساعت په هغوی باندې بیهوشی راغله، بیا بیدار شو نو خپلې سترګې مبارکې ئې د چهت طرف ته اوچتې کړې بیا ئې ﴿اللّٰهُمَّ الرَّفِيقَ الأَعْلَى﴾ اوفرمائیل ما اووې چه رسول الله ﷺ به د صحت په حالت کښې څه فرمائیل هغه رشتیا وو. د عائشې رضی الله عنها بیان دې چه د رسول الله ﷺ د خولې مبارکې نه چه آخری کوم الفاظ اووتل هغه هم دا وو ﴿اللّٰهُمَّ الرَّفِيقَ الأَعْلَى﴾.

**د ماقبل سره مناسبت:** د دې حدیث پوره تفصیل په کشف الباری، کتاب المغازی کښې تیر شوې دې (۱) د مخکښې سره ئې مناسبت بیانولو باندې حافظ ابن حجر رحمه الله لیکی:

﴿وتعلقه بما قبله من جهة ان فيه إشارة إلى حديث عائشة انه كان إذا اشتكى نفث على نفسه بالمعوذات وقضية سياقها هنا انه لم يتعوذ في مرض موته بذلك بل تقدم في الوفاة النبوية من طريق بن أبي مليكة عن عائشة فذهبت اعوذه فرفع رأسه إلى السماء وقال في الرفيق الأعلى﴾ (۲)

یعنی: ماقبل سره ئې مناسبت داسې دې چه په دې کښې د عائشې د حدیث طرف ته اشاره ده، چه په هغې کښې دی چه رسول الله ﷺ ته چه به څه تکلیف وو نو هغوی به معوذات لوستلو سره په هغې باندې ځان دم کولو. دلته د دې ترجمة الباب د راوړلو وجه دا ده چه رسول الله ﷺ په مرض الموت کښې معوذات نه دی لوستلی، بلکه عائشه رضی الله عنها فرمائی چه زه رسول الله ﷺ ته لاړم او ما معوذات اولوستل نو رسول الله ﷺ د آسمان طرف ته سر اوچت کړو او د ﴿فی الرفیق الاعلی﴾ الفاظ ئې اوفرمائیل.

---

(۱) اوګورئ: کشف الباری، کتاب المغازی صفحة: ۲۸۸، ایضا صفحة: ۶۷۸

(۲) فتح الباری: ۱۱/۱۷۹

## ۲۹: باب الدُّعَاءِ بِالْمَوْتِ وَالْحَيَاةِ

۵۹۸۹ | حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا يَحْيَى عَنْ إِسْمَاعِيلَ عَنْ قَيْسٍ قَالَ أَتَيْتُ خَبَّابًا وَقَدِ اكْتَوَى سَبْعًا قَالَ لَوْلَا أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صلى الله عليه وسلم نَهَانَا أَنْ نَدْعُوَ بِالْمَوْتِ لَدَعَوْتُ بِهِ.

حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنَّى حَدَّثَنَا يَحْيَى عَنْ إِسْمَاعِيلَ قَالَ حَدَّثَنِي قَيْسٌ قَالَ أَتَيْتُ خَبَّابًا وَقَدِ اكْتَوَى سَبْعًا فِي بَطْنِهِ فَسَمِعْتُهُ يَقُولُ لَوْلَا أَنَّ النَّبِيَّ - صلى الله عليه وسلم - نَهَانَا أَنْ نَدْعُوَ بِالْمَوْتِ لَدَعَوْتُ بِهِ. [ر: ۵۳۴۸]

د قیس رحمه‌الله نه روایت دې چه زه سیدنا خباب رضي‌الله‌عنه ته راغلم. هغوی (په خیټه) اووه داغونه لګولي وو. هغوی اووې چه که رسول الله ﷺ مونږ د مرګ د دعا کولو نه نهٔ وو منع کړې نو ما به ئې دعا کړې وې.

۵۹۹۰ | حَدَّثَنَا ابْنُ سَلَامٍ أَخْبَرَنَا إِسْمَاعِيلُ ابْنُ عُلَيَّةَ عَنْ عَبْدِ الْعَزِيزِ بْنِ صُهَيْبٍ عَنْ أَنَسٍ - رضى الله عنه - قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - «لَا يَتَمَنَّيَنَّ أَحَدٌ مِنْكُمُ الْمَوْتَ لِضُرٍّ نَزَلَ بِهِ، فَإِنْ كَانَ لَا بُدَّ مُتَمَنِّيًا لِلْمَوْتِ فَلْيَقُلِ اللَّهُمَّ أَحْيِنِي مَا كَانَتِ الْحَيَاةُ خَيْرًا لِي، وَتَوَفَّنِي إِذَا كَانَتِ الْوَفَاةُ خَيْرًا لِي». [ر: ۵۳۴۷]

د سیدنا انس رضي‌الله‌عنه نه روایت دې چه رسول الله ﷺ اوفرمائیل چه په تاسو کښې دې یو سړې په راتلونکی تکلیف باندې د مرګ دعا نه کوی. او که ضرور د مرګ غوښتنه کوی نو داسې دې اوائی چه اې الله: ما ژوندې اوساته ترڅو پورې چه ژوند زما دپاره غوره وی او ما وفات کړه چه کله مرګ زما دپاره غوره وی.

**د ترجمة الباب مقصد** په شارحینو کښې علامه عینی او قسطلانی د دې باب دا مقصد بیان کړې دې چه کله ژوند د چا دپاره د شر باعث وی نو د هغه د ژوند او مرګ دپاره دعا کول مکروه دی یعنی هغه دې د خپل ځان دپاره د ژوند دعا اوکړی چه د هغه ژوند د خیر نه د شر دې او نه دې مرګ غواړی. څکه چه د مرګ د دعا غوښتلو نه منع کړې شوې ده [1]، سړې د مرګ غوښتنه یا دعا کولې شی یا نه، د دې تفصیل هم د دې حدیث د لاندې په کشف البَاري کتاب المرضی کښې تیر شوې دې [2].

## ۳۰: باب الدُّعَاءِ لِلصِّبْيَانِ بِالْبَرَكَةِ وَمَسْحِ رُءُوسِهِمْ

وَقَالَ أَبُو مُوسَى وُلِدَ لِي غُلَامٌ، وَدَعَا لَهُ النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - بِالْبَرَكَةِ. [ر: ۵۱۵۰]

[1]) عمدة القاري: ۳۰۵/۲۲، ۳۰۶، ارشاد الساري: ۳۵۲/۳

[2]) كشف الباري، كتاب المرضى، باب: نهى تمنى المريض الموت. ص: ۵۱۱، ۵۱۹

**د يتيم په سر باندې د لاس راښکلو فضيلت** : د امام بخارى رحمه الله مقصد دا دې چه رسول الله ﷺ به د ماشومانو په سرباندې د مهربانئ لاس راښکلو او دهغوى دپاره به ئې د برکت دعا فرمائيله.

امام احمد رحمه الله په خپل مسند کښې د سيدنا ابو امامة رضي الله عنه نه روايت نقل کړې دې چه په هغې کښې د يتيم ماشوم په سر باندې په شفقت سره د لاس راښکلو فضيلت بيان کړې شوې دې: ﴿مَنْ مَسَحَ رَأْسَ يَتِيمٍ أَوْ يَتِيمَةٍ لَمْ يَمْسَحْهُ إِلَّا لِلّٰهِ كَانَ لَهُ بِكُلِّ شَعْرَةٍ مَرَّتْ عَلَيْهَا يَدُهُ حَسَنَاتٌ﴾[1]

يعنې: چاچه د يو يتيم په سر باندې خالص د الله پاک د رضا دپاره د شفقت لاس راښکلو. نو د سر په څومره ويښتو چه ئې لاس راښکلو. د هرويښته په عوض به هغه ته يو نيکى ملاويږى. خو حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى چه د دې روايت سند ضعيف دې[2]

امام احمد رحمه الله يو بل روايت په حسن سند سره نقل کړې دې. په هغې کښې دى چه يو سړى رسول الله ﷺ ته د خپل زړه د سخت والى او قسوة شکايت اوکړو. رسول الله ﷺ د علاج په طور هغه ته اوفرمائيل: ﴿فَأَطْعِمِ الْمِسْكِينَ، وَامْسَحْ رَأْسَ الْيَتِيمِ﴾[3]، (په مسکين باندې ډوډئ خوره او د يتيم په سر باندې د شفقت لاس راکاره)

**د باطنى بيماريانو د علاج يو اوصول** : د دې نه علماء کرامو دا اصول مستنبط کړې دې چه بعض باطنى بيماريانې. په ظاهر کښې غير اختيارى وى. خو بعض اختيارى امور اختيارولو سره هغه بيمارياني ختمې شى مثلا څه خلقوته د حسد بيمارى وى او په ظاهره کښې هغوى ته په دې کښې اختيار او دخل نه وى. صوفياء ليکلې دى چه د دې علاج دا دې چه حاسد دې د محسود تعريف کوى او دهغه دپاره دې دعا کوى نوحسد به ئې ختم شى. اګر چه حسد غير اختيارى طريقې سره راځى خو تعريف او دعا اختيارى عمل دې او د دې په برکت سره دا بيمارى ختميږى هم دغه شان د زړه سخت والې او قسوة غير اختيارى دې. خو د يتيم په سر باندې په شفقت سره د لاس راښکلو په اختيارى عمل سره دا بيمارى ختميږى[4]

**قوله: ﴿وَقَالَ أَبُو مُوسَى وُلِدَ لِي غُلَامٌ وَدَعَا لَهُ النَّبِيُّ صلى الله عليه وسلم بِالْبَرَكَةِ﴾**: دا تعليق په کتاب العقيقة کښې موصولا ذکر شوې دې. هلته دا الفاظ دى: ﴿وُلِدَ لِي غُلَامٌ فَأَتَيْتُ بِهِ النَّبِيَّ صلى الله عليه وسلم فَسَمَّاهُ إِبْرَاهِيمَ فَحَنَّكَهُ بِتَمْرَةٍ وَدَعَا لَهُ بِالْبَرَكَةِ﴾[5]

---

[1] مسند احمد ۲۵۰/۵، ۲۶۵ (قال شعيب الارنؤوط : اسناده ضعيف جدا فيه على بن يزيد الهانى الدمشقى)

[2] فتح البارى ۱۵۱/۱۱

[3] مسند احمد ۲۶۳/۲ (قلت: ضعفه شعيب الارنؤوط لجهالة الراوى عن ابى هريرة ولانقطاعه بين ابى عمران وبين ابى هريرة فى سند اخر وحسنه الالبانى فى كتبه ولكن قوله مبنى على التكلف. والله اعلم)

[4] اتحاف السادة، كتاب ذم الغضب والحقد والحسد : ۵۲۶/۹

[5] صحيح البخارى، كتاب العقيقة، باب تسمية المولود غداة يولد، لمن لم يعتق عنه، وتحنيكه : ۲۰۸۱/۵، رقم الحديث ۵۴۶۷

یعنی زما یو ماشوم پیدا شو نو ما هغه د رسول الله ﷺ په خدمت کښې حاضر کړو. رسول الله ﷺ د هغه نوم ابراهیم کیخودلو او په کهجورې سره ئې د هغه تحنیک اوکړو او د برکت دعا ئې ورته اوکړه.

[۵۹۹۱] حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ حَدَّثَنَا حَاتِمٌ عَنِ الْجَعْدِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ قَالَ سَمِعْتُ السَّائِبَ بْنَ يَزِيدَ يَقُولُ ذَهَبَتْ بِي خَالَتِي إِلَى رَسُولِ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- فَقَالَتْ يَا رَسُولَ اللَّهِ إِنَّ ابْنَ أُخْتِي وَجِعٌ. فَمَسَحَ رَأْسِي، وَدَعَا لِي بِالْبَرَكَةِ، ثُمَّ تَوَضَّأَ فَشَرِبْتُ مِنْ وَضُوئِهِ، ثُمَّ قُمْتُ خَلْفَ ظَهْرِهِ، فَنَظَرْتُ إِلَى خَاتَمِهِ بَيْنَ كَتِفَيْهِ مِثْلَ زِرِّ الْحَجَلَةِ. [ر: ۱۸۷]

د سیدنا سائب بن یزید ﷺ نه روایت دې چه زما ترور زه د رسول الله ﷺ په خدمت کښې حاضر کړم او عرض ئې اوکړو یا رسول الله ﷺ! زما دا خورئې بیمار دې. رسول الله ﷺ زما په سر باندې لاس راښکلو او زما دپاره ئې د برکت دعا اوکړه. بیا ئې أودس اوفرمائیلو نو ما د هغوی د اودس نه باقی پاتې شوې اوبه اوڅکلې. بیا زه د هغوی نه شاته اودریدم نو ما د هغوی په دواړو اوږو کښې مهر نبوت اولیدو کوم چه د ناوې د ډولۍ د تنړې په شان وو.

د سیدنا سائب بن یزید ﷺ په سر باندې رسول الله ﷺ د شفقت لاس راښکلو. دوی په حجة الوداع کښې شریک شوې دی. هغه وخت د هغوی عمر صرف اووۀ کاله وو او په مدینه منوره کښې د ټولو نه آخری وفات کیدونکې صحابی هم دا دې. د هغوی وفات په ۸۲ هجری کښې اوشو. (۱)

[۵۹۹۲] حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ يُوسُفَ حَدَّثَنَا ابْنُ وَهْبٍ حَدَّثَنَا سَعِيدُ بْنُ أَبِي أَيُّوبَ عَنْ أَبِي عَقِيلٍ أَنَّهُ كَانَ يَخْرُجُ بِهِ جَدُّهُ عَبْدُ اللَّهِ بْنُ هِشَامٍ مِنَ السُّوقِ أَوْ إِلَى السُّوقِ فَيَشْتَرِي الطَّعَامَ، فَيَلْقَاهُ ابْنُ الزُّبَيْرِ وَابْنُ عُمَرَ فَيَقُولاَنِ أَشْرِكْنَا فَإِنَّ النَّبِيَّ -صلى الله عليه وسلم- قَدْ دَعَا لَكَ بِالْبَرَكَةِ. فَرُبَّمَا أَصَابَ الرَّاحِلَةَ كَمَا هِيَ، فَيَبْعَثُ بِهَا إِلَى الْمَنْزِلِ. [ر: ۲۳۲۸]

د ابو عقیل نه روایت دې چه زه به خپل نیکۀ عبدالله بن هشام ﷺ د بازار نه یا بازار ته بوتلم. او د هغه ځائې نه به مو غله اخستله، هغوی سره به ابن زبیر او ابن عمر ﷺ ملاویدل نو هغوی به اووئیل چه مونږ هم شریک کړئ، ځکه چه رسول الله ﷺ ستا دپاره د برکت دعا فرمائیلې ده. (دوی به هغوی شریک کړل) اکثر به داسې کیدل چه په ګټه کښې به هغوی پوره یو اوښ واخستلو او هغه به ئې کور ته اولیږلو.

په سند کښې د ابن وهب نوم عبدالله دې او د ابو عقیل (د عین په زبر او د قاف په زیر سره) نوم زهره بن معبد بن عبدالله بن هشام دی. عبدالله بن هشام ﷺ د هغوی نیکۀ دې د چا دپاره چه رسول الله ﷺ د برکت دعا فرمائیلې وه. دوی چه به کله بازار ته د اخستلو خرڅولو

---

(۱) قال ابو نعیم: مات سنة اثنين وثمانين، وقيل بعد التسعين، وقيل سنة احدى، وقيل سنة اربعة، وقال ابن ابي داؤد: هو اخر من مات بالمدينة من الصحابة، ووهم يعقوب بن سفيان فذكره فيمن قتل يوم الحرة. (الاصابة: ۲، الترجمة: ۳۰۷۷)

دپاره اوتل او هغوی سره به د عبدالله بن زبير او سيدنا عبدالله بن عمر رضي الله عنهم ملاقات كيدلو نو هغوی ته به ئې درخواست كولو چه په سودا كښې مونږ هم خان سره شريک كړئ. څکه چه رسول الله ﷺ ستاسو دپاره د بركت دعا فرمائيلې ده. هغه به دوی خان سره شريک كړل. فرمائې چه ډير كرته به هغوی ته د پوره يو اوبن منافع حاصل شوه او هغه به ئې كور ته اوليږلو. دا به د رسول الله ﷺ د دعا ثمره وه.

**قوله:** ﴿مِنَ السُّوقِ، أَوْإِلَى السُّوقِ﴾: د راوی شک دې چه ﴿من﴾ئې ونيلې دې او كه ﴿الى﴾لفظ ئې استعمال كړې دې. كه من وی نو معنی به دا وی چه ﴿من جهة دخول السوق﴾ يعنی بازار ته په داخلي جهت سره ئې زه بازار ته بوتلم. خو په باب الشركة كښې ﴿الى﴾بغير د شک نه په جزم سره راغلې دې. (۱)

**قوله:** ﴿فَرُبَّمَا أَصَابَ الرَّاحِلَةَ بِتَمَامِهَا﴾: يعنی ډير كرته به ابن هشام ته په ګټه كښې پوره يو اوبن ملاؤ شو. ﴿بتمامها﴾ يعنی ﴿بكمالها﴾دا به د رسول الله ﷺ د دعا د بركت ثمرة وه

[۵۹۹۳] حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيزِ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ سَعْدٍ عَنْ صَالِحِ بْنِ كَيْسَانَ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ قَالَ أَخْبَرَنِي مَحْمُودُ بْنُ الرَّبِيعِ وَهُوَ الَّذِي مَجَّ رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - فِي وَجْهِهِ وَهُوَ غُلاَمٌ مِنْ بِئْرِهِمْ. [ر: ۷۷]

د ابن شهاب رحمه الله نه روايت دې چه ماته محمود بن ربيع رضي الله عنه بيان اوكړو دا هم هغه دې چه د هغوی د وړوكوالی په زمانه كښې د هغوی د كوهی نه اوبه اخستلو سره رسول الله ﷺ د هغوی په مخ باندې د خولې مباركې نه اوبه اچولې وې.

دا روايت په كتاب العلم كښې تير شوی دې. علامه قسطلانی رحمه الله ليكی

﴿وكان فعله لذلك -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- للتبريك على عادته الشريفة مع أولاد أصحابه والدعابة معهم لطفًا ورحمة وتشريعًا﴾ (۲)

يعنی: د رسول الله ﷺ په طور د تبرک د حضرات صحابه كرامو رضي الله عنهم د اولاد سره دا معمول وو. د ماشومانو سره به رسول الله ﷺ مزاخ كولو، دا د شفقت د وجې نه هم د هغوی عادت وو او شرعی تعليم هم په دې كښې مقصد وو.

[۵۹۹۴] حَدَّثَنَا عَبْدَانُ أَخْبَرَنَا عَبْدُ اللَّهِ أَخْبَرَنَا هِشَامُ بْنُ عُرْوَةَ عَنْ أَبِيهِ عَنْ عَائِشَةَ - رضى الله عنها - قَالَتْ كَانَ النَّبِىُّ - صلى الله عليه وسلم - يُؤْتَى بِالصِّبْيَانِ فَيَدْعُو لَهُمْ، فَأُتِىَ بِصَبِىٍّ فَبَالَ عَلَى ثَوْبِهِ، فَدَعَا بِمَاءٍ فَأَتْبَعَهُ إِيَّاهُ، وَلَمْ يَغْسِلْهُ. [ر: ۲۲۰]

د سيده عائشه رضي الله عنها نه روايت دې چه رسول الله ﷺ ته به ماشومان راوستلې شو، اورسول الله ﷺ

---

(۱) صحيح البخاری، كتاب الشركة، باب الشركة فی الطعام، وغيره، رقم الحديث : ۲۵۰۲

(۲) ارشاد السارى ۳۵٤/۱۳

به د هغوى دپاره دعا فرمائيله. پس يو ماشوم راوستلې شو. نو هغه د رسول الله ﷺ په کېږه باندې متيازې اوکړې. رسول الله ﷺ اوبه راغوښتلو سره په هغې باندې اوبهيولې او هغه ئې او نه وينځلو

په سند کښې د عبدان نه عبدالله بن عثمان بن جبله او د عبدالله نه عبدالله بن المبارک رحمه الله مراد دې. په روايت کښې چه د رسول الله ﷺ په خدمت کښې د کوم ماشوم د راوستلو ذکر دې. د هغه نه حسن يا حسين رضی الله عنهما مراد دی، کمافی الاوسط للطبرانی.[1]

**قوله: ﴿فَأَتْبَعَهُ إِيَّاهُ وَلَمْ يَغْسِلْه﴾**: يعنی ماشوم چه د رسول الله ﷺ په جامو باندې کومې متيازې کړې وې. په هغې باندې رسول الله ﷺ اوبه چهړکاؤ کړې. اوبه ئې پرې اوبهيولې او هغه ئې باقاعده او نه وينځلې.

[۵۹۹۵] حَدَّثَنَا أَبُو الْيَمَانِ أَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ أَخْبَرَنِي عَبْدُ اللَّهِ بْنُ ثَعْلَبَةَ بْنِ صُعَيْرٍ - وَكَانَ رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - قَدْ مَسَحَ عَنْهُ - أَنَّهُ رَأَى سَعْدَ بْنَ أَبِي وَقَّاصٍ يُوتِرُ بِرَكْعَةٍ.

امام زهری رحمه الله بيان فرمائی چه ماته عبدالله بن ثعلبة رضی الله عنه د چا په سر چه رسول الله ﷺ لاس راښکلې وو. بيان اوکړو چه هغوى سيدنا سعد بن ابی وقاص رضی الله عنه په يو رکعت وتر کولو باندې اوليدو

د امام بخاری رحمه الله د استاذ ابو اليمان نوم حکم بن نافع دې. دلته په روايت کښې دی چه رسول الله ﷺ د عبدالله بن ثعلبة بن صعير رضی الله عنه په سترګه باندنې لاس راښکلو. امام بخاری رحمه الله په کتاب المغازی کښې په باب غزوة الفتح کښې معلقا دا روايت نقل کړې دې. په هغې کښې ﴿مسح عينه﴾ په ځائې ﴿مسح وجهه﴾ الفاظ دی.[2]

د عبدالله بن ثعلبه رضی الله عنه پيدائش د هجرت نه څلور کاله مخکښې شوې دې او په ۸۹ هجری کښې هغوى وفات شوې دی. هغه وخت د هغوى عمر ۹۳ کاله وو.

او په يو روايت کښې دی چه د رسول الله ﷺ د وفات په وخت د هغوى عمر څلور کاله وو او د هغوى ولادت د هجرت نه پس شوې دې[3]

د هغوى والد صاحب ثعلبة بن صعير رضی الله عنه هم صحابی دې ويقال له ابن ابی صعير ايضا.[4]

---

[1] مجمع الزوائد ۶۳۱/۱، ۶۳۲، رقم الحديث: ۱۵۶۸، ۱۵۷۰، ۱۴۷۱، ۱۵۷۲، ۱۵۷۴، وورد اسم الحسن جزما فی الحديث رقم: ۱۵۷، واسم الحسين فی الحديث رقم: ۱۵۷۱، ۱۵۷۲، واما فی الحديث رقم ۱۵۶۸، ۱۵۷۴، ورد اسم الحسن والحسين بكلمة او يشعر بها التردد، والله اعلم.

[2] صحيح البخاری، كتاب المغازی، رقم الباب: ۵۴، رقم الحديث: ۴۳۰۰

[3] الاستيعاب على هامش الاصابة ۲۷۱/۲

[4] لسان العرب ۴۶۴/۱۴، ۴۶۵

# ۳۱: باب الصلاة على النبي صلى الله عليه وسلم

**د صلاة لغوى او اصطلاحى معنى:** صلاة يعنى د درود شريف متعلق څو خبرې په ذهن كښې اوساتئ: ① صلاة په لغت كښې دعا. رحمت. استغفار. مغفرت او د مدح او ثناء په معنى كښې استعماليږى. [1] او د نسبتونو په فرق سره د دې معنى بدليږى. چه د الله پاک طرف ته د دې نسبت وى نو د دې معنى د الله پاک طرف ته د خپل رحمت او نزول او افاضة وى د ملائكو طرف ته چه نسبت وى نو د استغفار په معنى راځى. كه د بندګانو طرف ته وى نو د دې معنى د رحمت دعا ده. [2]

بعض د دې برعكس وئيلې دى چه د ملائكو طرف ته د نسبت په صورت كښې دعاء رحمت او د عباد طرف ته د نسبت په صورت كښې د دې معنى استغفار ده.

امام بخارى رحمه الله د سورة احزاب په تفسير كښې د ابو العاليه قول نقل كړې دې

﴿صَلَاةُ اللهِ ثَنَاؤُهُ عَلَيْهِ عِنْدَ الْمَلَائِكَةِ وَصَلَاةُ الْمَلَائِكَةِ الدُّعَاءُ﴾ [3]

يعنى: د الله پاک خپل نبى باندې د درود ليږلو معنى د الله پاک خپلو ملائكو سره د د خپل نبى ذكر خير او تعريف كول دى او د ملائكو په هغوى باندې د درود ليږلو مطلب د هغوى د پاره دعا كول دى.

علامه زبيدى رحمه الله د احياء العلوم په شرح اتحاف سادة المتقين كښې ليكى:

﴿معنى الصلاة العطف، وهو بالنسبة الى الله تعالى اما ثناؤه على العبد عند الملائكة، وهذا هو الاليق فى تفسير صلاة الله على انبيائه، واما كمال الرحمة، وبالنسبة الى غيره تعالى الدعاء بخير﴾ [4]

يعنى: د صلاة اصل معنى خو عطف يعنى د ميلان او مهربانۍ دې. چه د الله پاک طرف ته نسبت وى نو د دې مطلب يا خو د الله پاک د خپلو ملائكو په نزد د خپل نبى تعريف او ثناء كول دى. د ﴿صلاة الله على انبيائه﴾ هم دا تفسير زيات مناسب دې او يا د دې معنى د كمال رحمت ده او كه د غير الله طرف ته د دې نسبت وى نو د دې معنى د دعا راځى

حقيقت دا دې چه د غير الله طرف ته چه كله د دې نسبت وى نو د صلاة اصل معنى دعا راځى. د مغفرت دعا كول. د مخصوص رحمت دعا كول او د الله پاک طرف ته كه منسوب وى نو مطلب به دا وى چه الله پاک د خپل نبى ذكر په تعظيم او اكرام سره د ملائكو مخكښې كوى او د خپلو نعمتونو او مهربانو په هغوى باندې باران كوى. [5]

---

[1] لسان العرب: ١٤/٤٦٤-٤٦٥

[2] الصواب ان الصلاة لغة بمعنى واحد وهو العطف. ثم هو بالنسبة اليه تعالى: الرحمة والى الملائكة عليهم السلام الاستغفار والى الادمين الدعاء. روح المعانى: ١٢/٧٦. ٧٧

[3] صحيح البخارى. كتاب التفسير، سورة الاحزاب، باب قوله: ﴿ان الله وملائكته يصلون على النبى﴾

[4] اتحاف السادة. كتاب الاذكار والدعوات. الباب الثانى: ٥/٢٦٩

[5] فتح البارى: ١١/١٥٥. ١٥٦

په قرآن کريم کښې رسول الله ﷺ ته خطاب دې ﴿ وَصَلِّ عَلَيْهِمْ إِنَّ صَلَاتَكَ سَكَنٌ لَّهُمْ ﴾ دلته صلاة په معنی د دعا ده. لکه چه وړاندې راځی (١)

**د درود شريف حکم:** ② دويمه خبره د درود شريف د حکم متعلق ده.

د جمهور علماء کرامو دا مسلک دې چه په ژوند کښې يو کرت په رسول الله ﷺ باندې درود ليږل فرض دی لکه چه کلمه توحيد يو کرت نوستل فرض دی. علامه سخاوی په القول البديع کښې او علامه ابن عبدالبر په الاستذکار کښې د دې تصريح فرمائيلې ده (٢). امام ابوبکر جصاص او ملا علی قاری رحمه الله هم د دې صراحت فرمائيلې دې. (٣) حاصل دا دې چه په پوره عمر کښې يو کرت درود لوستل فرض دی. ځکه چه قرآن کريم د ﴿ صلوا ﴾ په لفظ سره د درود وئيلو حکم کړې دې، دا حکم په شعبان ٢ هجری کښې نازل شو او د اصول فقه قاعده ده چه امر د تکرار تقاضه نه کوی. (٤) خو د رسول الله ﷺ تذکره چه کله هم راشی نو په هغوی باندې درود وئيل واجب او مستحب دی. (٥)

په دې کښې لږ شان اختلاف دې، د جمهور علماء کرامو په نزد چه د رسول الله ﷺ ذکر په مجلس کښې اول کرت راشی نو درود وئيل واجب دی او د هغې نه پس بيا مستحب دې. علامه شامی رحمه الله دې ته مفتی به وئيلې دی. (٦)

خو امام طحاوی رحمه الله او د بعض شافعی علماء کرامو په نزد چه د رسول الله ﷺ ذکر په مجلس کښې هر څو کرته راشی درود وئيل واجب دی. (٧) امام قرطبی رحمه الله او علامه زمخشری هم دې ته محتاط قول وئيلې دې (٨)

**د درود شريف فضائل او برکات:** ③ دريمه خبره د درود شريف د فضيلت، اهمت او فوائدو په باره کښې ده:

امام بيهقی رحمه الله د عامر بن ربيعه روايت نقل کړې دې چه رسول الله ﷺ اوفرمائيل: ﴿ مَنْ صَلَّى عَلَيَّ صَلَاةً صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ بِهَا عَشْرًا ﴾ (٩) يعنی: چا چه په ما باندې يو کرت درود اولوستلو نو الله پاک د هغې په بدل کښې په هغه باندې لس رحمتونه نازل اوفرمائی.

---

(١) احکام القرآن للجصاص ٢٢٧/٣
(٢) الاستذکار، لابن عبدالبر: ٣٠٨/٢، کتاب قصر الصلاة فی السفر.
(٣) احکام القرآن للجصاص ٥٤٤/٣، ومرقاة لملا علی قاری، کتاب الصلاة ٣٢٧/٢
(٤) کشف الاسرار للبزدوی ١٢٣/١، باب موجب الامر.
(٥) احکام القرآن للقرطبی: ٢٣٣/١٤
(٦) رد المختار ٣٨١/١، ٣٨٢، کتاب الصلاة، باب صفة الصلاة
(٧) فتح الباری، ١٥٣/١١، هم دغه شان اوګورئ: جلاء الافهام فی الصلاة والسلام علی خير الانام: ٢١٤، (لابن القيم رحمه الله)
(٨) تفسير القرطبی ١٥٠/١٤، کشاف للزمخشری ٥٥٨/٣
(٩) شعب الايمان، رقم الحديث: ١٥٥٧، ١٥٥٨

امام ابوداؤد الطیالسی رحمه الله د عامر بن ربیعه رضی الله عنه او امام احمد رحمه الله د سیدنا عبدالله بن عمرو بن العاص رضی الله عنه روایت نقل کړې دې:
﴿مَا مِنْ عَبْدٍ يُصَلِّي عَلَيَّ إِلَّا صَلَّتْ عَلَيْهِ الْمَلَائِكَةُ مَا دَامَ يُصَلِّي عَلَيَّ فَلْيُقِلَّ الْعَبْدُ، أَوْ لِيُكْثِرْ﴾ [1]
یعني کوم سړي چه په ما باندې درود لیږی نو ملائک د هغه دپاره تر هغه وخته پورې استغفار کوی چه ترڅو پورې هغه په ما باندې درود لولی. پس د بنده مرضی ده که کم درود لولی او که زیات لولی.
د درود شریف ډیر برکتونه او فوائد دی. په کثرت درود سره د رسول الله ﷺ شفاعت نصیب کیږی. دا د جنت او نجات ذریعه ده. پس طبرانی په معجم کبیر کښې د سیدنا رویفع بن ثابت رضی الله عنه نه روایت نقل کړې دې:
﴿مَنْ قَالَ: اللَّهُمَّ صَلِّ عَلَى مُحَمَّدٍ وَأَنْزِلْهُ الْمَقْعَدَ الْمُقَرَّبَ عِنْدَكَ يَوْمَ الْقِيَامَةِ وَجَبَتْ لَهُ شَفَاعَتِي﴾ [2]
یعني: څوک چه دا درود اولولی: ﴿اللَّهُمَّ صَلِّ عَلَى مُحَمَّدٍ وَأَنْزِلْهُ الْمَقْعَدَ الْمُقَرَّبَ عِنْدَكَ يَوْمَ الْقِيَامَةِ﴾ (اې الله په محمد ﷺ باندې رحمت نازل کړه او د قیامت په ورځ هغه خپل مقرب مقام ته داخل کړه)، نو د هغه دپاره زما شفاعت واجب شو.
په یو بل روایت کښې دی:
﴿من صلى على في يوم ألف مرة لم يمت حتى يرى مقعده من الجنة﴾ [3]
یعني: څوک په ورځ کښې په ما باندې زر کرته درود اولولی. نو په هغه باندې به تر هغه وخته پورې مرګ نه راځی ترڅو چه هغه په جنت کښې خپله استوګنه او نه وینی. یعنی د مرګ نه به مخکښې هغه په جنت کښې خپل مسکن وینی.
کثرت د درود. فقر او فاقه هم ختموی، ابونعیم د سیدنا جابر بن سمرة رضی الله عنه روایت نقل کړې دې: ﴿كثرة الذكر والصلاة على النبي صلى الله عليه وسلم تنفي الفقر﴾ [4]
یعني: ذکر او په رسول الله ﷺ باندې د درود کثرت فقر او فاقه ختموی.
او د سیدنا جابر رضی الله عنه په یو روایت کښې دی:

---

[1]) رواه ابوداؤد الطيالسي عن عامر بن ربيعة في مسنده البدري: ۶۳۹/۱، رقم الحديث: ۱۲۳۸، ورواه احمد في مسنده نحوه ولفظه: من صلى على رسول الله صلى الله عليه و سلم صلاة صلى الله عليه وملائكته سبعين صلاة فليقل عبد من ذلك أو ليكثر: ۶۱۷/۲، رقم الحديث: ۶۶۰۵ (قلت هذا اسناد ضعيف واما اشار اليه صاحب الكشف فهو هكذا عند احمد: ما صلى على أحد صلاة إلا صلت عليه الملائكة ما دام يصلي على فليقل عبد من ذلك أو ليكثر. اسناده حسن ۴۴۶/۳)
[2]) المعجم الكبير، للطبراني، رقم الحديث: ۴۴۸۰. (قلت: إسناده ضعيف لضعف ابن لهيعة)
[3]) الترغيب والترهيب للمنذري ۵۰۱/۲. (قلت: هذا حديث منكر)
[4]) اتحاف السادة، كتاب الاذكار والدعوات، الباب الثاني: ۲۷۵/۵ (اخرجه ابونعيم في معرفة الصحابة ۱۴۱۳/۳ عن جابر بن سمرة عن ابيه السوائي)

(من صلى علي مائة صلاة حين يصلى الصبح قبل ان يتكلم، قضى الله له مائة حاجة، عجل منها ثلاثين حاجة، واخرله سبعين) [١]

يعنى. كوم سړي چه د سحر د مانځه په وخت د خبرو كولو نه مخكښې په ما باندې سل كرته درود اوائى نو الله پاک د هغه سل ضرورتونه پوره كوى. د هغې نه ديرش خو په دې دنيا كښې او اويا به په آخرت كښې پوره كوى.

علامه سخاوى رحمه الله د سيدنا انس رضي الله عنه روايت نقل كړې دې. چه رسول الله ﷺ فرمائى (اذا نسيتم شيئا، فصلوا علي، تذكروه انشاء الله) [٢] يعنى كه ستاسو نه يو څيز هير شينو په ما باندې درود اولولئ. تاسو ته به رایاد شى انشاء الله.

او په يو روايت كښې دى:

(من خاف على نفسه النسيان فليكثر الصلاة على النبى صلى الله تعالى عليه وسلم) [٣]

يعنى د چا چه په ځان باندې د هيرې ويره وى نو هغه دې په نبى عليه السلام باندې په كثرت سره درود لولى.

**د درود شريف ليكلو فضيلت**: د درود شريف ليكلو ډير فضيلت دې. امام طبرانى رحمه الله د سيدنا ابوهريره رضي الله عنه نه روايت نقل كړې دې. چه رسول الله ﷺ او فرمائيل:

(مَنْ صَلّٰى عَلَيَّ فِي كِتَابٍ لَمْ تَزَلِ الْمَلَائِكَةُ تَسْتَغْفِرُ لَهُ مَا دَامَ اسْمِي فِي ذٰلِكَ الْكِتَابِ)

يعنى څوک چه په څه كتاب كښې په ما باندې درود ليكى نو ملائک د هغه دپاره تر هغه وخته پورې دعا كوى. ترڅو پورې چه زما نوم په هغه كتاب كښې موجود وى [٤]

**د جمعې په ورځ د درود فضيلت**: د درود شريف په كثرت سره اهتمام خو هر مسلمان هر وخت كول پكار دى، خو د جمعې په ورځ په خاص طور سره د دې اهتمام وى. د سيدنا اسامة رضي الله عنه روايت دې، رسول الله ﷺ فرمائى: (أَكْثِرُوا عَلَيَّ مِنَ الصَّلَاةِ فِي كُلِّ يَوْمِ جُمُعَةٍ فَإِنَّ صَلَاةَ أُمَّتِي تُعْرَضُ عَلَيَّ فِي كُلِّ يَوْمِ جُمُعَةٍ، فَمَنْ كَانَ أَكْثَرَهُمْ عَلَيَّ صَلَاةً كَانَ أَقْرَبَهُمْ مِنِّي مَنْزِلَةً) [٥]

---

[١] اتحاف السادة، كتاب الاذكار والدعوات، الباب الثانى : ٢٧٥/٥

[٢] القول البديع فى الصلاة على الحبيب الشفيع، ص : ٤٢٧

[٣] قال السخاوى رحمه الله : اخرجه ابن بشكوال بسند منقطع. القول البديع فى الصلاة على الحبيب الشفيع، ص : ٤٢٧

[٤] اتحاف السادة، كتاب الاذكار والدعوات، الباب الثانى : ٢٧٢/٥. قال الزبيدى بعد نقل هذا الحديث من الاحياء : قال العراقى : رواه الطبرانى فى الاوسط، وابو الشيخ فى الثواب والمستغفرى فى الدعوات من حديث ابى هريرة بسند ضعيف اهـ قلت : ورواه ايضا ابو القاسم التميمى فى الترغيب والترهيب والخطيب فى شرف اصحاب الحديث وابن بشكوال بسند ضعيف. اورده ابن الجوزى فى الموضوعات وقال ابن كثير : انه لا يصح انتهى.

[٥] السنن الكبرى للبيهقى : كتاب الجمعة : باب ما يؤمر به فى ليلة الجمعة ويومها بقيه برصفحه آئنده...

يعنى د هرې جمعې په ورځ په ما باندې په كثرت سره درود لولئ. ځكه چه زما د امت درود هره جمعه په ما باندې پيش كولې شى. پس كوم سړې چه په ما باندې زيات درود لوستونكې وى نو د مرتبې په لحاظ به هغه ماته هم هغه هومره نزدې وى.
هم دغه شان د حديث طالبانو لره هم خاص طور سره د درود شريف كثرت كول پكار دى. ځكه چه د احاديثو تعلق براه راست د رسول الله ﷺ د ذات بابركت سره دې نو په كثرت درود سره احاديث لوستلو باندې د رسول الله ﷺ عقيدت، محبت، او روحانيت محسوس كيږى.

**د ترجمة الباب وضاحت** امام بخارى رحمه الله چه كوم ترجمة الباب قائم كړې دې **باب الصلاة على النبى صلى الله تعالى عليه وسلم**، حافظ ابن حجر رحمه الله د دې متعلق ليكى:

**(هذا الإطلاق يحتمل حكمها وفضلها وصفتها ومحلها والاقتصار على ما أورده فى الباب يدل على إرادة الثالث وقد يؤخذ منه الثانى)** [1]

يعنى: ترجمة الباب مطلق دې او په دې كښې د څلورو امورو د بيان احتمال دې. د درود شريف حكم. د هغې فضيلت. طريقه او كيفيت او د هغې د لوستلو محل او مقام خو په باب كښې په مذكوره احاديثو باندې اكتفاء كول په دې خبره باندې دلالت كوى چه مقصود امر ثالث يعنى د درود شريف طريقې او كيفيت لره بيانول دى. او د امر ثانى يعنى د درود شريف د حكم بيان هم مقصود كيدلې شى.
خو علامه عينى رحمه الله فرمائى چه د حديث الباب د وجې نه ترجمة الباب مطلق پاتې نه شو، په دې سره كيفيت الصلاة بيانول مقصود دى پس هغوى ليكى:

**(حديثا الباب يفيدان هذا الإطلاق لأنهما ينبئان عن الكيفية والمطابقة بين الترجمة والحديث مطلوبة ولا تجىء المطابقة إلا بما قلنا هذا باب فى بيان كيفية الصلاة)**

يعنى: ترجمة الباب اګر چه په ظاهره كښې مطلق دې. خو په باب كښې ذكر شوى دواړه احاديثو نه معلوميږى چه دا مقيد دى. ځكه چه دواړه احاديث د درود شريف كيفيت بيانوى. د ترجمة الباب او د حديث ترمينځه مطابقت مطلوب وى او مطابقت زمونږ د دې قول نه كيدې شى چه **(هذا باب فى بيان كيفية الصلاة)** يعنى ترجمة الباب لره مقيد منلو سره مطابقت كيدې شى.

**[۵۹۹۲] حَدَّثَنَا آدَمُ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ حَدَّثَنَا الْحَكَمُ قَالَ سَمِعْتُ عَبْدَ الرَّحْمَنِ بْنَ أَبِى لَيْلَى قَالَ لَقِيَنِى كَعْبُ بْنُ عُجْرَةَ فَقَالَ أَلاَ أُهْدِى لَكَ هَدِيَّةً، إِنَّ النَّبِىَّ - صلى الله عليه وسلم - خَرَجَ عَلَيْنَا فَقُلْنَا يَا رَسُولَ اللَّهِ قَدْ عَلِمْنَا كَيْفَ نُسَلِّمُ عَلَيْكَ، فَكَيْفَ نُصَلِّى عَلَيْكَ قَالَ «فَقُولُوا**

---

...بقيه ازحاشيه گذشته] مِنْ كَثْرَةِ الصَّلَاةِ عَلَى رَسُولِ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- وَقِرَاءَةِ سُورَةِ الْكَهْفِ وَغَيْرِهَا. ۳۵۳/۳، رقم الحديث: ۵۹۹۵

[1] فتح البارى: ۱۵۲/۱۱

اللّٰهُمَّ صَلِّ عَلَى مُحَمَّدٍ، وَعَلَى آلِ مُحَمَّدٍ، كَمَا صَلَّيْتَ عَلَى آلِ إِبْرَاهِيمَ، إِنَّكَ حَمِيدٌ مَجِيدٌ، اللّٰهُمَّ بَارِكْ عَلَى مُحَمَّدٍ، وَعَلَى آلِ مُحَمَّدٍ، كَمَا بَارَكْتَ عَلَى آلِ إِبْرَاهِيمَ، إِنَّكَ حَمِيدٌ مَجِيدٌ. [ر ٣١٩٠]

د عبدالرحمن بن ابی لیلی رحمه الله نه روایت دې هغوی بیان کوی چه ما سره سیدنا کعب بن عجرة رضي الله عنه ملاؤ شو او وې فرمائیل چه آیا زه تاته یو هدیه پیش نه کړم؟ رسول الله صلى الله عليه وسلم مونږ ته تشریف راوړلو. نو مونږ عرض اوکړو یا رسول الله صلى الله عليه وسلم! مونږ ځنګه تاسو ته سلام اوکړو؟ او ځنګه په تاسو باندې درود اووایو؟ رسول الله صلى الله عليه وسلم اوفرمائیل: چه تاسو داسې اووایئ:

﴿اللّٰهُمَّ صَلِّ عَلَى مُحَمَّدٍ، وَعَلَى آلِ مُحَمَّدٍ كَمَا صَلَّيْتَ عَلَى آلِ إِبْرَاهِيمَ إِنَّكَ حَمِيدٌ مَجِيدٌ اللّٰهُمَّ بَارِكْ عَلَى مُحَمَّدٍ، وَعَلَى آلِ مُحَمَّدٍ كَمَا بَارَكْتَ عَلَى آلِ إِبْرَاهِيمَ إِنَّكَ حَمِيدٌ مَجِيدٌ﴾

د آدم نه آدم بن ایاس او د حکم نه حکم بن عتیبه دې. عبدالرحمن بن ابی لیلی رحمه الله په جلیل القدر تابعینو کښې دې. د ابولیلی نوم یسار دې.[1]

**قوله:** ﴿أَلَا أُهْدِي لَكَ هَدِيَّةً﴾: یعنی کعب بن عجره رضي الله عنه عبدالرحمن بن ابی لیلی رحمه الله ته اوفرمائیل چه زه تاته یو هدیه درنکړم؟ د شعبه په روایت کښې دی چه هغوی اووې ولې نه؟[2] د هدیه لفظ عموما د اجسام دپاره استعمالیږی. علامه قسطلانی رحمه الله لیکی:

﴿ واکثر ما یستعمل فی الأجسام.... وقد یستعمل فی المعانی کالعلوم والأدعیة مجازا لما یشترکان فیه من قصد الموادة والتواصل فی إیصال ذلك إلیه ﴾

یعنی د هدیه استعمال اکثر په اجسامو کښې کیږی....... خو کله کله مجازا په معانی کښې هم د هدیة لفظ استعمالیږی. لکه علوم او دعاګانې وغیره. وجه دا ده چه په دواړو کښې قدر مشترک دا امر دې چه په دواړو کښې دې لره نورو ته په رسولو کښې خپل مینځ کښې مینه او ملاویدل مقصود وی.

**قوله:** ﴿إِنَّ النَّبِيَّ صلى الله عليه وسلم خَرَجَ عَلَيْنَا﴾: ﴿علینا﴾ ئې د جمع د ضمیر دپاره استعمال فرمائیلې دې. ځکه چه دې وخت کښې نور صحابه کرامو هم موجود وو.

**قوله:** ﴿قَدْ عَلِمْنَا كَيْفَ نُسَلِّمُ عَلَيْكَ﴾: په دې کښې د سلام نه په تشهد او التحیات کښې سلام مراد دې.[3] کوم چه رسول الله صلى الله عليه وسلم صحابه کرامو رضي الله عنهم ته په دې الفاظو باندې ښودلې دې: ﴿ السلام علیك ایها النبی ورحمة الله وبرکاته ﴾ یعنی د سلام طریقه خو مونږ زده کړه. خو د قرآن کریم په آیت کریمه کښې د دوه څیزونو حکم ورکړې شوې وو: ﴿صلوا علیه وسلموا تسلیما﴾ یو سلام او دویم صلاة، نو د درود لیږلو وصف او طریقه څه ده؟

[1]) قال المزی فی تهذیب الکمال واسمه یسار، ویقال: بلال، ویقال: داؤد بن بلال بن بلیل.. ١٧: الترجمة : ٣٩٤٣

[2]) فتح الباری : ١٥٣/١١

[3]) قال البیهقی : فیه اشارة الی السلام الذی فی التشهد وهو قول : السلام علیک ایها النبی ورحمة الله وبرکاته، فیکون المراد [illegible] ١٥٥/١

رسول الله ﷺ په دې حديث کښې چه کوم درود شريف ښودلې دې، هغې ته درود ابراهيمي وائي. دلته په روايت کښې ﴿ وعلى آل ابراهيم ﴾ الفاظ نه دي. خو د بخاري په دويم روايت کښې دا الفاظ دي [۱]. حافظ ليکي:

﴿ والحق ان ذكر محمد وابراهيم وذكر آل محمد وآل إبراهيم ثابت في أصل الخبر وإنما حفظ بعض الرواة ما لم يحفظ الآخر ﴾ [۲]

يعنې حق خبره دا ده چه د محمدرسول الله ﷺ ذکر او د سيدنا ابراهيم عليه السلام ذکر او هم دغه شان د آل محمد او د آل ابراهيم ذکر په اصل حديث کښې ثابت دې په اصل کښې بعض راويانو ته ټول الفاظ ياد پاتې شو او بعضو ته هغه ياد پاتې نه شو

د ﴿ اللهم صل على محمد ﴾ ترجمه علامه حليمي رحمه الله داسې کړې ده:

﴿ والمراد تعظيمه في الدنيا بإعلاء ذكره وإظهار دينه وابقاء شريعته وفي الآخرة باجزال مثوبته وتشفيعه في أمته وابداء فضيلته بالمقام المحمود ﴾ [۳]

يعنې ته هغوی ته عظمت ورکړه. په دنيا کښې د هغوی ذکر اوچتولو سره. د هغوی دين لره غلبه ورکولو سره. او د هغوی شريعت لره کامل کولو سره او په آخرت کښې هغوی ته بې حسابه ثواب ورکړه، د امت په حق کښې د هغوی شفاعت قبلولو سره او د مقام محمود په ذريعه د هغوی د فضيلت اظهار کولو سره

**قوله: ﴿ انك حميد مجيد ﴾**: حميد په معنی د محمود دې ستائيلې شوې. مجيد. د مجد بزرګۍ او لويئ خاوند. دا دواړه د مبالغې صيغې دي

[۵۹۹۷] حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ حَمْزَةَ حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي حَازِمٍ وَالدَّرَاوَرْدِيُّ عَنْ يَزِيدَ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ خَبَّابٍ عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ قَالَ قُلْنَا يَا رَسُولَ اللَّهِ هَذَا السَّلَامُ عَلَيْكَ، فَكَيْفَ نُصَلِّي قَالَ «قُولُوا اللَّهُمَّ صَلِّ عَلَى مُحَمَّدٍ عَبْدِكَ وَرَسُولِكَ، كَمَا صَلَّيْتَ عَلَى إِبْرَاهِيمَ، وَبَارِكْ عَلَى مُحَمَّدٍ وَعَلَى آلِ مُحَمَّدٍ، كَمَا بَارَكْتَ عَلَى إِبْرَاهِيمَ وَآلِ إِبْرَاهِيمَ». [ر: ۴۵۲۰]

د سيدنا ابوسعيد خدري رضي الله عنه نه روايت دې چه مونږ عرض اوکړو يا رسول الله ﷺ! مونږ تاسو ته سلام خو کول غواړو، خو په تاسو باندې درود څنګه اوليږو، رسول الله ﷺ اوفرمائيل چه داسې وايئ: ﴿ اللَّهُمَّ صَلِّ عَلَى مُحَمَّدٍ عَبْدِكَ وَرَسُولِكَ كَمَا صَلَّيْتَ عَلَى إِبْرَاهِيمَ وَبَارِكْ عَلَى مُحَمَّدٍ، وَعَلَى آلِ مُحَمَّدٍ كَمَا بَارَكْتَ عَلَى إِبْرَاهِيمَ وَآلِ إِبْرَاهِيمَ ﴾

---

[۱]) صحيح البخاري، كتاب احاديث الانبياء، رقم: ۱۰، رقم الحديث: ۳۳۷
[۲]) فتح الباري ۱۱/۱۵۶
[۳]) فتح الباري ۱۱/۱۵۶

د ابن ابى حازم نوم عبدالعزيز دي او د ابوحازم نوم سلمة بن دينار دي. د دراوردی نوم هم عبدالعزيز بن محمد دي (١)

## ٣٢: باب هَلْ يُصَلَّى عَلَى غَيْرِ النَّبِي صلى الله عليه وسلم

وَقَوْلُ اللّٰهِ تَعَالَى (وَصَلِّ عَلَيْهِمْ إِنَّ صَلَاتَكَ سَكَنٌ لَهُمْ) [التوبة: ١٠٣]

[٥٩٩٨] حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ حَرْبٍ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ عَمْرِو بْنِ مُرَّةَ عَنِ ابْنِ أَبِي أَوْفَى قَالَ كَانَ إِذَا أَتَى رَجُلٌ النَّبِيَّ - صلى الله عليه وسلم - بِصَدَقَتِهِ قَالَ «اللَّهُمَّ صَلِّ عَلَيْهِ». فَأَتَاهُ أَبِي بِصَدَقَتِهِ فَقَالَ «اللَّهُمَّ صَلِّ عَلَى آلِ أَبِي أَوْفَى». [ر: ١٤٢٦]

د سيدنا ابن ابى اوفى رضي الله عنه نه روايت دي چه كله به يو سړى رسول الله ﷺ ته صدقه راوړه نو رسول الله ﷺ به اوفرمائيل: ﴿ اللهم صل عليه ﴾ پس زما والد صاحب چه كله هغوى ته راغلو نو رسول الله ﷺ اوفرمائيل ﴿ اللهم صل على آل ابى اوفى ﴾ يعنى اې الله ؛ د ابى اوفى په آل باندې رحمت نازل كړه.

[٥٩٩٩] حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مَسْلَمَةَ عَنْ مَالِكٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ أَبِي بَكْرٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ عَمْرِو بْنِ سُلَيْمٍ الزُّرَقِيِّ قَالَ أَخْبَرَنِي أَبُو حُمَيْدٍ السَّاعِدِيُّ أَنَّهُمْ قَالُوا يَا رَسُولَ اللّٰهِ كَيْفَ نُصَلِّي عَلَيْكَ قَالَ « قُولُوا اللَّهُمَّ صَلِّ عَلَى مُحَمَّدٍ وَأَزْوَاجِهِ وَذُرِّيَّتِهِ، كَمَا صَلَّيْتَ عَلَى آلِ إِبْرَاهِيمَ، وَبَارِكْ عَلَى مُحَمَّدٍ وَأَزْوَاجِهِ وَذُرِّيَّتِهِ ، كَمَا بَارَكْتَ عَلَى آلِ إِبْرَاهِيمَ ، إِنَّكَ حَمِيدٌ مَجِيدٌ». [ر: ٣١٨٩]

د سيدنا ابوحميد الساعدى رضي الله عنه نه روايت دي چه خلقو عرض اوكړو يا رسول الله ﷺ: مونږ څنګه په تاسو درود اوليږو. رسول الله ﷺ اوفرمائيل چه داسې ليږئ:

﴿ اللَّهُمَّ صَلِّ عَلَى مُحَمَّدٍ وَأَزْوَاجِهِ وَذُرِّيَّتِهِ كَمَا صَلَّيْتَ عَلَى آلِ إِبْرَاهِيمَ وَبَارِكْ عَلَى مُحَمَّدٍ وَأَزْوَاجِهِ وَذُرِّيَّتِهِ كَمَا بَارَكْتَ عَلَى آلِ إِبْرَاهِيمَ إِنَّكَ حَمِيدٌ مَجِيدٌ ﴾

د سيدنا ابوحميد الساعدى رضي الله عنه نه روايت دي چه خلقو عرض اوكړو يا رسول الله ﷺ: مونږ څنګه په تاسو باندې درود اوليږو. رسول الله ﷺ اوفرمائيل چه داسې وايئ:

﴿ اللَّهُمَّ صَلِّ عَلَى مُحَمَّدٍ وَأَزْوَاجِهِ وَذُرِّيَّتِهِ كَمَا صَلَّيْتَ عَلَى آلِ إِبْرَاهِيمَ وَبَارِكْ عَلَى مُحَمَّدٍ وَأَزْوَاجِهِ وَذُرِّيَّتِهِ كَمَا بَارَكْتَ عَلَى آلِ إِبْرَاهِيمَ إِنَّكَ حَمِيدٌ مَجِيدٌ ﴾

**په غير نبى باندې د درود ليږلو حكم** : د رسول الله ﷺ نه علاوه په انبياء، ملائكه او عام مومنانو باندې درود ليږلې كيدې شى يا نه؟ په دې كښې اختلاف دي. ﴿ هل ﴾ كلمه د

---

١) ارشاد السارى ٢٥٨/١٣

استفهام ذکر کولو سره امام بخاری رحمه الله هم د دې اختلاف طرف ته اشاره اوفرمائیله [۱] په دې کښې درې مذاهب مشهور دی:

① اول مذهب دا دې چه د رسول الله ﷺ نه علاوه په نورو انبیاء او ملائکو او مومنانو باندې درود مطلقا لیږلې کیدې شی، مستقلا هم او جامعا هم. امام بخاری رحمه الله هم دا مسلک اختیار کړې دې ځکه چه هغوی کوم آیت کریمه او روایات الباب ذکر فرمائیلې دی.
په هغې کښې په غیر نبی باندې د صلاة حکم او ذکر دې. پس د قرآن کریم په آیت کریمه کښې الله پاک رسول الله ﷺ ته خطاب کولو سره فرمائی ﴿ وَصَلِّ عَلَيْهِمْ إِنَّ صَلَاتَكَ سَكَنٌ لَّهُمْ ﴾ یعنې د مومنانو دپاره د رحمت دعا کوئ ځکه چه ستاسو دعا د هغوئ دپاره د طمانیت او سکون باعث ده. په دې آیت کریمه کښې په مومنانو باندې د صلاة لیږلو حکم راغلې دې معلومه شوه چه په غیر نبی باندې درود لیږلې کیدې شی.
په باب کښې چه امام بخاری رحمه الله کوم دوه روایتونه ذکر فرمائیلې دی، په هغې کښې په اول روایت کښې رسول الله ﷺ د ابی اوفی په باره کښې فرمائی اللهم صل علی آل ابی اوفی ! چه د هغې نه په غیر نبی باندې مستقلا د صلاة لیږلو جواز معلومیږی
او په دویم روایت کښې ﴿ صلاة علی النبی وعلی غیر النبی ﴾ دواړو ذکر دې. چه په هغې کښې په غیر نبی باندې تبعا د درود لیږلو جواز معلومیږی.

② دویم مسلک دا دې چه په غیر نبی باندې مطلقا صلاة لیږل جائز نه دی او تبعا هم مطلقا جائز نه دی. صرف په کومو نصوصو کښې چه تبعا په غیر نبی باندې صلاة لیږلې شوې دې. د هغه ماثور نصوص د حده پورې جائز دې. د امام احمد رحمه الله یو قول هم د دې مطابق دې [۲]

③ دریم مسلک د حضرات احنافو او جمهور علماء کرامو دې چه په غیر نبی باندې مستقلا درود لیږل خو جائز نه دی. خو تبعا جائز دی. [۳] ځکه د درود شریف په ډیرو روایتونو کښې تبعا صلاة علی غیر النبی ﷺ راغلې دې

د سیدنا ابوهریره رضی الله عنه مرفوع حدیث دې ﴿ صلوا علی انبیاء الله ﴾ [۴] یعنې د الله پاک په انبیاء علیهم السلام باندې درود لیږئ، خو د جمهور په نزد دا حکم مستقلا نه دې بلکه تبعا دې ځکه چه ابن ابی شیبة په سند صحیح سره د ابن عباس رضی الله عنهما روایت نقل فرمائیلې دې ﴿ مَا أَعْلَمُ الصَّلَاةَ تَنْبَغِي مِنْ أَحَدٍ عَلَى أَحَدٍ إِلَّا عَلَى النَّبِيِّ صلی الله علیه وسلم ﴾ [۵] یعنې: که د چا په چا باندې درود

---

۱) عمدة القاری ۳۰۸/۲۲، فتح الباری ۱۶۵/۱۱
۲) فتح الباری ۱۷۰/۱۱
۳) فتح الباری ۱۷۰/۱۱
۴) عمدة القاری ۳۰۹/۲۲، وفتح الباری : ۱۷۰/۱۱
۵) اخرجه ابن ابی شیبة : ۴۶/۶، رقم الحدیث : ۸۸۰۸

نيړل جائز دي نو هغه صرف د رسول الله ﷺ ذات دې. په بل چا باندې د درود لېږلو د جواز ماته علم نشته

او امام بخارى رحمه الله چه کوم استدلال کړې دې، د هغې جواب دا ورکړې شوې دې چه دا حکم د الله پاک د رسول ﷺ سره خاص وو چه هغوی د چا دپاره غواړې د هغه دپاره دې صلاة او دعا اوکړې، خو نورو خلقو ته دا اختيار نشته. هم دا وجه ده چه د سيدنا ابن ابى اوفى رضي الله عنه په حق کښې د رسول الله ﷺ نه علاوه بل چا د صلاة لفظ نه دې استعمال کړې. بلکه د صحابى کيدو د وجې نه د «رضی الله عنه» جمله د هغوی دپاره استعماليږي. [1]

## ٣٣: باب قَوْلِ النَّبِيِّ صلى الله عليه وسلم «مَنْ آذَيْتُهُ فَاجْعَلْهُ لَهُ زَكَاةً وَرَحْمَةً».

[٦٠٠٠] حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ صَالِحٍ حَدَّثَنَا ابْنُ وَهْبٍ قَالَ أَخْبَرَنِي يُونُسُ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ قَالَ أَخْبَرَنِي سَعِيدُ بْنُ الْمُسَيَّبِ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ - رضى الله عنه - أَنَّهُ سَمِعَ النَّبِيَّ - صلى الله عليه وسلم - يَقُولُ «اللَّهُمَّ فَأَيُّمَا مُؤْمِنٍ سَبَبْتُهُ فَاجْعَلْ ذَلِكَ لَهُ قُرْبَةً إِلَيْكَ يَوْمَ الْقِيَامَةِ».

د سيدنا ابوهريره رضي الله عنه نه روايت دې چه هغوی بيان کړې دې چه ما د رسول الله ﷺ نه واوريدل چه کوم ايمان دار ته ما بدې ردې وئيلې وی، نو هغه د قيامت په ورځ د هغه دپاره د قربت ذريعه جوړه کړه.

**قوله:** «فَأَيُّمَا مُؤْمِنٍ سَبَبْتُهُ»: «فايما» کښې فاء جزائيه ده او شرط دلته محذوف دې، چه په هغې باندې د کلام سياق دلالت کوی، «ان کنت سببت مؤمنا»

د رسول الله ﷺ د ارشاد مبارک حاصل دا دې چه په مومنانو کښې چه څوک ما رټلې وی او د طبعى غصې د وجې نه ورته څه بدې ردې وئيلې وی او هغه په حقيقت کښې د هغې مستحق نه وی نو اې الله! نو ته زما دا زورنه او رټنه د هغه دپاره په آخرت کښې باعث تزکيه او باعث اجرو ثواب اوګرځوه. دلته روايت اګر چه مطلق دې چه کوم سړی ته هم ما تکليف ورکړې وی، خو مراد ترې نه هر سړی نه دې. بلکه هغه سړې دې کوم چه د رټنې او تنبيه مستحق نه وی. لکه د مسلم په روايت کښې د «ليس لها باهل» قيد راغلې دې.

په صحيح مسلم کښې د سيدنا انس رضي الله عنه روايت دې چه رسول الله ﷺ اوفرمائيل:

«إِنَّمَا أَنَا بَشَرٌ أَرْضَى كَمَا يَرْضَى الْبَشَرُ وَأَغْضَبُ كَمَا يَغْضَبُ الْبَشَرُ فَأَيُّمَا أَحَدٍ دَعَوْتُ عَلَيْهِ مِنْ أُمَّتِي بِدَعْوَةٍ لَيْسَ لَهَا بِأَهْلٍ أَنْ تَجْعَلَهَا لَهُ طَهُورًا وَزَكَاةً وَقُرْبَةً يُقَرِّبُهُ بِهَا مِنْهُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ» [2]

---

[1] تاريخ بغداد للخطيب البغدادى : ١٠٥/٨

[2] صحيح مسلم، کتاب البر والصلة والادب، باب من لعنة النبى صلى الله عليه وسلم او سبه امر دعا عليه، وليس له اهلا لذلک، کان له زکاة واجرا ورحمة، رقم : ٦٦٢٧

او په یو روایت کښې دی ﴿ اللهم انما محمد بشر یغضب کما یغضب البشر ﴾ ای الله ! محمد ﷺ یو بشر دې او د بشر په شان هغه هم غصه کیږي.

حدیث الباب، امام مسلم رحمه الله په کتاب البر والصلة کښې نقل فرمائیلې دې. [1]

په حدیث کښې د ﴿ لیس لها باهل ﴾ مطلب دا دې چه په ظاهری حالت کښې خو هغه د تنبیه مستحق وو، خو په حقیقت کښې د هغې مستحق نه وو. د عدم استحقاق یو صورت دا کیدې شي چه هغه بالکلیه مستحق نه وو. دویم صورت دا دې چه د استحقاق نه زیات سختې او کړې شوه. په دواړو صورتونو کښې رسول الله ﷺ د هغه دپاره دعا کړې ده. [2] دا د رسول الله ﷺ په امت باندې د کمال درجې د شفقت کولو دلیل دې

## ۳۴: باب التَّعَوُّذِ مِنَ الْفِتَنِ

[۶۰۰۱] حَدَّثَنَا حَفْصُ بْنُ عُمَرَ حَدَّثَنَا هِشَامٌ عَنْ قَتَادَةَ عَنْ أَنَسٍ - رضى الله عنه سَأَلُوا رَسُولَ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - حَتَّى أَحْفَوْهُ الْمَسْأَلَةَ فَغَضِبَ فَصَعِدَ الْمِنْبَرَ فَقَالَ « لاَ تَسْأَلُونِى الْيَوْمَ عَنْ شَىْءٍ إِلاَّ بَيَّنْتُهُ لَكُمْ ». فَجَعَلْتُ أَنْظُرُ يَمِينًا وَشِمَالاً، فَإِذَا كُلُّ رَجُلٍ لاَفٌّ رَأْسَهُ فِى ثَوْبِهِ يَبْكِى، فَإِذَا رَجُلٌ كَانَ إِذَا لاَحَى الرِّجَالَ يُدْعَى لِغَيْرِ أَبِيهِ فَقَالَ يَا رَسُولَ اللَّهِ مَنْ أَبِى قَالَ « حُذَافَةُ »، ثُمَّ أَنْشَأَ عُمَرُ فَقَالَ رَضِينَا بِاللَّهِ رَبًّا، وَبِالإِسْلاَمِ دِينًا، وَبِمُحَمَّدٍ - صلى الله عليه وسلم - رَسُولاً، نَعُوذُ بِاللَّهِ مِنَ الْفِتَنِ. فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - « مَا رَأَيْتُ فِى الْخَيْرِ وَالشَّرِّ كَالْيَوْمِ قَطُّ، إِنَّهُ صُوِّرَتْ لِى الْجَنَّةُ وَالنَّارُ حَتَّى رَأَيْتُهُمَا وَرَاءَ الْحَائِطِ ».

وَكَانَ قَتَادَةُ يَذْكُرُ عِنْدَ الْحَدِيثِ هَذِهِ الآيَةَ (يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لاَ تَسْأَلُوا عَنْ أَشْيَاءَ إِنْ تُبْدَ لَكُمْ تَسُؤْكُمْ). [۲۲۷۸، وانظر: ۴۳۴۵]

سیدنا انس رضی الله عنه روایت کوی چه خلقو د رسول الله ﷺ نه تپوس کول شروع کړل چه کله خلقو ډیر زیات تپوس کول شروع کړل نو رسول الله ﷺ غصه شو او په منبر باندې ختلو سره ئې اوفرمائیل : نن چه تاسو زما نه څه تپوس کوئ زه به هغه ښکاره بیان کړم. د راوی بیان دې چه ما ښی او ګس طرف ته کتل شروع کړل، نو په نظر مې راغلل چه هر سړی په خپله کپړه کښې مخ پټ کړې دې او ژاړي، په هغوی کښې یو سړې داسې هم وو کوم چه به خلقو د جنګ په وخت د پلار نه علاوه بل طرف ته منسوب کولو. پس هغه تپوس اوکړو یا رسول الله ﷺ! زما پلار څوک دې؟ رسول الله ﷺ اوفرمائیل حذافة! بیا سیدنا عمر رضی الله عنه اوفرمائیل چه : رضینا بالله ربا ... یعنی مونږ د الله پاک د رب کیدو او د اسلام د دین کیدو او د

---

[1] صحيح مسلم، كتاب البر والصلة، باب من لعنه النبى صلى الله عليه وسلم او سبه امر دعا عليه، رقم الحديث ۶۶۲۷

[2] فتح الباری : ۱۱/۱۷۰

محمد ﷺ د رسول كيدو باندې راضي شو او مونږ د فتنو نه د الله پاک پناه غواړو. نو رسول الله ﷺ اوفرمائيل چه ما د نن په شان كله هم خير او شر نه دې ليدلي. زما مخكښې د جنت او جهنم صورت پيش كړې شو. تردې چه ما دواړه د دې ديوال نه شاته اوليدل او قتادة به د دې حديث د بيانولو په وخت دا آيت كريمه هم لوستلو.

﴿يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَا تَسْأَلُوا عَنْ أَشْيَاءَ إِنْ تُبْدَ لَكُمْ تَسُؤْكُمْ﴾

فتن د فتنې جمع ده. فتنة. ازميښت او امتحان ته وائي.

## ۳۵: باب التَّعَوُّذِ مِنْ غَلَبَةِ الرِّجَالِ

[۲۰۰۲] حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ بْنُ جَعْفَرٍ عَنْ عَمْرِو بْنِ أَبِي عَمْرٍو مَوْلَى الْمُطَّلِبِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ حَنْطَبٍ أَنَّهُ سَمِعَ أَنَسَ بْنَ مَالِكٍ يَقُولُ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - لأَبِي طَلْحَةَ «الْتَمِسْ لَنَا غُلاَمًا مِنْ غِلْمَانِكُمْ يَخْدُمُنِي». فَخَرَجَ بِي أَبُو طَلْحَةَ يُرْدِفُنِي وَرَاءَهُ، فَكُنْتُ أَخْدُمُ رَسُولَ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - كُلَّمَا نَزَلَ، فَكُنْتُ أَسْمَعُهُ يُكْثِرُ أَنْ يَقُولَ «اللَّهُمَّ إِنِّي أَعُوذُ بِكَ مِنَ الْهَمِّ وَالْحَزَنِ، وَالْعَجْزِ وَالْكَسَلِ، وَالْبُخْلِ وَالْجُبْنِ، وَضَلَعِ الدَّيْنِ، وَغَلَبَةِ الرِّجَالِ». فَلَمْ أَزَلْ أَخْدُمُهُ حَتَّى أَقْبَلْنَا مِنْ خَيْبَرَ، وَأَقْبَلَ بِصَفِيَّةَ بِنْتِ حُيَيٍّ قَدْ حَازَهَا، فَكُنْتُ أَرَاهُ يُحَوِّي وَرَاءَهُ بِعَبَاءَةٍ أَوْ كِسَاءٍ ثُمَّ يُرْدِفُهَا وَرَاءَهُ حَتَّى إِذَا كُنَّا بِالصَّهْبَاءِ صَنَعَ حَيْسًا فِي نِطَعٍ، ثُمَّ أَرْسَلَنِي فَدَعَوْتُ رِجَالاً فَأَكَلُوا، وَكَانَ ذَلِكَ بِنَاءَهُ بِهَا، ثُمَّ أَقْبَلَ حَتَّى بَدَا لَهُ أُحُدٌ قَالَ «هَذَا جُبَيْلٌ يُحِبُّنَا وَنُحِبُّهُ». فَلَمَّا أَشْرَفَ عَلَى الْمَدِينَةِ قَالَ «اللَّهُمَّ إِنِّي أُحَرِّمُ مَا بَيْنَ جَبَلَيْهَا مِثْلَ مَا حَرَّمَ بِهِ إِبْرَاهِيمُ مَكَّةَ، اللَّهُمَّ بَارِكْ لَهُمْ فِي مُدِّهِمْ وَصَاعِهِمْ. [ر: ۲۷۳۲]

د سيدنا انس بن مالك رضي الله عنه نه روايت دې چه رسول الله ﷺ سيدنا ابوطلحه رضي الله عنه ته اوفرمائيل: د خپلو هلكانو نه يو هلك زما د خدمت دپاره راكړه. پس ابوطلحه رضي الله عنه زه په خان پسې سور كړم او هلته ئې بوتلم پس ما د رسول الله ﷺ خدمت كولو. چه كله به هم هغوی كوزيدل نو ما به اكثر د هغوی نه اوريدل: ﴿اللَّهُمَّ إِنِّي أَعُوذُ بِكَ مِنَ الْهَمِّ وَالْحَزَنِ وَالْعَجْزِ وَالْكَسَلِ وَالْبُخْلِ وَالْجُبْنِ وَضَلَعِ الدَّيْنِ وَغَلَبَةِ الرِّجَالِ﴾ زه برابر د هغوی په خدمت كښې اوم تردې چه كله مونږ د خيبر نه واپس شو نو رسول الله ﷺ خان سره صفيه بنت حيي رضي الله عنها بوتله چه د هغوی منكوحه وه. ما هغوی ته كتل. چه د خپل څادر يا كمبل پرده كولو سره په خپل خان پسې هغه سوره كړه. تردې چه مونږ كله مقام صهبا ته اورسيدلو نو رسول الله ﷺ حيس ييارولو سره هغه په دسترخوان باندې كيخودل، بيا ئې زه اوليږلم نو ما خلق راغوبنتل. خلقو خوراک اوكړو. دا د وليمې دعوت وو. بيا د هغه ځائې نه مخكښې لاړل تردې چه كله د احد غر په نظر راغلو نو وې فرمائيل: دا هغه غر دې چه مونږ سره مينه كوی او مونږ هغه سره مينه كوو. چه كله مدينې منورې ته اورسيدلو نوې وې فرمائيل: يا الله! زه د دې د

دوا ړو غرونو ترمينځه زمكه حرم كوم. څنګه چه ابراهيم عليه السلام مكه حرام كړې وه اې الله ! د مدينې خلقو ته د هغوی په مد او د هغوی په صاع كښې بركت وركړه

**قوله:** ﴿اللَّهُمَّ إِنِّي أَعُوذُ بِكَ مِنَ الْهَمِّ وَالْحَزَنِ وَالْعَجْزِ وَالْكَسَلِ﴾: رسول الله ﷺ په دې كښې د څو څيزونو نه پناه غوښتلې ده. يو د ﴿الْهَمِّ﴾ نه. ﴿الْهَمّ﴾ غم ته وائى او بعضو وئيلې دى چه ﴿الْهَمّ﴾ داسې غم ته وائى چه د هغې وجه معلومه نه وى او په كوم كښې چه زړه مضطرب او پريشانه وى [1]

﴿الْحَزَن﴾: د حاء او زا په فتحې سره او د حاء په ضمې او د زاء په سكون سره، په معنى د غم دې. په هم او حزن كښې فرق دا دې چه د حزن تعلق د ماضى سره دې يعنى څه واقعه اوشوه. د هغې د وجې نه چه كوم غم لاحق وى : هغې ته حزن وئيلې شى او د هم تعلق د مستقبل سره دې چه د يو څيز د وقوع يا عدم وقوع ويره وى [2]

﴿ضَلَعِ الدَّيْنِ﴾ د قرض بوجهـ. خاص كر چه كله قرض وركونكې مطالبه كوى او مقروض سره د قرض د ادا كولو دپاره د قرض انتظام نه وى. د هغې د وجې نه چه كوم بوجهـ او فكر وى. هغه مراد دې. كه د قرض د ادا كولو بندوبست وى نو د داسې قرض نه پناه نه ده غوښتلې شوې. د بعض اسلاف نه منقول دى چه قرض د ادا كولو انتظام نشته او قرض غوښتونكې مطالبه كوى نو د هغې د وجې نه انسان ته داسې فكر لګيدلې وى كوم عقل او شعور لره لاندې كوى [3]، الله پاک دې ترې زمونږ د ټولو حفاظت اوفرمائى. رسول الله ﷺ د دې نه پناه غوښتلې ده.

﴿غَلَبَةِ الرِّجَالِ﴾ د خلقو په غالب راتلو كښې هم پناه غوښتلې شوې ده چه انسان دومره كمزورې او بې وسه شى چه هر سړى ته پرې د غلبې موقع ملاويږى او د هرچا د ظلم د لاندې نه راځى

په دې دعا كښې يو لطيف اشاره دې طرف ته هم ده چه د قرض بوجهـ په انسان باندې د كسل او سستئ د وجې نه راځى كوم انسان چه په دنيوى معاملاتو كښې په ديانت دارئ او چستئ سره كار كوى. هغه به د قرض د بوجهـ لاندې نه راځى. هم دغه شان جبن يعنى بزدلى او قرض. غلبة الرجال يعنى په سړى باندې د خلقو د غلبې سبب جوړ شى او په داسې حالت كښې انسان د هر يو نه مغلوب او سيږى.

علامه كرمانى رحمه الله فرمائى : ﴿ هذا الدعاء من جوامع الكلم لان انواع الرذائل ثلاثة : نفسانية وبدنية وخارجية، فالاولى بحسب القوى التى للانسان، وهى ثلاثة : العقلية والغضبية والشهوانية، فالهم والحزن

---

[1] وفى مجمع بحار الانوار ۱۷۰/۵ : الهم : حزن يذيب الانسان فهو اخص من الحزن. وقيل : هو بالآتى. والحزن بالماضى.

[2] ارشاد السارى ۳٦٤/۱۳

[3] فتح البارى : ۱۷٤/۱۱

يتعلق بالعقلية، والجبن بالغضبية، والبخل بالشهوانية، والعجز والكسل بالبدنية والثاني يكون عند سلامة الاعضاء وتمام الالات والعجز والكسل بالبدنية والثاني يكون عند سلامة الاعضاء وتمام الالات والقوى، والاول عند نقصان عضو ونحوه، والضلع والغلبة بالخارجية، فالاول مالي، والثاني جاهي، والدعاء مشتمل على جميع ذلك ﴾ [1]

يعنى . دا دعا د رسول الله ﷺ په هغه مبارک کلماتو کښې يوه ده کومې ته چه ﴿ جوامع الكلم﴾ وئيلې شي، کومه چه د مختصر کیدو باوجود په خپل ځان کښې د معانی يو جهان لرى. په حقيقت کښې د رذائل درې قسمونه دی، نفسانيه، بدنيه او خارجيه. بيا نفسانی رذائل د انسانی طاقتونو په اعتبار سره هم په درې قسمونو باندې مشتمل دی، عقليه، غضبيه او شهوانيه. پس د هم او حزن تعلق د قوت عقليه سره دې. د جبن تعلق د قوت غضبيه سره دې او د بخل تعلق قوت شهوانيه دې او د عجز او کسل تعلق بدنيه دې. د عجز په صورت کښې په اندامونو کښې څه نقصان وی او د کسل په صورت کښې اندامونه سالم وی خو چستی ورکيږی او ضلع دين او غلبة الرجال تعلق د قوی خارجيه سره دې. اول د مالی او دويم د جاه او مرتبې سره متعلق دې او ذکر شوې دعا په دې ټولو باندې مشتمل ده.

## ۳۶: بَاب التَّعَوُّذِ مِنْ عَذَابِ الْقَبْرِ

[۲۰۰۳] حَدَّثَنَا الْحُمَيْدِي حَدَّثَنَا سُفْيَانُ حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ عُقْبَةَ قَالَ سَمِعْتُ أُمَّ خَالِدٍ بِنْتَ خَالِدٍ - قَالَ وَلَمْ أَسْمَعْ أَحَدًا سَمِعَ مِنَ النَّبِي - صلى الله عليه وسلم - غَيْرَهَا - قَالَتْ سَمِعْتُ النَّبِي - صلى الله عليه وسلم - يَتَعَوَّذُ مِنْ عَذَابِ الْقَبْرِ. [ر: ۱۳۱۰]

د سيدنا خالد رضی الله عنه نه روايت ما د رسول الله ﷺ نه واوريدل چه هغوى د قبر د عذاب نه پناه غوښتله. موسى بن عقبه وائى چه د ام خالد نه علاوه ما د چا متعلق هم نه دی اوريدلی چه هغه دا حديث د رسول الله ﷺ نه اوريدلی وی.

رسول الله ﷺ د عذاب قبر نه پناه غوښتلې ده، دا حديث په منکرين عذاب قبر باندې حجت دې. [2]

[۲۰۰۴] حَدَّثَنَا آدَمُ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْمَلِكِ عَنْ مُصْعَبٍ كَانَ سَعْدٌ يَأْمُرُ بِخَمْسٍ وَيَذْكُرُهُنَّ عَنِ النَّبِي - صلى الله عليه وسلم - أَنَّهُ كَانَ يَأْمُرُ بِهِنَّ « اللَّهُمَّ إِنِّي أَعُوذُ بِكَ مِنَ الْبُخْلِ ، وَأَعُوذُ بِكَ مِنَ الْجُبْنِ ، وَأَعُوذُ بِكَ أَنْ أُرَدَّ إِلَى أَرْذَلِ الْعُمُرِ ، وَأَعُوذُ بِكَ مِنْ فِتْنَةِ الدُّنْيَا يَعْنِي فِتْنَةَ الدَّجَّالِ وَأَعُوذُ بِكَ مِنْ عَذَابِ الْقَبْرِ». [ر: ۲۶۶۷]

---

[1] شرح الكرمانی : ۱۵۹/۲۱

[2] فتح البارى : ۲۱۱/۳

د مصعب نه روایت دی چه سعد رضی الله عنه به د پنځو خبرو نه د پناه غوښتلو حکم کولو او د دې پنځو خبرو متعلق به ئې د رسول الله ﷺ نه روایت کولو چه رسول الله ﷺ به د دې پنځه خبرو نه پناه غوښتله (رسول الله ﷺ به فرمائیل چه ،

(اللّٰهُمَّ إِنِّي أَعُوذُ بِكَ مِنَ الْبُخْلِ وَأَعُوذُ بِكَ مِنَ الْجُبْنِ وَأَعُوذُ بِكَ أَنْ أُرَدَّ إِلَى أَرْذَلِ الْعُمُرِ وَأَعُوذُ بِكَ مِنْ فِتْنَةِ الدُّنْيَا يَعْنِي فِتْنَةَ الدَّجَّالِ وَأَعُوذُ بِكَ مِنْ عَذَابِ الْقَبْرِ).

[۲۰۰۵] حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ حَدَّثَنَا جَرِيرٌ عَنْ مَنْصُورٍ عَنْ أَبِي وَائِلٍ عَنْ مَسْرُوقٍ عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ دَخَلَتْ عَلَيَّ عَجُوزَانِ مِنْ عُجُزِ يَهُودِ الْمَدِينَةِ فَقَالَتَا لِي إِنَّ أَهْلَ الْقُبُورِ يُعَذَّبُونَ فِي قُبُورِهِمْ، فَكَذَّبْتُهُمَا، وَلَمْ أُنْعِمْ أَنْ أُصَدِّقَهُمَا، فَخَرَجَتَا وَدَخَلَ عَلَيَّ النَّبِيُّ صلى الله عليه وسلم فَقُلْتُ لَهُ يَا رَسُولَ اللّٰهِ إِنَّ عَجُوزَيْنِ وَذَكَرْتُ لَهُ، فَقَالَ «صَدَقَتَا، إِنَّهُمْ يُعَذَّبُونَ عَذَابًا تَسْمَعُهُ الْبَهَائِمُ كُلُّهَا». فَمَا رَأَيْتُهُ بَعْدُ فِي صَلَاةٍ إِلَّا تَعَوَّذَ مِنْ عَذَابِ الْقَبْرِ. [ر ۱۹۹۷]

د سیده عائشه رضی الله عنها نه روایت دی چه ماته د مدینې د یهودو دوه بوډئ زنانه راغلې هغوی دواړو ماته اووې چه قبر والو ته په قبرونو کښې عذاب ورکولې شی نو ما د هغوی تکذیب اوکړو. او ښه مې او نه ګڼړله چه د هغوی تصدیق اوکړم پس هغوی دواړه لاړې. بیا ماته رسول الله ﷺ راغلو ما هغوی ته عرض اوکړو یا رسول الله ﷺ! دوه بوډئ زنانه راغلې وې، او هغوی ته مې ټوله واقعه بیان کړه. رسول الله ﷺ اوفرمائیل هغوی دواړو صحیح وئیلې دی بیشکه (خلقو ته) په قبرونو کښې عذاب ورکولې شی. کوم چه ټول حیوانات اوری پس د دې نه روستو ما هغوی په هر مانځه کښې د عذاب قبر نه په پناه غوښتلو باندې لیدلې دی.

صرف د مستملی په نسخه کښې دلته باب دی. حافظ ابن حجر رحمه الله هغې ته د دوه وجو نه غلط وئیلې دی. یو په دې وجه په اول حدیث کښې اګر چه د بخل ذکر دې. خو د درې ابواب نه پس بعینه امام بخاری رحمه الله هم دا باب قائم کړې دې. دویم په دې وجه په دویم حدیث کښې د سره د بخل ذکر نشته. بلکه په هغې کښې صرف د عذاب قبر ذکر دې. په دې وجه دا دواړه احادیث د باب التعوذ من عذاب القبر حصه ده [۱]

## ۳۷ بَابُ التَّعَوُّذِ مِنْ فِتْنَةِ الْمَحْيَا وَالْمَمَاتِ

[۲۰۰۶] حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا الْمُعْتَمِرُ قَالَ سَمِعْتُ أَبِي قَالَ سَمِعْتُ أَنَسَ بْنَ مَالِكٍ -رضی الله عنه- يَقُولُ كَانَ نَبِيُّ اللّٰهِ -صلى الله عليه وسلم- يَقُولُ:

«اللّٰهُمَّ إِنِّي أَعُوذُ بِكَ مِنَ الْعَجْزِ وَالْكَسَلِ، وَالْجُبْنِ وَالْهَرَمِ، وَأَعُوذُ بِكَ مِنْ عَذَابِ الْقَبْرِ، وَأَعُوذُ بِكَ مِنْ فِتْنَةِ الْمَحْيَا وَالْمَمَاتِ». [ر ۲۶۶۸]

د سیدنا انس بن مالک رضی الله عنه نه روایت دی چه رسول الله ﷺ به فرمائیل: (اللّٰهُمَّ إِنِّي أَعُوذُ بِكَ مِنَ

[۱]) فتح الباری ۱۷٤/۱۱

الْعَجْزِ وَالْكَسَلِ وَالْجُبْنِ وَالْهَرَمِ وَأَعُوذُ بِكَ مِنْ عَذَابِ الْقَبْرِ وَأَعُوذُ بِكَ مِنْ فِتْنَةِ الْمَحْيَا وَالْمَمَاتِ ﴾ (زه ستا پناه غواړم د عجز، سستئ، بزدلئ او ډیر زیات بوډاتوب نه او زه ستا پناه غواړم د عذاب قبر نه او ستا پناه غواړم د ژوند او مرګ د فتنې نه).

**د فتنة محیا وممات مطلب**: ﴿ محیا او ممات ﴾ د مفعل په وزن باندې دواړه مصادر دی. د ژوند او مرګ په معنی دی د فتنة محیانه مراد هغه فتنې دی کومې چه انسان ته په ژوند باندې پیښیدلې شی. کومې چه د هغه د دین او دنیا دپاره مضر او د نقصان سبب جوړیدې شی او د فتنه ممات نه د قبر فتنه یعنی د قبر دننه ازمیښت مراد کیدې شی او د دې نه مرګ ته نزدې انسان ته پیښیدونکې فتنه هم مراد کیدلې شی. مثلا بده خاتمه او په بد حالت باندې مرګ. (۱)

حدیث الباب هم په دې سند او متن سره په کتاب الجهاد کښې تیر شوی دې. (۲)

## ۳۸: باب التَّعَوُّذِ مِنَ الْمَأْثَمِ وَالْمَغْرَمِ

د ماثم معنی ګناه او د مغرم معنی قرض راځی.

[۲۰۰۷] حَدَّثَنَا مُعَلَّى بْنُ أَسَدٍ حَدَّثَنَا وُهَيْبٌ عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ عَنْ أَبِيهِ عَنْ عَائِشَةَ رضی الله عنها أَنَّ النَّبِيَّ صلی الله علیه وسلم كَانَ يَقُولُ «اللَّهُمَّ إِنِّي أَعُوذُ بِكَ مِنَ الْكَسَلِ وَالْهَرَمِ، وَالْمَأْثَمِ وَالْمَغْرَمِ، وَمِنْ فِتْنَةِ الْقَبْرِ وَعَذَابِ الْقَبْرِ، وَمِنْ فِتْنَةِ النَّارِ وَعَذَابِ النَّارِ، وَمِنْ شَرِّ فِتْنَةِ الْغِنَى، وَأَعُوذُ بِكَ مِنْ فِتْنَةِ الْفَقْرِ، وَأَعُوذُ بِكَ مِنْ فِتْنَةِ الْمَسِيحِ الدَّجَّالِ، اللَّهُمَّ اغْسِلْ عَنِّي خَطَايَايَ بِمَاءِ الثَّلْجِ وَالْبَرَدِ، وَنَقِّ قَلْبِي مِنَ الْخَطَايَا، كَمَا نَقَّيْتَ الثَّوْبَ الأَبْيَضَ مِنَ الدَّنَسِ، وَبَاعِدْ بَيْنِي وَبَيْنَ خَطَايَايَ كَمَا بَاعَدْتَ بَيْنَ الْمَشْرِقِ وَالْمَغْرِبِ» [۲۰۱۲، ۲۰۱۴]

د سیده عائشه رضی الله عنها نه روایت دې چه رسول الله ﷺ به دعا فرمائیله: اللَّهُمَّ إِنِّي أَعُوذُ بِكَ... یعنی اې الله! زه ستا پناه غواړم د سست والی او بوډاتوب او د ګناه او د قرض او د قبر د ازمیښت او د اور د ازمیښت او د اور د عذاب نه او مالدارئ د فتنې د شر نه او ستا پناه غواړم د فقر د فتنې نه. او ستا پناه غواړم د مسیح دجال د فتنې نه. یا الله! ته زما نه زما ګناهونه د واورې او کلئ په اوبو سره اووینځه او زما زړه د ګناهونو نه پاک کړه څنګه چه تا سپینه کپړه د ګندګئ نه پاکه کړې ده او زما او زما د ګناهونو ترمینځه هم هغه شان لرې

---

(۱) قال القسطلانی: فتنة المحیا هو ما یعرض للإنسان فی مدّة حیاته من الافتتان بالدنیا وشهواتها وجهالاتها وأعظمها والعیاذ بالله تعالی سوء الخاتمة عند الموت وفتنة الممات قیل: فتنة القبر کسؤال الملکین. والمراد من شر ذلک وإلاّ فأصل السؤال واقع لا محالة فلا یدعی برفعه فیکون عذاب القبر مسببًا عن ذلک. والسبب غیر المسبب. وقیل: المراد الفتنة قبل الموت وأضیفت إلیه لقربها منه. وحینئذ تکون فتنة المحیا قبل ذلک. وقیل: غیر ذلک. والمحیا والممات مصدران بالاضافة علی وزن مفعل. ارشاد الساری: ۳۶۷/۱۳

(۲) صحیح البخاری، کتاب الجهاد، باب ما یتعوذ من الجبن، رقم الحدیث: ۲۸۳۳

والې راوله. څنګه چه تا د مشرق او مغرب ترمینځه راوستلې دي

په حدیث کښې د ﴿مِنْ شَرِّ فِتْنَةِ الْغِنَى﴾ او ﴿مِنْ فِتْنَةِ الْفَقْرِ﴾ الفاظ دی. یعنی د غنی سره د شر لفظ راغلې دې او د فقر سره نه

بعض شارحینو وئیلې دی چه په غنی سره د شر لفظ ذکر کولو سره ئې د هغې د بدئ طرف ته اشاره کړې ده او دا ئې بیان کړې ده چه د مالدارئ د فتنې شر ډیر خطرناک او تباه کن دې [1]

خو حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی چه د شر لفظ په دواړو ځایونو کښې دې. اګر چه په دې روایت کښې نشته. خو وړاندې روایت راروان دې. په هغې کښې د ﴿من شر فتنة الفقر﴾ الفاظ دی. په دې وجه د دې نکتې حاجت نه پاتې کیږی. [2]

**قوله: ﴿اللَّهُمَّ اغْسِلْ عَنِّي خَطَايَايَ بِمَاءِ الثَّلْجِ وَالْبَرَدِ﴾:** علامه توربشتی رحمه الله لیکی

﴿ ذکر انواع المطهرات المنزلة من السماء التی لا یمکن حصول الطهارة الکاملة الا بها، تبیانا لانواع المغفرة التی لا تخلص من الذنوب الا بها، ای: طهرنی من الخطایا بانواع مغفرتك التی هی فی تمحیص الذنوب بمثابة هذه الانواع الثلاثة فی ازالة الارجاس والاوضار ورفع الجنابة والاحداث ﴾ [3]

یعنی رسول الله ﷺ په دې دعا کښې د تطهیر هغه ټول ذرائع ذکر فرمائیلې دی کوم چه د آسمان نه نازل شوې دی او د هغې نه بغیر د کاملې پاکې حصول ممکن نه دې. په دې سره د هغوی غرض د مغفرت هغه ټول انواع بیانول دی چه د هغې نه بغیر د ګناهونو نه پاکی او خلاصی ممکن نه ده. یعنی اې الله! ته ما د خپل مغفرت د هغه ټولو انواع په ذریعه د ګناهونو نه پاک کړه کوم چه د ګناهونو په ختمولو کښې داسې دی څنګه د پاکئ دا ذرائع ګندګی. جنابت او ناپاکئ ختموی.

او علامه طیبی رحمه الله فرمائی: ﴿ ویمکن ان یقال: ان ذکر الثلج والبرد بعد الماء شمول أنواع الرحمة والمغفرة بعد العفو لإطفاء حرارة عذاب النار التی هی فی غایة الحرارة.... لان عذاب النار تقابله الرحمة ......ای: اغسل خطایای بالماء، ای: اغفرها وزد علی الغفران شمول الرحمة ﴾ [4]

یعنی: دا هم وئیلې کیدې شی چه د اوبو نه پس د واورې او ګلئ په ذکر کولو سره مقصود د مغفرت نه پس د هر انواع د رحمت احاطه ده. بله دا چه د دواړو ذکر د اوبو نه پس په دې وجه هم کړې شوې دې چه د عذاب جهنم انتهائی درجې حرارت مړ او ختم کړې شی. نو مطلب دا شو چه اې الله! ته په اوبو سره زما ګناهونه اوینځه یعنی ته دا ګناه معاف کړه او د معافئ سره سره ما په خپل رحمت سره پټ کړه.

---

[1] شرح الکرمانی ۲۲/۱۶۲، ۱۶۳

[2] فتح الباری: ۱۱/۱۷۷

[3] کتاب المیسر. کتاب الصلاة. باب ما یقرء بعد التکبیر ۱/۲۳۳

[4] شرح الطیبی. کتاب الصلاة. باب ما یقرء بعد التکبیر ۲/۲۹۶

**یو اشکال او د هغې جواب :**

**قوله: ﴿بِمَاءِ الثَّلْجِ وَالْبَرَدِ﴾ :** په دې باندې دا اشکال کړې شوې دې چه عموما چه کله په تطهیر او صفایئ او وینځلو کښې مبالغه مقصود وی نو ګرمې اوبه استعمالیږی. یخې اوبه نه شی استعمالولې نو دلته ﴿مَاءُ الثَّلْجِ وَالْبَرَدِ﴾ د مبالغه فی التطهیر دپاره څنګه استعمال کړې شو؟

علامه خطابی رحمه الله فرمائی چه په اصل کښې د ثلج او برد یعنی د واورې او ګلئ اوبه ته لاس نه وی لګیدلې او هغه بالکل شفاف او غیر مستعمل وی په دې وجه په هغې کښې تطهیر زیات دې. [1]

## ۳۹: باب الاِسْتِعَاذَةِ مِنَ الْجُبْنِ وَالْكَسَلِ

كُسَالَى وَكَسَالَى وَاحِدٌ »النساء: ۱۴۲ _

[۲۰۰۸] حَدَّثَنَا خَالِدُ بْنُ مَخْلَدٍ حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ قَالَ حَدَّثَنِي عَمْرُو بْنُ أَبِي عَمْرٍو قَالَ سَمِعْتُ أَنَسًا قَالَ كَانَ النَّبِيُّ -صلى الله عليه وسلم- يَقُولُ «اللَّهُمَّ إِنِّي أَعُوذُ بِكَ مِنَ الْهَمِّ وَالْحَزَنِ، وَالْعَجْزِ وَالْكَسَلِ، وَالْجُبْنِ وَالْبُخْلِ، وَضَلَعِ الدَّيْنِ، وَغَلَبَةِ الرِّجَالِ». [ر: ۲۷۲۸]

د سیدنا انس رضی الله عنه نه روایت دې چه رسول الله صلی الله علیه وسلم به په دعا کښې داسې وئیل ﴿اللَّهُمَّ إِنِّي أَعُوذُ بِكَ﴾ یعنی اې الله ! زه ستا پناه غواړم د غم او حزن او د عجز او سستئ او بزدلئ او بخل او د قرض د درنیدو او د خلقو د غلبې نه.

**قوله: ﴿كُسَالَى وَكَسَالَى وَاحِدٌ﴾ :** دا د قرآن کریم په آیت کښې واقع دې ﴿إِنَّ الْمُنَافِقِينَ يُخَادِعُونَ اللَّهَ وَهُوَ خَادِعُهُمْ وَإِذَا قَامُوا إِلَى الصَّلَاةِ قَامُوا كُسَالَى يُرَاءُونَ النَّاسَ وَلَا يَذْكُرُونَ اللَّهَ إِلَّا قَلِيلًا﴾ [2] فرمائی ﴿كُسَالَى﴾ د کاف په ضمې سره او ﴿كَسَالَى﴾ د کاف په فتحې سره دواړه یو دی.

## ۴۰: باب التَّعَوُّذِ مِنَ الْبُخْلِ

الْبُخْلُ وَالْبَخَلُ وَاحِدٌ، مِثْلُ الْحُزْنِ وَالْحَزَنِ.

[۲۰۰۹] حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنَّى حَدَّثَنِي غُنْدَرٌ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ عَبْدِ الْمَلِكِ بْنِ عُمَيْرٍ عَنْ مُصْعَبِ بْنِ سَعْدٍ عَنْ سَعْدِ بْنِ أَبِي وَقَّاصٍ رضى الله عنه - كَانَ يَأْمُرُ بِهَؤُلَاءِ الْخَمْسِ، وَيُحَدِّثُهُنَّ عَنِ النَّبِيِّ صلى الله عليه وسلم - «اللَّهُمَّ إِنِّي أَعُوذُ بِكَ مِنَ الْبُخْلِ، وَأَعُوذُ بِكَ مِنَ

---

[1] اعلام الحدیث، کتاب الدعوات، باب التعوذ من المائم والمغرم: ٤/ ٢٢٤

[2] سورة النساء ١٤٢

الْجُبْنِ، وَأَعُوذُ بِكَ أَنْ أُرَدَّ إِلَى أَرْذَلِ الْعُمُرِ، وَأَعُوذُ بِكَ مِنْ فِتْنَةِ الدُّنْيَا، وَأَعُوذُ بِكَ مِنْ عَذَابِ الْقَبْرِ». [ر ۲۶۶۷]

د سیدنا سعد بن ابی وقاص رضی الله عنه نه روایت دې چه رسول الله ﷺ به د پنځو څیزونو (نه د پناه غوښتلو) حکم کولو. او هغه به ئې د رسول الله ﷺ نه روایت کول. (هغه دا دی) اې الله زه ستا پناه غواړم د بخل نه، او ستا پناه غواړم د بزدلئ نه، او ستا پناه غواړم د دې خبرې نه چه زه د ارذل العمر طرف ته راواپس کړې شم او ستا پناه غواړم د دنیا د فتنې نه او ستا پناه غواړم د عذاب قبر نه.

امام بخارى رحمه الله فرمائى چه ﴿بُخْل﴾ (د باء په ضمې او د خاء په سکون سره) او ﴿بَخَل﴾ (د باء او خا په فتحې سره) دا دواړه یوه معنى لرى، څنګه چه د ﴿حَزَن﴾ا﴿حُزْن﴾ دواړویوه معنى ده.

## ۴۱: بَابُ التَّعَوُّذِ مِنْ أَرْذَلِ الْعُمُرِ

(أَرَاذِلُنَا) هود: ۲۷| أَسْقَاطُنَا.

[۲۰۱۰] حَدَّثَنَا أَبُو مَعْمَرٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَارِثِ عَنْ عَبْدِ الْعَزِيزِ بْنِ صُهَيْبٍ عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ رضى الله عنه قَالَ كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صلى الله عليه وسلم يَتَعَوَّذُ يَقُولُ «اللَّهُمَّ إِنِّي أَعُوذُ بِكَ مِنَ الْكَسَلِ، وَأَعُوذُ بِكَ مِنَ الْجُبْنِ، وَأَعُوذُ بِكَ مِنَ الْهَرَمِ، وَأَعُوذُ بِكَ مِنَ الْبُخْلِ». [ر ۲۶۶۸]

د سیدنا انس بن مالک رضی الله عنه نه روایت دې چه رسول الله ﷺ به پناه غوښتله او داسې به ئې فرمائیل چه اې الله! زه ستا پناه غواړم د سستئ او بزدلئ. او ستا پناه غواړم د ډیر بوډاوالى او بخل نه.

**قوله: ﴿ارذل العمر﴾:** نه د عمر هغه ضعیف ترین او کمزورې حصه مراد ده چه په هغې کښې انسان خپل ذاتى او بدنى ضرورتونو لره پوره کولو دپاره د نورو محتاج شى او ټول زده کړې ترې نه هیر شى [۱] رسول الله ﷺ د دې نه پناه غوښتلې ده.

د سیدنا عبدالله بن عباس رضی الله عنهما نه روایت دې چه د کوم سړى مشغله قرآن کریم وى هغه به د ارذل العمر نه محفوظ وى. [۲]

---

[۱] قال الزبيدى فى اتحاف سادة المتقين : والارذل من كل شئ الردى منه، والمراد بارذل العمر حال الهرم والخوف، والعجز، والضعف، وذهاب العقل. (كتاب الاذكار والدعوات، الباب الرابع : ۳۳۴/۵)

قال العلامة الآلوسى : وارذل العمر اخسه واحقره وهو وقت الهرم الذى تنقص فيه القوى، وتفسد الحواس ويكون حال الشخص فيه كحاله وقت الطفولية من ضعف العقل والقوة.(روح المعانى: ۱۸۷/۸، سورة هود:۷)

[۲] قيل : إنه مخصوص بالكافر والمسلم لا يرد إلى أرذل العمر لقوله تعالى : ثُمَّ رَدَدْنَاهُ أَسْفَلَ سافلينَ إِلَّا الَّذينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالحات [التين : ۵، ۶] وأخرج ابن المنذر، وغيره عن عكرمة أنه قال : من قرأ القرآن لم يرد إلى أرذل العمر، وَالمشاهدة تكذب كلا القولين فكم رأينا مسلما قارئ القرآن...[بقيه برصفحه آئنده...

**قوله:** ﴿اراذلنا: اسقاطنا﴾: دا د سورة هود په آيت كريمه كښې واقع دي ﴿وَمَا نَرَاكَ اتَّبَعَكَ إِلَّا الَّذِينَ هُمْ أَرَاذِلُنَا﴾ [1]، امام بخاري رحمه الله فرمائى چه په آيت كريمه كښې د ﴿ اراذلنا ﴾ نه غورخيدلى او بيكاره خلق مرا دى. د كشميهنى او مستملى په نسخو كښې ﴿ سقاطنا ﴾ د سين په ضمې او د قاف په تشديد سره، دې كومه چه د ساقط جمع ده غورخيدلې. اللئيم فى حسبه ونسبه [2]

امام بخاري رحمه الله چه په باب كښې كوم حديث ذكر فرمائيلې دې. په دې كښې د ﴿ ارذل العمر﴾ ذكر نشته. امام دخپل عادت مطابق په ترجمة الباب كښې دهغه روايت طرفته اشاره كړې ده په كوم كښې چه دا الفاظ راغلي دى. پس دسيدنا سعد بن ابى وقاص رضي الله عنه روايت. ددې نه په مخكښې باب كښې تيرشوي دي په هغې كښې ﴿وَأَعُوذُبِكَ أَنْ أُرَدَّ إِلَى أَرْذَلِ الْعُمُرِ﴾ الفاظ دى [3]

## ۴۲: باب الدُّعَاءِ بِرَفْعِ الْوَبَاءِ وَالْوَجَعِ

د وباء نه مرض مراد دې. بعض مرضونه او بيمارئ د وبا په شكل كښې عام شى. رسول الله ﷺ د هغې د اوچتيدو او ختميدو دپاره دعاگانى فرمائيلې دى. وباء يو عام لفظ دې. د هرې بيمارئ دپاره استعماليږى. مدينې منورې ته طاعون نه شى داخليدې. خونورې بيمارئ د وباء په صورت كښې راتلې شى. د دې څه تفصيل په كتاب الطب كښې تير شوې دې [4]

﴿الوجع﴾: نه هر قسم مرض مراد دې. دا د عطف العام على الخاص د قبيلې نه دې [5]

[۲۰۱۱] حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ يُوسُفَ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ عَنْ أَبِيهِ عَنْ عَائِشَةَ رضى الله عنها - قَالَتْ قَالَ النَّبِى صلى الله عليه وسلم «اللَّهُمَّ حَبِّبْ إِلَيْنَا الْمَدِينَةَ، كَمَا حَبَّبْتَ إِلَيْنَا مَكَّةَ أَوْ أَشَدَّ، وَانْقُلْ حُمَّاهَا إِلَى الْجُحْفَةِ، اللَّهُمَّ بَارِكْ لَنَا فِى مُدِّنَا وَصَاعِنَا». [ر ۱۷۹۰]

د سيده عائشه رضي الله عنها نه روايت دې چه رسول الله ﷺ اوفرمائيل : اې الله ! مدينه زمونږ دپاره هم دغه شان محبوبه كړه لكه څنګه چه تا زمونږ دپاره مكه محبوبه كړې ده. بلكه د هغې نه هم زياته. او د هغې تبه د جحفې طرف ته منتقل كړه. اې الله زمونږ په مد او صاع كښې بركت واچوه

**قوله:** ﴿وَانْقُلْ حُمَّاهَا إِلَى الْجُحْفَةِ﴾: جحفة : د جيم په ضمې او د حاء په سكون سره د

---

...بقيه ازحاشيه گذشته] قد رد إلى ذلك ، والاستدلال بالآية على خلافه فيه نظر. روح المعانى ۱۸۸/۸.

[1]) سورة هود آيت ۲۷

[2]) فتح البارى : ۱۷۹/۱۱

[3]) صحيح البخارى، كتاب الدعوات، باب التعوذ من البخل رقم : ۶۰۰۹

[4]) كشف البارى، كتاب الطب ص ۵۵، ۵۶

[5]) عمدة القارى ۷/۲۳

يو ځاې نوم دې چرته چه يهود آباد وو او دا د اهل مصر ميقات هم دې (۱)

[۶۰۱۲] حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ سَعْدٍ أَخْبَرَنَا ابْنُ شِهَابٍ عَنْ عَامِرِ بْنِ سَعْدٍ أَنَّ أَبَاهُ قَالَ عَادَنِي رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - فِي حَجَّةِ الْوَدَاعِ مِنْ شَكْوَى، أَشْفَيْتُ مِنْهَا عَلَى الْمَوْتِ، فَقُلْتُ يَا رَسُولَ اللَّهِ بَلَغَ بِي مَا تَرَى مِنَ الْوَجَعِ، وَأَنَا ذُو مَالٍ، وَلاَ يَرِثُنِي إِلاَّ ابْنَةٌ لِي وَاحِدَةٌ، أَفَأَتَصَدَّقُ بِثُلُثَيْ مَالِي قَالَ «لاَ». قُلْتُ فَبِشَطْرِهِ قَالَ «الثُّلُثُ كَثِيرٌ، إِنَّكَ أَنْ تَذَرَ وَرَثَتَكَ أَغْنِيَاءَ، خَيْرٌ مِنْ أَنْ تَذَرَهُمْ عَالَةً يَتَكَفَّفُونَ النَّاسَ، وَإِنَّكَ لَنْ تُنْفِقَ نَفَقَةً تَبْتَغِي بِهَا وَجْهَ اللَّهِ، إِلاَّ أُجِرْتَ، حَتَّى مَا تَجْعَلُ فِي فِي امْرَأَتِكَ». قُلْتُ أَأُخَلَّفُ بَعْدَ أَصْحَابِي. قَالَ «إِنَّكَ لَنْ تُخَلَّفَ فَتَعْمَلَ عَمَلاً تَبْتَغِي بِهِ وَجْهَ اللَّهِ، إِلاَّ ازْدَدْتَ دَرَجَةً وَرِفْعَةً، وَلَعَلَّكَ تُخَلَّفُ حَتَّى يَنْتَفِعَ بِكَ أَقْوَامٌ، وَيُضَرَّ بِكَ آخَرُونَ، اللَّهُمَّ أَمْضِ لأَصْحَابِي هِجْرَتَهُمْ، وَلاَ تَرُدَّهُمْ عَلَى أَعْقَابِهِمْ، لَكِنِ الْبَائِسُ سَعْدُ ابْنُ خَوْلَةَ». قَالَ سَعْدٌ رَثَى لَهُ النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - مِنْ أَنْ تُوُفِّيَ بِمَكَّةَ. [ر: ۵۶]

د عامر بن سعيد رحمه الله نه روايت دې چه د هغوى والد (سعد رضي الله عنه) بيان اوکړو چه رسول الله ﷺ زما په هغه بيمارئ کښې چه په هغې کښې زه مرګ ته نزدې اوم. د حجة الوداع په موقع باندې زما تپوس له تشريف راوړلو. ما عرض اوکړو يا رسول الله ﷺ: ماته چه کوم تکليف دې. هغه تاسو وينئ او زه مالدار يم خو د يوې لور نه سوا زما څوک هم وارث نشته. نو آيا زه خپل دوه حصې مال صدقه کړم؟ رسول الله ﷺ اوفرمائيل: نه! نو ما تپوس اوکړو نيم مال (خيرات کړم)؟ رسول الله ﷺ اوفرمائيل: دريمه حصه مال ډير زيات دې، وارثانو لره مالدار پريخودل ستا دپاره د دې نه غوره دی چه ته هغوى محتاج پريږدې چه د خلقو نه سوالونه کوى او ته چه د الله پاک د رضا دپاره هر څه خرچ کوې الله پاک به تاته د هغې اجر درکوى، تردې چه د هغې نمرئ هم کومه چه ته د خپلې ښځې په خوله کښې ورکړې. ما اووې آيا زه به د خپلو ملګرو نه روستو پاتې شم؟ رسول الله ﷺ اوفرمائيل: که ته روستو پاتې کړې شې او بيا څه داسې عمل اوکړې چه په هغې باندې مقصود د الله پاک رضا وى نو ستا په درجه او اوچت والى کښې به اضافه کيږى، اميد دې چه ته به لا ژوندې اوسيږې، او څه قومونه يعنى مسلمانان به ستا نه فائدې اوچتوى او نورو يعنى کفارو ته به ستا نه نقصان رسيږى. اې الله! زما د صحابه کرامو رضي الله عنهم هجرت پوره کړې او هغوى په خپلو پوندو مه واپس کوه، خو افسوس دې په سعد بن خوله (چه هغوى خپل هجرت پوره نه کړې شو) سعد رضي الله عنه فرمائى چه رسول الله ﷺ د هغوى په مکه مکرمه کښې د وفات کيدو په سبب افسوس اوکړو (چه هغوى هجرت اونکړې شو).

**قوله: (أَشْفَيْتُ مِنْهَا عَلَى الْمَوْتِ):** (اشفيت) په معنى د (اشرفت) دې، يعنى د دې

---

(۱) وفي عمدة القاري: والجحفة بضم الجيم وسكون الحاء المهملة وبالفاء ميقات أهل مصر والشام في القديم والآن أهل الشام يحرمون من ميقات أهل المدينة وكان سكانها في ذلك الوقت يهود. ۸/۲۳

بيمارۍ د وجې نه ما د مرګ نزدې والې محسوس کړو، د امام زهرى رحمه الله تول شاګردان په دې باندې متفق دى چه دا واقعه د حجة الوداع ده، سوا د سفيان بن عيينة نه. هغوى فرمائى چه دا د فتح مكة واقعه ده

بعض محدثين فرمائى چه د سفيان بن عيينة نه وهم واقع شوې دې. او صحيح خبره د حجة الوداع والا ده. خو حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى چه دا په تعدد د واقعاتو باندې هم محمول كيدلې شى. دغه شان به په دواړو رواياتو كښې تطبيق پيدا شى.[1]

**قوله: ﴿يَتَكَفَّفُونَ النَّاسَ﴾**: يعنى ﴿يسالون الناس باكفهم او يسالون ما يكف عنهم الجوع﴾ يعنى هغوى د خلقو مخكښې خپل لاسونه خورولو سره سوال كوى يا د خلقو نه داسې څيز غواړى كوم چه د هغوى لوږه ختمه كړه.

**د حديث د ترجمة الباب سره مناسبت**: حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى چه د باب په دې دويم حديث كښې سيدنا سعدبن ابى وقاص رضى الله عنه د خپل درد او وجع ذكر كړې ده او په ترجمة الباب كښې د وجع ذكر دې. هم دې طريقه د حديث د ترجمة الباب سره مناسبت پيدا كيږى.[2]

علامه عينى رحمه الله فرمائى چه په ترجمة الباب كښې: ﴿دعا برفع الوجع﴾ دې. او په حديث كښې ﴿دعا برفع الوجع﴾ نشته. خو په حديث په آخر كښې ﴿اللهم امض لاصحابى هجرتهم ولا تردهم على اعقابهم﴾ اي الله: ته زما د صحابه كرامو رضى الله عنهم هجرت پوره كړه او هغوى واپس مه كړه، نه په حديث او ترجمه كښې مناسبت كيدې شى: ﴿فان فيه اشارة لسعد بالعافية ليرجع الى دار هجرة وهى المدينة﴾[3]. يعنى په دې كښې د سيدنا سعد رضى الله عنه عافيت طرف ته اشاره ده چه هغه د دار هجرت طرف ته واپس شى او دار هجرت مدينه منوره ده.

## ۴۳: بَابُ الِاسْتِعَاذَةِ مِنْ أَرْذَلِ الْعُمُرِ، وَمِنْ فِتْنَةِ الدُّنْيَا وَفِتْنَةِ النَّارِ

د ﴿تعوذ من ارذل العمر﴾ باب مخكښې هم تير شوې دې، خو هلته صرف يو امر يعنى د ﴿ارذل العمر﴾ ذكر وو او دلته د فتنة الدنيا او فتنة النار هم اضافه ده، په دې وجه په ترجمة الباب كښې تكرار نشته. شيخ الحديث مولانا محمد زكريا رحمه الله فرمائى:

﴿مغايرة هذه الترجمة بالترجمة باعتبار زيادة الجزء الاخير ومن عادته انه ربما يذكر مجموع الامور التى اراد

---

[1] فتح البارى: ۳۶۶/۵، ۳۶۴: وقال الحافظ: ويمكن الجمع بين الروايتين بأن يكون ذلك وقع له مرتين مرة عام الفتح ومرة عام حجة الوداع ففى الأولى لم يكن له وارث من الأولاد أصلا وفى الثانية كانت له ابنة فقط فالله أعلم. انتهى

[2] فتح البارى: ۳۶۶/۵

[3] عمدة القارى: ۸/۲۳

ذکرها في باب واحد، ثم يذكر واحدا منها في باب باب، فيعقد لكل منها بابا مستانفا، ليكون كل منهما مستقلا بالافادة) (۱)

یعنی د ترجمة الباب تکرار نشته، بلکه دا ترجمه د سابقه ترجمې نه په دې طریقې مختلف ده چه په دې کښې آخری جزء د (من فتنة الدنیا) اضافه ده.

اصل کښې د امام بخاری رحمه الله عادت دې چه هغه کله کله په یو باب کښې ټول امور ذکر کړی. بیا د هغې نه د هر یو امر دپاره هغه خانله خانله مستقل بابونه قائموی. چه دا واضحه شی چه د هر امر مستقل فائده ده.

[۲۰۱۳] حَدَّثَنَا إِسْحَاقُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ أَخْبَرَنَا الْحُسَيْنُ عَنْ زَائِدَةَ عَنْ عَبْدِ الْمَلِكِ عَنْ مُصْعَبٍ عَنْ أَبِيهِ قَالَ تَعَوَّذُوا بِكَلِمَاتٍ كَانَ النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - يَتَعَوَّذُ بِهِنَّ «اللَّهُمَّ إِنِّي أَعُوذُ بِكَ مِنَ الْجُبْنِ، وَأَعُوذُ بِكَ مِنَ الْبُخْلِ، وَأَعُوذُ بِكَ مِنْ أَنْ أُرَدَّ إِلَى أَرْذَلِ الْعُمُرِ، وَأَعُوذُ بِكَ مِنْ فِتْنَةِ الدُّنْيَا، وَعَذَابِ الْقَبْرِ». [ر: ۲۶۶۷]

مصعب د خپل پلار نه روایت کوی چه هغوی بیان اوکړو چه د دې کلماتو په ذریعه پناه غواړئ د کومو په ذریعه چه به رسول الله ﷺ پناه غوښتله (هغه کلمات دا دی. (اللَّهُمَّ إِنِّي أَعُوذُ بِكَ مِنَ الْبُخْلِ وَأَعُوذُ بِكَ مِنَ الْجُبْنِ وَأَعُوذُ بِكَ أَنْ أُرَدَّ إِلَى أَرْذَلِ الْعُمُرِ وَأَعُوذُ بِكَ مِنْ فِتْنَةِ الدُّنْيَا يَعْنِي فِتْنَةَ الدَّجَّالِ وَأَعُوذُ بِكَ مِنْ عَذَابِ الْقَبْرِ)

په سند کښې د حسین نه حسین بن علی جعفی. د هغوی شیخ زائده بن قدامة دې او هغه د عبدالملک بن عمیر نه نقل کوی.

[۲۰۱۴] حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ مُوسَى حَدَّثَنَا وَكِيعٌ حَدَّثَنَا هِشَامُ بْنُ عُرْوَةَ عَنْ أَبِيهِ عَنْ عَائِشَةَ أَنَّ النَّبِيَّ - صلى الله عليه وسلم - كَانَ يَقُولُ «اللَّهُمَّ إِنِّي أَعُوذُ بِكَ مِنَ الْكَسَلِ وَالْهَرَمِ وَالْمَغْرَمِ وَالْمَأْثَمِ، اللَّهُمَّ إِنِّي أَعُوذُ بِكَ مِنْ عَذَابِ النَّارِ وَفِتْنَةِ النَّارِ وَعَذَابِ الْقَبْرِ، وَشَرِّ فِتْنَةِ الْغِنَى، وَشَرِّ فِتْنَةِ الْفَقْرِ، وَمِنْ شَرِّ فِتْنَةِ الْمَسِيحِ الدَّجَّالِ، اللَّهُمَّ اغْسِلْ خَطَايَايَ بِمَاءِ الثَّلْجِ وَالْبَرَدِ، وَنَقِّ قَلْبِي مِنَ الْخَطَايَا، كَمَا يُنَقَّى الثَّوْبُ الأَبْيَضُ مِنَ الدَّنَسِ، وَبَاعِدْ بَيْنِي وَبَيْنَ خَطَايَايَ كَمَا بَاعَدْتَ بَيْنَ الْمَشْرِقِ وَالْمَغْرِبِ». [ر: ۲۰۰۷]

د سیده عائشه رضی الله عنها نه روایت دې چه رسول الله ﷺ به دا دعا کوله:

(اللهم انی اعوذبك من الکسل والهرم ....)

مغرم او ماثم دواړه مصدر میمی دی، د مغرم نه د ګناهونو او مصیبتونو بوجه مراد دې او یا ترې دقرض بوج مراد دې د قرض بوج هم په حقیقت کښې د معصیت ذریعه جوړه شی. (۲) د

(۱) الابواب والتراجم لصحيح البخاری: ۱۲۹/۲

(۲) وفی فتح الباری: والمراد الاثم والغرامة. وهی ما یلزم الشخص اداءه کالدین، باب التعوذ من المائم والمغرم.

سيدنا عبدالله بن مسعود رضي الله عنه نه نقل دی چه مقروض چه کله د قرض په ادا کولو باندې قادر نه وی نو هغه د خبرې کولو په وخت دروغ وائی او د وعدې کولو په وخت خلاف ورزی کوی.

## ٤٤: بابُ الاِسْتِعَاذَةِ مِنْ فِتْنَةِ الْغِنَى

[٦٠١٥] حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ حَدَّثَنَا سَلاَّمُ بْنُ أَبِي مُطِيعٍ عَنْ هِشَامٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ خَالَتِهِ أَنَّ النَّبِيَّ -صلى الله عليه وسلم- كَانَ يَتَعَوَّذُ «اللَّهُمَّ إِنِّي أَعُوذُ بِكَ مِنْ فِتْنَةِ النَّارِ وَمِنْ عَذَابِ النَّارِ، وَأَعُوذُ بِكَ مِنْ فِتْنَةِ الْقَبْرِ، وَأَعُوذُ بِكَ مِنْ عَذَابِ الْقَبْرِ، وَأَعُوذُ بِكَ مِنْ فِتْنَةِ الْغِنَى، وَأَعُوذُ بِكَ مِنْ فِتْنَةِ الْفَقْرِ، وَأَعُوذُ بِكَ مِنْ فِتْنَةِ الْمَسِيحِ الدَّجَّالِ». [ر: ٦٠٠٧]

سيد د عائشه رضي الله عنها فرمائی چه رسول الله صلى الله عليه وسلم به داسې پناه غوښتله: ﴿ اللهم انی اعوذبك من فتنة النار...... ﴾

د غنی او مالدارئ فتنه دا ده چه انسان خپل مال او دولت د الله پاک په نافرمانئ او سرکشئ کښې استعمال کړی.[1]

## ٤٥: بابُ التَّعَوُّذِ مِنْ فِتْنَةِ الْفَقْرِ

[٦٠١٦] حَدَّثَنَا مُحَمَّدٌ أَخْبَرَنَا أَبُو مُعَاوِيَةَ أَخْبَرَنَا هِشَامُ بْنُ عُرْوَةَ عَنْ أَبِيهِ عَنْ عَائِشَةَ -رضى الله عنها- قَالَتْ كَانَ النَّبِيُّ -صلى الله عليه وسلم- يَقُولُ «اللَّهُمَّ إِنِّي أَعُوذُ بِكَ مِنْ فِتْنَةِ النَّارِ وَعَذَابِ النَّارِ، وَفِتْنَةِ الْقَبْرِ وَعَذَابِ الْقَبْرِ، وَشَرِّ فِتْنَةِ الْغِنَى، وَشَرِّ فِتْنَةِ الْفَقْرِ، اللَّهُمَّ إِنِّي أَعُوذُ بِكَ مِنْ شَرِّ فِتْنَةِ الْمَسِيحِ الدَّجَّالِ، اللَّهُمَّ اغْسِلْ قَلْبِي بِمَاءِ الثَّلْجِ وَالْبَرَدِ، وَنَقِّ قَلْبِي مِنَ الْخَطَايَا، كَمَا نَقَّيْتَ الثَّوْبَ الأَبْيَضَ مِنَ الدَّنَسِ، وَبَاعِدْ بَيْنِي وَبَيْنَ خَطَايَاىَ كَمَا بَاعَدْتَ بَيْنَ الْمَشْرِقِ وَالْمَغْرِبِ، اللَّهُمَّ إِنِّي أَعُوذُ بِكَ مِنَ الْكَسَلِ وَالْمَأْثَمِ وَالْمَغْرَمِ». [ر: ٦٠٠٧]

د سيد د عائشه رضي الله عنها نه روايت دې چه رسول الله صلى الله عليه وسلم به فرمائيل: اې الله زه ستا پناه نيسم، د اور د فتنې نه، او د اور د عذاب نه، او د قبر د فتنې او د قبر د عذاب نه، او د مالدارئ د فتنې د شر نه. او د فقر د فتنې د شر نه، اې الله! زه ستا پناه نيسم! د مسيح دجال د فتنې د شر نه، اې الله! زما زړه د واورې او ګلئ په اوبو وينځې او زما زړه د ګناهونو نه پاک کړې لکه تا چه سپين کپړه د ګندګئ نه صفا کړه، او زما او زما د ګناهونو ترمينځه هم دغه شان لرې والې راوله څنګه چه تا د مشرق او مغرب ترمينځه راوستلې دې، يا الله زه ستا پناه غواړم د سستئ نه او د ګناه او د قرض نه.

[1]) كما فى عمدة القارى كتاب الدعوات، باب التعوذ من المائم والمغرم ٥/٢٣، ما نصه: قوله ومن شر فتنة الغنى هى نحو الطغيان والبطر وعدم تأدية الزكاة، وكذا فى فتح البارى، كتاب الدعوات، باب التعوذ من المائم والمغرم ١٧٧/١١ ما نصه: قال الغزالى فتنة الغنى الحرص على جمع المال وحبه حتى يكسبه من غير حله ويمنعه من واجبات انفاقه وحقوقه.

**د فقر د فتنې مطلب** : رسول الله ﷺ د فقر د فتنې هم پناه غوښتلې ده. د فقر فتنه دا ده چه د انسان دپاره د هغه فقر د ګناهونو او د الله پاک د نافرمانو ذریعه جوړه شي. د رسول الله ﷺ ارشاد دې ﴿ كاد الفقر ان يكون كفرا ﴾ [1] يعني نزدې ده چه فقر د کفر باعث جوړ شي. د فقر د وجې نه که په زړه کښې د مالدار حسد راشي، د الله پاک د طرف نه په زړه کښې د ګلې او شکايت جذبه پيدا کيږي، مال ګټلو او مالدار جوړيدو جائز او ناجائز طريقې په هوس پيدا کيږي، دغه ټولې خبرې د فقر په فتنه کښې داخل دي. [2]

## ۴۶: بَابُ الدُّعَاءِ بِكَثْرَةِ الْمَالِ مَعَ الْبَرَكَةِ

[۲۰۱۷] حَدَّثَنِي مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ حَدَّثَنَا غُنْدَرٌ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ قَالَ سَمِعْتُ قَتَادَةَ عَنْ أَنَسٍ عَنْ أُمِّ سُلَيْمٍ أَنَّهَا قَالَتْ يَا رَسُولَ اللَّهِ أَنَسٌ خَادِمُكَ ادْعُ اللَّهَ لَهُ قَالَ «اللَّهُمَّ أَكْثِرْ مَالَهُ وَوَلَدَهُ، وَبَارِكْ لَهُ فِيمَا أَعْطَيْتَهُ». وَعَنْ هِشَامِ بْنِ زَيْدٍ سَمِعْتُ أَنَسَ بْنَ مَالِكٍ مِثْلَهُ. [ر ۱۸۸۱]

سيدنا انس رضي الله عنه د ام سليم رضي الله عنها نه روايت کوي چه ام سليم رضي الله عنها عرض اوکړو يا رسول الله ﷺ! انس رضي الله عنه ستاسو خادم دې؛ تاسو د الله پاک نه د هغه په حق کښې دعا اوکړئ. رسول الله ﷺ اوفرمائيل : اې الله! د هغه په مال او اولاد کښې زيادت اوکړه او څه چه تا هغه ورکړې دي په هغې کښې ورته برکت ورکړه! او د هشام به زيد نه روايت دې : چه ما د سيدنا انس بن مالک رضي الله عنه نه هم دغه شان بيان اوريدلې دې

**کثرت مال او اولاد بغير د برکت نه فتنه ده** : په دې باب کښې د مال د کثرت دعا غوښتلې شوې ده خو په برکت سره او په وړاندې باب کښې د كثر ولد مع البركة دعا غوښتلې شوې ده. په دې کښې دې خبرې طرف ته اشاره ده چه د مال او اولاد کثرت که د برکت سره وي نو بيا خو خير او نيکي ده خو که بغير د برکت نه وي نو بيا فتنه ده. [3]

د سيدنا انس رضي الله عنه رسول الله ﷺ د برکت دعا غوښتلې ده، پس الله پاک د هغوی په مال او دولت او اولاد کښې ډير برکت کيخودلو، چه د هغې تفصيل تير شوې دې. [4]

امام ابن قتيبة رحمه الله په معارف کښې ليکلې دي چه په بصره کښې دننه درې کسان داسې وو چه هغوی په خپل ژوند کښې د خپلو ځامنو او نمسو وغيره نه سلو پورې کسان اوليدل، يو سيدنا انس رضي الله عنه، دويم سيدنا ابوبکره رضي الله عنه، دريم خليفه بن بدر رضي الله عنه او بعضو ورسره مهلب بن ابی صفره رضي الله عنه هم شامل کړې دې. [5]

---

[1] حلية الاولياء للحافظ ابى نعيم الاصفهانى:۳/۶۲، ۱۳۰،رقم الحديث : ۳۱۶۹، ۳۴۳۱، واتحاف السادة ۴۸۱/۹
[2] فتح البارى، كتاب الدعوات، باب التعوذ من المائم والمغرم ۷۸/۱۱، وعمدة القارى، كتاب الدعوات، باب التعوذ من المائم والمغرم : ۵/۲۳، واتحاف السادة، كتاب ذم الغضب والحقد والحسد: ۴۸۱/۹
[3] الابواب والتراجم : ۱۲۹/۲
[4] فتح البارى : ۱۴۵/۱۱
[5] وزاد على قول ابن قتيبة الحافظ فى فتح البارى: وزاد غيره –اى غير ابن قتيبة...[بقيه برصفحه آئنده...

په سند کښې د امام بخاری رحمه الله شیخ الشیخ غندر دې. د هغه نوم محمد بن جعفر دې.

## ۴۷: باب: الدعاء بكثرة الولد مع البركة

[۶۰۱۸] حَدَّثَنَا أَبُو زَيْدٍ سَعِيدُ بْنُ الرَّبِيعِ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ قَتَادَةَ قَالَ سَمِعْتُ أَنَسًا - رضى الله عنه - قَالَ قَالَتْ أُمُّ سُلَيْمٍ أَنَسٌ خَادِمُكَ . قَالَ « اللَّهُمَّ أَكْثِرْ مَالَهُ وَوَلَدَهُ ، وَبَارِكْ لَهُ فِيمَا أَعْطَيْتَهُ ». [ر: ۱۸۸۱]

د سیدنا قتادة رضی الله عنه نه روایت دې چه ما د انس رضی الله عنه نه واوریدل چه ام سلیم رضی الله عنها عرض اوکړو انس رضی الله عنه ستاسو خادم دې رسول الله صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل: یا الله! د هغه په مال او اولاد کښې زیادت اوکړه او څه چه تا هغه ته ورکړې دی په هغې کښې برکت واچوه.

## ۴۸: باب الدعاء عند الاستخارة

**د استخاره لغوی او اصطلاحی معنی**: په دې باب کښې امام بخاری رحمه الله د استخارې دعا کړې دہ. د استخاره لغوی معنی ده خیر طلب کول، او د شرع په اصطلاح کښې معنی ده په دوه کارونو کښې د یو کار په سلسله کښې د الله پاک نه خیر طلب کول چه په دې کښې کوم د هغه د پاره غوره وی. هغه هم هغې لره اختیار کړی.[۱]

**د استخارې اهمیت او فضیلت**: دلته د بخاری په روایت کښې دی چه رسول الله صلی الله علیه وسلم به مونږ ته په ټولو کارونو کښې د استخارې تعلیم راکولو.

امام احمد رحمه الله د سیدنا سعد بن ابی وقاص رضی الله عنه روایت په حسن سند سره نقل کړې دې، په دې کښې دی ﴿من سعادة ابن ادم استخارته الله﴾[۲] یعنی د ابن ادم په سعادت کښې یوه خبره دا ده چه هغه د الله پاک نه استخاره اوکړی.

امام ترمذی رحمه الله د صدیق اکبر رضی الله عنه نه روایت نقل کړې دې چه: ﴿أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ إِذَا أَرَادَ أَمْرًا قَالَ: اللَّهُمَّ خِرْ لِي وَاخْتَرْ لِي﴾[۳] یعنی: رسول الله صلی الله علیه وسلم به چه کله د څه کار کولو اراده فرمائیله نو داسې دعا به ئې فرمائیله: ﴿اللَّهُمَّ خِرْ لِي وَاخْتَرْ لِي﴾ اې الله! ته زما د پاره د خیر والا کار انتخاب اوکړه.

هم دغه شان طبرانی د سیدنا انس رضی الله عنه روایت نقل کړې دې: ﴿ما خاب من استخار﴾[۴]

---

...بقیه ازحاشیه گذشته]- رابعا هو: المهلب بن ابی صفرة، کتاب الدعوات، باب دعوة النبی صلی الله علیه وسلم لخادمه بطول العمر وبکثرة ماله ۱۴۵/۱۱

[۱]) فتح الباری: ۱۷۳/۱۱

[۲]) نص الحدیث تماما: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: مِنْ سَعَادَةِ ابْنِ آدَمَ اسْتِخَارَتُهُ اللَّهَ . وَمِنْ سَعَادَةِ ابْنِ آدَمَ رِضَاهُ بِمَا قَضَى اللَّهُ ، وَمِنْ شِقْوَةِ ابْنِ آدَمَ تَرْكُهُ اسْتِخَارَةَ اللهِ ، وَمِنْ شِقْوَةِ ابْنِ آدَمَ سَخَطُهُ بِمَا قَضَى اللَّهُ عَزَّ وَجَلَّ. (مسند احمد ۴۵۹/۱-۴۶۰) رقم الحدیث: ۱۴۴۴) (قلت: اسناده ضعیف)

[۳]) سنن الترمذی، کتاب الدعوات، باب دعا: اللهم خر لی واخترلی، رقم الحدیث: ۳۵۱۶ (قلت: اسناده ضعیف)

[۴]) فتح الباری: ۱۸۴/۱۱، (قلت: هذا حدیث ضعیف جدا بل موضوع)

يعنى هغه سړي چه استخاره اوكړى هغه نه دي نامراد شوي.
ددي دواړو احاديثو سند اګر چه ضعيف دي [1] خو ددې نه د استخارة فضيلت معلوميږي

۶۰۱۹[ حَدَّثَنَا مُطَرِّفُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ أَبُو مُصْعَبٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ أَبِي الْمَوَالِ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ الْمُنْكَدِرِ عَنْ جَابِرٍ رضى الله عنه - قَالَ كَانَ النَّبِيُّ صلى الله عليه وسلم - يُعَلِّمُنَا الاِسْتِخَارَةَ فِي الأُمُورِ كُلِّهَا كَالسُّورَةِ مِنَ الْقُرْآنِ « إِذَا هَمَّ بِالأَمْرِ فَلْيَرْكَعْ رَكْعَتَيْنِ ، ثُمَّ يَقُولُ اللَّهُمَّ إِنِّي أَسْتَخِيرُكَ بِعِلْمِكَ، وَأَسْتَقْدِرُكَ بِقُدْرَتِكَ، وَأَسْأَلُكَ مِنْ فَضْلِكَ الْعَظِيمِ، فَإِنَّكَ تَقْدِرُ وَلاَ أَقْدِرُ، وَتَعْلَمُ وَلاَ أَعْلَمُ، وَأَنْتَ عَلاَّمُ الْغُيُوبِ، اللَّهُمَّ إِنْ كُنْتَ تَعْلَمُ أَنَّ هَذَا الأَمْرَ خَيْرٌ لِي فِي دِينِي وَمَعَاشِي وَعَاقِبَةِ أَمْرِي - أَوْ قَالَ عَاجِلِ أَمْرِي وَآجِلِهِ - فَاقْدُرْهُ لِي ، وَإِنْ كُنْتَ تَعْلَمُ أَنَّ هَذَا الأَمْرَ شَرٌّ لِي فِي دِينِي وَمَعَاشِي وَعَاقِبَةِ أَمْرِي - أَوْ قَالَ فِي عَاجِلِ أَمْرِي وَآجِلِهِ - فَاصْرِفْهُ عَنِّي وَاصْرِفْنِي عَنْهُ، وَاقْدُرْ لِي الْخَيْرَ حَيْثُ كَانَ، ثُمَّ رَضِّنِي بِهِ. وَيُسَمِّي حَاجَتَهُ». [ر ۱۱۰۹]

د سيدنا جابر رضي الله عنه نه روايت دي چه رسول الله صلى الله عليه وسلم به مونږ ته په ټولو كارونو كښي د استخارة تعليم راكولو. څنګه چه به ئي د قرآن كريم سورة ښودلو. كله چه په تاسو كښي يو سړي د څه كار اراده اوكړى، نو دوه ركعته مونځ دي اوكړي. بيا اوائى : اې الله! زه ستا نه ستا د علم په په ذريعه خير طلب كوم، او ستا د قدرت د وجې نه قدرت طلب كوم او ستا نه ستا د فضل سوال كوم ځكه چه هم ته قادر ئي، زه قادر نه يم. ته پوهيږې. زه نه پوهيږم. ته ټولو پټو څيزونو لره ښه پيژندونكي ئي، اې الله ! كه تاته معلومه وى چه دا كار زما دپاره. زما د دين. زما د معاش او د انجام په اعتبار سره غوره دې نو ته دا كار زما دپاره مقرر او مقدر كړه او كه ته پوهيږى چه دا كار زما دپاره، زما د دين، زما د دنيا او زما د كار د انجام په اعتبار سره بد دې نو ته دا زما نه واړوه او ما د دې نه واړوه او ماته خير مقدر كړه چرته چه هم وى او بيا ما په هغې باندې راضى او مطمئن كړه.

**عبدالرحمن بن ابى الموال** : عبدالرحمن بن ابى الموال : د مولى جمع ده. د ابوالموال نوم زيد دې او بعضو وئيلي دى چه زيد د عبدالرحمن نيكهٔ دې او د هغوى د پلار ابو الموال نوم معلوم نه شو. [2] ائمه د جرح او تعديل د هغوى توثيق كړې دې، پس امام نسائى، امام ترمذى، امام ابوداؤد او امام ابن معين رحمهم الله هغوى ته ثقة وئيلي دي [3] ابن عدى چه په الكامل كښي د هغوى تذكره كړې ده كوم چه په ضعيف راويانو باندې مشتمل كتاب دې خو هغوى وائى : چه حديث د استخاره د هغوى نه علاوه نورو راويانو هم نقل كړې دې او د دې

---

[1]) فتح البارى : ۱۱/ ۱۷۴ قال الحافظ : ومن حديث أبى بكر الصديق رضى الله عنه ان النبى صلى الله عليه و سلم كان إذا أراد أمرا قال اللهم خر لى واختر لى وأخرجه الترمذى وسنده ضعيف وفى حديث أنس رفعه ما خاب من استخار والحديث أخرجه الطبرانى فى الصغير بسند واه جدا.

[2]) فتح البارى: ۱۱/۱۷۳

[3]) تهذيب الكمال : ۱۷/ الترجمة : ۱۱۳٤/۱٦۷

ډیر شواهد دی [۱]، امام ترمذي رحمه الله هم دا حدیث ذکر فرمائیلي دې او فرمائی: ﴿وفی الباب عن ابن مسعود وابی ایوب﴾ [۲]

**استخاره په کومو امورو کښې جائز ده؟** رسول الله ﷺ به مونږ ته په ټولو امورو کښې د استخارې تعلیم راکولو څنګه چه به ئې د قرآن سورتونه ښودل. هم دغه شان به ئې د استخارې دعا ښودله. د ټولو امور نه مباح امور مراد دی، ځکه چه په واجب او مستحب امورو کښې د استخارې ضرورت نشته او کوم امور چه شرعا ممنوع دی په هغې کښې هم استخاره نه شی کیدې ځکه چه هغه شرعا متروک دی. خو دوه کارونه مباح دی او په هغې کښې یو لره اختیارول دی یا دوه مستحب کښې یو لره اختیارول دی نو په هغې کښې به استخاره کولې شی. [۳]

**د استخاره طریقه:**

**قوله:** ﴿فَلْيَرْكَعْ رَكْعَتَيْنِ مِنْ غَيْرِ الْفَرِيضَةِ ثُمَّ لِيَقُلْ﴾: یعنی د استخارې طریقه دا ده چه دوه رکعتونه اولوستلې شی. ﴿من غیر الفریضة﴾ قید لګولو سره ئې دا بیان اوکړو چه دا دوه رکعتونه دې نفل وی، مثلا د سحر دوه رکعته فرض مونځ دې نه وی او بیا دې دعا اولوستلې شی کومه چه په روایت کښې مذکور ده، دا دعا به د مانځه نه پس لوستلې شی او که په مانځه کښې دننه په سجده کښې یا قعده د تشهد کښې اولولی نو هم کافی ده [۴]، بهر حال دعا دې یا د مانځه نه پس وی یا د مانځه په آخر کښې. پس ابن ابی جمرة لیکی:

﴿حکمة فی تقدیم الصلاة علی الدعاء ان المراد بالاستخارة حصول الجمع بین خیری الدنیا والآخرة فیحتاج الی قرع باب الملك ولاشیء لذلك انجع ولا انجح من الصلاة لما فیها من تعظیم الله والثناء علیه والافتقار الیه مآلا وحالا﴾ [۵]

یعنی: مانځه لره د استخارې په دعا باندې د مقدم کولو حکمت دا دې چه په استخارې سره مقصود د دنیا او د آخرت د خیرونو حصول دې نو د هغې دپاره به د الله پاک د رحمت د دروازې وهلو ته ضرورت راځی او د هغې دپاره د مانځه نه علاوه یو څیز هم مفید نشته، ځکه چه مونځ د الله پاک په تعظیم او د هغه په تحمید او ثناء باندې مشتمل دې، بلکه دا چه په هغې کښې د الله پاک مخکښې د عجز او انکسارئ اظهار دې، د نتیجې په لحاظ او هم او د حال په لحاظ هم

---

[۱]) الکامل لابن عدی: ۵/ الترجمة: ۱۱۳٤/۱۶۷

[۲]) جامع الترمذی، کتاب الوتر، باب ما جاء فی صلاة الاستخارة، رقم الحدیث: ٤۸۰

[۳]) فتح الباری: ۱۷٤/۱۱

[۴]) فتح الباری: ۱۷۶-۱۷۵/۱۱

[۵]) فتح الباری: ۱۷۶/۱۱

**يو بل اشكال او د هغې جواب**

**قوله:** ﴿اللهم ان كنت تعلم ...﴾: علامه کرمانی رحمه الله اشکال کړې دې چه ﴿ان﴾ حرف شک دې او د الله پاک په علم کښې شک کول جائز نه دی

د دې جواب کولو سره ئې فرمائیلي دی چه د الله پاک په علم کښې شک نشته بلکه په دې کښې شک دې چه د الله پاک علم په خیر او شرک کښې د څه سره متعلق دې. د خیر سره یا د شر سره. [1]

**قوله:** ﴿فاقدره لي﴾: دا دال په زیر او د دال په پیش دواړو سره صحیح دې. په اول صورت کښې به د باب ضرب نه اوی او په دویم صورت کښې به د باب نصر نه وی. [2]

د استخارې کولو نه پس چه د زړه میلان کوم طرف ته پیدا شی. هم هغه دې اختیار کړې شی او که میلان یو طرفته هم نه وی نو دوباره دې استخاره اختیار کړې شی. بلکه ابن السني د سیدنا انس رضي الله عنه یو روایت نقل کړې دې، په هغې کښې اووۀ کرته د استخاره ذکر دې. [3] اګر چه محدثینو د دې سند ته انتهائی ضعیف وئیلي دې [4]

﴿ويسمي حاجته﴾: یعنی استخاره کونکې دې د خپل حاجت نوم واخلی. ﴿اللهم ان كان هذا الامر﴾ په دې کښې دې د ﴿هذا الامر﴾ په ځائې خپل حاجت ذکر کړې مثلا څوک د وادۀ یا نکاح دپاره استخاره کوی نو وائی به ﴿اللهم ان كان التزوج بفلانة﴾...

## ۴۹: باب الدُّعَاءِ عِنْدَ الْوُضُوءِ

**د ترجمة الباب غرض:** په اکثر نسخو کښې باب په دې الفاظو سره دې او مقصد د اودس په وخت د دعا ثبوت بیانول دی. خو په هندوستانی نسخو کښې ﴿باب الوضوء عند الدعاء﴾ دې.

علامه عینی رحمه الله ﴿باب الدعاء عند الوضوء﴾ ته زیات مناسب وئیلي دې. [5]

خوشیخ الحدیث مولانا محمد زکریا رحمه الله هندوستانی نسخې ته راجح وئیلي ده،هغوی لیکی

﴿ والاوجه عندی ما فی النسخ الهندية، ای : الوضوء عند الدعاء، والفرق بين اللفظين ظاهر، والدليل على مااخترته سياق الحديث، فقد تقدم الحديث فی الباب المذكور بلفظ : قال (ای : ابوعامر) قام له (صلی الله عليه وسلم) : استغفرلی، فدعا بماء فتوضاء، ثم رفع يديه .... فهذا يدل على ان الوضوء انما كان لقصد الدعاء،

---

[1]) شرح الکرمانی : ۱۶۹/۲۲

[2]) فتح الباری : ۷۶/۱۱، ونصه : قال ابو الحسن القابسی : اهل بلدنا يكسرون الدال واهل المشرق يضمونها.

[3]) ونصه الحديث : كما فی فتح الباری : ۱۷۷/۱۱: اذا هممت بامر فاستخر ربک سبعا ثم انظر الی الذی يسبق فی قلبک فان الخير فيه. (ضعيف جدا)

[4]) فتح الباری : ۲۲۳/۱۱

[5]) عمدة القاری ۱۲/۲۳

فالغرض من الترجمة، بيان ادب من آداب الدعاء ﴾ (۱)

يعنى : زما په نزد په هندوستانى نسخو كښي مذكور باب الوضوء عند الدعاء زيات اوجه دي. د دواړو ترجمو ترمينځه فرق بالكل واضح دي. زما د رائې تائيد د حديث د سياق نه هم كيږي. پس د دي باب حديث مخكښې په دې الفاظو سره تير شوې دې : ابو عامر وائى . تاسو رسول الله ﷺ ته درخواست اوكړئ چه هغوى زما دپاره استغفار اوكړى. پس رسول الله ﷺ اوبه راوغوښتلي او په هغې سره ئې اودس كولو نه پس د دعا دپاره لاس اوچت كړل.
نو دا حديث په دې باندې دلالت كوى چه د رسول الله ﷺ اودس كول د دعا په ارادې سره وو. د دې نه معلومه شوه چه د ترجمة الباب غرض د دعا د آدابو نه يو ادب بيانول دى

[۲۰۲۰] حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْعَلَاءِ حَدَّثَنَا أَبُو أُسَامَةَ عَنْ بُرَيْدِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ عَنْ أَبِي بُرْدَةَ عَنْ أَبِي مُوسَى قَالَ دَعَا النَّبِيُّ -صلى الله عليه وسلم- بِمَاءٍ فَتَوَضَّأَ، ثُمَّ رَفَعَ يَدَيْهِ فَقَالَ «اللَّهُمَّ اغْفِرْ لِعُبَيْدٍ أَبِي عَامِرٍ». وَرَأَيْتُ بَيَاضَ إِبْطَيْهِ فَقَالَ «اللَّهُمَّ اجْعَلْهُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ فَوْقَ كَثِيرٍ مِنْ خَلْقِكَ مِنَ النَّاسِ». [ر: ۲۷۲۸]

د سيدنا ابوموسى رضي الله عنه نه روايت دې چه رسول الله ﷺ اوبه طلب كړې او اودس ئې اوكړو. بيا ئې دواړه لاسونه اوچت كړل او دعا ئې اوكړه چه اې الله! عبيد ابى عامر ته بخښنه اوكړه او ما د هغوى د ترخونو سپين والې اوليدو. بيا ئې اوفرمائيل : اې الله! په قيامت كښې په خپل مخلوق كښې د ډيرو خلقو نه د هغه مرتبه اوچته كړه

په سند كښې د ابو اسامة نوم حماد بن سلمه. د ابو برده نوم عامر او د سيدنا ابوموسى اشعرى رضي الله عنه نوم عبدالله بن قيس دې. (۲)

دا روايت په غزوه اوطاس كښې په تفصيل سره تير شوې دې.د سيدنا ابوموسى رضي الله عنه تره سيدنا عبيد رضي الله عنه په غشى باندې اولګيدو. هغوى په زخمى حالت كښې سيدنا ابو موسى رضي الله عنه ته اووې : وراره! رسول الله ﷺ ته زما سلام اوكړه او د هغوى نه زما دپاره د استغفار درخواست اوكړه. د هغې نه پس هغوى وفات شو. رسول الله ﷺ ته چه كله د هغوى پيغام ملاؤ شو نو رسول الله ﷺ اوبه راطلب كولو سره اودس اوكړو او بيا ئې د هغوى دپاره دعا اوفرمائيله

## ۵۰: باب الدُّعَاءِ إِذَا عَلَا عَقَبَةً

﴿ عقبة ﴾ د عين او قاف په زبر سره، درې ته وائى. په دې باب كښې په دره او لوړه باندې ختلو سره د دعا كولو بيان دې

(۱) الابواب والتراجم : ۱۲۹/۲
(۲) عمدة القارى : ۱۲/۲۳

۲۰۲۱) حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ حَرْبٍ حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ عَنْ أَيُّوبَ عَنْ أَبِي عُثْمَانَ عَنْ أَبِي مُوسَى - رضى الله عنه - قَالَ كُنَّا مَعَ النَّبِيِّ - صلى الله عليه وسلم - فِي سَفَرٍ فَكُنَّا إِذَا عَلَوْنَا كَبَّرْنَا فَقَالَ النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - «أَيُّهَا النَّاسُ ارْبَعُوا عَلَى أَنْفُسِكُمْ، فَإِنَّكُمْ لاَ تَدْعُونَ أَصَمَّ وَلاَ غَائِبًا، وَلَكِنْ تَدْعُونَ سَمِيعًا بَصِيرًا». ثُمَّ أَتَى عَلَيَّ وَأَنَا أَقُولُ فِي نَفْسِي لاَ حَوْلَ وَلاَ قُوَّةَ إِلاَّ بِاللَّهِ. فَقَالَ «يَا عَبْدَ اللَّهِ بْنَ قَيْسٍ قُلْ لاَ حَوْلَ وَلاَ قُوَّةَ إِلاَّ بِاللَّهِ فَإِنَّهَا كَنْزٌ مِنْ كُنُوزِ الْجَنَّةِ». أَوْ قَالَ «أَلاَ أَدُلُّكَ عَلَى كَلِمَةٍ هِيَ كَنْزٌ مِنْ كُنُوزِ الْجَنَّةِ، لاَ حَوْلَ وَلاَ قُوَّةَ إِلاَّ بِاللَّهِ». [ر ۲۸۳۰]

د سيدنا ابوموسى رضي الله عنه نه روايت دې چه مونږ به لوړې باندې ختلو نو تكبير به مو وئيلو. رسول الله ﷺ اوفرمائيل: اې خلقو په خپل ځان باندې نرمى كوئ ځكه چه تاسو يو كوڼ او غائب ذات نه رابلئ بلكه تاسو هغه څوک رابلئ چه اوريدونكې او ليدونكې دې، بيا ئې ماته تشريف راوړلو (ما په خپل زړه كښې لاحول ولا قوة الا بالله وئيل) نو وې فرمائيل: اې عبدالله بن قيس: (لاحول ولا قوة الا بالله) وايه ځكه چه هغه د جنت د خزانو نه يوه خزانه ده يا (د راوى شک دې چه) رسول الله ﷺ اوفرمائيل: زه تاته يو داسې كلمه او نۀ ښائم كومه چه د جنت د خزانو نه يوه خزانه ده، (لاحول ولا قوة الا بالله) ده.

په حديث كښې د دعا ذكر نشته، بلكه د تكبير ذكر دې، خو په (فَإِنَّكُمْ لاَ تَدْعُونَ أَصَمَّ، وَلاَ غَائِبًا) كښې د دعا تذكره ده. او د ترجمة الباب سره د حديث د مناسبت دپاره د امام بخارى رحمه الله په نزد دومره خبره كافى ده. [1]

**قوله: (ارْبَعُوا عَلَى أَنْفُسِكُمْ اى: ارفقوا بها، ولا تبالغوا فى الجهر...):** يعنى په خپل ځان باندې رحم اوكړئ او په جهر كښې دومره مبالغه مه كوئ. (اربعوا) د باب سمع نه د امر حاضر جمع صيغه ده.

دا چرته د سفر واقعه ده، حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى (لم اقف على تعينه) [2] يعنى ماته متعين طريقې سره د دې معلومات اونشو.

## ۵۱: بَابُ الدُّعَاءِ إِذَا هَبَطَ وَادِيًا

فِيهِ حَدِيثُ جَابِرٍ. [ر ۲۸۳۱]

---

[1] فتح البارى: ۱۱/۱۸۸
[2] فتح البارى: ۱۱/۱۸۸

خنگه چه په لوړه باندې ختلو سره دعا ثابت ده، هم دغه شان يوې کندې ته کوزيدو سره هم دعا او ذکر ثابت دې، امام بخارى رحمه الله فرمائى : فيه حديث جابر رضى الله تعالى عنه، د جابر رضي الله عنه حديث په کتاب الجهاد کښې تير شوې دې، هلته دا الفاظ دى ﴿ كُنَّا إِذَا صَعِدْنَا كَبَّرْنَا، وَإِذَا نَزَلْنَا سَبَّحْنَا ﴾[1] په لوړه باندې د ختلو په وخت به مونږ تکبير وئيلو او د کوزيدو په وخت به مو تسبيح وئيلو.
د مستملى او د کشميهنى نه علاوه په باقى نسخو کښې دا باب نشته.[2]

## ٥٢: باب الدُّعَاءِ إِذَا أَرَادَ سَفَرًا أَوْ رَجَعَ

فِيهِ يحيى بن ابى اسحٰق، عن انس۔ [ر: ٢٩١٩]
د سفر نه د واپس کيدو په وخت هم دعا او ذکر ثابت دې، امام بخارى رحمه الله فرمائى :
﴿ فيه يحيى بن ابى اسحاق عن انس ﴾ د سيدنا انس رضي الله عنه روايت په کتاب الجهاد کښې موصولا تير شوې دې.[3]

[٦٠٢٢] حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ قَالَ حَدَّثَنِي مَالِكٌ عَنْ نَافِعٍ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُمَرَ - رضى الله عنهما - أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - كَانَ إِذَا قَفَلَ مِنْ غَزْوٍ أَوْ حَجٍّ أَوْ عُمْرَةٍ يُكَبِّرُ عَلَى كُلِّ شَرَفٍ مِنَ الأَرْضِ ثَلاَثَ تَكْبِيرَاتٍ، ثُمَّ يَقُولُ « لاَ إِلَهَ إِلاَّ اللَّهُ، وَحْدَهُ لاَ شَرِيكَ لَهُ، لَهُ الْمُلْكُ وَلَهُ الْحَمْدُ، وَهُوَ عَلَى كُلِّ شَىْءٍ قَدِيرٌ، آيِبُونَ تَائِبُونَ، عَابِدُونَ لِرَبِّنَا، حَامِدُونَ، صَدَقَ اللَّهُ وَعْدَهُ، وَنَصَرَ عَبْدَهُ، وَهَزَمَ الأَحْزَابَ وَحْدَهُ ». [ر: ١٧٠٣]

د سيدنا عبد الله بن عمر رضي الله عنهما نه روايت دې چه رسول الله صلى الله عليه وسلم به کله د جهاد يا عمرې نه واپس کيدلو نو په هره لوړه زمکه باندې به ئې درې کرته تکبير وئيلو بيا به ئې فرمائيل ﴿ لا اله الا الله وحده لا شريك له ﴾.... يعنى د الله پاک واحد نه سوا بل معبود نشته، د هغه هيڅ څوک شريک نشته هم د هغه دپاره بادشاهى ده او هم د هغه دپاره تعريف دې، او هغه په هر څيز باندې قادر دې، مونږ رجوع کونکى، توبه کونکى، عبادت کونکى، د خپل رب حمد بيانونکى يو، الله پاک خپله وعده رشتينې کړه، هغه د خپل بنده مدد اوکړو، او يواځې ئې ټولو لښکرو ته شکست ورکړو.
د حديث مناسبت د باب سره بالکل واضح دې

---

[1] صحيح البخارى، كتاب الجهاد، باب التسبيح اذا هبط واديا، رقم الحديث : ٢٩٩٣
[2] فتح البارى، ١١/١٨٨
[3] صحيح البخارى، كتاب الجهاد، باب ما يقول اذا رجع من الغزو، رقم الحديث : ٣٠٨٥، ٣٠٨٦

## ۵۳: باب الدُّعَاءِ لِلْمُتَزَوِّجِ

[۶۰۲۳] حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ عَنْ ثَابِتٍ عَنْ أَنَسٍ رضي الله عنه قَالَ رَأَى النَّبِي صلى الله عليه وسلم عَلَى عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ عَوْفٍ أَثَرَ صُفْرَةٍ فَقَالَ «مَهْيَمْ» أَوْ «مَهْ» قَالَ تَزَوَّجْتُ امْرَأَةً عَلَى وَزْنِ نَوَاةٍ مِنْ ذَهَبٍ. فَقَالَ «بَارَكَ اللَّهُ لَكَ أَوْلِمْ وَلَوْ بِشَاةٍ». [ر: ۱۹۴۴]

د سیدنا انس رضي الله عنه نه روایت دې چه رسول الله ﷺ په سیدنا عبدالرحمن بن عوف رضي الله عنه باندې زیړه نخښه اولیده نو وې فرمائیل: څه خبره ده. هغوی جواب ورکړو چه ما د یوې زنانه سره د کهجورې د هډوکی برابر سرو زرو په عوض نکاح کړې ده. رسول الله ﷺ اوفرمائیل: الله پاک دې تاته برکت درکړي، د ولیمې دعوت اوکړه، اګر چه یو بیزه ولې نه وی

چه د چا نوې نوې وادهٔ شوې وی نو د هغه دپاره دعا کول د حدیث نه ثابت ده. لکه چه د باب په اول روایت کښې رسول الله ﷺ د سیدنا عبدالرحمن بن عوف رضي الله عنه دپاره دعا اوفرمائیله، د سیدنا ابوهریره رضي الله عنه روایت په سنن ابی داؤد او سنن ترمذی کښې دې چه کله به چا وادهٔ اوکړو نو رسول الله ﷺ به د هغه دپاره په دې الفاظو باندې دعا فرمائیله: ﴿ بَارَكَ اللهُ لَكَ وَبَارَكَ عَلَيْكَ وَجَمَعَ بَيْنَكُمَا فِي خَيْرٍ ﴾ [1] یعنی الله پاک دې ستا دپاره او په تا باندې برکت نازل کړي او تاسو دواړه دې په خیر او عافیت سره یوځائې اوساتی.

[۶۰۲۴] حَدَّثَنَا أَبُو النُّعْمَانِ حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ عَنْ عَمْرٍو عَنْ جَابِرٍ - رضى الله عنه - قَالَ هَلَكَ أَبِي وَتَرَكَ سَبْعَ - أَوْ تِسْعَ - بَنَاتٍ، فَتَزَوَّجْتُ امْرَأَةً فَقَالَ النَّبِي - صلى الله عليه وسلم - « تَزَوَّجْتَ يَا جَابِرُ ». قُلْتُ نَعَمْ. قَالَ « بِكْرًا أَمْ ثَيِّبًا ». قُلْتُ ثَيِّبًا. قَالَ « هَلاَّ جَارِيَةً تُلاَعِبُهَا وَتُلاَعِبُكَ، أَوْ تُضَاحِكُهَا وَتُضَاحِكُكَ ». قُلْتُ هَلَكَ أَبِي فَتَرَكَ سَبْعَ - أَوْ تِسْعَ - بَنَاتٍ، فَكَرِهْتُ أَنْ أَجِيئَهُنَّ بِمِثْلِهِنَّ، فَتَزَوَّجْتُ امْرَأَةً تَقُومُ عَلَيْهِنَّ. قَالَ « فَبَارَكَ اللَّهُ عَلَيْكَ ». لَمْ يَقُلِ ابْنُ عُيَيْنَةَ وَمُحَمَّدُ بْنُ مُسْلِمٍ عَنْ عَمْرٍو « بَارَكَ اللَّهُ عَلَيْكَ ». [ر: ۴۳۲]

د سیدنا جابر رضي الله عنه نه روایت دې چه زما والد صاحب وفات شو، او اووهٔ یا نهه لونړه ئې پریخودلې، ما د یوې زنانه سره نکاح اوکړه نو رسول الله ﷺ اوفرمائیل: آیا تا نکاح اوکړه؟ ما عرض اوکړو: او جی! رسول الله ﷺ اوفرمائیل: د پیغلې سره که د کونډې سره؟ ما اووې د کونډې سره! رسول الله ﷺ اوفرمائیل: د پیغلې سره دې نکاح ولې نه کوله چه هغې به تاسره لوبې کولې او تا به هغې سره لوبې کولې؟ یا ئې اوفرمائیل چه تا به هغه خندوله او ته به هغې خندولې؟ ما عرض اوکړو چه زما والد صاحب وفات شو، او هغوی اووهٔ یا نهه لونړه پریخودلې دی، په دې وجه ماته ښه ښکاره نه شوه چه هم د هغوی په شان جینئ راولم، پس

[1] سنن ابی داؤد، کتاب النکاح، باب ما یقال للمتزوج، رقم الحدیث: ۲۱۳۰، وانظر جامع الترمذی، ابواب النکاح، باب ما جاء فیما یقال للمتزوج، رقم الحدیث: ۱۰۹۱

ما د یوې داسې زنانه سره نکاح اوکړه چه د هغوی خیال ساتی، رسول اللهﷺ اوفرمائیل الله پاک دې تاته برکت درکړی. ابن عیینة او محمد بن مسلم د عمرو نه د ﴿ بَارَكَ اللهُ عَلَيْكَ ﴾ الفاظ نه دی نقل کړی.
یعنی حماد بن زید نه علاوه عمرو بن دینار دا روایت د دوه نورو راویانو نه هم نقل کړې دې. یو سفیان بن عیینة او دویم محمد بن مسلم طایفی. د هغوی دواړو روایتونه په کتاب المغازی کښې تیر شوې دی. په هغې کښې د ﴿ بَارَكَ اللهُ عَلَيْكَ ﴾ الفاظ نشته.[1]

## ۵۴: باب مَا يَقُولُ إِذَا أَتَى أَهْلَهُ

[۶۰۲۵] حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ حَدَّثَنَا جَرِيرٌ عَنْ مَنْصُورٍ عَنْ سَالِمٍ عَنْ كُرَيْبٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ -رضي الله عنهما- قَالَ قَالَ النَّبِيُّ -صلى الله عليه وسلم- «لَوْ أَنَّ أَحَدَهُمْ إِذَا أَرَادَ أَنْ يَأْتِيَ أَهْلَهُ قَالَ بِاسْمِ اللَّهِ، اللَّهُمَّ جَنِّبْنَا الشَّيْطَانَ، وَجَنِّبِ الشَّيْطَانَ مَا رَزَقْتَنَا، فَإِنَّهُ إِنْ يُقَدَّرْ بَيْنَهُمَا وَلَدٌ فِي ذَلِكَ، لَمْ يَضُرَّهُ شَيْطَانٌ أَبَدًا». [ر: ۱۴۱]

د سیدنا ابن عباس رضی الله عنهما نه روایت دې چه رسول اللهﷺ اوفرمائیل چه که د هغوی نه یو سړې خپلې ښځې ته ورځی (یعنی د صحبت کولو) اراده کوی او اولولی : ﴿ بِسْمِ اللهِ اللَّهُمَّ جَنِّبْنَا الشَّيْطَانَ وَجَنِّبِ الشَّيْطَانَ مَا رَزَقْتَنَا ﴾ (بیا) که د دې صحبت نه څه اولاد مقدر وی، نو هغه ته به شیطان کله هم ضرر او نه رسوی.
**د مباشرت دعا** : په دې باب کښې امام بخاری رحمه الله ښځې سره د مباشرت دعا ذکر فرمائیلې ده. حاصل دا دې چه جنسی تقاضې په جائز طریقه سره پوره کولو کښې هم د الله پاک نه دعا کول پکار دی او غافل نه دی اوسیدل پکار، کینې عموما دا حالت د د مستئ او بې خیالئ وی خو د یو مومن د ژوند په ټولو لمحاتو کښې یوه لمحه هم د الله پاک د ذکر او د خپل فکر نه خالی نه دی کیدل پکار. او په دې حالت کښې رسول اللهﷺ خپل امت ته د ډیرې ښکلې دعا تعلیم ورکړې دې، الله اکبر!

## ۵۵: باب قَوْلِ النَّبِيِّ -صلى الله عليه وسلم «رَبَّنَا آتِنَا فِي الدُّنْيَا حَسَنَةً»

[۶۰۲۶] حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَارِثِ عَنْ عَبْدِ الْعَزِيزِ عَنْ أَنَسٍ قَالَ كَانَ أَكْثَرُ دُعَاءِ النَّبِيِّ -صلى الله عليه وسلم- «اللَّهُمَّ رَبَّنَا آتِنَا فِي الدُّنْيَا حَسَنَةً، وَفِي الآخِرَةِ حَسَنَةً، وَقِنَا عَذَابَ النَّارِ». [ر: ۴۲۵۰]

د سیدنا انس رضی الله عنه نه روایت دې چه د رسول اللهﷺ اکثریه دعا دا وه : ﴿ اللهم ربنا اتنا ... ﴾

---

[1] صحیح البخاری، کتاب المغازی، باب اذا همت طائفتان منکم او تفشلا والله ولیهما، رقم الحدیث : ۴۰۵۲

يعنى اې الله ! مونږ ته په دنيا كښې خير راكړه (او په آخرت كښې هم خير راكړه) او مونږ د دوزخ د عذاب نه بچ كړه.

**يو جامع قرانى دعا** : په دې باب كښې امام بخارى رحمه الله يو جامع قرآنى دعا ذكر فرمائيلې ده چه د هغې ورد به رسول الله ﷺ په كثرت سره كولو. په دې دعا كښې په دنيا او آخرت كښې د الله پاک نه حسنة طلب كړې شوې ده او د جهنم نه پناه طلب كړې شوې ده. په دنيا كښې دننه د حسنه نه مراد په ايمان او اسلام سره عافيت، نيكه ښځه او اولاد دې او د آخرت حسنة جنت او نجات ابدى دې. (۱)

## ۵۶: باب التَّعَوُّذِ مِنْ فِتْنَةِ الدُّنْيَا

[۶۰۲۷] حَدَّثَنَا فَرْوَةُ بْنُ أَبِي الْمَغْرَاءِ حَدَّثَنَا عَبِيدَةُ بْنُ حُمَيْدٍ عَنْ عَبْدِ الْمَلِكِ بْنِ عُمَيْرٍ عَنْ مُصْعَبِ بْنِ سَعْدِ بْنِ أَبِي وَقَّاصٍ عَنْ أَبِيهِ - رضى الله عنه - قَالَ كَانَ النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - يُعَلِّمُنَا هَؤُلاَءِ الْكَلِمَاتِ كَمَا تُعَلَّمُ الْكِتَابَةُ «اللَّهُمَّ إِنِّي أَعُوذُ بِكَ مِنَ الْبُخْلِ، وَأَعُوذُ بِكَ مِنَ الْجُبْنِ، وَأَعُوذُ بِكَ أَنْ نُرَدَّ إِلَى أَرْذَلِ الْعُمُرِ، وَأَعُوذُ بِكَ مِنْ فِتْنَةِ الدُّنْيَا، وَعَذَابِ الْقَبْرِ». [ر: ۲۶۶۷]

حضرت مصعب بن سعد بن ابى وقاص د خپل پلار (سيدنا سعد بن ابى وقاص رضى الله عنه) نه روايت كوى چه هغوى بيان اوكړو چه مونږ ته به رسول الله ﷺ دا كلمات داسې ښودل. څنګه چه ليكلې ښودلې شى. «اللهم انى اعوذبك ...» يعنى اې الله ! زه ستا پناه غواړم د بخل نه. او ستا پناه غواړم د بزدلئ نه، او ستا پناه غواړم د دې خبرې نه چه د عمر ذليل ترين مرحلې طرف ته واپس كړې شم او ستا پناه غواړم د دنيا د فتنې او د عذاب قبر نه.

## ۵۷: باب تَكْرِيرِ الدُّعَاءِ

[۶۰۲۸] حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ مُنْذِرٍ حَدَّثَنَا أَنَسُ بْنُ عِيَاضٍ عَنْ هِشَامٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ عَائِشَةَ - رضى الله عنها - أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - طُبَّ حَتَّى إِنَّهُ لَيُخَيَّلُ إِلَيْهِ قَدْ صَنَعَ الشَّىْءَ وَمَا صَنَعَهُ، وَإِنَّهُ دَعَا رَبَّهُ ثُمَّ قَالَ «أَشَعَرْتِ أَنَّ اللَّهَ قَدْ أَفْتَانِي فِيمَا اسْتَفْتَيْتُهُ فِيهِ». فَقَالَتْ عَائِشَةُ فَمَا ذَاكَ يَا رَسُولَ اللَّهِ قَالَ «جَاءَنِي رَجُلاَنِ فَجَلَسَ أَحَدُهُمَا عِنْدَ رَأْسِي، وَالآخَرُ عِنْدَ رِجْلَىَّ فَقَالَ أَحَدُهُمَا لِصَاحِبِهِ مَا وَجَعُ الرَّجُلِ قَالَ مَطْبُوبٌ. قَالَ مَنْ طَبَّهُ قَالَ لَبِيدُ بْنُ الأَعْصَمِ. قَالَ فِيمَا ذَا قَالَ فِي مُشُطٍ وَمُشَاطَةٍ وَجُفِّ طَلْعَةٍ. قَالَ فَأَيْنَ هُوَ قَالَ فِي ذَرْوَانَ، وَذَرْوَانُ بِئْرٌ فِي بَنِي زُرَيْقٍ». قَالَتْ فَأَتَاهَا رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - ثُمَّ رَجَعَ إِلَى عَائِشَةَ فَقَالَ «وَاللَّهِ لَكَأَنَّ مَاءَهَا نُقَاعَةُ الْحِنَّاءِ، وَلَكَأَنَّ نَخْلَهَا رُءُوسُ

(۱) فتح البارى : ۱۱/۱۹۲

الشَّيَاطِينِ». قَالَتْ فَأَتَى رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - فَأَخْبَرَهَا عَنِ الْبِئْرِ، فَقُلْتُ يَا رَسُولَ اللَّهِ فَهَلاَّ أَخْرَجْتَهُ قَالَ «أَمَّا أَنَا فَقَدْ شَفَانِي اللَّهُ، وَكَرِهْتُ أَنْ أُثِيرَ عَلَى النَّاسِ شَرًّا». زَادَ عِيسَى بْنُ يُونُسَ وَاللَّيْثُ عَنْ هِشَامٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ سُحِرَ النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - فَدَعَا وَدَعَا وَسَاقَ الْحَدِيثَ. [ر: ۳۰۰۴]

د سیده عائشه صدیقه رضی الله عنها نه روایت دی چه په رسول الله ﷺ باندې جادو اوکړې شو. تردې چه د هغوی به خیال راغلو چه یو کار ئې کړې دې، حال دا چه هغه به ئې نه وو کړې. پس رسول الله ﷺ د خپل رب نه دعا اوکړه، بیا ئې اوفرمائیل (اې عائشه) آیا تا ته پته شته چه الله پاک ماته هغه خبره بیان کړه کومه چه ترې ما تپوسله. عائشې رضی الله عنها تپوس اوکړو هغه څه خبره وه یا رسول الله ﷺ! هغوی اوفرمائیل: ماته دوه کسان راغلل. د هغوی نه یو زما د سر طرف ته او دویم زما د خپو طرف ته کیناستلو، د هغوی نه یو د خپل ملګرې نه تپوس اوکړو، دې سړی ته څه تکلیف دې؟ دویم اووې: په دوی باندې جادو کړې شوې دې (اولنی) تپوس اوکړو چا جادو کړې دې؟ هغه اووې لبید بن اعصم (یهودی). تپوس ئې اوکړو په څه څیز کښې؟ جواب ئې ورکړو: په ګومنځ کښې او د ګومنځ نه په راختلې شوې ویښتو کښې او د کهجورې په غلاف کښې. (اولنی) تپوس اوکړو: هغه چرته دی (دویم اووې) په ذروان کښې. ذروان په بنو رزیق کښې یو کوهی دې، د عائشې رضی الله عنها بیان دې چه رسول الله ﷺ هغه کوهی ته تشریف یوړلو بیا عائشې رضی الله عنها ته واپس شو. نو وې فرمائیل قسم په الله د هغې اوبه د نچوړ شوې نکریزو په شان سرې دی، او د هغې په خوا کښې د کهجورو اونې ګویا د شیطانانو سرونه دی، د عائشې رضی الله عنها بیان دې چه رسول الله ﷺ واپس راغلو او د کوهی حالت ئې بیان کړو نو ما عرض اوکړو یا رسول الله ﷺ! تاسو هغه ولې او نه ویستلو؟ رسول الله ﷺ اوفرمائیل: الله پاک ماته شفاء راکړه او ما بنه او نه ګڼړله چه په خلقو باندې شر رابیدار کړم، عیسی بن یونس او لیث د هشام نه په واسطه د عروه عن عائشه نقل کړې دې چه په رسول الله ﷺ باندې چا جادو اوکړو، نو رسول الله ﷺ دعا اوفرمائیله، بیا ئې حدیث بیان کړو.

**بار بار دعا کول مستحب دی**: رسول الله ﷺ به بار بار دعا فرمائیله، په دعا کښې تکرار رسول الله ﷺ ته خوښ وو. په سنن ابی داؤد او سنن نسائی کښې د سیدنا عبدالله بن مسعود رضی الله عنه روایت دې چه د رسول الله ﷺ درې کرته دعا کول او درې کرته استعمال کول خوښ وو. (۱)

په باب کښې چه امام بخاری رحمه الله کوم روایت ذکر کړې دې هغه د دې نه مخکښې په کتاب الطب کښې تیر شوې دې، په روایت الباب کښې د دعا تکرار نشته. بلکه «دعا ربه» الفاظ دی، خو د کتاب الطب په روایت کښې «دعاالله ودعاه» مکرر راغلې دې، (۲)

(۱) سنن ابی داؤد، کتاب الوتر، باب الاستغفار، رقم الحدیث: ۱۵۲۴
(۲) فتح الباری، ۱۹۳/۱۱، هم دغه شان اوګورئ کشف الباری کتاب الطب: ۱۰۴

هم دغه شان د امام مسلم رحمه الله په روايت كښې دی ﴿ فلعائم دعا ﴾... امام بخاری رحمه الله هم د دې روايت طرف ته اشاره فرمائيلې ده او د دې مناسبت د ترجمة الباب سره واضح دې.

## ۵۸: بَابُ الدُّعَاءِ عَلَى الْمُشْرِكِينَ

وَقَالَ ابْنُ مَسْعُودٍ قَالَ النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - «اللَّهُمَّ أَعِنِّي عَلَيْهِمْ بِسَبْعٍ كَسَبْعِ يُوسُفَ». [ر: ۹۶۲]

وَقَالَ «اللَّهُمَّ عَلَيْكَ بِأَبِي جَهْلٍ». [ر: ۲۳۷] .

وَقَالَ ابْنُ عُمَرَ دَعَا النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - فِي الصَّلَاةِ «اللَّهُمَّ الْعَنْ فُلَانًا وَفُلَانًا». حَتَّى أَنْزَلَ اللَّهُ عَزَّ وَجَلَّ (لَيْسَ لَكَ مِنَ الْأَمْرِ شَيْءٌ) ال عمران: ۱۲۸_ [ر: ۳۸۴۲]

رسول الله ﷺ د مشركانو او كفاردو دپاره بددعا فرمائيلې ده، په دې باب كښې امام بخاری رحمه الله هغه روايتونه جمع كړې دی چه په هغې كښې رسول الله ﷺ د يو كافر او مشرک دپاره بددعا كړې وی.

په ترجمة الباب كښې ئې درې تعليقات ذكر فرمائيلې دی، اول تعليق د عبدالله بن مسعود رضي الله عنه دی ﴿ اللهم اعنی علیهم ﴾ «اې الله ! ته د هغوی په مقابله كښې زما مدد اوكړه»، دا تعليق امام بخاری رحمه الله په استسقاء كښې موصولا ذكر كړې دې. (۱)

دويم تعليق هم د هغوی دې ﴿ اللهم عليك بابي جهل ﴾ «اې الله ! ته ابوجهل راونيسه»، امام بخاری رحمه الله په كتاب الطهارة كښې دا تعليق هم موصولا نقل كړې دې. (۲)

او دريم تعليق، د سيدنا عبدالله بن عمر رضي الله عنهما دې، دا هم امام بخاری رحمه الله په كتاب التفسير كښې موصولا نقل كړې دی. (۳)

[۶۰۲۹] حَدَّثَنَا ابْنُ سَلَامٍ أَخْبَرَنَا وَكِيعٌ عَنِ ابْنِ أَبِي خَالِدٍ قَالَ سَمِعْتُ ابْنَ أَبِي أَوْفَى - رضى الله عنهما - قَالَ دَعَا رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - عَلَى الْأَحْزَابِ فَقَالَ «اللَّهُمَّ مُنْزِلَ الْكِتَابِ، سَرِيعَ الْحِسَابِ، اهْزِمِ الْأَحْزَابَ، اهْزِمْهُمْ وَزَلْزِلْهُمْ». [ر: ۲۷۷۵]

د سيدنا ابن ابی اوفی رضي الله عنهما نه روايت دې چه رسول الله ﷺ د كفارو د مختلف جماعتونو او احزاب دپاره بددعا كړې ده او فرمائی چه اې الله! كوم چه كتاب لره نازلونكې ئې، او زر حساب اخستونكې ئې، لښكرو ته شكست وركړه، هغوی ته شكست وركړه، هغوی متزلزل

---

(۱) صحيح البخاری، كتاب الاستسقاء، باب دعاء النبی : اجعلها عليهم سنين كسنی يوسف، رقم الحديث : ۱۰۰۷

(۲) صحيح البخاری، كتاب الطهارة، باب القی علی ظهر المصلی قذر او جيفة لم تفسد عليه صلاته، رقم الحديث : ۲۴۰

(۳) صحيح البخاری، كتاب التفسير، باب ﴿ ليس لک من الامر شئ ﴾، رقم الحديث : ۴۵۵۹

کړه، (خپې ئې اوخويوه).
د امام بخاري رحمه الله د شيخ نوم محمد بن سلام (د لام په تخفيف سره) دې، د ابن ابی خالد نه اسماعيل بن ابی خالد مراد دې، د ابو خالد نوم سعيد يا هرمز دې، د ابن ابی اوفی نوم عبدالله دې، او د ابو اوفی نوم علقمه دې، يعنی عبدالله بن علقمة، دا دواړه صحابه دی [۱]

[۲۰۳۰] حَدَّثَنَا مُعَاذُ بْنُ فَضَالَةَ حَدَّثَنَا هِشَامٌ عَنْ يَحْيَى عَنْ أَبِي سَلَمَةَ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ أَنَّ النَّبِيَّ - صلى الله عليه وسلم - كَانَ إِذَا قَالَ «سَمِعَ اللَّهُ لِمَنْ حَمِدَهُ». فِي الرَّكْعَةِ الآخِرَةِ مِنْ صَلاَةِ الْعِشَاءِ قَنَتَ «اللَّهُمَّ أَنْجِ عَيَّاشَ بْنَ أَبِي رَبِيعَةَ، اللَّهُمَّ أَنْجِ الْوَلِيدَ بْنَ الْوَلِيدِ، اللَّهُمَّ أَنْجِ سَلَمَةَ بْنَ هِشَامٍ، اللَّهُمَّ أَنْجِ الْمُسْتَضْعَفِينَ مِنَ الْمُؤْمِنِينَ، اللَّهُمَّ اشْدُدْ وَطْأَتَكَ عَلَى مُضَرَ، اللَّهُمَّ اجْعَلْهَا سِنِينَ كَسِنِي يُوسُفَ». [ر: ۹۷۱]

د سيدنا ابوهريره رضي الله عنه نه روايت دې هغوی بيان اوکړو چه رسول الله ﷺ به چه کله د ماسخوتن په آخری رکعت کښې ﴿ سمع الله لمن حمده ﴾ اووې نو قنوت به ئې لوستل. اې الله! عياش بن ربيعه ته نجات ورکړه، يا الله وليد بن وليد ته خلاصې ورکړه. اې الله! سلمه بن هشام ته نجات ورکړه، اې الله! کمزورو مسلمانانو ته خلاصې ورکړه، يا الله! قبيله مضر سخت راونيسه! اې الله! دا (کافران) د يوسف عليه السلام (قحط سالئ) په شان په قحط سالئ کښې اخته کړه.

[۲۰۳۱] حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ الرَّبِيعِ حَدَّثَنَا أَبُو الأَحْوَصِ عَنْ عَاصِمٍ عَنْ أَنَسٍ - رضى الله عنه - قَالَ بَعَثَ النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - سَرِيَّةً يُقَالُ لَهُمُ الْقُرَّاءُ فَأُصِيبُوا، فَمَا رَأَيْتُ النَّبِيَّ - صلى الله عليه وسلم - وَجَدَ عَلَى شَىْءٍ مَا وَجَدَ عَلَيْهِمْ، فَقَنَتَ شَهْرًا فِي صَلاَةِ الْفَجْرِ وَيَقُولُ «إِنَّ عُصَيَّةَ عَصَوُا اللَّهَ وَرَسُولَهُ». [ر: ۹۵۷]

د سيدنا انس رضي الله عنه نه روايت دې چه رسول الله ﷺ يو وړوکې شان دسته اوليږله، هغه خلقو ته به قاريان وئيلې کيدل هغوی قتل کړې شو، نو رسول الله ﷺ دومره غمژن شو چه ما په يو واقعه باندې هم رسول الله ﷺ دومره غمژن نه دې ليدلې، پس په مانځه کښې ئې تر يوې مياشتې پورې قنوت لوستلو اوې فرمائيل به ئې: قبيله عصيه د الله او د هغه د رسول نافرمانی اوکړه.

د ابو الاحوص نوم سلام (بتشديد اللام) بن سليم دې. او عاصم نه عاصم بن سليمان احول مراد دې. [۲]

﴿عصية﴾ دا د عصا تصغير دې او د عزبو مشهوره قبيله ده. [۳]

---

[۱]) عمدة القاری، ۱۷/۲۳. وفتح الباری

[۲]) عمدة القاری : ۱۸/۲۳

[۳]) عمدة القاری : ۱۸/۲۲

[۶۰۳۲] حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا هِشَامٌ أَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ عُرْوَةَ عَنْ عَائِشَةَ رضى الله عنها - قَالَتْ كَانَ الْيَهُودُ يُسَلِّمُونَ عَلَى النَّبِيِّ - صلى الله عليه وسلم - يَقُولُونَ السَّامُ عَلَيْكَ. فَفَطِنَتْ عَائِشَةُ إِلَى قَوْلِهِمْ فَقَالَتْ عَلَيْكُمُ السَّامُ وَاللَّعْنَةُ. فَقَالَ النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - «مَهْلاً يَا عَائِشَةُ، إِنَّ اللَّهَ يُحِبُّ الرِّفْقَ فِي الأَمْرِ كُلِّهِ». فَقَالَتْ يَا نَبِيَّ اللَّهِ أَوَلَمْ تَسْمَعْ مَا يَقُولُونَ قَالَ «أَوَلَمْ تَسْمَعِي أَنِّي أَرُدُّ ذَلِكَ عَلَيْهِمْ فَأَقُولُ وَعَلَيْكُمْ». [ر: ۲۷۷۷]

د سيده عائشه رضي الله عنها نه روايت دې چه يهودو به رسول الله ﷺ ته سلام كولو نو ونيل به ئې (السام عليك) سيده عائشه رضي الله عنها د هغوى په خبره باندې پوهه شوه. نو هغې اوفرمائيل هم په تاسو باندې دې لعنت او هلاكت وى. رسول الله ﷺ اوفرمائيل : اې عائشه پريږده: الله پاك په ټولو امورو كښې نرمى خوښوى. عائشې رضي الله عنها عرض اوكړو : يا رسول الله ﷺ: تاسو واونريدل : كومه خبره چه دې خلقو اوكړه؛ رسول الله ﷺ اوفرمائيل : آيا تا واونريدل څه چه ما دې خلقو ته اووې. ما اووې : (وعليكم) يعنى هم په تاسو دې وى

دا حديث په كتاب الاستيذان كښې تير شوې دې. په سند كښې د هشام نه هشام بن يوسف مراد دې.

[۶۰۳۳] حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنَّى حَدَّثَنَا الأَنْصَارِيُّ حَدَّثَنَا هِشَامُ بْنُ حَسَّانَ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ سِيرِينَ حَدَّثَنَا عَبِيدَةُ حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ أَبِي طَالِبٍ - رضى الله عنه - قَالَ كُنَّا مَعَ النَّبِيِّ - صلى الله عليه وسلم - يَوْمَ الْخَنْدَقِ، فَقَالَ «مَلأَ اللَّهُ قُبُورَهُمْ وَبُيُوتَهُمْ نَارًا، كَمَا شَغَلُونَا عَنْ صَلاَةِ الْوُسْطَى حَتَّى غَابَتِ الشَّمْسُ». وَهْىَ صَلاَةُ الْعَصْرِ. [ر: ۲۷۷۳]

د سيدنا على بن ابى طالب رضي الله عنه نه روايت دې چه مونږ د غزوه خندق په ورځ د رسول الله ﷺ سره وو. نو رسول الله ﷺ اوفرمائيل : چه الله پاك دې د هغوى قبرونه او د هغوى كورونه د اور نه ډک كړى. څنګه چه دې خلقو مونږ د صلاة الوسطى نه د نمر پريوتلو پورې منع كړو. د مينځنى مونځ نه مراد صلاة عصر دې

په سند كښې د امام بخارى رحمه الله شيخ الشيخ انصارى دې. د دې نه مراد محمد بن عبدالله دې. كوم چه د بصرې قاضى وو. دا د امام بخارى رحمه الله د استاذانو نه وو. خو دا روايت امام بخارى رحمه الله د هغوى نه بالواسطه نقل كړې دې او عبيده (د عين په زبر او د باء په زير سره) عبيده بن عمرو يا عبيده بن قيس مراد دې. [1] دا حديث په غزوه خندق كښې تير شوې دې.

د احاديث الباب مناسبت د ترجمة الباب سره بالكل ظاهر دې چه رسول الله ﷺ په هر روايت كښې د يو مشرک. يا د مشركانو د يو جماعت دپاره بددعا فرمائيلې ده.

[1] عمدة القارى: ۱۹/۲۲

## ۵۹: باب الدّعاءِ لِلمُشرِكين

[۶۰۳۴] حَدَّثَنَا عَلِي حَدَّثَنَا سُفيَانُ حَدَّثَنَا أَبُو الزِّنَادِ عَنِ الأَعرَجِ عَن أَبِي هُرَيرَةَ - رضي الله عنه - قَدِمَ الطُّفَيلُ بنُ عَمرٍو عَلَى رَسُولِ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - فَقَالَ يَا رَسُولَ اللَّهِ إِنَّ دَوسًا قَد عَصَت وَأَبَت، فَادعُ اللَّهَ عَلَيهَا. فَظَنَّ النَّاسُ أَنَّهُ يَدعُو عَلَيهِم، فَقَالَ «اللَّهُمَّ اهدِ دَوسًا وَأتِ بِهِم». [ر: ۲۷۷۹]

د سیدنا ابوهریره رضی الله عنه نه روایت دي چه طفیل بن عمر الدوسی رضی الله عنه د رسول الله ﷺ په خدمت کښې حاضر شو او عرض ئې اوکړو یا رسول الله ﷺ: دوس نافرمانی اوکړه او انکار ئې اوکړو په دې وجه تاسو د هغوی په حق کښې بد دعا اوکړئ. د خلقو خیال وو چه رسول الله ﷺ به د هغوی دپاره بددعا کوی (خو) رسول الله ﷺ اوفرمائیل یا الله! دوس ته هدایت ورکړه او هغوی (ماته) راوله.

**د ترجمة الباب غرض**: د امام بخاری رحمه الله مقصد دا دي چه د مشرکانو او کفارو دپاره که د هدایت او ایمان سوال اوکړې شی نو جائز ده او د رسول الله ﷺ نه ثابت ده. په سند کښې د ابوالزناد نوم عبدالله بن ذکوان دي. روایت الباب په کتاب المغازی کښې تیر شوې دي[۱]

په دې باب کښې امام بخاری رحمه الله د رسول الله ﷺ یو دعا نقل فرمائیلې ده.

## ۶۰: باب قَولِ النَّبِي صلى الله عليه وسلم «اللَّهُمَّ اغفِر لِي مَا قَدَّمتُ وَمَا أَخَّرتُ»

چه په هغې کښې رسول الله ﷺ د الله پاک نه د خان دپاره د مغفرت دعا کړې ده.

**یو اشکال او د هغې جواب**: په دې باندې اشکال کیدې شی چه رسول الله ﷺ خو د ګناهونو نه معصوم دې. نو د هغوی په حق کښې د دعا څه معنی ده؟

① د دې یو جواب خو دا کړې شوې دې چه دا استغفار او دعا کول په طور د شکر او تواضع وه او د عبدیت د اظهار په طور وه. یعنی اګر چه الله پاک د رسول الله ﷺ د ټولو ګناهونو نه د حفاظت او مغفرت فیصله فرمائیلې ده خو د الله پاک هم د دې خصوصی کرم او فضل د تقاضې په بناء به رسول الله ﷺ د مغفرت دعا فرمائیله او الله پاک هم رسول الله ﷺ ته په سورة النصر کښې د استغفار کولو حکم ورکړو: ﴿فَسَبِّحْ بِحَمْدِ رَبِّكَ وَاسْتَغْفِرْهُ﴾، بلکه دا چه دعا کول پخپله یو عبادت دې. بلکه په حدیث کښې خو دې ته ﴿مخ العبادة﴾ وئیلې شوې ده.[۲]

② دویم جواب دا ورکړې شوې دې چه رسول الله ﷺ اګر چه د ګناهونو نه معصوم وو. خو

---

[۱] کشف الباري، کتاب المغازی: ۶۱۳

[۲] فتح الباری ۲۳۷/۱۱، وارشاد الساری ۳۹۴/۱۳، وقال العینی: هذا ارشاد لامته وتعلیم لهم، وهو معصوم عن الذنوب جمیعها قبل النبوة وبعدها. عمدة القاری: ۲۹/۲۳

ډير کرته خلاف افضل او خلاف اولی امور به د رسول اللهﷺ نه اوشو. مثلا فاضل ته به نې په افضل باندې ترجيح ورکړه. او اګر چه داسې د يو امر صادريدل د معصيت په شمير کښې نه راځي. خو د ﴿حسنات الابرار سيئات المقربين﴾ د قاعدې مطابق به نې دا په خپل حق کښې سيئه ګڼړله او استغفار به ئې کولو.(١)

[٦٠٣٥. ٦٠٣٦] حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْمَلِكِ بْنُ صَبَّاحٍ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ عَنِ ابْنِ أَبِي مُوسَى عَنْ أَبِيهِ عَنِ النَّبِيِّ -صلى الله عليه وسلم- أَنَّهُ كَانَ يَدْعُو بِهَذَا الدُّعَاءِ «رَبِّ اغْفِرْ لِي خَطِيئَتِي وَجَهْلِي وَإِسْرَافِي فِي أَمْرِي كُلِّهِ، وَمَا أَنْتَ أَعْلَمُ بِهِ مِنِّي، اللَّهُمَّ اغْفِرْ لِي خَطَايَايَ وَعَمْدِي وَجَهْلِي وَهَزْلِي، وَكُلُّ ذَلِكَ عِنْدِي، اللَّهُمَّ اغْفِرْ لِي مَا قَدَّمْتُ وَمَا أَخَّرْتُ وَمَا أَسْرَرْتُ وَمَا أَعْلَنْتُ، أَنْتَ الْمُقَدِّمُ، وَأَنْتَ الْمُؤَخِّرُ، وَأَنْتَ عَلَى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ». وَقَالَ عُبَيْدُ اللَّهِ بْنُ مُعَاذٍ وَحَدَّثَنَا أَبِي حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ عَنْ أَبِي بُرْدَةَ بْنِ أَبِي مُوسَى عَنْ أَبِيهِ عَنِ النَّبِيِّ -صلى الله عليه وسلم-

ابو اسحاق بن موسى د خپل پلار نه روايت کوی چه هغوی د رسول اللهﷺ نه روايت کوی چه رسول اللهﷺ به دا دعا لوستله ﴿رب اغفرلی...﴾

يعني اې زما ربه! زما غلطی. ناپوهی. او په ټولو معاملاتو کښې د حد نه تجاوز کول او څه چه تاته زما متعلق معلوم دی. په هغې کښې زما مغفرت اوکړه. اې الله! زما مغفرت اوکړه. زما د غلطيانو. زما بالقصد او په ناپوهئ سره کيدونکې کوتاهيانې. زما د خندا. مزاح د کارونو چه دا ټول ما سره دی. يعني زه په دې خطاګانو سره متصف يم. اې الله: زما مخکښې روستو او پټې او ښکاره ګناهونو مغفرت اوفرمايه. هم ته وړاندې کونکې او روستو کونکې ئې او ته په هر څيز باندې قادر ئې.

**د عبدالملک بن صباح درجه ثقاهت:** د عبدالملک بن صباح په صحيح بخاری کښې صرف يو روايت دی.(٢) امام ابوحاتم رازی د هغوی دپاره د صالح لفظ استعمال کړې دې. دا اګر چه د توثيق الفاظ دی خودا لفظ د آخری او بالکل سپکې درجې د توثيق دپاره استعماليږی.(٣) خو د امام بخاری رحمه الله نه علاوه امام مسلم رحمه الله هم د هغوی روايت ذکر کړې دې.(٤) او د شيخين د يو راوی روايت لره ذکر کول د دې خبرې دليل دې چه په ثقاهت کښې د هغه درجه معمولی او آخری نه ده.

**قوله:** ﴿كَانَ يَدْعُو بِهَذَا الدُّعَاءِ﴾: دا دعا به رسول اللهﷺ کوم وخت کوله. حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی چه د روايت په هيڅ طريق کښې د دې محل متعين نه شو خو په بعض تورو

---

(١) روح المعانی: ٩١/١٦ (تفسير سورة الفتح)

(٢) فتح البارى: ١٩٧/١١

(٣) فتح البارى: ١٩٧/١١

(٤) فتح البارى: ١٩٧/١١

روایاتو کښې دی چه دا دعا به رسول الله ﷺ د مانځه په آخر کښې لوستله، د سلام نه مخکښې او د تشهد نه پس یا د سلام او د مانځه نه فارغ کیدو نه پس. دواړو طریقو سره ثابت ده.(۱)

**قوله:** ﴿وَقَالَ عُبَيْدُ اللهِ بْنُ مُعَاذٍ﴾: عبیدالله بن معاذ د امام بخاری رحمه الله شیخ دې.؟ امام بخاری رحمه الله دا دلته تعلیقا ذکر کړې دې. امام مسلم رحمه الله دا موصولا د حدیث د تصریح سره ذکر کړې دې.(۲)

[۶۰۳۶] حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنَّى حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللهِ بْنُ عَبْدِ الْمَجِيدِ حَدَّثَنَا إِسْرَائِيلُ حَدَّثَنَا أَبُو إِسْحَاقَ عَنْ أَبِي بَكْرِ بْنِ أَبِي مُوسَى وَأَبِي بُرْدَةَ -أَحْسِبُهُ- عَنْ أَبِي مُوسَى الأَشْعَرِيِّ عَنِ النَّبِيِّ صلى الله عليه وسلم -أَنَّهُ كَانَ يَدْعُو «اللَّهُمَّ اغْفِرْ لِي خَطِيئَتِي وَجَهْلِي وَإِسْرَافِي فِي أَمْرِي، وَمَا أَنْتَ أَعْلَمُ بِهِ مِنِّي، اللَّهُمَّ اغْفِرْ لِي هَزْلِي وَجِدِّي وَخَطَايَ وَعَمْدِي وَكُلُّ ذَلِكَ عِنْدِي»

سیدنا ابوموسی اشعری رضی الله عنه د رسول الله ﷺ نه روایت کوی چه رسول الله ﷺ به دا دعا فرمائیله اې الله: زما غلطې. زما ناپوهی. په معاملاتو کښې زما د حد نه تیریدل او کومه کوتاهی چه تاته زما متعلق معلومه ده. د هغې ټولو مغفرت اوکړه. اې الله : زما مزاح او بالقصد غلطی او بالقصد ګناه مغفرت اوکړه چه زه د دې ټولو سره متصف یم

**د حدیث الباب درې طریق** : امام بخاری رحمه الله په حدیث الباب کښې درې طریق ذکر کړې دی:

① اول طریق محمد بن بشار دې. په دې کښې ابن ابی موسی دې.

② دویم طریق عبید الله بن معاذ دې. په دې کښې ابی بردة عن ابی موسی دې

③ دریم طریق د محمد بن المثنی دې. په دې کښې ابی بکر بن ابی موسی او ابی بردة عن ابی موسی دواړه دی. دریم طریق کښې د سیدنا ابوموسی اشعری رضی الله عنه نه دا حدیث د هغوی دواړو خامنو ابوبکر او ابو بردة نقل کوی.

## ۶۱: بَابُ الدُّعَاءِ فِي السَّاعَةِ الَّتِي فِي يَوْمِ الْجُمُعَةِ

**د جمعې په ورځ د قبولیت ساعت** : د جمعې په ورځ الله پاک یو ساعت داسې مقرر کړې دې چه په هغې کښې هره دعا اوکړې شی. هغه قبلیږی. هغې ته (ساعة اجابة) وئیلې شی. امام بخاری رحمه الله په دې باب کښې هم هغه بیان کړې دې. اوس دا ساعت په کوم وخت کښې وی؟ په دې سلسله کښې د ځلویښتو نه زیات اقوال دی (۳) رسول الله ﷺ د دې په باره کښې فرمائی : ﴿إِنِّي كُنْتُ أُعْلِمْتُهَا ثُمَّ أُنْسِيتُهَا كَمَا أُنْسِيتُ لَيْلَةَ الْقَدْرِ﴾(۴)

---

(۱) فتح الباری : ۱۹۷/۱۱

(۲) فتح الباری : ۱۹۷/۱۱

(۳) فتح الباری : ۱۹۹/۱۱

(۴) فتح الباری : ۱۹۹/۱۱

يعنى ماته ددې علم وو. خو بيا مانه دا د ليلة القدر په شان هير كړې شو
سحر د مانځه نه مخكښې. د سحر مانځه نه پس. د زوال په وخت. د دواړو خطبو ترمينځه په وقفه كښې او د مازيګر د مانځه نه تر مابنام پورې اوقاتو كښې د قبوليت د دې ساعت امكانات زيات ښودلې شوې دى.[1]
د دې ساعت په پټ ساتلو كښې راز هم دا دې چه خلق ټوله ورځ اهم اوګنړى او په اطاعت او عبادت كښې اخته وى.[2]

[۶۰۳۷] حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ أَخْبَرَنَا أَيُّوبُ عَنْ مُحَمَّدٍ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ - رضى الله عنه - قَالَ قَالَ أَبُو الْقَاسِمِ - صلى الله عليه وسلم - «فِي الْجُمُعَةِ سَاعَةٌ لاَ يُوَافِقُهَا مُسْلِمٌ وَهُوَ قَائِمٌ يُصَلِّي يَسْأَلُ خَيْرًا إِلاَّ أَعْطَاهُ». وَقَالَ بِيَدِهِ قُلْنَا يُقَلِّلُهَا يُزَهِّدُهَا. [ر ۸۹۳]

د سيدنا ابوهريره رضي الله عنه نه روايت دې چه ابوالقاسم ﷺ اوفرمائيل: د جمعې په ورځ يو داسې ساعت دې. كوم مسلمان چه هغه په داسې حال كښې بيا مومى چه هغه ولاړ مونځ كوى نو چه كوم خير هغه اوغواړى، الله پاک به ئې ورته وركړى. او په خپل لاس سره ئې اشاره اوكړه او مونږ په دې اشارې سره دومره پوهه شو چه رسول الله ﷺ د دې ساعت مختصر والى ته اشاره فرمائى.

**قوله: ﴿قُلْنَا يُقَلِّلُهَا يُزَهِّدُهَا﴾:** يعنى مونږ په زړه كښې اووې چه رسول الله ﷺ د دې ساعت كم والى ته اشاره فرمائى. ﴿يُزَهِّدُهَا﴾ د ﴿يُقَلِّلُهَا﴾ تفسير دې.

## ۶۲: باب قَوْلِ النَّبِيِّ صلى الله عليه وسلم «يُسْتَجَابُ لَنَا فِي الْيَهُودِ، وَلاَ يُسْتَجَابُ لَهُمْ فِينَا»

**د يهود متعلق د دعا قبوليت:** يعنى د يهودو په باره كښې چه مونږ كومه دعا كوو. هغه قبليږى ځكه چه هغه حق دعا وى. خو د يهودى دعا زمونږ په باره كښې نه قبليږى ځكه چه هغه دعا حق نه وى. په دې كښې ئې دې طرف ته اشاره اوكړه چه الله پاک دعاګانې قبلوى كومې چه صحيح او حق وى او كومه دعا چه شرعى لحاظ سره صحيح نه وى او د ظلم وى. هغه نه قبليږى.

[۶۰۳۸] حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَهَّابِ حَدَّثَنَا أَيُّوبُ عَنِ ابْنِ أَبِي مُلَيْكَةَ عَنْ عَائِشَةَ - رضى الله عنها أَنَّ الْيَهُودَ أَتَوُا النَّبِيَّ - صلى الله عليه وسلم - فَقَالُوا السَّامُ عَلَيْكَ. قَالَ «وَعَلَيْكُمْ». فَقَالَتْ عَائِشَةُ السَّامُ عَلَيْكُمْ، وَلَعَنَكُمُ اللَّهُ وَغَضِبَ عَلَيْكُمْ. فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - «مَهْلاً يَا عَائِشَةُ، عَلَيْكِ بِالرِّفْقِ، وَإِيَّاكِ وَالْعُنْفَ أَوِ الْفُحْشَ». قَالَتْ

---

[1]) عمدة القارى ۲۴۳/۶
[2]) فتح البارى: ۴۱۷/۱۱، وعمدة القارى: ۲۴۳/۶

أَوَلَمْ تَسْمَعْ مَا قَالُوا قَالَ «أَوَلَمْ تَسْمَعِي مَا قُلْتُ رَدَدْتُ عَلَيْهِمْ، فَيُسْتَجَابُ لِي فِيهِمْ، وَلاَ يُسْتَجَابُ لَهُمْ فِيَّ» [ر: ۲۷۷۷]
د سیده عائشه رضي الله عنها نه روایت دي چه یهود د رسول الله ﷺ په خدمت کښې حاضر شو او وې وئیل ﴿السَّامُ عَلَيْكُمْ﴾ رسول الله ﷺ اوفرمائیل ﴿وعلیکم﴾، عائشې رضي الله عنها اوفرمائیل: ﴿السَّامُ عَلَيْكُمْ وَلَعَنَكُمُ اللهُ وَغَضِبَ عَلَيْكُمْ﴾ (په تاسو دې هلاکت وی. او الله پاک دې په تاسو لعنت اوکړی او په تاسو دې خپل غضب نازل کړی) رسول الله ﷺ اوفرمائیل: اې عائشه! پریږده، نرمي اختیار کړه او د سختئ نه ځان ساته. یا ئې اوفرمائیل: د بدو خبرو نه بچ شه. عائشې رضي الله عنها عرض اوکړو: آیا تاسو وانوریدل چه دې یهودیانو څه اووې؟ رسول الله ﷺ اوفرمائیل: تا وانوریدل چه ما څه جواب ورکړو پس ما د هغوی خبره هم په هغوی باندې واپس کړه. زما دعا د هغوی په حق کښې قبلیږی. خو د هغوی دعا زما په حق کښې نه قبلیږی.
په سند کښې د ایوب سختیانی شیخ ابن ابی ملیکة دې. د هغوی نوم عبدالله بن عبدالرحمن بن ابی ملیکة دې.

## ۶۳: باب التَّأْمِين

[۶۰۳۹] حَدَّثَنَا عَلِي بْنُ عَبْدِ اللهِ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ قَالَ الزُّهْرِي حَدَّثَنَاهُ عَنْ سَعِيدِ بْنِ الْمُسَيَّبِ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِي صلى الله عليه وسلم- قَالَ «إِذَا أَمَّنَ الْقَارِءُ فَأَمِّنُوا، فَإِنَّ الْمَلاَئِكَةَ تُؤَمِّنُ، فَمَنْ وَافَقَ تَأْمِينُهُ تَأْمِينَ الْمَلاَئِكَةِ غُفِرَ لَهُ مَا تَقَدَّمَ مِنْ ذَنْبِهِ». [ر: ۷۳۷]
د سیدنا ابوهریره رضي الله عنه نه روایت دې چه رسول الله ﷺ اوفرمائیل: چه کله لوستونکې (یعنی امام) آمین اوائی نو تاسو هم آمین وایئ، ځکه چه ملائک هم امین وائی. نو د کوم سړی آمین وئیل چه د ملائکو د امین وئیلو سره موافق شی نو د هغه به مخکښې ټول ګناهونه معاف کړې شی.
**د لفظ امین تحقیق**: د آمین په باره کښې بعضو وئیلي دی چه دا غیر عربی، سریانی یا د عبرانئ ژبې کلمه ده، خو د اکثرو حضراتو رائې دا ده چه دا غیر عربی لفظ دې او د دې معنی ده: ﴿اللهم استجب﴾ (اې الله! قبول کړه) د سیدنا ابن عباس رضي الله عنهما نه دا معنی منقول ده.[1] دا اسم فعل دې
بعض وئیلي دی چه دا د الله پاک د اسمی حسنی نه دې خو دا قول ضعیف دې. ځکه چه د الله پاک اسماء توقیفی دی او په هغې کښې د دې ذکر نشته.[2]
امام حاکم په مستدرک کښې د حبیب بن مسلمه نه روایت نقل کړې دې چه رسول الله ﷺ

[1]) ارشاد الساری: ۳۹۵/۱۳
[2]) ارشاد الساری: ۳۹۵/۱۳

اوفرمائیل: ﴿لَا يَجْتَمِعُ مَلَأٌ فَيَدْعُو بَعْضُهُمْ، وَيُؤَمِّنُ الْبَعْضُ، إِلَّا أَجَابَهُمُ اللهُ تعالى﴾ [1] يعنی چه په کوم مجلس کښې يو سړی دعا اوکړی او نور پرې آمين وائی نو الله پاک هغه دعا قبلوی

او د يو بزرگ قول دی ﴿آمين كنز من كنوز الجنة﴾ [2] يعنی آمين د جنت د خزانو نه يو خزانه ده

## ۶۴: باب فَضْلِ التَّهْلِيلِ

**د تهليل فضيلت**: د تهليل معنی ﴿لا اله الا الله﴾ وئيل. په دې باب کښې د ﴿لا اله الا الله﴾ فضيلت بيان کړې شوې دې. علامه قسطلانی رحمه الله فرمائی:

﴿وهی الكلمة العليا التی يدور عليها رحی الإسلام والقاعدة التی تبنی عليها أركان الدين وانظر إلى العارفين وأرباب القلوب كيف يستأثرونها على سائر الأذكار وما ذاك إلا لما رأوا فيها من الخواص التی لم يجدوها فی غيرها﴾ [3]

يعنی: ﴿لا اله الا الله﴾ داسې عاليشان کلمه ده. چه په هغې باندې د اسلام جرنده تاويږی. او دا د دين د ارکانو بنياد دې. عارفين او ارباب قلوب اوګورئ! څنګه دا حضرات دې ته په نورو اذکارو باندې ترجيح ورکوی او د دې خبرې بله هيڅ وجه نشته مګر هم دا چه په دې کښې کوم خواص دی هغه په نورو اذکارو کښې هغوی ته ملاؤ نه شو

بعض حضراتو تسبيح ته د تهليل په مقابله کښې ترجيح ورکړې ده. خو صحيح قول دا دې چه تهليل افضل دې. ځکه ﴿لا اله الا الله﴾ ته په حديث کښې افضل وئيلې شوې دې [4]

۶۰۴۰| حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مَسْلَمَةَ عَنْ مَالِكٍ عَنْ سُمَيٍّ عَنْ أَبِي صَالِحٍ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رضى الله عنه أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صلى الله عليه وسلم قَالَ «مَنْ قَالَ لاَ إِلَهَ إِلاَّ اللَّهُ، وَحْدَهُ لاَ شَرِيكَ لَهُ، لَهُ الْمُلْكُ وَلَهُ الْحَمْدُ، وَهْوَ عَلَى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ. فِي يَوْمٍ مِائَةَ مَرَّةٍ، كَانَتْ لَهُ عَدْلَ عَشْرِ رِقَابٍ، وَكُتِبَ لَهُ مِائَةُ حَسَنَةٍ، وَمُحِيَتْ عَنْهُ مِائَةُ سَيِّئَةٍ، وَكَانَتْ لَهُ حِرْزًا مِنَ الشَّيْطَانِ يَوْمَهُ ذَلِكَ، حَتَّى يُمْسِيَ، وَلَمْ يَأْتِ أَحَدٌ بِأَفْضَلَ مِمَّا جَاءَ بِهِ إِلاَّ رَجُلٌ عَمِلَ أَكْثَرَ مِنْهُ» [۳۱۱۹، ۶۰۴۱]

د سيدنا ابوهريره رضی الله عنه نه روايت دې چه رسول الله ﷺ اوفرمائيل چا چه ﴿لَا إِلَهَ إِلَّا اللهُ وَحْدَهُ لَا شَرِيكَ لَهُ لَهُ الْمُلْكُ وَلَهُ الْحَمْدُ وَهُوَ عَلَى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ﴾ په يوه ورځ کښې سل کرته اووې نو هغه ته به د لسو غلامانو (د آزادولو) ثواب ملاؤ شی او سل ګناهونه به ئې معاف کړې شی. او په هغه

---

[1] المستدرک للحاکم: کتاب معرفة الصحابة، مناقب حبيب بن مسلمة الفهری: ۳۴۷/۳ (اسناده صحيح فان ابن لهيعة ثقة فی رواية العبادلة عنه)

[2] ارشاد الساری: ۳۹۶/۱۳

[3] ارشاد الساری: ۳۹۷/۱۳

[4] فتح الباری: ۱۴۸/۱۱

ورځ به تر ماښام پورې د شيطان نه محفوظ وي او د هغه نه به يو انسان هم افضل نه وي مګر هغه سړې چه د دې نه زيات ئې اولولي.

[۶۰۴۱] حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْمَلِكِ بْنُ عَمْرٍو حَدَّثَنَا عُمَرُ بْنُ أَبِي زَائِدَةَ عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ عَنْ عَمْرِو بْنِ مَيْمُونٍ قَالَ مَنْ قَالَ عَشْرًا كَانَ كَمَنْ أَعْتَقَ رَقَبَةً مِنْ وَلَدِ إِسْمَاعِيلَ.

قَالَ عُمَرُ بْنُ أَبِي زَائِدَةَ وَحَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ أَبِي السَّفَرِ عَنِ الشَّعْبِيِّ عَنْ رَبِيعِ بْنِ خُثَيْمٍ مِثْلَهُ. فَقُلْتُ لِلرَّبِيعِ مِمَّنْ سَمِعْتَهُ فَقَالَ مِنْ عَمْرِو بْنِ مَيْمُونٍ. فَأَتَيْتُ عَمْرَو بْنَ مَيْمُونٍ فَقُلْتُ مِمَّنْ سَمِعْتَهُ فَقَالَ مِنِ ابْنِ أَبِي لَيْلَى. فَأَتَيْتُ ابْنَ أَبِي لَيْلَى فَقُلْتُ مِمَّنْ سَمِعْتَهُ فَقَالَ مِنْ أَبِي أَيُّوبَ الْأَنْصَارِيِّ يُحَدِّثُهُ عَنِ النَّبِيِّ -صلى الله عليه وسلم-

وَقَالَ إِبْرَاهِيمُ بْنُ يُوسُفَ عَنْ أَبِيهِ عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ حَدَّثَنِي عَمْرُو بْنُ مَيْمُونٍ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ أَبِي لَيْلَى عَنْ أَبِي أَيُّوبَ قَوْلَهُ عَنِ النَّبِيِّ -صلى الله عليه وسلم-

وَقَالَ مُوسَى حَدَّثَنَا وُهَيْبٌ عَنْ دَاوُدَ عَنْ عَامِرٍ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ أَبِي لَيْلَى عَنْ أَبِي أَيُّوبَ عَنِ النَّبِيِّ -صلى الله عليه وسلم-. وَقَالَ إِسْمَاعِيلُ عَنِ الشَّعْبِيِّ عَنِ الرَّبِيعِ قَوْلَهُ.

وَقَالَ آدَمُ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْمَلِكِ بْنُ مَيْسَرَةَ سَمِعْتُ هِلَالَ بْنَ يَسَافٍ عَنِ الرَّبِيعِ بْنِ خُثَيْمٍ وَعَمْرِو بْنِ مَيْمُونٍ عَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ قَوْلَهُ.

وَقَالَ الْأَعْمَشُ وَحُصَيْنٌ عَنْ هِلَالٍ عَنِ الرَّبِيعِ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ قَوْلَهُ.

وَرَوَاهُ أَبُو مُحَمَّدٍ الْحَضْرَمِيُّ عَنْ أَبِي أَيُّوبَ عَنِ النَّبِيِّ -صلى الله عليه وسلم-.. [ر: ۶۰۴۰]

**قوله:** ﴿مَنْ قَالَ عَشْرًا كَانَ كَمَنْ أَعْتَقَ رَقَبَةً مِنْ وَلَدِ إِسْمَاعِيلَ﴾: يعنى چا چه دا كلمه لس كرته اولوستله نو د هغه اجر دومره دې. څومره چه د اسماعيل عليه السلام په اولاد كنبې د غلام آزادولو دې

**د حديث د مختلف طرق وضاحت:** امام بخارى رحمه الله د حديث مختلف طرق موصولا او تعليقا بيان كړل.

① اول طرق دا دې: عبدالله بن محمد، عبدالملك بن عمرو، عمر بن ابى زائدة، ابو اسحاق، عمرو بن ميمون، د عمر بن ابى زائده نوم خالد يا ميسره دې او دا د مشهور محدث زكريا بن ابى زائده رور دې. او د ابو اسحاق نه عمرو بن عبدالله السبيعى مرا دې. دا په صغار تابعينو كنبې دې او د هغوى شيخ عمرو بن ميمون، په كبار تابعينو كنبې دې. [۱]

② دويم طريق دا دې ﴿عبدالله بن محمد، عبدالملك بن عمرو، عمر بن ابى زائدة، عبدالله بن ابى السفر، شعبى، ربيع بن خثيم﴾

[۱] عمدة القارى ۲۳/۳۴، ۳۵

حاصل دا دي چه د عمر بن ابى زائده دوه شيوخ دى. يو ابو اسحاق. د هغوى نه اول طريق دې او هغه موقوف دې. دويم عبدالله بن ابى السفر. د هغوى دويم طريق دې او هغه مرفوع دې. چونكه په دې طريق كښې ورانديې دى ﴿ فَقُلْتُ مِمَّنْ سَمِعْتَهُ فَقَالَ مِنْ أَبِي أَيُّوبَ الأَنْصَارِيِّ يُحَدِّثُهُ، عَنِ النَّبِيِّ صلى الله عليه وسلم وَقَالَ إِبْرَاهِيمُ بْنُ يُوسُفَ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ، حَدَّثَنِي عَمْرُو بْنُ مَيْمُونٍ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ أَبِي لَيْلَى، عَنْ أَبِي أَيُّوبَ قَوْلَهُ، عَنِ النَّبِيِّ صلى الله عليه وسلم ﴾
په دې كښې د ربيع بن خثيم شاګرد شعبى عامر بن شراحيل د خپل استاذ نه حديث اوريدلو نه پس تحقيق اوكړو چه تاسو دا حديث د چا نه اوريدلې دې. نو هغوى د عمرو بن ميمون حواله وركړه. ... چه هغوى ته لاړو نو هغوى د عبدالرحمن بن ابى ليلى حواله وركړه نو دوى هلته اورسيدل. پس هغوى د سيدنا ابو ايوب انصارى رضي الله عنه مرفوعا دا حديث بيان كړو. دغه شان په تحقيق كولو باندې ئې دا حديث د عبدالرحمن بن ابى ليلى په واسطه د ابو ايوب انصارى رضي الله عنه نه مرفوعا حاصل كړو.

③ ﴿ وَقَالَ إِبْرَاهِيمُ بْنُ يُوسُفَ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ، حَدَّثَنِي عَمْرُو بْنُ مَيْمُونٍ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ أَبِي لَيْلَى، عَنْ أَبِي أَيُّوبَ قَوْلَهُ، عَنِ النَّبِيِّ صلى الله عليه وسلم ﴾

دا دريم طريق دې او دا هم مرفوع دې. اول طريق موقوف وو. په هغې كښې ﴿ ابى اسحاق عن عمرو بن ميمون ﴾ عنعنه وه او په دې دريم طريق كښې ﴿ حدثنى عمرو بن ميمون ﴾ په الفاظو سره د تحديث تصريح ده.[1]

④ ﴿ وَقَالَ مُوسَى، حَدَّثَنَا وُهَيْبٌ عَنْ دَاوُدَ، عَنْ عَامِرٍ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ أَبِي لَيْلَى، عَنْ أَبِي أَيُّوبَ، عَنِ النَّبِيِّ صلى الله عليه وسلم ﴾

دا څلورم طريق هم مرفوع دې. موسى بن اسماعيل. د امام بخارى رحمه الله شيخ دې. د وهيب بن خالد شيخ داؤد بن ابى هند دې. او د هغوى شيخ عامر شعبى رحمه الله دې. دا امام بخارى رحمه الله په طور د تعليق ذكر كړې دې. دا تعليق ابوبكر بن ابى خيثمه په خپل تاريخ كښې ذكر كړې دې.[2] په دې طريق كښې د عامر شعبى او د عبدالرحمن بن ابى ليلى ترمينځه د باقى واسطو ذكر نشته. لكه چه په بل طريق كښې دى.

⑤ ﴿ وَقَالَ إِسْمَاعِيلُ، عَنِ الشَّعْبِيِّ، عَنِ الرَّبِيعِ ﴾
دا پنځم طريق هم موقوف دې. حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى چه د ابن المبارك په زيادات الزهد كښې دا طريق موصولا او مرفوعا واقع دې، د امام بخارى رحمه الله مقصد هم دې طريق طرف ته اشاره كول دى.[3]

---

[1] فتح البارى : ٢٤٣/١١
[2] عمدة القارى : ٣٦/٢٣
[3] فتح البارى : ٢٤٣/١١، ٢٤٤

⑥ ﴿ وَقَالَ آدَمُ، حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْمَلِكِ بْنُ مَيْسَرَةَ سَمِعْتُ هِلَالَ بْنَ يَسَافٍ، عَنِ الرَّبِيعِ بْنِ خُثَيْمٍ وَعَمْرِو بْنِ مَيْمُونٍ، عَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ قَوْلَهُ ﴾
دا شپږ طريق دی. آدم بن اياس، د امام بخاری رحمه الله شيخ دی، خو دلته ئې دا تعليقا ذکر کړې دی. په سنن دارقطنی کښې دا موصولا واقع دی [1]، په دې طريق کښې دا حديث: عبدالله بن مسعود رضی الله عنه موقوفا روايت شوی دې. او د ربيع او عمر دواړو شيخ سيدنا عبدالله بن مسعود رضی الله عنه دی.

⑦ ﴿ وَقَالَ الأَعْمَشُ وَحُصَيْنٌ عَنْ هِلَالٍ، عَنِ الرَّبِيعِ، عَنْ عَبْدِ اللهِ قَوْلَهُ ﴾
د اعمش نوم سليمان بن مهران دی. امام نسائی رحمه الله دا تعليق موصولا نقل کړې دی [2] او په دې طريق کښې دا حديث مرفوع نه دی، بلکه موقوف دې، يعنی د عبدالله بن مسعود رضی الله عنه د قول په طور دا پيش کړې شو او د رسول الله صلی الله عليه وسلم طرف ته د دې نسبت اونکړې شو.

⑧ ﴿ وَرَوَاهُ أَبُو مُحَمَّدٍ الْحَضْرَمِيُّ، عَنْ أَبِي أَيُّوبَ، عَنِ النَّبِيِّ صلى الله عليه وسلم كَانَ كَمَنْ أَعْتَقَ رَقَبَةً مِنْ وَلَدِ إِسْمَاعِيلَ ﴾
ابو محمد خضرمی. د سيدنا ابو ايوب انصاری رضی الله عنه خادم خاص وو. د هغوی نوم نه دې معلوم شوې. علامه مزی د هغوی نوم افح ليکلې دې [3]، په صحيح بخاری کښې د دې تعليق نه علاوه د هغوی بل روايت نشته [4].
امام احمد رحمه الله دا تعليق موصولا نقل کړې دی [5].

﴿ قال ابوعبدالله : والصحيح قول عمرو، قال الحافظ ابوذر الهروی : صوابه عمر، وهوابن ابی زائدة، قلت : وعلى الصواب ذكره ابوعبدالله فی الاصل كماتراه، لاعمرو ﴾

امام بخاری رحمه الله فرمائی : ﴿ والصحيح قول عمرو ﴾ يعنی د عمرو قول او د هغوی روايت صحيح دې. حافظ ابوذر تصحيح کولو سره اوفرمائيل چه د عمرو په ځائې عمر لفظ صحيح دې او د هغه نه مراد عمر بن ابی زائده دې. پس امام بخاری رحمه الله په اصل نسخه کښې خپله روستو تصحيح کړې ده. پس : ﴿ والصحيح قول عمر ﴾ الفاظ کيدل پکار دی، د امام بخاری رحمه الله مقصد دا دې چه د ابن ابی زائده روايت صحيح دې.
عمر بن ابی زائده. د ابواسحاق السبيعی شاګرد دې، د ابو اسحاق نه نور هم ډير حضرات دا روايت نقل کوی او د هغوی نور هم ډير شاګردان دی، امام بخاری رحمه الله په هغوی کښې د عمر

[1] ) فتح البارى : ۲٤٤/۱۱
[2] ) ارشاد السارى : ٤٠٠/۱۳
[3] ) فتح البارى : ۲٤٥/۱۱
[4] ) فتح البارى : ۲٤٥/۱۱
[5] ) ارشاد السارى : ٤٠۱/۱۳

بن ابي زائدة روايت ته ترجيح ورکول غواړي. کوم چه امام بخاري رحمه الله دلته په اول طريق کښې ذکر کړې دې.

## ۶۵: باب فَضْلِ التَّسْبِيحِ

[۲۰۴۲] حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مَسْلَمَةَ عَنْ مَالِكٍ عَنْ سُمَيٍّ عَنْ أَبِي صَالِحٍ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ - رضي الله عنه - أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - قَالَ «مَنْ قَالَ سُبْحَانَ اللَّهِ وَبِحَمْدِهِ. فِي يَوْمٍ مِائَةَ مَرَّةٍ حُطَّتْ خَطَايَاهُ، وَإِنْ كَانَتْ مِثْلَ زَبَدِ الْبَحْرِ».

د سيدنا ابوهريره رضي الله عنه نه روايت دې چه رسول الله ﷺ اوفرمائيل: کوم سړې چه (سبحان الله وبحمده) سل کرته اووائي نو د هغه گناهونه معاف کولې شي. اګر چه هغه د سمندر د زګ برابر وي.

**د تسبيح معنی:** د تسبيح معنی ده: د الله پاک پاکي بيانول. يعنی کوم څيزونه چه د الله پاک شايان شان نه دی د هغې نه د الله پاک تنزيه او پاکي بيانولو ته تسبيح وائي.

**تسبيح افضل دې يا تهليل؟:** دلته د باب په اول روايت کښې دی چه (سبحان الله وبحمده) کوم انسان د ورځې سل کرت اووائي نو د هغه به ټول گناهونه معاف کولې شي. اګر چه د سمندر د ځک برابر وي، د دې نه معلوميږي چه د تهليل په مقابله کښې تسبيح افضل ده.

خو حقيقت دا دې چه تهليل يعنی (لا اله الا الله) وئيل زيات افضل دی. يو خو په دې وجه چه په حديث کښې ورته (افضل الذکر) وئيلې شوې دې، دويم دا هغه په عقيده د توحيد کښې صريح دې (۱) بلکه دا چه په تهليل کښې د (عتق رقاب) اجر دې او په حديث کښې راځی چه څا رقبة ازاد کړو د هغه د هر اندام په عوض کښې به د آزادونکی هر اندام د جهنم نه آزادولې شي. نو دا د جهنم نه د مکمل خلاصئ او آزادئ ذريعه ده. نور فضائل او اجرئې د دې نه علاوه دی. (۲)

[۲۰۴۳] حَدَّثَنَا زُهَيْرُ بْنُ حَرْبٍ حَدَّثَنَا ابْنُ فُضَيْلٍ عَنْ عُمَارَةَ عَنْ أَبِي زُرْعَةَ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صلى الله عليه وسلم قَالَ «كَلِمَتَانِ خَفِيفَتَانِ عَلَى اللِّسَانِ ثَقِيلَتَانِ فِي الْمِيزَانِ، حَبِيبَتَانِ إِلَى الرَّحْمَنِ، سُبْحَانَ اللَّهِ الْعَظِيمِ، سُبْحَانَ اللَّهِ وَبِحَمْدِهِ» [۶۴۰۴، ۷۱۲۴، ۷۱۲۴]

سيدنا ابوهريره رضي الله عنه د رسول الله ﷺ نه روايت کوی چه هغوی اوفرمائيل: دوه کلمې داسې دی چه په ژبه باندې سپکې دی خو په ميزان کښې وزنی دی. او الله پاک ته محبوبې دی. هغه دا دی. (سُبْحَانَ اللهِ وَبِحَمْدِهِ سُبْحَانَ اللهِ الْعَظِيمِ)

---

(۱) ارشاد الساری ۴۰۲/۱۳

(۲) فتح الباری: ۲۴۸/۱۱

امام بخاری رحمه الله دا متن په صحیح بخاری کښې درې ځایه ذکر کړې دې. یو دلته. بله ځای اندې په کتاب الایمان والنذور کښې او دریم دریم د صحیح بخاری د ټولو نه د آخری حدیث په طور. هم هلته به د دې تفصیلي بحث راځي انشاء الله!

## ۶۶: باب فَضْلِ ذِكْرِ اللّٰهِ عَزَّوَجَلَّ

**د ذکر فضیلت**: په دې باب کښې امام بخاری رحمه الله د ذکر فضیلت بیان فرمائیلې دې. په ذکر کښې هغه ټولې دعاګانې او مناجات داخل دی کوم چه د الله پاک په مبارکو نومونو باندې مشتمل دی. استغفار، تعوذ، علمي مذاکره او د قرآن کریم تلاوت په ذکر الله کښې داخل دی. بلکه د قرآن کریم تلاوت خو د عام اذکار او وظائف په مقابله کښې ډیر اعلی او افضل دې. (۱)

**د ذکر غوره صورت**: د ذکر د ټولو نه غوره او کامل صورت دا دې چه انسان د کومو دعاګانو او اذکارو الفاظ لولي. په زړه اودماغ کښې ئې دهغې د معانی استحضار وی. د استحضار قلبي نه بغیر په ذکرلساني باندې هم اجر اوثواب دې. خو غوره داده چه زړه ئې هم د ذکر سره مشغول وی.

علامه قرطبی رحمه الله فرمائی:

﴿ والصل الذکر التذکر بالقلب ..... ثم یطلق علی الذکر اللسانی من باب تسمیة الدال باسم المدلول، ثم کثر استعماله فیه، حتی صار هو السابق للفهم، واصله مع الحضور والمشاهدة ﴾ (۲)

یعنی: اصل ذکر خو په زړه سره یادولو ته وائی خو بیا د ژبې په ذکر باندې هم د دې اطلاق شروع شو. دا د تسمیة الدال باسم المدلول د قبیلې نه دې او هم په دې دویمه معنی کښې د دې استعمال په کثرت سره شروع شو، تردې چه اوس د ذکر نه هم دا معنی فهم ته راځي، خو اصل ذکر د زړه په حضور او مشاهدې سره وی.

حافظ ابن حجر رحمه الله د بعض عارفینو په حوالې سره د ذکر اووهٔ قسمونه لیکلې دی:

﴿ ذکر العینین بالبکاء وذکر الأذنین بالاصغاء وذکر اللسان بالثناء وذکر الیدین بالعطاء وذکر البدن بالوفاء وذکر القلب بالخوف والرجاء وذکر الروح بالتسلیم والرضاء ﴾ (۳)

یعنی: د سترګو ذکر په ژړا سره. د غوږونو ذکر په توجه سره د حق خبرې اوریدل. د ژبې په حمد او ثناء سره. د لاسو د الله پاک په لاره کښې ورکړې سره. د بدن د الله پاک د احکامو په پوره کولو سره، د زړه په خوف او رجاء سره او د روح په تسلیم او رضاء سره.

---

(۱) ارشاد الساری: ۴۰۳/۱۳

(۲) شرح الابی علی صحیح مسلم ۱۱۱/۷

(۳) فتح الباری: ۲۵۱/۱۱

[۶۰۴۴] حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْعَلَاءِ حَدَّثَنَا أَبُو أُسَامَةَ عَنْ بُرَيْدِ بْنِ عَبْدِ اللهِ عَنْ أَبِي بُرْدَةَ عَنْ أَبِي مُوسَى - رضي الله عنه - قَالَ قَالَ النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - «مَثَلُ الَّذِي يَذْكُرُ رَبَّهُ وَالَّذِي لَا يَذْكُرُ مَثَلُ الْحَيِّ وَالْمَيِّتِ».

د سیدنا ابو موسی اشعري رضی الله عنه نه روایت دې چه رسول الله ﷺ اوفرمائیل کوم سړې چه خپل رب لره یادوی او کوم چه ئې نه یادوی د هغوی مثال د ژوندی او د مړی دې یعنی یادونکی ژوندې او نه یادونکې مړ دې.

په سند کښې د ابو اسامه نوم حماد بن سلمه دې. او د ابوبرده نوم عامر بن عبدالله بن قیس دې. په حدیث کښې ئې د ذاکر تشبیه د ژوندی سره او د محروم عن الذکر تشبیه د مړی سره ورکړې ده. علامه قسطلانی رحمه الله لیکی:

(شبه الذاکر بالحی الذی یزین ظاهره بنور الحیاة وإشراقها فیه وبالتصرف التام فیما یرید ه وباطنه بنور العلم والفهم والإدراك كذلك الذاكر مزين ظاهره بنور العلم والطاعة وباطنه بنور العلم والمعرفة فقلبه مستقر فی حظيرة القدس وسره فی مخدع الوصل وغیر الذاکر عاطل ظاهره وباطل باطنه) [۱]

یعنی: په حدیث کښې ذکر کونکی ته د ژوندی سره تشبیه ورکړې شوې ده. په داسې طریقه چه څنګه د ژوندی سړی ظاهر د ژوند په نور سره مزین وی او هغه د هغې په بنیاد باندې په خپله مرضئ سره هر قسم تصرف کولې شی. بلکه دا چه د هغه باطن هم علم. فهم او ادراک باندې ډولی وی. هم دغه د ذکر کونکی ظاهر هم د علم او اطاعت رب العالمین په جذبې باندې ډولی وی او د هغه باطن هم د علم او معرفت په نور سره روښانه او مزین وی. پس د هغه زړه د قدس په چراګاه کښې څریږی او د وصال د پاره بې قراره وی. او د غیر ذاکر ظاهر بې کار او معطل او باطن ئې خراب او باطل وی

امام مسلم رحمه الله دا حدیث د امام بخاری رحمه الله د شیخ ابو کریب محمد بن العلاء نه. هم په دې سند سره نقل کړې دې. په هغې کښې دا الفاظ دی:

(مَثَلُ الْبَيْتِ الَّذِي يُذْكَرُ اللهُ فِيهِ وَالْبَيْتِ الَّذِي لَا يُذْكَرُ اللهُ فِيهِ مَثَلُ الْحَيِّ وَالْمَيِّتِ) [۲]

یعنی: په کوم کور کښې چه د الله پاک ذکر کولې شی د هغې مثال د ژوندی دې او په کوم کور کښې چه د الله پاک ذکر نه شی کولې د هغې مثال د مړی دې.

امام بخاری رحمه الله دا روایت غالبا بالمعنی ذکر کړې دې. ځکه چه د حی او میت اطلاق په بیت او مسکن باندې حقیقتا نه کیږی. بلکه په بیت کښې اوسیدونکی باندې کیدې شی. د بلاغت او معانی په اصطلاح کښې دې ته ذکر المحل او ارادة المحل وئیلې شی. [۳]

---

[۱] ) ارشاد الساری: ۱۳/ ٤٠٤

[۲] ) الصحیح لمسلم، کتاب صلاة المسافرین، باب استحباب صلاة النافلة فی بیته، وجوازها فی المسجد، رقم الحدیث: ۲۱۱: ۱/ ۵۳۹

[۳] ) ارشاد الساری ۱۳/ ٤٠٤

[۶۰۴۵] حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ حَدَّثَنَا جَرِيرٌ عَنِ الأَعْمَشِ عَنْ أَبِي صَالِحٍ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - « إِنَّ لِلَّهِ مَلاَئِكَةً يَطُوفُونَ فِي الطُّرُقِ، يَلْتَمِسُونَ أَهْلَ الذِّكْرِ، فَإِذَا وَجَدُوا قَوْمًا يَذْكُرُونَ اللَّهَ تَنَادَوْا هَلُمُّوا إِلَى حَاجَتِكُمْ. قَالَ فَيَحُفُّونَهُمْ بِأَجْنِحَتِهِمْ إِلَى السَّمَاءِ الدُّنْيَا. قَالَ فَيَسْأَلُهُمْ رَبُّهُمْ وَهْوَ أَعْلَمُ مِنْهُمْ مَا يَقُولُ عِبَادِي قَالُوا يَقُولُونَ يُسَبِّحُونَكَ، وَيُكَبِّرُونَكَ، وَيَحْمَدُونَكَ وَيُمَجِّدُونَكَ.
قَالَ فَيَقُولُ هَلْ رَأَوْنِي قَالَ فَيَقُولُونَ لاَ وَاللَّهِ مَا رَأَوْكَ. قَالَ فَيَقُولُ وَكَيْفَ لَوْ رَأَوْنِي قَالَ يَقُولُونَ لَوْ رَأَوْكَ كَانُوا أَشَدَّ لَكَ عِبَادَةً، وَأَشَدَّ لَكَ تَمْجِيدًا، وَأَكْثَرَ لَكَ تَسْبِيحًا. قَالَ يَقُولُ فَمَا يَسْأَلُونِي قَالَ يَسْأَلُونَكَ الْجَنَّةَ. قَالَ يَقُولُ وَهَلْ رَأَوْهَا قَالَ يَقُولُونَ لاَ وَاللَّهِ يَا رَبِّ مَا رَأَوْهَا. قَالَ يَقُولُ فَكَيْفَ لَوْ أَنَّهُمْ رَأَوْهَا قَالَ يَقُولُونَ لَوْ أَنَّهُمْ رَأَوْهَا كَانُوا أَشَدَّ عَلَيْهَا حِرْصًا، وَأَشَدَّ لَهَا طَلَبًا، وَأَعْظَمَ فِيهَا رَغْبَةً. قَالَ فَمِمَّ يَتَعَوَّذُونَ قَالَ يَقُولُونَ مِنَ النَّارِ. قَالَ يَقُولُ وَهَلْ رَأَوْهَا قَالَ يَقُولُونَ لاَ وَاللَّهِ مَا رَأَوْهَا. قَالَ يَقُولُ فَكَيْفَ لَوْ رَأَوْهَا قَالَ يَقُولُونَ لَوْ رَأَوْهَا كَانُوا أَشَدَّ مِنْهَا فِرَارًا، وَأَشَدَّ لَهَا مَخَافَةً. قَالَ فَيَقُولُ فَأُشْهِدُكُمْ أَنِّي قَدْ غَفَرْتُ لَهُمْ. قَالَ يَقُولُ مَلَكٌ مِنَ الْمَلاَئِكَةِ فِيهِمْ فُلاَنٌ لَيْسَ مِنْهُمْ إِنَّمَا جَاءَ لِحَاجَةٍ. قَالَ هُمُ الْجُلَسَاءُ لاَ يَشْقَى بِهِمْ جَلِيسُهُمْ ». رَوَاهُ شُعْبَةُ عَنِ الأَعْمَشِ وَلَمْ يَرْفَعْهُ. وَرَوَاهُ سُهَيْلٌ عَنْ أَبِيهِ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صلى الله عليه وسلم -.

د سیدنا ابوهریره رضی الله عنه نه روایت دي چه رسول الله ﷺ اوفرمائیل د الله پاک څو فرشتې دی کومې چه په لارو کښې ګرځي او ذکر کونکی لټوی چه کله هغوی یو قوم په ذکر الهی کښې مشغول بیا مومی نو یو بل ته آوازونه کوی. د خپل ضرورت طرف ته راشئ. رسول الله ﷺ اوفرمائیل چه هغه ملائک هغوی په خپلو وزرو سره ګیر کړی او د دنیا آسمان طرف ته اوخیژی. رسول الله ﷺ اوفرمائیل د هغوی نه دهغوی رب تپوس کوی چه زما بندګان څه کوی. حال دا چه هغه هغوی د فرشتو نه ښه پیژنی. فرشتې ورته جواب ورکوی چه هغوی ستا تسبیح، تکبیر. حمد او لوئی بیانوی رسول الله ﷺ فرمائی چه الله پاک ورته فرمائی چه هغوی زه لیدلې یم؟ فرشتې وائی : قسم په الله ! هغوی ته نه ئې لیدلې! رسول الله ﷺ اوفرمائیل : الله فرمائی : که هغوی زه لیدلې وې نو څه به ئې کول؟ فرشتې وائی چه که ته ئې لیدلې وې نو ستا به ئې ډیر عبادت کولې او ډیره لوئې او پاکی به ئې بیانولې. رسول الله ﷺ اوفرمائیل : الله پاک ورته فرمائی : هغوی زما نه څه سوال کوی. فرشتې ورته وائی : هغوی ستاسو نه د جنت سوال کوی. رسول الله ﷺ اوفرمائیل : الله پاک د هغوی نه تپوس کوی : هغوی جنت لیدلې دې؟ فرشتې وائی : نه قسم په الله هغوی جنت نه دې لیدلې. الله پاک ورته فرمائی چه که هغوی جنت لیدلې وې نو څه به ئې کول. فرشتې وائی چه که هغوی هغه لیدلې وې نو ډیر زیات به حریص وو او ډیر زیات به طالبان وو او د هغې طرف ته به د هغوی رغبت نور هم زیات وې. الله پاک فرمائی چه د کوم څیز نه هغوی پناه غواړی. فرشتې

وائی د جهنم نه. رسول الله ﷺ اوفرمائیل: الله پاک فرمائی چه هغوی جهنم لیدلی دې؟ فرښتې جواب ورکوی نه؛ قسم په الله هغوی جهنم نه دې لیدلې. الله پاک فرمائی: که دوی جهنم لیدلې وې نو څه به ئې کول؟ فرښتې وائی: چه که دوی هغه لیدلې وې نو د هغې نه به ډیر زیات لرې تختیدل او ډیر زیات به ویریدل. رسول الله ﷺ اوفرمائیل: الله پاک فرمائی چه زه تاسو ګواه کوم چه ما هغوی اوبخښل. رسول الله ﷺ فرمائی چه په هغه فرښتو کښې یو فرښته وائی چه په هغوی کښې فلانې سړې د هغه ذکر کونکو نه، نه وو. بلکه د څه ضرورت دپاره راغلې وو. الله پاک فرمائی چه دا داسې خلق دی چه هغوی سره ناسته کونکې محروم نه پاتې کیږی.

په سند کښې د امام بخاری رحمه الله شیخ الشیخ جریر بن عبد الحمید دې. د هغوی شیخ سلیمان اعمش دې او هغوی د ابوصالح ذکوان نه نقل کوی

**قوله:** ﴿قَالَ هُمُ الْجُلَسَاءُ لَا يَشْقَى بِهِمْ جَلِيسُهُمْ﴾: یعنی دا داسې خلق دی چه هغوی سره ناسته کونکې محروم نه پاتې کیږی. اګر چه هغه په هر مقصد او غرض سره ناسته کونکې وی. د دې نه د الله والو د صحبت د قدر وقیمت اندازه لګولې کیدې شی

**قوله:** ﴿رَوَاهُ شُعْبَةُ، عَنِ الْأَعْمَشِ وَلَمْ يَرْفَعْهُ﴾: یعنی هم په دې سند سره دا روایت د شعبه بن الحجاج د سلیمان بن مهران اعمش نه نقل کړې دې. خو هغه روایت مرفوع نه دې. امام احمد رحمه الله هغه موقوف روایت موصولا نقل کړې دې (۱)

**قوله:** ﴿وَرَوَاهُ سُهَيْلٌ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صلى الله عليه وسلم﴾: سهیل هم دا روایت د خپل پلار ابو صالح سمان نه مرفوعا نقل کړې دې د هغوی روایت امام مسلم رحمه الله موصولا ذکر کړې دې. (۲)

## ۶۷: باب قَوْلِ لَا حَوْلَ وَلَا قُوَّةَ إِلَّا بِاللَّهِ

[۶۰۴۶] حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ مُقَاتِلٍ أَبُو الْحَسَنِ أَخْبَرَنَا عَبْدُ اللَّهِ أَخْبَرَنَا سُلَيْمَانُ التَّيْمِيُّ عَنْ أَبِي عُثْمَانَ عَنْ أَبِي مُوسَى الْأَشْعَرِيِّ قَالَ أَخَذَ النَّبِيُّ -صلى الله عليه وسلم- فِي عَقَبَةٍ -أَوْ قَالَ فِي ثَنِيَّةٍ، قَالَ- فَلَمَّا عَلَا عَلَيْهَا رَجُلٌ نَادَى فَرَفَعَ صَوْتَهُ لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ وَاللَّهُ أَكْبَرُ. قَالَ وَرَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- عَلَى بَغْلَتِهِ قَالَ «فَإِنَّكُمْ لَا تَدْعُونَ أَصَمَّ وَلَا غَائِبًا». ثُمَّ قَالَ «يَا أَبَا مُوسَى -أَوْ يَا عَبْدَ اللَّهِ أَلَا أَدُلُّكَ عَلَى كَلِمَةٍ مِنْ كَنْزِ الْجَنَّةِ». قُلْتُ بَلَى. قَالَ «لَا حَوْلَ وَلَا قُوَّةَ إِلَّا بِاللَّهِ»_[ر: ۲۸۳۰]

د سیدنا ابو موسی اشعری رضی الله عنه نه روایت دې چه رسول الله ﷺ یو غونډۍ نه ختلو هغوی دې

---

(۱) ارشاد الساری ۴۰۶/۱۳

(۲) فتح الباری ۲۵۳/۱۱

وخت کښې په يو خچر باندې سور وو. چه کله يو سرې په دې غونډۍ باندې اوختلو نو هغه په اوچت آواز باندې اوويئيل ﴿لا اله الا الله الله اكبر﴾، رسول الله ﷺ اوفرمائيل تاسو يو کونړ او غائب لره نه رابلئ. بيا ئې اوفرمائيل : اې ابو موسى! يا ئې اوفرمائيل اې عبد الله: آيا زه تا ته يو داسې کلمه بيان نه کړم چه د جنت خزانه ده. نو ما اووې ولې نه! وې فرمائيل ﴿لا حول ولا قوة الا بالله﴾

**د ﴿لا حول ولا قوة الا بالله﴾ فضيلت :** د ﴿لاحول ولا قوة الا بالله﴾ ډير فضائل او برکتونه دى. دلته په دې روايت کښې دې ته د جنت د خزانې ورد وئيلې شوې دې.

په يو بل روايت کښې دى چه ﴿لاحول ولا قوة الا بالله﴾ کښې د يو کم سل بيمارئيانو شفاء ده. چه په هغې کښې د ټولو نه وړه بيمارى هم دې.[1] هم او غم پريشانئ ته وائى. د ﴿لاحول ولا قوة الا بالله﴾ ترجمه داسې کړې شوې ده : ﴿لاحيلة فى دفع شر، ولا قوة فى تحصيل خير الا بالله﴾[2] يعنى د الله پاک د مدد نه بغير نه خو د شر په دفع کولو کښې څه حيله په کار راتلې شى او نه څوک د نيکئ په حصول باندې قادر کيدې شى.

## ٦٨: بَاب لِلَّهِ مِائَةُ اسْمٍ غَيْرَ وَاحِدٍ

[٦٠٤٧] حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ قَالَ حَفِظْنَاهُ مِنْ أَبِي الزِّنَادِ عَنِ الأَعْرَجِ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رِوَايَةً قَالَ «لِلَّهِ تِسْعَةٌ وَتِسْعُونَ اسْمًا، مِائَةٌ إِلاَّ وَاحِدًا، لاَ يَحْفَظُهَا أَحَدٌ إِلاَّ دَخَلَ الْجَنَّةَ، وَهُوَ وَتْرٌ يُحِبُّ الْوَتْرَ». [ر: ٢٥٨٥]

د سيدنا ابوهريره رضی الله عنه نه روايت دې چه د الله يو کم سل نومونه دى. هغه چه کوم انسان په يادو باندې ياد کړى هغه به جنت ته داخليږى او الله پاک وتر (طاق) دې او وتر خوښوى.
سفيان بن عيينه وائى چه دا حديث مونږ د ابوالزناد (عبدالله بن ذکوان) نه حفظ کړو. هغوى د اعرج نه نقل کوى. د اعرج نوم عبدالرحمن بن هرمز دې. د الله پاک د اسماء حسنى په باره کښې څه خبرې ذهن کښې اوساتئ.

### د اسماء حسنى متعلق څو خبرې

**اسماء حسنى توقيفى دى :** ① اوله خبره دا ده چه د الله پاک ډير ښه او عمده مبارک نومونه دى. د بعض حضراتو په نزد دا نومونه توقيفى نه دى خو د جمهور علماء کرامو په نزد اسماء حسنى توقيفى دى. د توقيفى معنى دا ده. د قرآن او حديث د نص صريح نه بغير يو لفظ او وصف ته د الله پاک نوم نه شى وئيلې کيدې. پس علامه قشيرى رحمه الله په خپل کتاب

[1] مشكاة المصابيح، كتاب الدعوات، باب ثواب التسبيح والتمجيد، والتهليل والتكبير، (رقم الحديث : ۲۳۲۰) : ٤٣٤/١ كما اخرجه فى كنزل العمال : ٤٥٤/١، رقم الحديث : ١٩٥٦(اسناده ضعيف)
[2] عمدة القارى ١٩/٢٣

مفاتیح الحجج ومصابیح النهج کښې لیکې

﴿ اسماء الله تعالی تؤخذ توقیفا، ویراعی فیها الکتاب والسنة والاجماع، فکل اسم ورد فی هذه الاصول، وجب اطلاقه فی وصفه تعالی، ومالم یرد فیها، لایجوز اطلاقه فی وصفه، وان یصح معناه ﴾ [۱]

یعنی د الله پاک نومونه منصوص او توقیفی دی. او په دې کښې به صرف د قرآن کریم. سنت نبوی او اجماع لحاظ ساتلې شي. پس که په دې درې اصولو باندې یو نوم راغلو نو په الله پاک باندې به د وصف په طور د هغې اطلاق صحیح وی. او کوم نوم او وصف چه په دې درې اوصولو باندې نه وی راغلې. نو د الله پاک په اوصاف کښې د هغې استعمال جائز نه دې اګر چه معنی ئې صحیح وی

پس په نصوص کښې چه کوم اوصاف د الله پاک د نوم په طور ثابت نه دی په هغې سره الله پاک لره رابلل مناسب نه دې پس یا رحیم وئیلې شو خو یا رفیق نه: یا قوی وئیلې شو خو یا جلید وئیل صحیح نه دی. [۲] علامه قرطبی رحمه الله په تفسیر قرطبی کښې لیکی

﴿ وهی بتوقیف لایصح وضع اسم الله بنظر، الابتوقیف القرآن او الحدیث او الاجماع ﴾ [۳]

یعنی : د الله پاک نومونه توقیفی دی. قیاس او نظر او فکر کولو سره په الله پاک باندې د یو نوم اطلاق کول صحیح نه دی. سوا د هغه نومونو نه کوم چه په قرآن کریم او احادیث نبوی کښې راغلی دی. یا په هغې باندې د امت اجماع وی.

حاصل دا چه اسماء حسنی توقیفی دی. د خپل طرف نه د الله پاک په نومونو او اسماء کښې اضافه نه شی کیدلې [۴]

**د اسماء حسنی تعداد :** ② دویمه خبره دا ده چه اسماء حسنی څومره دی؟ په دې حدیث کښې دی چه د الله پاک یو کم سل نومونه دی. علامه ابن حزم رحمه الله فرمائی دا عدد د حصر دپاره دې او د الله پاک صرف نهه نوی نومونه دی. د دې نه زیات نه دی. [۵]

خو جمهور علماء فرمائی چه د الله پاک نومونه د یو کم سل په عدد کښې منحصر نه دی. بلکه د دې نه زیات دی. چونکه په دې نومونو کښې اکثر د الله پاک اوصاف دی. او د الله پاک اوصاف بیشماره دی. په دې وجه د الله پاک مبارک نومونه په یو خاص عدد کښې نه شی منحصر کیدلې. پس بعض علماء کرامو زر او بعض څلور زره پورې اسماء حسنی د قرآن او حدیث د نصوص نه جمع کړې دی [۶]

---

[۱]) ارشاد الساری ۱۳/٤۰۹
[۲]) ارشاد الساری ۱۳/٤۰۹
[۳]) تفسیر القرطبی : ۱۰/۳٤۳
[٤]) فتح الباری : ۱۱/۲٦٤
[۵]) فتح الباری : ۱۱/۲٦٤
[٦]) فتح الباری : ۱۱/۲٦٤

امام نووی رحمه الله په دې خبره باندې د علماء کرامو اتفاق نقل کړې دې [۱]
د سیدنا عبدالله بن مسعود رضي الله عنه د یو مرفوع روایت نه د دې تائید کیږي. په هغې کښې د رسول الله ﷺ دعائیه الفاظ دي

﴿ أَسْأَلُكَ بِكُلِّ اسْمٍ هُوَلَكَ سَمَّيْتَ بِهِ نَفْسَكَ، أَوْ أَنْزَلْتَهُ فِي كِتَابِكَ، أَوْ عَلَّمْتَهُ أَحَدًا مِنْ خَلْقِكَ، أَوِ اسْتَأْثَرْتَ بِهِ فِي عِلْمِ الْغَيْبِ عِنْدَكَ ﴾ [۲]

یعني زه ستا نه ستا د هر هغه نوم په وسیله باندې سوال کوم کوم چه تا د خان دپاره کیخودلې دې. یا دې په خپل کریم کتاب کښې نازل کړې دې. یا دې په خپل مخلوق کښې چاته ښودلې دې. یا صرف هم تاته د هغې علم دې. او د نورو نه تا هغه پټ ساتلې دې.
هم دغه شان امام مالک رحمه الله د کعب احبار رحمه الله دعا په دې الفاظو سره نقل کړې ده:

﴿ أَسْأَلُكَ بِأَسْمَائِكَ الْحُسْنَى كُلِّهَا مَا عَلِمْتُ مِنْهَا وَمَا لَمْ أَعْلَمْ ﴾ [۳]

یعني زه ستا نه ستا د ښکلې نومونو په وسیله سوال کوم. که ماته معلوم وي او که نه وي.
د دې روایتونو نه صراحة معلومیږي چه د الله پاک اسماء مبارکه په څه خاص عدد کښې منحصر نه دي

**د یو کم سلو د عدد حکمت** ③ دریمه خبره. د حدیث الباب سره متعلق ده چه په هغې کښې د الله پاک د یو کم سل نومونو ذکر دې. لکه چه بیان کړې شوي دي چه دا عدد د حصر دپاره نه دې. بلکه د فضیلت بیانولو دپاره دې چه کوم سړې دا نومونه یاد کړي. هغه به جنت ته داخلیږي. د یو کم سلو دا تعداد او د دې دا فضیلت تعبدي او توقیفي دې. اجتهادي نه دې. لکه چه د مونځونو تعداد تعبدي دې [۴] بعض علماء کرامو په دې کښې حکمت بیانولو سره لیکلې دي:

﴿ الحکمة فیه ان العدد زوج وفرد والفرد أفضل من الزوج ومنتهی الافراد من غیر تکرار تسعة وتسعون لان مائة وواحد ایتکرر فیه الواحد ﴾ [۵]

یعني: د یو کم سلو په عدد کښې حکمت دا دې چه عدد جفت هم وي او طاق هم. او طاق د جفت په مقابله کښې افضل دې. او آخري عدد بغیر د تکرار نه هغه نهه نوي دي (کوم چه طاق دي)، چونکه د هغې نه په روستو عددونو کښې تکرار دې مثلا په یو سل یو کښې یو مکرر دې

---

[۱]) فتح الباری: ۲۶۳/۱۱

[۲]) المستدرک للحاکم. کتاب الدعاء. وعاء دفع الکرب المامور بتعلمه: ۵۰۹/۱. واکمال اکمال المعلم المعروف بشرح الابی علی صحیح مسلم ۱۱۵/۷ .

[۳]) فتح الباری: ۲۶۴/۱۱

[۴]) فتح الباری: ۲۶۵/۱۱

[۵]) فتح الباری: ۲۶۵/۱۱

**نهه نوی اسماء حسنی** ③ اوس دا خبره پاتې کېږي چه د الله پاک د کومو یو کم سل نومونو چه په حدیث کښې ذکر دي. هغه کوم دي؟ عموما په درې روایتونو کښې د اسماء حسنی تعین کړې شوې دې
یو په سنن ترمذی کښې. د ولید بن مسلم روایت، دویم په سنن ابن ماجة کښې د زهیر بن محمد روایت او دریم په مستدرک حاکم کښې د عبدالعزیز بن الحصین روایت [1]
په دې درې روایاتو کښې چه د الله پاک کوم اسماء مبارکه ذکر کړې شوي دي. په هغې کښې څه مشترک او بعض د یو بل نه مختلف دي [2]
اکثر علماء کرامو د سنن ترمذی روایت ته ترجیح ورکړې ده. خو په دې روایت کښې ډېر داسې اسماء مبارکه دي کوم چه په قرآن کریم کښې په طور د اسم نه دي او په قرآن کریم کښې د اسم په طور موندلې کېدونکې ډېر اسماء حسنی په دې روایت کښې نشته [3]
حافظ ابن حجر رحمه الله د سنن ترمذی د روایت نه هغه نومونه خارج کړې دي چه د هغې په قرآن کریم کښې په طور د اسم ذکر نشته او د هغه نومونو اضافه ئې کړې ده کوم چه په قرآن کریم کښې دي خو د سنن ترمذی په روایت کښې نشته او دغه شان هغوی لاندې ذکر شوې نهه نوی نومونه ذکر کړې دي:

﴿ الله الرحمن الرحيم الملك القدوس السلام المؤمن المهيمن العزيز الجبار المتكبر الخالق البارىء المصور الغفار القهار التواب الوهاب الخلاق الرزاق الفتاح العليم الحليم العظيم الواسع الحكيم الحى القيوم السميع البصير اللطيف الخبير العلى الكبير المحيط القدير المولى النصير الكريم الرقيب القريب المجيب الوكيل الحسيب الحفيظ المقيت الودود المجيد الوارث الشهيد الولى الحميد الحق المبين القوى المتين الغنى المالك الشديد القادر المقتدر القاهر الكافى الشاكر المستعان الفاطر البديع الغافر الأول الاخر الظاهر الباطن الكفيل الغالب الحكم العالم الرفيع الحافظ المنتقم القائم المحيى الجامع المليك المتعالى النور الهادى الغفور الشكور العفو الرءوف الاكرم الأعلى البر الحفى الرب الإله الواحد الأحد الصمد ﴾ [4]

**اسم اعظم**: د الله پاک په نومونو کښې یو مبارک نوم داسې دې چه په هغې سره هره دعا اوکړې شی هغه قبلیږی. هغه ته اسم اعظم وائی. خو د هغه نوم تعین نه دې کړې شوې چه هغه کوم نوم دې. خو په احادیث او د علماء کرامو په اقوالو کښې اشارات ملاویږی چه د هغې نه د هغه نومونو څه پته لګیدلې شی. د هغې نه څو اوراد او اسماء حافظ ابن حجر او علامه قسطلانی رحمه الله ذکر کړې دي. علامه قسطلانی رحمه الله لیکی:

[1] الحديث اخرجه الامام الترمذى فى كتاب الدعوات: ۵/۵۳۰، رقم: ۲۵۰۷، واخرجه ابن ماجة فى سننه، كتاب الدعاء، باب اسماء الله عزوجل، رقم الحديث: ۳۸۶۱

[2] فتح البارى ۲۵۷/۱۱

[3] فتح البارى ۲۶۱/۱۱

[4] فتح البارى ۲۶۲/۱۱، ۲۶۳

﴿ واختلفوا فيه فقيل: هو لفظة هو نقله الفخر الرازی عن بعض أهل الكشف، وقيل: الله، وقيل الله الرحمن الرحيم، وقيل الرحمن الرحيم الحی القيوم، وقيل الحی القيوم، وقيل الحنان المنان بديع السماوات، والأرض ذو الجلال والإكرام رآه رجل مكتوبا فی الكواكب فی السماء، وقيل ذو الجلال والإكرام، وقيل الله لا إله إلا هو الأحد الصمد الذی لم يلد ولم يولد ولم يكن له كفوًا أحد، وقيل رب رب، وقيل دعوة ذی النون لا إله إلا أنت سبحانك إنی كنت من الظالمين، وقيل هو الله الله الذی لا إله إلا هو رب العرش العظيم ﴾[1]

ددې نه د يولسو كلماتو په باره كښې وئيلې شوې دی چه په هغې كښې اسم اعظم موندلې شی د دې يولسو نه علاوه لاندې ذكر شوې أسماء او دعاګانو ته هم اسم اعظم وئيلې شی

① ﴿ يا الهنا واله كل شئ الها واحدا لا اله الا انت ﴾[2]

② ﴿ والهكم اله واحد لا اله الا هو الرحمن الرحيم ﴾[3]

③ ﴿ الم الله لا اله الا هو الحی القيوم ﴾[4]

④ د سورة حشر آخری درې آيتونه. د سورة البقرة ايت الكرسی. د سورة آل عمران آيت ﴿ قل اللهم مالك الملك .... ﴾ د سورة طه آيت ﴿ وعنت الوجوه للحی القيوم ﴾ په باره كښې راغلې دی چه په هغې كښې اسم اعظم دې [5]

⑤ ﴿ اللَّهُمَّ إِنِّي أَسْأَلُكَ بِاسْمِكَ الطَّاهِرِ الطَّيِّبِ الْمُبَارَكِ الأَحَبِّ إِلَيْكَ ، الَّذِي إِذَا دُعِيتَ بِهِ أَجَبْتَ ، وَإِذَا سُئِلْتَ بِهِ أَعْطَيْتَ ، وَإِذَا اسْتُرْحِمْتَ بِهِ رَحِمْتَ ، وَإِذَا اسْتُفْرِجْتَ بِهِ فَرَّجْتَ ﴾[6]

يعنی: اې الله! زه ستا نه ستا د هغه نوم په وسيله سوال كوم چه غوره. پاك او مبارك دې. كوم چه تاته زيات محبوب دې. چه د هغې په ذريعه چه كله ستا نه سوال اوكړې شی نو ته ئې قبلوې او د هغې په ذريعه چه كله ستا نه سوال اوكړې شی نو ته وركړه كوې او د كوم په ذريعه چه كله ستا نه د رحم درخواست اوكړې شی نو ته رحم كوې او كله چه د فراخئ درخواست اوكړې شی نو ته فراخی وركوې.

⑥ ﴿ اللهم انی اسالك باسمك الاعظم ورضوانك الاكبر ﴾[7] يعنی: اې الله! زه ستا نه ستا د اسم اعظم او ستا د لوئې رضا په وسيله سوال كوم.

---

[1]) ارشاد السارى : ۱۳/۴۰۱

[2]) الجامع لاحكام القرآن : ۱۸/۱۳۲، سورة النمل

[3]) سنن ابن ماجة. باب اسم الله الاعظم. كتاب الدعاء رقم (۳۸۵۵)

[4]) سنن ابن ماجة. باب اسم الله الاعظم. كتاب الدعاء رقم (۳۸۵۵)

[5]) اوګورئ. سنن ابن ماجة . كتاب الدعاء ۲/۱۶۶۷

[6]) سنن ابن ماجة. كتاب الدعاء. باب اسم الله الاعظم. رقم ۳۸۵۹

[7]) رواه الطبرانی فی المعجم الكبير. رقم الحديث : ۲۹۵۹

⑤ ﴿اللّٰهُمَّ إِنِّي عَبْدُكَ، ابْنُ عَبْدِكَ، ابْنُ أَمَتِكَ، نَاصِيَتِي بِيَدِكَ، مَاضٍ فِيَّ حُكْمُكَ، عَدْلٌ فِيَّ قَضَاؤُكَ، أَسْأَلُكَ بِكُلِّ اسْمٍ هُوَ لَكَ سَمَّيْتَ بِهِ نَفْسَكَ، أَوْ عَلَّمْتَهُ أَحَدًا مِنْ خَلْقِكَ، أَوْ أَنْزَلْتَهُ فِي كِتَابِكَ، أَوِ اسْتَأْثَرْتَ بِهِ فِي عِلْمِ الْغَيْبِ عِنْدَكَ، أَنْ تَجْعَلَ الْقُرْآنَ رَبِيعَ قَلْبِي، وَنُورَ صَدْرِي، وَجِلَاءَ حُزْنِي، وَذَهَابَ غَمِّي وَهَمِّي﴾ [1]

یعنی: اي الله! زه ستا بنده یم. ستا د بنده او ستا د وینځې ځوئې یم. زما تندې ستا په لاس کښې دې. ستا هر حکم زما دپاره فیصله کن دې. ستا هره فیصله په انصاف باندې بناء ده. زه ستا نه ستا د هر هغه نوم په واسطه باندې سوال کوم کوم چه تا خپله د خپل ځان دپاره کیخودلې دې. یا دې په خپل مخلوق کښې چاته ښودلې دې. یا دې په خپل کتاب کښې نازل کړې دې. یا دې د خپل علم غیب په خزانه کښې محفوظ کړې وی. چه ته قرآن کریم زما د زړه سپرلې. زما د سینې نور. او زما د غمونو او پریشانو د لرې کولو ذریعه جوړه کړه.

بهر حال دا مختلف قسم دعاګانې دی او په اسماء حسنی باندې مشتمل کلمات راغلې دی چه د هغې په باره کښې وئیلې شوې دی چه په هغې کښې اسم اعظم دې که دا ټول اسماء او دعاګانې په دعاګانو کښې شامل کړې شی او د الله پاک نه اوغوښتلې شی نو انشاء الله! الله پاک به ئې قبول اوفرمائی.

**د مولانا محمد منظور نعمانی رحمه الله تحقیق**

**اسماء حسنی**: په حقیقی معنی کښې د الله پاک نوم یعنی اسم ذات صرف یو دې او هغه دې الله. خو د هغه صفاتی نومونه په سوونو دی کوم چه په قرآن کریم او احادیثو کښې راغلې دی. هم هغې ته اسماء حسنی وئیلې شی. حافظ ابن حجر رحمه الله په فتح البارى شرح صحیح البخاری کښې د امام جعفر بن محمد صادق او سفیان بن عیینة او بعض نورو اکابرینو نه نقل کړی دی چه:

د الله پاک یو کم سل نومونه خو صرف په قرآن کریم کښې راغلې دی او بیا هم دې حضراتو د هغې تفصیل او تعین هم نقل کړې دې. د دې نه پس حافظ ممدوح رحمه الله د هغوی د بعض اسماء مبارکه متعلق دا تبصره کولو سره چه دا په خپل خاص شکل کښې په قرآن کریم کښې مذکور نه دی. بلکه د استخراج او اشتقاق په طور وضع کړې شوې دی. د هغې په ځائې نور اسماء د قرآن کریم نه راوپستلو سره وئیلې دی چه دا یو کم سل اسماء الهیه په قرآن کریم کښې په خپل اصلی شکل کښې مذکور دی او د هغې پوره شمیر ئې ورکړې دې کوم چه به انشاء الله نزدې نقل کړې شی.

هم زمونږ د زمانې بعض علماء کرامو چه د الله پاک د صفاتی نومونو تتبع د احادیثو نه اوکړه نو د دوه سوو نه زیاتی هغوی ته ملاؤ شو. دا صفاتی اسماء حسنی د الله پاک د صفات کمال عنوانات او د هغه د معرفت دروازې دی. پس د الله پاک د ذکر یو لوئې جامع او تفصیلی شکل دا هم دې چه بنده په عظمت او محبت سره د دې نومونو په ذریعه الله پاک یاد کړی او د دې نه خپله وظیفه جوړه کړی.

[1] مسند الامام احمد: ۳۹۱/۱

﴿إِنَّ لِلّٰهِ تِسْعَةً وَتِسْعِينَ اسْمًا مِئَةً إِلَّا وَاحِدًا مَنْ أَحْصَاهَا دَخَلَ الْجَنَّةَ﴾ (د الله پاک یو کم سل نومونه دی چا چه هغه یاد کړل هغه به جنت ته ځی)

**تشریح** د صحیحین په روایت کښې صرف هم دومره دی. د دې یو کم سل نومونو تفصیل او تعین په دې روایت کښې نه دې کړې شوې. نزدې به انشاء الله د جامع ترمذی وغیره د روایت ذکر راځی چه په هغې کښې په تفصیل سره دا یو کم سل نومونه بیان کړې شوې دی.

د شارحین حدیث او علماء کرامو قریب قریب اتفاق دې چه اسماء الهیه صرف په یو کم سلو کښې منحصر نه دی او دا د هغې پوره تعداد نه دې. ځکه چه د تتبع او تلاش نه پس په دې کښې نور هم ملاویږی په دې وجه د سیدنا ابوهریره رضی الله عنه د هغه حدیث په باره کښې وئیلې شوې دی چه د دې مطلب او مدعا صرف دا ده چه کوم بنده د الله پاک یو کم سل نومونه یاد کړی او د دې خیال ساتی. هغه به جنت ته ځی. یعنی صرف د یو کم سل نومونو په احصاء کلو و باندې بنده د دې بشارت مستحق کیږی.

د حدیث پاک په جمله ﴿ من احصاها دخل الجنة ﴾ په تشریح کښې علماء او شارحین مختلفې خبرې کړې دی یو مطلب د دې دا بیان کړې شوې دې چه کوم باندې د دې اسماء الهیه په مطالب باندې ځان پوهه کولو سره د هغې معرفت حاصلولو سره د الله پاک په هغه صفاتو باندې یقین اوکړی د کومو چه دا اسماء عنوانات دی. هغه به جنت ته ځی. یو مطلب بل دا بیان کړې شوې دې چه کوم بنده د دې اسماء حسنی په تقاضو باندې عمل کوی هغه به جنت ته ځی دریم یو مطلب دا بیان کړې شوې دې چه کوم بنده په دې یو کم سلو نومونو باندې الله پاک یادوی او د هغې په ذریعه ترې دعا کوی نو هغه به جنت ته ځی امام بخاری رحمه الله د ﴿من احصاها﴾ تشریح په ﴿ من حفظها ﴾ سره کړې د. بلکه د دې حدیث په بعض روایاتو کښې د ﴿ من احصاها ﴾ په ځانې د ﴿ من حفظها ﴾ الفاظ هم راغلې دی. په دې وجه دې تشریح ته ترجیح ورکړې شوې ده او هم په دې وجه په ترجمه کښې عاجز هم دا معنی اختیار کړې ده. په دې بناء به د حدیث مطلب داوی چه کوم بنده په ایمان او عقیدت سره د الله پاک د قرب او رضا حاصلولو دپاره د هغه یو کم سل نومونه محفوظ کړی او د هغې په ذریعه الله پاک یاد کړی. هغه به جنت ته ځی. والله اعلم.

﴿ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صلى الله عليه وسلم: إِنَّ لِلّٰهِ تَعَالَى تِسْعَةً وَتِسْعِينَ اسْمًا مِائَةً غَيْرَ وَاحِدَةٍ مَنْ أَحْصَاهَا دَخَلَ الْجَنَّةَ هُوَ اللهُ الَّذِي لَا إِلٰهَ إِلَّا هُوَ الرَّحْمٰنُ الرَّحِيمُ الْمَلِكُ الْقُدُّوسُ السَّلَامُ الْمُؤْمِنُ الْمُهَيْمِنُ الْعَزِيزُ الْجَبَّارُ الْمُتَكَبِّرُ الْخَالِقُ الْبَارِئُ الْمُصَوِّرُ الْغَفَّارُ الْقَهَّارُ الْوَهَّابُ الرَّزَّاقُ الْفَتَّاحُ الْعَلِيمُ الْقَابِضُ الْبَاسِطُ الْخَافِضُ الرَّافِعُ الْمُعِزُّ الْمُذِلُّ السَّمِيعُ الْبَصِيرُ الْحَكَمُ الْعَدْلُ اللَّطِيفُ الْخَبِيرُ الْحَلِيمُ الْعَظِيمُ الْغَفُورُ الشَّكُورُ الْعَلِيُّ الْكَبِيرُ الْحَفِيظُ الْمُقِيتُ الْحَسِيبُ الْجَلِيلُ الْكَرِيمُ الرَّقِيبُ الْمُجِيبُ الْوَاسِعُ الْحَكِيمُ الْوَدُودُ الْمَجِيدُ الْبَاعِثُ الشَّهِيدُ الْحَقُّ الْوَكِيلُ الْقَوِيُّ الْمَتِينُ الْوَلِيُّ الْحَمِيدُ الْمُحْصِي الْمُبْدِئُ الْمُعِيدُ الْمُحْيِي الْمُمِيتُ الْحَيُّ الْقَيُّومُ الْوَاجِدُ الْمَاجِدُ الْوَاحِدُ الصَّمَدُ الْقَادِرُ الْمُقْتَدِرُ الْمُقَدِّمُ الْمُؤَخِّرُ الْأَوَّلُ الْآخِرُ الظَّاهِرُ الْبَاطِنُ الْوَالِي الْمُتَعَالِي الْبَرُّ التَّوَّابُ الْمُنْتَقِمُ الْعَفُوُّ

الرَّءُوفُ مَالِكُ الْمُلْكِ ذُو الْجَلَالِ وَالْإِكْرَامِ الْمُقْسِطُ الْجَامِعُ الْغَنِيُّ الْمُغْنِي الْمَانِعُ الضَّارُّ النَّافِعُ النُّورُ الْهَادِي الْبَدِيعُ الْبَاقِي الْوَارِثُ الرَّشِيدُ الصَّبُورُ ﴾

د سیدنا ابوهریره رضی الله عنه نه روایت دې چه رسول الله ﷺ ارشاد اوفرمائیلو چه د الله پاک نهه نوی، یو کم سل، نومونه دی چا چه دا محفوظ کړل. او د هغوی خیال نې اوساتلو. هغه به جنت ته ځی. د هغه نومونو تفصیل دا دې:

هغه الله دې چه د هغه نه سوا څوک هم د بندګئ حقدار نشته. هغه دې الرَّحْمٰنُ ډیر د رحمت والا، الرَّحِيمُ ډیر رحم والا، الْمَلِكُ حقیقی بادشاه او حاکم، الْقُدُّوسُ نهایت مقدس او پاک، السَّلَامُ چه د هغه ذاتی صفت سلامتی ده، الْمُؤْمِنُ امن و امان ورکونکې، الْمُهَيْمِنُ پوره نګهبانی کونکې، الْعَزِيزُ غلبه او عزت چه د چا ذاتی صفت دې او څوک چه په ټولو باندې غالب دې، الْجَبَّارُ صاحب جبروت دې. ټول مخلوق د هغه د تصرف لاندې دې، الْمُتَكَبِّرُ تکبر او لوئی د هغه حق دې، الْخَالِقُ پیدا کونکې، الْبَارِئُ برابرونکی، الْمُصَوِّرُ صورتونه جوړونکې، الْغَفَّارُ د ګناهونو ډیر زیات بخښونکې، الْقَهَّارُ په ټولو باندې غالب او قابو لرونکې چه د هغه مخې ته ټول عاجز او مغلوب دی، الْوَهَّابُ بغیر د څه عوض او منفعت نه ښه ورکونکې، الرَّزَّاقُ ټولو ته روزئ ورکونکې، الْفَتَّاحُ د ټولو دپاره د رحمت او رزق دروازې پرانستونکې، الْعَلِيمُ په هر څه باندې عالم، الْقَابِضُ الْبَاسِطُ تنګی راوستونکې. فراخی راوستونکې. یعنی د هغه شان دا دې چه د خپل مشیت او حکمت مطابق کله د چا په حالاتو کښې تنګی پیدا کوی. او کله فراخی پیدا کوی، الْخَافِضُ الرَّافِعُ لاندې کونکې. پورته کونکې، الْمُعِزُّ الْمُذِلُّ چاته عزت ورکولو سره د هغه سر اوچتول او څوک د ذلت قصر ته غورځول د هغه په قبضه او اختیار کښې دی. او دا ټول هر څه د هغه د طرف نه وی، السَّمِيعُ الْبَصِيرُ هر څه لره اوریدونکې او هرڅه لره لیدونکې، الْحَكَمُ الْعَدْلُ حاکم حقیقی. عدل او انصاف والا، اللَّطِيفُ لطافت او لطف وکرم چه د چا ذاتی صفت دې، الْخَبِيرُ د هرې خبرې نه باخبر، الْحَلِيمُ نهایت بردبار، الْعَظِيمُ ډیر د عظمت والا. د ټولو نه اوچت او برتر، الْغَفُورُ ډیر بخښونکې، الشَّكُورُ د حسن عمل قدر کونکې او د غورې نه غوره جزا ورکونکې، الْعَلِيُّ الْكَبِيرُ د ټولونه اوچت. د ټولو نه لوئې، الْحَفِيظُ د ټولو نګهبان، الْمُقِيتُ ټولو ته د ژوند سامان ورکونکې، الْحَسِيبُ د ټولو دپاره کافی کیدونکې، الْجَلِيلُ عظیم القدر، الْكَرِيمُ صاحب کرم، الرَّقِيبُ محافظ، الْمُجِيبُ قبلونکې، الْوَاسِعُ وسعت لرونکې، الْحَكِيمُ ټول کارونه د حکمت کونې، الْوَدُودُ مینه کونکې، الْمَجِيدُ لویئ والا، الْبَاعِثُ اوچتونکی. د مرګ نه پس مړو لره ژوندې کونکې، الشَّهِيدُ حاضر کوم چه هر څه وینی او په

هر څه پوهيږي، الْحَقُّ :چه د هغه ذات او د چا وجود چه اصل او حق دې، الْوَكِيلُ :حقيقي کارساز، الْقَوِيُّ الْمَتِينُ :د قوت مالک. ډير مضبوط، الْوَلِيُّ :سرپرست. مددګار، الْحَمِيدُ :ستائيلي شوې. د ستائينې مستحق، الْمُحْصِي :د ټولو مخلوقاتو په باره کښې پوره معلومات لرونکې، الْمُبْدِئُ الْمُعِيدُ :اول وجود ورکونکې. دوباره ژوند ورکونکې، الْمُحْيِي الْمُمِيتُ :ژوند ورکونکې. مرګ ورکونکې، الْحَيُّ :هميشه ژوندې. ژوند چه د هغه ذاتي صفت دې، الْقَيُّومُ :خپله قائم او ټول مخلوق ته د هغوی د حيثيت مطابق قيام ورکونکې، الْوَاجِدُ :هر څه خان سره ساتونکې، الْمَاجِدُ :د لوئې والي خاوند، الْوَاحِدُ :يو په خپل ذات کښې يواځې په خپلو صفاتو کښې، الصَّمَدُ :د ټولو نه بې نيازه او ټول د هغه محتاج، الْقَادِرُ الْمُقْتَدِرُ :قدرت والا. په ټولو باندې کامل اقتدار لرونکې، الْمُقَدِّمُ الْمُؤَخِّرُ :چه څوک اوغواړي هغه لره مخکښې کونکې. او څوک چه اوغواړي هغه لره روستو کونکې، الْأَوَّلُ الْآخِرُ :د ټولو نه اول او د ټولو نه شاته يعنى چه کله څوک هم نه وو هيڅ نه وو نو هم موجود وو. او چه کله هيڅ پاتې نه شی نو هغه وخت به هم موجود وی، الظَّاهِرُ الْبَاطِنُ :بالکل ښکاره. او بالکل مخفي، الْوَالِي :مالک او کارساز، الْمُتَعَالِي :ډير زيات اوچتيدونکې، الْبَرُّ :ډير احسان کونکې، التَّوَّابُ :د توبې توفيق ورکونکې. توبه قبلونکې، الْمُنْتَقِمُ :مجرمانو ته سزا ورکونکې، الْعَفُوُّ :ډير معافی کونکې، الرَّءُوفُ :شفقت کونکې، مَالِكُ الْمُلْكِ :د ټول جهان مالک، ذُو الْجَلَالِ وَالْإِكْرَامِ :د جلال خاوند او ډير زيات کرم کونکې چه د هغه د جلال نه بنده هميشه په ويره کښې وی او د چا د کرم نه چه هميشه اميد ساتی، الْمُقْسِطُ :د حقدار حق ادا کونکې عادل او منصف، الْجَامِعُ :ټول مخلوق د قيامت په ورځ راجمع کونکې، الْغَنِيُّ الْمُغْنِي :خپله بې نيازه چه د هغه چاته هيڅ حاجت نشته. او په خپلې ورکړې سره بندګانو لره بې نيازه کونکې، الْمَانِعُ :منع کونکې هر هغه څيز لره چه منع کول ئې اغواړي، الضَّارُّ النَّافِعُ :د خپل حکمت او رضا د لاندې ضرر رسونکې او فائده رسونکې، النُّورُ :ټول په ټوله نور، الْهَادِي :هدايت کونکې، الْبَدِيعُ :بغير د مثال سابق نه مخلوق لره پيدا کونکې، الْبَاقِي :هميشه باقي پاتې کيدونکې چه کله هم پرې فنا نه راځی، الْوَارِثُ :د ټول مخلوق د فنا کيدو نه پس باقي پاتې کيدونکې، الرَّشِيدُ :د رشد او حکمت خاوند چه د هغه هره فعل او فيصله صحيح ده، الصَّبُورُ :ډير صبر کونکې چه د بندګانو لوئې لوئې نافرمانئ ګوری او فورا عذاب راليږلو سره هغوی نه تباه کوی، (جامع ترمذي، دعوات کبير للبيهقي)

**تشريح** : د سيدنا ابوهريره رضی الله عنه د دې حديث ابتدائی حصه بالکل هم هغه ده کوم چه د صحيح حوالې سره اوس پورته نقل کړې شوې ده. خو په دې کښې د نهه نوی نومونو تفصيل هم دې

کوم چه د صحیحین په روایت کښې نشته په دې بناء بعض محدثین او د شارحین حدیث دا رائې ده چه حدیث مرفوع یعنی د رسول الله ﷺ اصل ارشاد بس هم دومره دې. څومره چه د صحیحین په روایت کښې دې یعنی : ﴿إِنَّ لِلّٰهِ تِسْعَةً وَتِسْعِينَ اسْمًا مِئَةً إِلَّا وَاحِدًا مَنْ أَحْصَاهَا دَخَلَ الْجَنَّةَ﴾ د الله پاک یو کم سل نومونه دی چا چه د هغې احصاء اوکړه هغه به جنت ته ځی، او د ترمذی په دې ﷺ یت کښې او هم دغه شان په ابن ماجة او حاکم وغیره په روایتونو کښې چه کوم یو کم سل نومونه په تفصیل سره ذکر شوې دی هغه د ارشاد نبوی جزء نه دې. بلکه هغه د سیدنا ابوهریرة رضی الله عنه بالواسطه یا بغیر د واسطې نه یو شاګرد د حدیث د اجمال د تفصیل او د ابهام د تفسیر په طور په قرآن او حدیث کښې راغلې دا اسماء الهیه ذکر کړې دی. ګویا د محدثینو په اصطلاح کښې دا اسماء حسنی مدرج دی. د دې یوه قرینه دا هم ده چه د ترمذی او ابن ماجة او حاکم په روایاتو کښې چه د یو کم سل نومونو کوم تفصیل ذکر کړې شوې دې. په دې کښې ډیر لوئې فرق او اختلاف دې. که دا یو کم سل اسماء حسنی د رسول الله ﷺ تعلیم کړې شوې وې نو په دې کښې دومره اختلاف او فرق ناممکن وو.

بهر حال دا خو د فن حدیث او روایت یو بحث دې، خو دومره خبره د ټولو په نزد منلې شوې ده چه د ترمذی په پورته روایت کښې او هم دغه شان د ابن ماجة په روایاتو کښې چه کوم یو کم سل اسماء حسنی ذکر کړې شوې دی. هغه ټول په قرآن کریم او احادیث کښې راغلې دی. او رسول الله ﷺ د یو کم سل اسماء الهیه د احصاء (په محفوظ کولو) باندې چه کوم زیرې اورولې دې. د هغې هغه بنده یقینا مستحق دی کوم چه په اخلاص او عظمت سره دا اسماء حسنی محفوظ کړې او د هغې په ذریعه الله پاک یاد کړی.

امام الهند شاه ولی الله محدث دهلوی رحمه الله د دې په وجه او سبب باندې رڼا اچولو سره فرمائی چه کما د کمال صفات. د الله پاک دپاره ثابتول پکار دی او د کومو څیزونو چه د الله پاک د ذات نه نفی کیدل پکار دی، په دې یو کم سل اسماء حسنی کښې هغه ټول هرڅه راځی. په دې بناء باندې دا د اسماء حسنی د معرفت تکمله او صالح نصاب دې. او هم په دې وجه د دې په مجموعه کښې غیر معمولی برکت دې او په عالم قدر کښې دې ته خاص قبولیت حاصل دې او چه کله د بنده په اعمال نامه کښې دا اسماء الهیه ثبت شی نو دا د هغه په حق کښې د رحمت الهی د فیصلې سبب کیږی والله أعلم

د ترمذی په پورته ذکر شوی روایت کښې چه کوم یو کم سل اسماء حسنی ذکر شوې دی په هغې کښې دوه دریمه حصه خو په قرآن کریم کښې مذکور دی. باقی په احادیثو کښې راغلې دی.

امام جعفر صادق رحمه الله کومو حضراتو چه دا دعوی کړې ده چه د الله پاک یو کم سل نومونه په قرآن کریم کښې موجود دی. د هغې ذکر اوس پورته کړې شوې دې. او په دې سلسله کښې د حافظ ابن حجر رحمه الله د آخری کوشش هم حواله ورکړې شوې ده چه هغوی صرف د قرآن کریم نه هغه یو کم سل اسماء الهیه راویستلې دی کوم چه په خپل اصل شکل کښې په قرآن کریم کښې موجود دی.

که د هغه محدثین او شارحین حدیث خبره اومنلې شی د چا رائې چه دا ده چه د ترمذی پورته ذکر شوې روایت کښې چه کوم اسماء حسنی ذکر شوې دی. دا د حدیث مرفوع حصه نه ده بلکه د راوی د طرف نه مدرج دی یعنی د حدیث د اجمال د تفصیل په طور هغوی په قرآن او حدیث کښې راغلی د هغه نومونو اضافه کړې ده نو بیا د حافظ ابن حجر رحمه الله پیش کړې شوې فهرست قابل ترجیح کیدل پکار دی چه د هغې ټول اسماء بغیر د څه خاص تصرف نه د قرآن کریم نه اخستلې شوې دی. (۱)

یو کم سل اسماء حسنی کوم چه د ترمذی په روایت کښې مذکور دی. او هم دغه شان کوم چه حافظ ابن حجر رحمه الله د قرآن کریم نه راویستلې دی. بیشکه په دې کښې هر یو د معرفت الٰهی دروازه ده.

د علماء امت په مختلفو زمانو کښې د هغې په شرح کښې مستقل کتابونه لیکلې دی په مهماتو کښې د هغوی په ذریعه دعا کول د ډیرو اهل الله د خاص معمولات نه ده او د هغې قبولیت مجرب دې.

**اسم اعظم :** د احادیثو نه معلومیږی چه د الله پاک په اسماء حسنی کښې بعض هغه دی چه هغې ته په دې لحاظ سره خاص عظمت او امتیاز حاصل دې چه کله د هغې په ذریعه دعا اوکړې شی نو د دعا د قبولیت زیات امید کیدلې شی.

دې اسماء ته په حدیث کښې ﴿ اسم اعظم ﴾ وئیلې شوې دې. خو په صفایئ او صراحت سره هغه نه شی متعین کیدلې. بلکه په څه درجه کښې هغه مبهم ساتلې شوې دې او دا هم داسې ده لکه چه لیلة القدر او د جمعې په ورځ باندې د قبولیت دعا خاص وخت مبهم ساتلې شوې دې د احادیثو نه دا هم پته لګی چه د الله پاک صرف یو نوم اسم اعظم نه دې. لکه چه ډیر خلق داسې ګڼړی. بلکه ډیرو نومونو ته اسم اعظم وئیلې شوې دې، بله دا چه هم د دې احادیث مبارکه دا خبره صفا معلومه شی چه په عوامو کښې چه د دې اسم اعظم کوم تصور دې او د هغې په باره کښې چه کومې خبرې مشهور دی هغه بالکل بې اصله دی. اصل حقیقت هم هغه دې کوم چه پورته عرض کړې شو.

په احادیثو کښې د غور کولو نه صفا معلومیږی چه د الله پاک یو مخصوص نوم ته اسم اعظم نه دې وئیلې شوې. بلکه دا خبره زیات قیاس ته نزدې معلومیږی چه په حدیث کښې چه د کومو دوه آیتونو یو ﴿ وَإِلَٰهُكُمْ إِلَٰهٌ وَاحِدٌ لَا إِلَٰهَ إِلَّا هُوَ الرَّحْمَٰنُ الرَّحِيمُ ﴾ او ﴿ الم اللَّهُ لَا إِلَٰهَ إِلَّا هُوَ الْحَيُّ الْقَيُّومُ ﴾ حواله ورکړې شوې ده. او د دې نه مخکښې په دوارو احادیثو کښې چه د کومو دوه کسانو دوه دعاګانې ﴿ اللَّهُمَّ إِنِّي أَسْأَلُكَ أَنِّي أَشْهَدُ أَنَّكَ أَنْتَ اللَّهُ لَا إِلَٰهَ إِلَّا أَنْتَ الْأَحَدُ الصَّمَدُ الَّذِي لَمْ يَلِدْ وَلَمْ يُولَدْ ﴾ او دویم ﴿ اللَّهُمَّ إِنِّي أَسْأَلُكَ بِأَنَّ لَكَ الْحَمْدَ، لَا إِلَٰهَ إِلَّا أَنْتَ الْحَنَّانُ الْمَنَّانُ، بَدِيعُ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ، يَا ذَا الْجَلَالِ وَالْإِكْرَامِ ﴾ نقل کړې شوې دی، په دې کښې هر یو د ډیرو اسماء الهیه په خاص ترکیب

(۱) دحافظ ابن حجر رحمه الله داسماء حسنی په باره کښې پیش کړې شوې فهرست مخکښې تیر شوې دې.

سره الله پاک چه کوم مرکب او جامع وصف مفهوم کیږي. د هغې نه په اسم اعظم سره تعبير فرمائيلې شوې دې.
امام شاه ولی الله محدث دهلوی رحمه الله چاته چه الله پاک د دې قسم علومو او معارفو نه لويه برخه ورکړې وه هغوی د دې احاديثو نه هم دا خبره فهم کړې ده. والله اعلم (۱)

## ۶۹: باب الْمَوْعِظَةِ سَاعَةً بَعْدَ سَاعَةٍ.

[۶۰۴۸] حَدَّثَنَا عُمَرُ بْنُ حَفْصٍ حَدَّثَنَا أَبِي حَدَّثَنَا الأَعْمَشُ قَالَ حَدَّثَنِي شَقِيقٌ قَالَ كُنَّا نَنْتَظِرُ عَبْدَ اللَّهِ إِذْ جَاءَ يَزِيدُ بْنُ مُعَاوِيَةَ فَقُلْنَا أَلاَ تَجْلِسُ قَالَ لاَ وَلَكِنْ أَدْخُلُ فَأُخْرِجُ إِلَيْكُمْ صَاحِبَكُمْ وَإِلاَّ جِئْتُ أَنَا.
فَجَلَسَ فَخَرَجَ عَبْدُ اللَّهِ وَهُوَ آخِذٌ بِيَدِهِ فَقَامَ عَلَيْنَا فَقَالَ أَمَا إِنِّي أُخْبَرُ بِمَكَانِكُمْ، وَلَكِنَّهُ يَمْنَعُنِي مِنَ الْخُرُوجِ إِلَيْكُمْ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- كَانَ يَتَخَوَّلُنَا بِالْمَوْعِظَةِ فِي الأَيَّامِ، كَرَاهِيَةَ السَّآمَةِ عَلَيْنَا. [ر: ۶۸]

د شقيق رحمه الله نه روايت دې چه مونږ د عبدالله بن مسعود رضي الله عنه انتظار کولو چه يزيد بن معاوية رضي الله عنه راغلو. مونږ ورته اووې تشريف به نه ږدئ؟ هغوی اووې نه بلکه زه دننه ځم او تاسو ته ستاسو ملګرې (عبدالله بن مسعود رضي الله عنه) راولم. ګنې زه به راشم او تاسو سره به کينم. پس عبدالله بن مسعود رضي الله عنه راوتلو او هغوی د يزيد بن معاويه لاس نيولې وو. زمونږ مخې ته اودريدلو سره ئې اووې چه زه ستاسو د دلته موجودګئ نه خبر اوم. خو زه چه کوم څيز د بهر راوتلو نه منع کړم هغه صرف دا خيال وو چه رسول الله صلى الله عليه وسلم به مونږ ته په وعظ کولو کښې د دې خبرې خيال ساتلو چه چرته هغه زمونږ د تنګيدو سبب نه شي. (اصل کښې هلته موجود خلقو د هغوی نه روزانه د وعظ وئيلو درخواست اوکړو. چه د هغې په جواب کښې هغوی دا خبره ارشاد اوفرمائيله)

**د ترجمة الباب مقصد** : د امام بخاری رحمه الله مقصد دا دې چه وعظ او نصيحت په وقفې وقفې سره کيدل پکار دی او په دې کښې وقفه ساتل پکار دی، بغير د څه وقفې نه په تسلسل سره روزانه يا بغير د چهټئ نه د وعظ او نصيحت سلسله ډير کرته، د ستړې والی او زړه مړيدو ذريعه جوړه شي، په دې وجه که د مناسب وقفې خيال ساتلو سره وعظ او نصيحت اوکړې شي نو دا صورت به زيات ميوه دار او مفيد ثابت شي.

**د باب د کتاب سره مناسبت** : د کتاب الدعوات سره، د دې باب بيان مناسبت بيانولو سره حافظ ابن حجر او علامه عينی رحمهما الله ليکلې دی چه وعظ او نصيحت چونکه عموما په ذکر باندې مشتمل وی او ذکر هم د دعا نه شمارلې شي په دې وجه موعظة په کتاب الدعوات کښې راوړله (۲)

---

۱) معارف الحديث : ۵۹/۵

۲) فتح الباری ۲۶۵/۱۱، وعمدة القاری ۴۵/۲۲

شیخ الحدیث مولانا محمد زکریا رحمه الله د دې باب د کتاب الدعوات سره د مناسبت یو نفیس توجیه بیان فرمائیلې ده. هغوی لیکلې دی چه امام بخاری رحمه الله په دې باب او حدیث سره دې طرف ته اشاره فرمائیلې ده چه په دعا کښې د ستړی والی نه بچ کیدل پکار دی. وعظ او نصیحت او دعوت او تبلیغ یو اهم فریضه ده. چه هر کله په هغې کښې د ستړی والی نه د بچ کیدو اهتمام کړې شوې دې نو په دعا کښې په طریق اولی د دې نه بچ کیدل پکار دی او دعا دومره اوږدول نه دی پکار چه انسان د ستړی والی ښکار شی.

پس حضرت لیکی. ﴿وعندی ان الامام البخاری رحمه الله اشار بالترجمة وحدیثها الی انه ینبغی الاحتراز عن الملال فی الدعاء فانه لما یحترز عنه فی التذکیر وهو اهم ففی الدعاء بالاولی، فلا ینبغی التطویل فی الدعاء، حتی یؤدی الی الملال، ولیس المراد کراهة الطول مطلقاً، بل الطول المؤدی الی الملال﴾ [1]

**قوله:** ﴿إِذْ جَاءَ يَزِيدُ بْنُ مُعَاوِيَةَ﴾: یزید بن معاویه رحمه الله تابعی دې او په صحیح بخاری کښې صرف په یو مقام باندې د هغوی ذکر ملاویږی. د سیدنا عثمان رضی الله عنه په خلافت کښې په فارس کښې جهاد کولو کښې شهید شو. [2]

**قوله:** ﴿كَانَ يَتَخَوَّلُنَا بِالْمَوْعِظَةِ﴾: ﴿یتخول﴾ د ﴿تخول﴾ نه مشتق دې. د دې معنی د اصلاح او خیال ساتلو ده. [3] مقصد دا دې چه رسول الله صلی الله علیه وسلم به په وعظ او نصیحت کښې زمونږ د حالت رعایت ساتلو.

**قوله:** ﴿كَرَاهِيَةَ السَّآمَةِ عَلَيْنَا﴾: یعنی زمونږ د ستړی کیدو د ویرې د وجې نه به رسول الله صلی الله علیه وسلم دا ناخوښه گڼړله. په دې وجه به رسول الله صلی الله علیه وسلم زمونږ رعایت ساتلو. دا په ترکیب کښې مفعول له واقع شوې دې.

دا حدیث په کتاب العلم کښې د باب کان النبی صلی الله علیه وسلم یتخولهم بالموعظة لاندې تیر شوې دې او هم هلته په دې باندې تفصیلی خبره هم شوې ده. [4]



[1] الابواب والتراجم: ۱۳۰/۲

[2] تهذیب الکمال: ۲۴۶/۳۲، کتاب الثقات لابن حبان: ۵۴۵/۵

[3] قال ابن الاثیر فی النهایة ۸۸/۲، یتخولنا: یتعهدنا، من قولهم. فلان خائل مال، وهو الذی یصلحه ویقوم به، انظر غریب الحدیث للخطابی: ۴۳۷/۲

[4] اوګورئ: کتاب العلم، ص ۲۵۶، رقم الحدیث: ۶۸

# ۸۴: كتاب الرقاق (الاحاديث: ۶۰۴۹-۶۲۲۰ء)

كتاب الرقاق په درې پنځوس ابوابو باندې مشتمل دې. چه په هغې كښې يو ځلويښتم باب بغير د ترجمې نه دې. امام بخارى رحمة الله په دې كښې ۱۹۳ مرفوع احاديث ذكر فرمائيلي دى. د هغې نه درې ديرش احاديث د تعليق په صورت كښې دى او باقى ۱۲۰ احاديث موصوله دى. چه د هغې نه ۱۳۴ احاديث مكرر دى او باقى ۵۹ احاديث خالص يعنى غير مكرر دى. ۱۷ احاديث نه سوا د باقى احاديثو تخريج امام مسلم رحمة الله هم كړې دې... په كتاب الرقاق كښې امام بخارى رحمة الله د صحابه كرامو او تابعينو وغيره ۱۷ آثار هم نقل فرمائيلي دى.

## د زهد او رقاق په كتابونو يو تعارفى نظر

### د مرتب د قلم نه

حضرات محدثين د زهد او رقاق په عنوان سره د رسول الله ﷺ د هغه مبارك احاديثو او د امت د جليل القدر اسلام هغه واقعات جمع كوى چه د هغې په لوستلو سره د زړه سخت والې په نرمئ كښې بدل شى او د قسوة ځائې سوز او نرمى اونيسى. د فانى دنيا حقيقت مخې ته راشى. د انسانى ژوند بې وسى ښكاره شى. د آخرت فكر پيدا شى. او د دې ډكې پر دنيا د رنګينئ بې ثباتى واضح شى. حقيقت دا دې چه د دې عنوان د لاندې. د دې رنګين جهان د ښكلا ګانو نه د اوښيار اوسيدو آواز لګولې شى كوم چه د ژوند د مسافر مخ د قبلې د طرف نه اړوى او په نافرمانو كښې ئې ګيروى. مولانا محمد منظور نعمانى رحمة الله ليكى

د حديث په كتابونو كښې چه څنګه كتاب الايمان. كتاب الصلاة. كتاب الزكاة. كتاب النكاح. كتاب البيوع وغيره عنوانات وى. چه د هغې د لاندې د دې ابوابو احاديث ليكلې شى. هم دغه شان يو عنوان د كتاب الرقاق وى. چه د هغې د لاندې هغه احاديث ذكر كولې شى چه په هغې سره په زړه كښې رقت او نرمى پيدا كيږى. چه د دنيا سره ئې د زړه تړون كم وى او د آخرت فكر ئې زيات شى او انسان د الله پاك رضا او اخروى فلاح د خپل ژوند نصب العين اوګرځوى. د دې نه علاوه هم د دې عنوان د لاندې د رسول الله ﷺ مؤثر خطبات او نصائح او مواعظ هم ليكلې شى، دا حقيقت دې چه د احاديثو په ذخيره كښې د ټولو نه زيات موثر اود ژوند په رخ بدلولو كښې د ټولو نه زيات طاقت لرونكې حصه هم دا وى. كومه چه د حديث په كتابونو كښې د كتاب الرقاق د عنوان د لاندې ليكلې شوى وى په دې

وجه د دې خاص اهميت دې او ونيلې شي چه د حقيقي اسلامي تصوف هم دا اساس او بنياد دې [۱] هم د دې اهميت په بناء حضرات محدثين د حديث په کتابونو کښې د داسې احاديثو دپاره د کتاب الرقاق يا کتاب الزهد والرقاق مستقل عنوان قائموی او د امت څو ائمه کرامو او علماء په دې باندې مستقل کتابونه ليکلې دی. دلته د هغې اجمالي تعارف پيش کولې شی.

**په صحيح بخاری کښې کتاب الرقاق:** امام بخاری رحمه الله په صحيح بخاری کښې د کتاب الرقاق د لاندې ۵۳ بابونه ذکر کړې دی، هغوی د قيامت، حشر، جنت، جهنم، پل صراط او حوض کوثر متعلق احاديث هم د رقاق د لاندې ذکر بيان فرمائيلې دی لکه چه عرض کړې شوې دی کتاب الرقاق په درې پنځوس ابوابو باندې مشتمل دې، چه په هغې کښې يو شلوېښتم باب بغير د ترجمې نه دې. امام بخاری رحمه الله په دې کښې ۱۹۳ مرفوع احاديث ذکر فرمائيلې دی. د هغې نه درې ديرش احاديث د تعليق په صورت کښې دی او باقی ۱۶۰ احاديث موصوله دی، چه د هغې نه ۱۳۴ احاديث مکرر دی او باقی ۵۹ احاديث خالص يعنی غير مکرر دی. ۱۷ احاديث نه سوا د باقی احاديثو تخريج امام مسلم رحمه الله هم کړې دې په کتاب الرقاق کښې امام بخاری رحمه الله د صحابه کرامو او تابعينو وغيره ۱۷ آثار هم نقل فرمائيلې دی

**په صحيح مسلم کښې کتاب الرقاق:** امام مسلم رحمه الله په صحيح مسلم کښې د رقاق احاديث ذکر کړې دی، هغوی چونکه ابواب او عنوانات خپله نه دی لګولې بلکه په مطبوعه نسخو کښې د کتب او ابواب دا عنوانات روستو امام نووی رحمه الله لګولې دی [۲] هغوی د کتاب التفسير نه مخکښې او د کتاب الجنة وصفة نعيمها نه پس کتاب الزهد والرقاق ذکر کړې دې او په ۱۷۵ احاديث باندې ئې شل ابواب قائم کړې دی.[۳]

د جنت او جهنم او د قيامت متعلق په احاديث باندې امام نووی رحمه الله د مستقل کتاب عنوان قائم کړې دې او هغه ئې د رقاق د لاندې نه دی کيخودلی. او په صحيح بخاری کښې دا حديث د کتاب الرقاق د لاندې دی، په صحيح مسلم کښې کتاب صفة القيامة، په ۲۱ ابوابو باندې. کتاب صفة الجنة په ۲۰ ابوابو باندې، کتاب التوبة په دولسو ابوابو باندې مشتمل دې. خو په بعض نسخو کښې د کتاب التوبة نه مخکښې د کتاب الرقاق عنوان دې او د هغې نه لاندې يو باب باب اکثر اهل الجنة الفقراء ذکر کړې شوې دې.[۴]

په دې نسخو کښې کتاب الرقاق دوه ځايه دې، يو د کتاب التوبة نه مخکښې او دويم د کتاب

---

[۱]) معارف الحديث ۲/۲۵

[۲]) مقدمة صحيح مسلم از مولانا شبير احمد عثمانی رحمه الله : ۱۰۰

[۳]) اوګورئ. صحيح مسلم کتاب الزهد والرقاق، الاحاديث : ۷۳۴۳-۷۴۳۸

[۴]) اوګورئ. صحيح مسلم ۵۵/۱۷، دار المعرفة بيروت.

التفسير نه مخکښې. خو په هندوستاني نسخو کښې دلته د کتاب الرقاق عنوان نشته.[1]
**د سنن الترمذی کتاب الزهد**: په صحاح ستة کښې امام ترمذی رحمه الله هم د کتاب الزهد د لاندې ۶۴ ابواب قائم کړې دی او د هغې د لاندې ئې يو سل يولس احاديث ذکر کړې دی.[2] هغوی هم د جنت، جهنم او قيامت متعلق احاديث د دې نه پس په **کتاب صفة القيامة والرقاق، کتاب صفة الجنة** او **کتاب صفة جهنم** د عنوان سره ذکر کړې دی. دا ټول احاديث هم د رقاق په شمير کښې راځی. امام ترمذی رحمه الله په **کتاب صفة القيامة والرقاق** کښې ۶۰ ابواب ذکر کړې دی او د هغې د لاندې ئې يو سل اووه احاديث ذکر فرمائيلي د. په کتاب **صفة الجنة** کښې ۱۲۷ ابواب او ديرش احاديث او په کتاب صفة جهنم کښې ۱۱۳ ابواب او تقريبا ۳۱ احاديث ذکر فرمائيلي دی.[3]
**په سنن ابن ماجة کښې کتاب الزهد**: امام ابن ماجة په سنن کښې د کتاب الزهد د لاندې ۳۹ ابواب قائم کړې دی او دهغې د لاندې ئې دوه سوه يو څلويښت احاديث نقل فرمائيلي دی.[4]
په صحاح سته کښې امام ابوداؤد رحمه الله په سنن ابی داؤد کښې د کتاب الزهد يا کتاب الرقاق هيڅ عنوان نه دې قائم کړې، هم دغه شان په سنن نسائی صغری کښې هم کتاب الرقاق نشته.
په صحاح ستة کښې د ټولو نه زيات د زهد او رقاق احاديث امام ترمذی رحمه الله نقل فرمائيلي دی. چه د هغې ارود تشريح د "دنيا کی حقيقت" په نوم باندې مولانا محمد يوسف لدهيانوی رحمه الله ليکلې ده. چه چهاپ شوې هم ده.[5]
**په زهد او رقاق باندې ليکلې شوې مستقل کتابونه**: د زهد او رقاق په عنوان سره مستقل کتابونه هم حضرات علماء کرامو ليکلې دی. چه په هغې کښې د لاندې ليکلې شوې اهل علم کتابونه مشهور دی.
① امام عبدالله بن المبارک ..... متوفی : ۱۸۱ هجری د هغوی کتاب الزهد مشهور دې. د هغې تعارف وړاندې راروان دې.
② امام معانی بن عمران موصلی.....متوفی ۱۸۵ هجری. دهغوی کتاب الزهد مطبوع دې.
③ امام وکيع بن جراح.... متوفی : ۱۹۷ هجری د هغوی کتاب الزهد هم مطبوع دې
④ امام اسد بن موسی .... متوفی : ۲۱۲ هجری. د هغوی کتاب الزهد هم مطبوع دې.

---

[1] ) اوګورئ: صحيح مسلم ۳۵۲/۲، قديمی کتب خانه
[2] ) اوګورئ: سنن الترمذی، کتاب الزهد، الاحاديث : ۲۳۰۴-۲۴۱۴
[3] ) اوګورئ : سنن الترمذی، کتاب صفة القيامة والرقاق، الاحاديث : ۲۴۱۵-۲۵۲۱ وکتاب صفة الجنة، الاحاديث : ۲۵۲۳-۲۵۷۲، وکتاب صفة جهنم الاحاديث ک: ۲۵۷۳-۲۶۰۵.
[4] ) اوګورئ: سنن ابن ماجة، کتاب الزهد، الاحاديث : ۱۴۰۰-۴۳۴۱
[5] ) دا کتاب د مکتبة بينات کراچئ نه چهاپ شوې دې.

⑤ امام احمد بن حنبل متوفى ۲۴۱ هجرى. د هغوى كتاب الزهد هم مطبوع دې
⑥ امام هناد بن سرى متوفى : ۲۴۳ هجرى. د هغوى كتاب الزهد هم مطبوع دې
⑦ امام ابوداؤد سليمان بن اشعث السجستانى ... متوفى ۲۷۵ هجرى. د هغوى كتاب الزهد هم مطبوع دې
⑧ عبدالله بن محمد بن عبيد. ابن ابى الدنيا .... متوفى : ۲۸۱ هجرى. د هغوى كتاب الزهد هم مطبوع دې
⑨ امام بيهقى (احمد بن الحسين صاحب السنن) ... متوفى : ۴۵۸ هجرى. د هغوى كتاب. كتاب الزهد الكبير په نوم سره مشهور دې او طبع شوې دې.
د هغوى نه علاوه محمد بن فضيل بن غزوان (متوفى : ۱۹۵ هجرى)، قاضى محمد بن احمد عسال اصبهانى (متوفى : ۲۴۹ هجرى)
حافظ عمر بن احمد : ابن شاهين (متوفى : ۳۸۸ هجرى)، امام ابو القاسم خلف بن القاسم (متوفى : ۳۹۳ هجرى) او علامه عبدالحق بن عبدالرحمن اشبيلى (متوفى ۵۸۱ هجرى هم په كتاب الزهد والرقاق باندې مستقل كتابونه ليكلې دى. [1]
خو په دې مطبوعه او غير مطبوعه كتابونو كښې د ټولو نه زيات مشهور د عبدالله بن مبارك رحمه الله او امام احمد بن حنبل رحمه الله كتاب الزهد دې

**د عبدالله بن مبارك رحمه الله كتاب الزهد:** د عبدالله بن مبارك رحمه الله د دويمې صدۍ هجرى جليل القدر محدث او ممتاز مجاهد بزرګ امام دې. د هغه يو كال حج ته تلل او يو كال د جهاد دپاره تلل مشهور دى. د امام ابوحنيفه رحمه الله شاګرد دې او د ائمه جرح او تعديل د هغوى په ثقاهت باندې اتفاق دې. د هغوى پيدائش په ۱۱۸ هجرى او وفات په ۱۸۱ هجرى كښې شوې دې [2]
هغوى د كتاب الزهد په نم سره مستقل كتاب ليكلې دې. چه هغې ته په امت كښې ډير مقبوليت او شهرت حاصل شو. د دې كتاب د يوې نسخې راوى حسين بن الحسن مروزى دې كوم چه د امام ترمذى او امام ابن ماجه رحمه الله شيخ دې. او د چا وفات چه په ۲۴۶ هجرى كښې شوې دې [3] او د دې دويمې نسخې راوى نعيم بن حماد دې كوم چه مشهور محدث دې او د هغوى وفات په ۲۲۸ هجرى كښې شوې دى [4]
د علامه انور شاه كشميرى رحمه الله ممتاز شاګرد مولانا حبيب الرحمن اعظمى رحمه الله د عبدالله بن مبارك رحمه الله كتاب الزهد په خپل تحقيق سره شائع كړې دې. هغوى درې نسخو لره مخې ته ږدلو سره تحقيق كړې دې. د آيات كريمه او احاديثو تخريج ئې اوكړو او په هغې باندې ئې ارقام اولګول. د مشكل الفاظو وضاحت ئې اوكړو. او په آخر كښې د نعيم بن حماد په

---
[1] اوګورئ مقدمة مولانا حبيب الرحمن اعظمى : ۱۲-۱۳
[2] اوګورئ حلية الاولياء: ۱۶۲/۸، وسير اعلام النبلاء ۳۷۸/۸، وبستان المحدثين: ۱۴۷، وتهذيب الكمال: ۵/۱۶
[3] تهذيب الكمال : ۳۳٤/۳
[4] تذكرة الحفاظ : ۶/۲

نسخه کښې د مروزی په نسخه باندې اضافه ده. هغه هم په کتاب کښې شامله کړې شوه

پس مروزی عن ابن المبارك په نسخه کښې ۱۲۲۲ احادیث او آثار دی او د نعیم بن حماد په نسخه کښې ۱۴۳۲ احادیثو او آثارو اضافه ده. دغه شان ټول ۲۰۲۲ احادیث شو. دا ټول آثار او روایات په فقهی ابوابو باندې مرتب کړې شوې دی

د کتاب په شروع کښې مولانا حبیب الرحمن اعظمی رحمه الله د خلوېښتو نه په زیاتو صفحاتو باندې مشتمل یو وقیع مقدمه هم لیکلې ده. چه په هغې کښې د زهد تعریف. په شریعت کښې د زهد مقام او مرتبې او د کتاب الزهد تعارف او د خپل کار د نوعیت وضاحت ئې فرمائیلې دې

مونږ سره چه د هغې دې وخت کښې کومه نسخه ده هغه دار الکتب العلمیة بیروت په ۱۴۲۵ هجری کښې چهاپ کړې ده. کوم چه د هغې دویم ایډیشن او په ۵۳۵ صفحاتو باندې مشتمل دې؛

**د امام احمد بن حنبل رحمه الله کتاب الزهد:** د امام احمد بن حنبل رحمه الله د تعارف محتاج نه دې. د هغوی کتاب الزهد هم ډیر معروف او متداول دې. علامه ابن تیمیه رحمه الله فرمائی:

**«ومن اجل ما صنف فيه كتاب الزهد لعبد الله بن المبارك، وفيه روايات واهية، واجود ما صنف فيه كتاب الزهد للامام احمد، لكنه مكتوب على الاسماء، وزهد ابن المبارك على الابواب»** [1]

یعنی په دې سلسله کښې د ټولو نه جلیل القدر تصنیف د عبدالله بن مبارک کتاب الزهد دې. خو په هغې کښې ضعیف روایات دی. په دې باب کښې د ټولو نه عمده تصنیف. د امام احمد کتاب الزهد دې. کوم چه د اسماء په اعتبار سره لیکلې شوې دې. او د ابن المبارک رحمه الله کتاب الزهد د ابواب فقهیه په ترتیب باندې لیکلې شوې دې

امام احمد بن حنبل رحمه الله تقریبا تقریبا د دولسو انبیاء علیهم السلام او د خلوېښتو صحابه کرامو رضی الله عنهم او تابعینو رحمهم الله د زهد او ورع آثار او واقعات نقل کړې دی. د کتاب په شروع کښې د رسول الله ﷺ د احادیثو او سیرت نه د زهد او ورع یو نمونه پیش کړې ده. په کتاب کښې موجود د هغه احادیثو او آثار تعداد ۲۳۷۹ دې. زمونږ مخې ته چه دې وخت کښې کومه نسخه ده. دا دار الکتب العربی په ۱۴۱۴ هجری. ۱۹۹۴ء کښې چهاپ کړې دې او دویم ایډیشن دې. دا ایډیشن د محمد سعید بسیونی زغلول د تحقیق او حواشی سره په ۵۷۲ صفحاتو باندې طبع شوې دې

**الترغیب والترهیب للمنذری رحمه الله** د زهد او رقاق متعلق د اوومې هجری صدئ مشهور محدث حافظ منذری رحمه الله هم د الترغیب والترهیب په نوم باندې کتاب لیکلې دې. کوم چه ډیر حده پورې جامع دې. د هغوی نوم عبدالعظیم بن عبد القوی منذری دې. او د هغوی وفات په ۶۵۶ هجری کښې شوې دې [2]

---

[1] کشف الظنون: ۲۷۹/۲

[2] مقدمة الترغیب والترهیب لمصطفی عمارة: ۲۴

هغوی د زهد او رقاق متعلق د صحاح ستة او د پورته ذکر شوې اکثر کتابونو احادیث راجمع کړی دی. بلکه هغوی فرمائی چه د لاندې لیکلې شوې کتابونو نه هغوی د ترغیب او ترهیب متعلق د ټولو احادیثو د استیعاب کوشش کړې دې.

① موطاء امام مالک ② مسند احمد
③ صحیح البخاری ④ صحیح مسلم
⑤ سنن ابی داؤد ⑥ سنن الترمذی
⑦ سنن نسائی ⑧ سنن ابن ماجة
⑨ معاجم طبرانی ⑩ مسند ابی یعلی موصلی
⑪ مسند بزار ⑫ صحیح ابن حبان
⑬ مستدرک حاکم ⑭ صحیح ابن خزیمه
⑮ کتب ابن ابی الدنیا ⑯ شعب الایمان او کتاب الزهد للبیهقی
⑰ ابو القاسم اصبهانی کتاب الترغیب والترهیب

حافظ منذری رحمه الله الترغیب والترهیب په لاندې لیکلې شوې فقهی ابوابو باندې مرتب کړې دې: کتاب العلم. کتاب الطهارة. کتاب النوافل. کتاب الجمعة. کتاب الصدقات. کتاب الصوم. کتاب العیدین. کتاب الحج. کتاب الجهاد. کتاب قراءة القرآن. کتاب الذکر والدعاء. کتاب البیوع. کتاب النکاح. کتاب اللباس. کتاب الطعام. کتاب الحدود. کتاب البر والصلة. کتاب الادب. کتاب التوبة والزهد. کتاب الجنائز. کتاب البعث واحوال القیامة.

حافظ منذری رحمه الله د احادیثو نه سند حذف کړی دی او عموما ئې صرف د صحابی یا تابعی نوم باقی پریخودلې دې. د کوم کتاب نه چه ئې حدیث اخستلې دې د هغې حواله ئې ورکړې ده او د حدیث حیثیت ئې واضح کړې دې او که یو حدیث متکلم فیه دې نو د محدثانه اصولو مطابق د ضعف د وجې هغوی وضاحت فرمائیلې دې. (۱)

زمونږ مخې ته چه دې وخت کښې کومه نسخه ده هغه د مصطفی محمد عمارة په تحقیق باندې دار احیاء التراث العربی بیروت په ۱۹۲۸ء کښې په څلورو جلدونو کښې شائع کړې ده او دریم ایډیشن دې. د کتاب په شروع کښې محقق تقریبا د دیرشو صفحاتو مقدمه لیکلې ده. چه په هغې کښې د اصول حدیث اصطلاحات او د کتاب د مراجع د مصنفینو تعارف ئې کړې دې.

---

(۱) اوګورئ: الترغیب والترهیب: ۱/۳۷-۵۰

# ۸۴: کتاب الرقاق

رقاق د رقیق جمع دہ. چه د هغې معنی ده: رقت والا، نرې، نرم
د صحیح بخاری په بعض نسخو کښې او د حدیث شریف په بعض کتابونو کښې رقائق دي. کوم چه د رقیقة جمع ده. حضرات محدثینو د دې کتاب د لاندې هغه احادیث جمع کوی. چه په هغې سره په زړه کښې دننه رقت او نرمذی پیدا کیږی (۱)

## ① باب مَا جَاءَ فِي الرِّقَاقِ وَأَنْ لَا عَيْشَ إِلَّا عَيْشُ الآخِرَةِ

په دې باب کښې امام بخاری رحمه الله دوه خبرې بیان کړې دی یوه خبره ئې د جسمانی صحت اود وختونو د فراغت فضیلت او اهمیت بیان کړې ده او دویمه خبره دا ده چه اصل ژوند د آخرت ژوند دې

[۶۰۴۹] حَدَّثَنَا الْمَكِّيُّ بْنُ إِبْرَاهِيمَ أَخْبَرَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ سَعِيدٍ - هُوَ ابْنُ أَبِي هِنْدٍ - عَنْ أَبِيهِ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ - رضى الله عنهما - قَالَ قَالَ النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - «نِعْمَتَانِ مَغْبُونٌ فِيهِمَا كَثِيرٌ مِنَ النَّاسِ، الصِّحَّةُ وَالْفَرَاغُ».
قَالَ عَبَّاسٌ الْعَنْبَرِيُّ حَدَّثَنَا صَفْوَانُ بْنُ عِيسَى عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ سَعِيدِ بْنِ أَبِي هِنْدٍ عَنْ أَبِيهِ سَمِعْتُ ابْنَ عَبَّاسٍ عَنِ النَّبِيِّ - صلى الله عليه وسلم: مثله

د سیدنا ابن عباس رضی الله عنهما نه روایت دې چه رسول الله ﷺ اوفرمائیل. دوه نعمتونه داسې دی چه اکثر خلق د دې په باره کښې په دهوکه کښې دی. صحت او فراغت. عباس عنبری بیان اوکړو چه مونږ ته صفوان بن عیسی د عبدالله بن سعید نه او هغوی د خپل والد نه نقل کړی دی چه ما د ابن عباس رضی الله عنهما نه واوریدل. هغوی د رسول الله ﷺ نه هم دغه شان حدیث واوریدلو

المکی نوم دې. نسبت نه دې. د امام بخاری رحمه الله په لویو استاذانو او شیوخو کښې دې.
عبدالله بن سعید د صغار تابعینو نه دې. هوابن ابی الهند په دې کښې «هو» ضمیر د سعید طرف ته راجع دې (۲)

**د صحت او فراغت دې قدر اوکړې شی**: رسول الله ﷺ په دې حدیث کښې ارشاد فرمائی چه انسان د دوه نعمتونو په باره کښې په غلط فهمئ کښې اخته وی. یو صحت او تندرستی او دویم د فراغت او فرصت وختونه

په دنیا کښې د داسې خلقو کمې نشته کوم چه خلق صحت او تندرستئ لره غنیمت گڼړلو سرد دین او دنیا په فائدو کښې د خرچ کولو په ځائې هغه ضائع کوی. بیا چه ئې کله صحت خراب شی او د بدن طاقتونه او صلاحیتونه ئې کار نه کوی نو بیا محسوسیږی چه د دنیا او

---

(۱) عمدة القاری: ۴۶/۲۳، فتح الباری: ۲۸۶/۱۱، ارشاد الساری: ۴۱۱/۱۳
(۲) عمدة القاری: ۴۷/۲۳، فتح الباری: ۲۸۶/۱۱، ارشاد الساری: /۱۳

اخرت د ځومره کارونو طرف ته. د صحت په زمانه کښې هغوی توجه ورکړې وه. هم دا حال د وختونو د فراغت دې، د فرصت وختونه ئې هم داسې ضائع لاړ شي. او روستو مختلف مشغولیات، مصروفیات او د کارونو چه کله هجوم راشي نو د فرصت د وختونو په ضائع کیدو باندې ډیر افسوس کوي.

﴿ مغبون ﴾ : د اسم مفعول صیغه ده یا خو د غبن نه اخستلې شوې دې (د نون په سکون سره) چه د هغې معنی د خسارې ده او یا د غَبَن (په فتحې د باء سره) چه د هغې معنی د رائې د کمزورئ راځي. مقصد دا دې چه کوم سړې د دې دواړو نعمتونو قدر اونکړو. هغه په خساره کښې پاتې شو یا په دهوکه کښې پاتې شو او په دې باره کښې د هغه سوچ او فکر کمزورې پاتې شو. څنګه چه سړې په اخستلو او خرڅولو کښې دهوکه خوړلو سره په مفتو کښې ګټه ورکه کړي او د خسارې ښکار شي. دغه شان د دې دوه نعمتونو ناقدری کونکي هم په خساره کښې وي (۱)

[۶۰۵۰] حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ حَدَّثَنَا غُنْدَرٌ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ مُعَاوِيَةَ بْنِ قُرَّةَ عَنْ أَنَسٍ عَنِ النَّبِيِّ - صلى الله عليه وسلم - قَالَ « اللَّهُمَّ لاَ عَيْشَ إِلاَّ عَيْشُ الآخِرَهْ ، فَأَصْلِحِ الأَنْصَارَ وَالْمُهَاجِرَهْ ». [۲۶۷۹]

د سیدنا انس رضي الله عنه نه روایت دې چه رسول الله صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل : اې الله ! اصل ژوند خو د آخرت ژوند دې. پس انصار او مهاجرین ته صالح او نیک ساته.

[۶۰۵۱] حَدَّثَنِي أَحْمَدُ بْنُ الْمِقْدَامِ حَدَّثَنَا الْفُضَيْلُ بْنُ سُلَيْمَانَ حَدَّثَنَا أَبُو حَازِمٍ حَدَّثَنَا سَهْلُ بْنُ سَعْدٍ السَّاعِدِيُّ كُنَّا مَعَ رَسُولِ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - فِي الْخَنْدَقِ وَهُوَ يَحْفِرُ وَنَحْنُ نَنْقُلُ التُّرَابَ وَيَمُرُّ بِنَا فَقَالَ « اللَّهُمَّ لاَ عَيْشَ إِلاَّ عَيْشُ الآخِرَهْ ، فَاغْفِرْ لِلأَنْصَارِ وَالْمُهَاجِرَهْ ». تَابَعَهُ سَهْلُ بْنُ سَعْدٍ عَنِ النَّبِيِّ - صلى الله عليه وسلم - مِثْلَهُ. [ر ۳۵۸۶]

د سیدنا سهل بن سعد رضي الله عنه روایت دې چه مونږ د رسول الله صلی الله علیه وسلم سره د غزوه خندق په موقع باندې موجود وو. رسول الله صلی الله علیه وسلم خندق کنستلو او مونږ خاوره منتقل کوله. او رسول الله صلی الله علیه وسلم مونږ ته نزدې تیریدلو سره اوفرمائیل اې الله ! اصل ژوند خو د آخرت ژوند دې، پس ته د انصارو او مهاجرینو مغفرت اوکړه. د دې روایت متابعت سهل بن سعد رضي الله عنه هم د رسول الله صلی الله علیه وسلم په حوالې سره کړې دې.

## ② باب مَثَلِ الدُّنْيَا فِي الآخِرَةِ

دنیا په مقابله د اخرت کښې. ﴿ في الاخرة ﴾ د جار مجرور تعلق د محذوف سره دې. تقدیر د عبارت داسې دې : مثل الدنيا بالنسبة الى الاخرة ... في حرف جر په معنی د الی دې. د قرآن کریم

(۱) عمدة القاري : ۴۷/۲۳، فتح الباري : ۲۸۶/۱۱

آيت كريمه ﴿ فَرَدُّوا أَيْدِيَهُمْ فِي أَفْوَاهِهِمْ ﴾ كښې هم فى په معنى د الى ده [١]. په تركيب كښې دننه ﴿مثل الدنيا﴾ مبتدا، ده او خبر محذوف دي ﴿كمثل لا شئ﴾ [٢].

په صحيح مسلم كښې د مستورد بن شداد رضي الله عنه روايت دي چه رسول الله ﷺ اوفرمائيل:

﴿ وَاللهِ مَا الدُّنْيَا فِي الْآخِرَةِ إِلَّا مِثْلُ مَا يَجْعَلُ أَحَدُكُمْ إِصْبَعَهُ فِي الْيَمِّ فَلْيَنْظُرْ بِمَ يَرْجِعُ ﴾ [٣]. يعنى قسم په الله د آخرت په مقابله كښې د دنيا مثال داسې دي. لكه چه په تاسو كښې يو سړې خپله ګوته په سمندر كښې ډوبه كړى او بيا اوګورى چه هغه ګوته د څه څيز سره واپس شوې ده

مطلب دا دي چه يو سړې په سمندر كښې ګوته ډوبه كړى نو په هغې باندې صرف لوند والي يا قطره نيمه لګيدلې وى. د دې لوند والى او قطرې د سمندر د اوبو په مقابله كښې هيڅ حيثيت هم نه دي. هم دغه شان د دنيا زمانې او نعمتونو د آخرت په مقابله كښې هيڅ مناسبت نشته. دا تمثيل هم صرف د خلقو د پوهه كولو دپاره دې ګڼي په حقيقت كښې د دنيا د نعمتونو د آخرت د نعمتونو سره مقابله هم نه شى كيدې. ځكه چه دنيا فانى او متناهى ده او آخرت باقى او غير متناهى دې

﴿ وَقَوْلِهِ تَعَالَى: أَنَّمَا الْحَيَاةُ الدُّنْيَا لَعِبٌ وَلَهْوٌ وَزِينَةٌ وَتَفَاخُرٌ بَيْنَكُمْ وَتَكَاثُرٌ فِي الْأَمْوَالِ وَالْأَوْلَادِ كَمَثَلِ غَيْثٍ أَعْجَبَ الْكُفَّارَ نَبَاتُهُ ثُمَّ يَهِيجُ فَتَرَاهُ مُصْفَرًّا ثُمَّ يَكُونُ حُطَامًا وَفِي الْآخِرَةِ عَذَابٌ شَدِيدٌ وَمَغْفِرَةٌ مِنَ اللهِ وَرِضْوَانٌ وَمَا الْحَيَاةُ الدُّنْيَا إِلَّا مَتَاعُ الْغُرُورِ ﴾ (الحديد: ٢٠)

تاسو ښه خان پوهه كړئ چه د دنيا ژوند صرف لوبه او تماشه ده. او ستاسو ترمينځه په يو بل باندې فخر كول او په مالونو او اولاد كښې په يو بل باندې ستاسو زيادت بيانول دى. لكه باران چه د هغې پيدوار زميندارو ته ښكلې معلوميږى. بيا هغه اوچ شى نو ته ئې زيړ وينې. بيا هغه ذره ذره شى. او په آخرت كښې سخت عذاب دې. او د الله پاك د طرف نه مغفرت او رضامندى ده او د دنيا ژوند صرف د دهوكې سامان دې

**د دنياوى ژوند عدم ثباتى** په دې آيت كريمه كښې الله پاك د دنياوى ژوند بې وقعتى بيانولو سره فرمائيلې دى چه د دنيا ژوند فانى. صرف د دهوكې او فريب سبب دې. هرګز قابل اشتغال مقصود نه دې ځكه چه هغه په ماشوم والى كښې په لوبو او تماشو. په ځوانئ كښې په ډول او زينت او قوت او جمال او په دنيوى هنر او كمال كښې خپل مينځ په يو بل باندې فخركول او په بوډاتوب كښې دمال اودولت او د اولاد د فكر كولو نوم دې او دا ټول مقاصد ډير زيات حقير او زر ختميدونكى دى. په سرعت زوال او اضمحلال كښې د هغې مثال د فصل په شان دې چه د هغې ښكلا او سپرلې څو ورځې وى. زميندار هغې ته كتلو سره خوشحاليږى. څوڅو ورځې پس هغه اوچيدوسره زيړشى.انسان او څاروى په هغې

---

[١]) عمدة القارى: ٤٨/٢٣. ارشاد السارى: ٤١٤/١٣. روح المعانى ٢٤٢/١٣

[٢]) عمدة القارى: ٤٨/٢٣. ارشاد السارى: ٤١٤/١٣

[٣]) صحيح مسلم، كتاب الجنة وصفة نعيمها، باب فناء الدنيا وبيان الحشر يوم القيامة، ١٧٩/١٨، رقم الحديث: ٧١٢٦

بندي ختلو سره هغه ذره ذره كړي او د هغه سپړلي او ښكلا نوم هم پاتې نه شي. هم دا حال د دې دنيا د ژوند دې. او د هغې په مقابله كښې د آخرت ژوند لافاني او هميشه باقي پاتې كيدونكي دي. چه په هغې كښې د اهل ايمان دپاره د الله پاک دطرف نه د رضامندئ او د مغفرت انعام او اكرام دي اود كفارو دپاره سخت عذاب دې اودا دواړه نه ختميدونكي امور دى. لهذا د مسلمان په دنيا كښې د انهماک په ځائې د آخرت دپاره توښه تيارول پكار دى

《لهو》 تفريحى مشغله. سامان تفريح. فضول كارونه وغيره كوم چه انسان د آخرت نه غافل كړى 《زينة》 ډول او زينت. سنګهار او فيشن وغيره.

《تفاخر》: قوت او جمال او دنيوى هنر او كمال كښې په يو بل باندې فخر كول

《تكاثرفي الاولاد والاموال》 په مالونو او اولاد كښې په يو بل باندې زيادت بيانول

《غيث》: باران 《الكفار》 زميندار مراد دى، كاشت كار ته كافر هم وئيلې شي. ځكه چه د كفر معنى ستر ده. پټول او زميندار هم په زمكه كښې تخم پټوى او د دې نه كافر هم مراد كيدې شي. ځكه چه د دنيا ډول او سنګار هغوى ډير زيات خوښوى.(١)

《يهيج: هاج النبت يهيج هيجا》 معنى ده: د ګيا يا بوټى اوچيدو سره زيړيدل. د فصل پخيدو ته نزدې كيدل. زورور كيدل.

《مصفرا》: د اصفرار نه دې. په معنى د زيړيدلو.

《حطاما》: د يو څيز ميده كيدل او ذره ذره كيدل.(٢)

[٦٠٥٢] حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مَسْلَمَةَ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيزِ بْنُ أَبِي حَازِمٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ سَهْلٍ قَالَ سَمِعْتُ النَّبِيَّ - صلى الله عليه وسلم - يَقُولُ «مَوْضِعُ سَوْطٍ فِي الْجَنَّةِ خَيْرٌ مِنَ الدُّنْيَا وَمَا فِيهَا، وَلَغَدْوَةٌ فِي سَبِيلِ اللَّهِ أَوْ رَوْحَةٌ خَيْرٌ مِنَ الدُّنْيَا وَمَا فِيهَا». ار ٢٦٤١]

د سيدنا سهل رضي الله عنه نه روايت دې چه رسول الله ﷺ اوفرمائيل: په جنت كښې د يو چابک په مقدار ځائې د دنيا او څه چه په دې كښې دى د دې نه غوره دى او د الله پاک په لاره كښې سحر يا مابنام تلل د دنيا وما فيها نه غوره دى.

**دنيا د اخرت په مقابله كښې هيڅ هم نه ده:** رسول الله ﷺ په دې حديث كښې دوه خبرې بيان فرمائيلې دى. يو دا چه په جنت كښې د يو چابک په مقدار ځائې د دنيا او د دې د ټولو خزانو نه غوره دې. د يو چابک ځائې ډير كم وى. مقصد دا دې چه د جنت لږه او مختصر حصه د دنيا او د هغې د ټولو نعمتونو او خزانو نه غوره ده. ځكه چه د دنيا نعمتونه فانى او زائل كيدونكى دى. او د آخرت هر نعمت ته دوام او بقا حاصله ده.

---

(١) روح المعاني ٢٧/٢٦٠، هم دغه شان د لغاتو د تحقيق دپاره اوګورئ: الكشف والبيان فى تفسير القرآن ١١٦/٦

(٢) قال الراغب: الحطام: ما يتكسر من اليبس (المفردات: ١٣٨)

**د حدیث دوه مطلبونه** دویمه خبره نبي ﷺ دا ارشاد اوفرمائیله چه د الله پاک په لاره کښې یو سحر او یو ماښام د دنیا او څه چه په دې کښې دی د ټولو نه غوره دی. حضرات محدثین د دې دوه مطلبونه بیان کړی دی

① یو دا چه د الله پاک په لاره کښې. د الله پاک د دین دپاره. د یو سحر او یو ماښام وخت خرچ کولو باندې په آخرت کښې چه کوم اجر او ثواب ملاویږی. هغه د دنیا او د هغې د ټولو خزانو نه غوره ده. ځکه چه د آخرت ثواب او اجر دائمی او د دنیا خوشحالئ فانی دی.[1]. د دې مطلب تائید د حدیث شریف په اوله جمله ﴿موضع سوط فی الجنة﴾ نه کیږی. څنګه چه په اوله جمله کښې د دنیا مقابله د آخرت سره کړې شوې ده. هم دغه شان په دې دویمه جمله کښې هم د آخرت د اجر او ثواب تقابل د دنیا سره کړې شوې دې. او مطلب دا دې چه د آخرت اجر د دنیا نه غوره دې

② دویم مطلب دا بیان کړې شوې دې چه یو سړې د الله پاک په لاره کښې سحر او ماښام خرچه کوی. د هغه اجر او ثواب د هغه سړی د اجر او ثواب نه زیات غوره دې کوم چه د دنیا او د دې د ټولو خزانو د خرچ کولو نه حاصلیږی. یعنی که یو سړې د دنیا او د هغې د ټولو خزانو مالک شی او هغه خرچ کړی، د هغې ثواب به هغه ته حاصل شی خو د دې ثواب په مقابله کښې د الله پاک په لاره کښې د الله پاک د دین د اوچت والی دپاره د سحر یا ماښام لګولو ثواب زیات غوره دې.[2]

په دې دویم مطلب کښې د ثواب تقابل د ثواب سره کړې شوې دې. یو د سحر او ماښام ثواب دې. دویم د دنیا د انفاق ثواب دې. اول ثواب ته ترجیح ورکړې شوې ده

د دې دویم مطلب تائید. د عبدالله بن رواحه رضی الله عنه د واقعې نه کیږی. رسول الله ﷺ په یو جهادی قافله کښې د هغوی تشکیل فرمائیلې وو. د جمعې په ورځ باندې قافله روانیدل وو. د سحر په وخت قافله روانه شوه او سیدنا عبدالله بن رواحه رضی الله عنه په دې سوچ باندې روستو پاتې شو چه د جمعې مونځ به د رسول الله ﷺ په ملګرتیا کښې ادا کړی او بیا به په تیزئ سره سفر کولو باندې د قافلې سره ملاؤ شی. رسول الله ﷺ چه کله هغوی په مسجد کښې اولیدل. تپوس ئې اوکړو. هغوی ورته خپله اراده عرض کړه نو رسول الله ﷺ اوفرمائیل ﴿لوانفقت ما فی الارض ما ادرکت فضل غدوتهم﴾ یعنی که ته د دنیا ټول دولت هم اوس خرچ کړې نو د سحر تلونکو ثواب نه شې موندلې.[3]

د سیدنا عبدالله بن رواحه رضی الله عنه پهدې حدیث کښې هم د ثواب مقابله د ثواب سره کړې شوې ده. د دې نه د دویم مطلب تائید کیږی او په ظاهره کښې په دواړو مطلبونو کښې هیڅ تضاد نشته. په دې وجه دواړه جمع کیدې شی.

---

[1] شرح ابن بطال: ۱۴/۵

[2] فتح الباری: ۱۴/۶. کتاب الجهاد. باب الغدوة والروحة فی سبیل الله.

[3] فتح الباری: ۱۴/۶

# ③ باب قول النبي صلى الله عليه وسلم «كُنْ فِي الدُّنْيَا كَأَنَّكَ غَرِيبٌ، أَوْ عَابِرُ سَبِيلٍ»

[٦٠٥٣] حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ أَبُو الْمُنْذِرِ الطُّفَاوِيُّ عَنْ سُلَيْمَانَ الأَعْمَشِ قَالَ حَدَّثَنِي مُجَاهِدٌ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُمَرَ - رضي الله عنهما - قَالَ أَخَذَ رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - بِمَنْكِبِي فَقَالَ «كُنْ فِي الدُّنْيَا كَأَنَّكَ غَرِيبٌ، أَوْ عَابِرُ سَبِيلٍ». وَكَانَ ابْنُ عُمَرَ يَقُولُ إِذَا أَمْسَيْتَ فَلاَ تَنْتَظِرِ الصَّبَاحَ، وَإِذَا أَصْبَحْتَ فَلاَ تَنْتَظِرِ الْمَسَاءَ، وَخُذْ مِنْ صِحَّتِكَ لِمَرَضِكَ، وَمِنْ حَيَاتِكَ لِمَوْتِكَ

د سيدنا عبد الله بن عمر رضی الله عنهما نه روايت دې چه رسول الله ﷺ زما اوږه نيولو سره اوفرمائيل: په دنيا کښې داسې شه لکه چه ته مسافر ئې يا په لاره باندې روان ئې. سيدنا ابن عمر رضی الله عنهما به فرمائيل چه سحر شی نو د ماښام مه په طمع کيږه. او چه کله سحر شی نو د ماښام انتظار مه کوه (بلکه چه کوم نيک عمل کول غواړې هم هغه وخت ئې کوه) خپل صحت لره د مرض نه مخکښې غنيمت اوګڼړه او خپل ژوند د مرګ نه مخکښې.

﴿الطُّفَاوِيُّ﴾ (د طاء په ضمې سره) دا نسبت دې د بنو طفاوه طرف ته. بعضو وئيلې دی چه دا په بصره کښې د يو ځائې نوم دې.(١) د هغوی نوم محمد بن عبدالرحمن دې او د امام بخاری رحمه الله شيخ الشيخ دې. د امام بخاری رحمه الله شيخ علی بن عبدالله دې. محمد بن عبدالرحمن د هغوی شيخ دې او دوی نقل کوی د سليمان بن معتمر نه کوم چه په اعمش سره مشهور دې

**په دنيا کښې دې د مسافر په شان ژوند تير کړی:** ﴿غَرِيبٌ أَوْ عَابِرُ سَبِيلٍ﴾: د غريب معنی د پردی دا او د عابر سبيل نه مراد په لاره باندې تيريدونکې او وړاندې تلونکې مسافر مراد دې. کوم سړې چه په يو ښار کښې دننه پردې وی، د هغه کور، متعلقين او پيژندګلو نه وی نو د هغوی سره تعلقات هم کوی، د حديث مطلب دا دې چه په دنيا کښې، د يو پردی او ناپيژندګلو سړی په شان د دنيوی تعلقاتو نه يو طرف ته کيدلو سره ژوند تيرول پکار دی يا د هغه سړی په شان چه مسافر وی او د وړاندې تلو دپاره سور وی. هغه اودريږی نه، په څه منزل او مقام باندې وخت نه ضائع کوی بلکه د هغه وړاندې تلو ته فکر وی، هم دغه شان يو مومن له هم دنيا ته د لارې د يو منزل نه زيات حيثيت نه دی ورکول پکار. هغه لره د خپل آخرت او انجام فکر کښې مستقل او مسلسل لګيدل پکار دی. علامه قسطلانی رحمه الله ليکی:

﴿قدم بلداً لا مسكن له فيها يؤويه ولا سكن يسليه خال عن الأهل والعيال والعلائق التى هى سبب الاشتغال عن الخالق ولما شبه الناسك السالك بالغريب الذى ليس له مسكن ترقى وأضرب عنه بقوله (أو عابر سبيل) لأن

(١) عمدة القاری: ٥٠/٢٣. ارشاد الساری: ٤١٦/١٣

الغريب قد يسكن في بلاد الغربة ويقيم فيها بخلاف عابر السبيل القاصد للبلد الشاسع وبينه وبينها أودية مردية ومفاوز مهلكة وهو بمرصد من قطاع الطريق فهل له أن يقيم لحظة أو يسكن لمحة ›[1].

**قوله: ﴿وَخُذْ مِنْ صِحَّتِكَ لِمَرَضِكَ﴾**: يعنى د خپلې تندرستئ او صحت نه د مرض او بيمارئ د وخت دپاره څه حاصل کړئ؛ مطلب دا دې چه د صحت په زمانه کښې محنت کول پکار دی او د اعمالو طرف ته پوره توجه کول پکار دی. چه ډير کرته انسان بيمار شی او د بيمارئ د وجې نه ډير زيات اعمال نه شی پوره کيدلې نو د صحت په زمانه کښې د حفظ ما تقدم په طور باندې د هغې د مخکښې نه تلافی کول پکار دی.

**پنځه څيزونه غنيمت اوګنړئ**: امام حاکم رحمه الله د سيدنا عبدالله بن عباس رضي الله عنهما روايت نقل فرمائيلې دې. په هغې کښې دی چه رسول الله ﷺ اوفرمائيل:

﴿ اغْتَنِمْ خَمْسًا قَبْلَ خَمْسٍ : شَبَابَكَ قَبْلَ هَرَمِكَ ، وَصِحَّتَكَ قَبْلَ سَقَمِكَ ، وَغِنَاكَ قَبْلَ فَقْرِكَ ، وَفَرَاغَكَ قَبْلَ شُغْلِكَ ، وَحَيَاتَكَ قَبْلَ مَوْتِكَ ﴾[2]

رسول الله ﷺ يو سړی ته نصيحت کولو سره اوفرمائيل: پنځه څيزونه د پنځو څيزونو نه مخکښې غنيمت اوګنړه. يعنی پنځه حالتونه داسې دی چه کله هغه موجود شی نو هغه د پنځه حالتونو نه مخکښې غنيمت اوګنړه. کوم چه په روستو زمانه کښې پيښيدونکې دی:

① د بوډاتوب نه مخکښې ځوانی يعنی خپله دا زمانه غنيمت اوګنړه او د دې نه پوره فائده اوچته کړه. چه په هغې کښې تاسو ته د عبادت او طاعت انجام ته رسول او د الله پاک دين لره د خورولو طاقت او همت پيدا شی، مخکښې د دې نه چه ستا د بدنی زوال زمانه راشی او ته د عبادت او طاعت وغيره په پوره کولو کښې ضعف او کمزوری محسوس کړې.

② د بيمارئ نه مخکښې صحت، يعنی د ايمان نه پس چه کوم څيز د ټولو نه لوئې نعمت دې، هغه صحت او تندرستی ده، لهذا د خپل صحت او تندرستئ په زمانه کښې اګر چه هغه د بوډا توب د دور نه ولې نه وی، يعنی د دينی او دنياوی خير او بهترئ دپاره چه څه کولې شئ اوکړئ.

③ د فقر او غريبئ نه مخکښې مالداری او خوشحالی، يعنی تاسو ته چه کوم مال او دولت نصيب شوې دې، د دې نه مخکښې چه هغه ستا د لاس نه اوځی چه د مرګ پنجه تا د هغه نه جدا کړی. ته هغه په عبادت ماليه يا صدقات او خيرات کښې خرچ کړه او دا دولت مندی او خوشحالی يو داسې غنيمت موقع اوګنړه چه په هغې کښې ته خپل اخروی فلاح او سعادت دپاره ډير څه کولې شې.

④ په مشغولتيا او فکرونو کښې د مبتلا کيدو نه مخکښې د فراغت او اطمينان وخت.

⑤ د مرګ نه مخکښې ژوند.

---

[1] ارشاد الساری: ۱۳/۴۱۶

[2] المستدر للامام الحاکم. کتاب الرقاق: ۳۴۱/۴. رقم الحديث: ۷۸۴۷

﴿اغتنم﴾ د باب افتعال نه د امر حاضر صيغه ده چه د هغې معنى دة. د غنيمت مال اخستل او غنيمت په اصل كښې خو هغه مال ته وائى، كوم چه مسلمان جنګيدلو او حمله كولو سره د حربى كافرانو نه حاصل كړى. خو د دې لفظ اطلاق په هغه څيز باندې هم كيږى كوم چه د څه محنت او مشقت نه بغير انسان ته حاصل شى.

د حديث حاصل دا دې چه ځوانى، صحت، دولت، د وخت فراغت او ژوند داسې څيزونه دى، كوم چه هميشه ملګرتيا نه كوى، د ځوانئ نه پس بوډاتوب، د صحت نه پس بيمارى، د دولت نه پس محتاجى، د وخت د فراغت نه پس فكرونه او مشاغل او د ژوند نه پس د مرګ راتلل لازمى امر دې ...

لهذا تر څو پورې چه دا څيزونه نه وى راپيښ شوې، د غنيمت موقع ئې اوګڼئ او په دې كښې كه د خپلې دنياوى او اخروى غوره والى دپاره څه كولې شې. نو د هغې نه غفلت مه اختياروئ.

## ⑷ باب فِى الأَمَلِ وَطُولِهِ

﴿امل﴾ اميد ته وائى، انسان په دنيا كښې اوږدې اوږده اميدونه كوى. په دې باب كښې امام بخارى رحمه الله د اوږدو اميدونو حقيقت واضح كړې دې.[1]

وَقَوْلِ اللّٰهِ تَعَالٰى (فَمَنْ زُحْزِحَ عَنِ النَّارِ وَأُدْخِلَ الْجَنَّةَ فَقَدْ فَازَ وَمَا الْحَيَاةُ الدُّنْيَا إِلَّا مَتَاعُ الْغُرُورِ) آل عمران: ۱۸۵ (ذَرْهُمْ يَأْكُلُوا وَيَتَمَتَّعُوا وَيُلْهِهِمُ الْأَمَلُ فَسَوْفَ يَعْلَمُونَ). الحجر: ۳

**د ترجمة الباب د ايتونو تفسير:**

**قوله:** ﴿فَمَنْ زُحْزِحَ عَنِ النَّارِ وَأُدْخِلَ الْجَنَّةَ فَقَدْ فَازَ وَمَا الْحَيَاةُ الدُّنْيَا إِلَّا مَتَاعُ الْغُرُورِ﴾: پس څوک چه هغه ورځ د جهنم د اور نه لرې كړې شو او جنت ته داخل كړې شو نو هغه كامياب شو او د دنيا ژوند صرف د دهوكې سودا ده.

﴿زحزح﴾: دا د باب فعلله نه د فعل ماضى مجهول صيغه ده. د دې مجرد ﴿زح يزح-زحا﴾ راځى، چه د هغې معنى ده: يو څيز لره د هغه د ځائې نه لرې كول. او د ﴿زحزح﴾ معنى ده:

---

[1]) قال القسطلانى رحمه الله: الامل: بفتح الهمزة والميم وهو الرجاء فيما تحبه النفس من طول عمر وزيادة غنى يقال أمل خيره يأمله أملاً، وكذلك التأميل ومعناه قريب من التمنى، وقيل الفرق بينهما أن الأمل ما تقدم سببه والتمنى بخلافه، وقيل الأمل إرادة الشخص تحصيل شىء يمكن حصوله فإذا فاته تمناه والرجاء تعليق القلب بمحبوب ليحصل فى المستقبل.

والفرق بين الرجاء والتمنى أن التمنى يورث صاحبه الكسل ولا يسلك طريق الجهد والجد وبعكسه صاحب الرجاء فالرجاء محمود والتمنى معلول كالأمل إلا للعالم فى العلم فلولا طول أمله ما صنف ولا ألّف. وفى الأمل سر لطيف لأنه لولا الأمل ما تهنى أحد بعيش ولا طابت نفسه أن يشرع فى عمل من أعمال الدنيا، وإنما المذموم منه الاسترسال فيه وعدم الاستعداد لأمر الآخرة. (ارشاد السارى، كتاب الرقاق: ۱۳/٤۱۷)

**جذب بعجلة**: په تندئ سره لري کول. رابنکل. دلته د دې معنی ده لرې کول او بچ کول

**د دنيوي ژوند حقيقت**: ﴿ متاع الغرور ﴾ غرور يا خو مصدر دې د ﴿ غريغر-غرورا ﴾ نه. په معنی د دهوکې ورکولو. يا د غار جمع ده، د متاع په معنی کنبې دې. ﴿ مايتمتع به وينتفع به مما يباع ويشترى ﴾[١] يعنی اخستلې کيدونکې او خرڅيدونکې قابل انتفاع څيز

الله پاک د دې دنيا سپک والې او د هغې خسامت باندې تنبيه او اشاره کولو سره د دې د سامان سره تشبيه ورکړې ده چه د هغې مالک د هغې عيب لره پټولو سره مشتری ته د هغې خوبيانې شمارلو سره د هغې په اخستلو باندې تيار کړی. حکيم الامت مولانا اشرف علی تهانوی رحمه الله فرمائی:

او دا چه ئې اوفرمائيل چه د دهوکې سودا ، د دې نه دې دا فهم نه کړې شی چه د دنيا ژوند د تولو دپاره ضرری دې. مطلب په تشبيه سره صرف دا دې چه دا د مقصود اصلی جوړولو قابله نه ده، بلکه که يو کريم قصدا دا سودا په ښه قيمت باندې اخلی نو د دې سودا سره دې مينه نه کوی. بلکه غنيمت ګنړلو سره دې خرڅه کړی. پس اهل حق ددې ژوند او د دې د فائدو په عوض کنبې د الله پاک نه اعمال صالحه او جنات عاليه اخلی.[٢]

**دويم ايت کريمه**:

**قوله**: ﴿ ذَرْهُمْ يَأْكُلُوا وَيَتَمَتَّعُوا وَيُلْهِهِمُ الْأَمَلُ فَسَوْفَ يَعْلَمُونَ ﴾: تاسو هغوی د هغوی په حال باندې پريږدئ. چه هغوی خوراک اوکړی، مزې اوکړی او خيالی منصوبې هغوی په غفلت کنبې واچوی، هغوی ته به نزدې حقيقت معلوم شی.

په دې آيت کريمه کنبې الله پاک رسول الله ﷺ ته تسلی ورکولو سره فرمائی چه هر کله دا خلق ستاسو په نصيحت باندې غور نه ګروی. په دې باندې عمل نه کوی او ستاسو خبره نه منی نو تاسو ولې د هغوی په غمونو کنبې ويلې کيږئ. د هغوی په کفر باندې غم مه کوئ، هغوی د هغوی په حال باندې پريږدئ چه خو ورځې د څناورو په شان خوراک څکاک اوکړی او مزې اوکړی او د مستقبل متعلق ښه اوږدۀ اوږدۀ اميدونه او خيالی منصوبې جوړې کړی. ډير زر به ورته هر څه معلوم شی، حقيقت به برانستلې شی. او وړاندې روستو خوړلې څکلې هر څه به ئې راوخی. پس څه خو په دنيا کنبې د مجاهدينو په لاس باندې د قيد او قتل په ذريعه حقيقت ښکاره شواو پوره تکميل به ئې په آخرت کنبې د دائمی عذاب په ذريعه اوشی.

﴿ ذرهم ﴾: ذر بمعنی اترك امر دې، د دې ماضی قليل الاستعمال ده.... ﴿ ياكلوا ﴾ د جواب امر کيدو د وجې نه مجزوم دې. ﴿ يتمتعوا ﴾ او ﴿ يُلْهِ ﴾ دا دواړه په ﴿ ياكلوا ﴾ باندې د معطوف کيدو د وجې نه مجزوم دی.

[١] ) ارشاد السارى ٤١٨/١٣، هم دغه شان اوګورئ: المفردات للراغب: ٥١٥

[٢] ) بيان القرآن: ٣٠٥/١، (سورة آل عمران)

﴿ يُلْهِ ﴾ : د الهى يلهى- الهاء نه د فعل مضارع معروف واحد مذكر غائب صيغه ده. په اصل كښې يلهى وو . ياء د جزم په وجه اوغورځيده (¹) د دې معنى ده غافل كول

وَقَالَ عَلِي ارْتَحَلَتِ الدُّنْيَا مُدْبِرَةً، وَارْتَحَلَتِ الآخِرَةُ مُقْبِلَةً، وَلِكُلِّ وَاحِدَةٍ مِنْهُمَا بَنُونَ، فَكُونُوا مِنْ أَبْنَاءِ الآخِرَةِ، وَلاَ تَكُونُوا مِنْ أَبْنَاءِ الدُّنْيَا، فَإِنَّ الْيَوْمَ عَمَلٌ وَلاَ حِسَابَ، وَغَدًا حِسَابٌ وَلاَ عَمَلَ. (بِمُزَحْزِحِهِ: [البقرة: ۹۶] / بِمُبَاعِدِهِ.

سيدنا على رضى الله عنه فرمائى دا دنيا د دې ځائې نه كوچ كولو سره مخ اړونكې روانه ده. او آخرت كوچ كولو سره زمونږ طرف ته مخ كولو سره راروان دې يعنى د دنيا زمونږ د طرف نه مخ اړولو سره د خپلې فنا طرف ته مخكښې كيدل او د آخرت د خپلې بقاء سره زمونږ طرف ته متوجه كيدل ظاهريږى او په دې دواړو يعنى دنيا او آخرت كښې د هر يو ځامن دى. پس تاسو نيک عمل اختيارولو سره او د آخرت طرف ته متوجه كيدو سره د آخرت ځامن شئ او د آخرت نه بې پرواه او د دنيا طرف ته رغبت او متوجه كيدلو سره د دنيا په ځامنو كښې مه كيږئ. ياد ساتئ! نن ورځ د عمل كولو ده. د حساب ورځ نه ده. يعنى دا دنيا دار العمل دې. دار الحساب نه دې «دلته بس زيات نه زيات نيک عمل كوئ» او صبا له به د قيامت په ورځ د حساب ورځ وى. د عمل كولو نه.

**قوله: ﴿ بِمُزَحْزِحِهِ (البقرة: ۹٦) : بِمُبَاعِدِهِ ﴾ :** ﴿ مزحزحه ﴾ دا د سورة بقرة په آيت نمبر ۹۲ كښې واقع دې ﴿ وَمَا هُوَ بِمُزَحْزِحِهِ مِنَ الْعَذَابِ ﴾ په دې كښې د ﴿ مزحزحه ﴾ معنى ﴿ مباعده ﴾ يعنى د لرې كونكى ده.

د آيت كريمه مطلب دا دې چه هغه د دې جهنم د عذاب نه لرې كونكې نه دې، مقصد دا دې چه د جهنم د عذاب نه به بچ نه شى.

﴿ فَمَنْ زُحْزِحَ..... ﴾ د مناسبت د وجې نه امام بخارى رحمه الله د سورة بقرة دا لفظ دلته ذكر كړو. لكه چه په صحيح بخارى كښې د امام بخارى رحمه الله دا اسلوب دې

[۶۰۵۴] حَدَّثَنَا صَدَقَةُ بْنُ الْفَضْلِ أَخْبَرَنَا يَحْيَى عَنْ سُفْيَانَ قَالَ حَدَّثَنِي أَبِي عَنْ مُنْذِرٍ عَنْ رَبِيعِ بْنِ خُثَيْمٍ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ - رضى الله عنه - قَالَ خَطَّ النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - خَطًّا مُرَبَّعًا، وَخَطَّ خَطًّا فِي الْوَسَطِ خَارِجًا مِنْهُ، وَخَطَّ خُطَطًا صِغَارًا إِلَى هَذَا الَّذِي فِي الْوَسَطِ، مِنْ جَانِبِهِ الَّذِي فِي الْوَسَطِ وَقَالَ «هَذَا الإِنْسَانُ، وَهَذَا أَجَلُهُ مُحِيطٌ بِهِ - أَوْ قَدْ أَحَاطَ بِهِ - وَهَذَا الَّذِي هُوَ خَارِجٌ أَمَلُهُ، وَهَذِهِ الْخُطَطُ الصِّغَارُ الأَعْرَاضُ، فَإِنْ أَخْطَأَهُ هَذَا نَهَشَهُ هَذَا، وَإِنْ أَخْطَأَهُ هَذَا نَهَشَهُ هَذَا».

د سيدنا عبدالله رضى الله عنه نه روايت دې چه رسول الله صلى الله عليه وسلم چوكور خط راښكلو، بيا ئې د هغې په مينځه يو خط راښكلو كوم چه د چوكور خط نه وتلې وو. د هغې نه پس ئې د مينځ والا

¹) اوګورئ: اعراب القرآن للدرويش: ۱۷۲/٤

خط په هغه حصه کښې کومه چه د چوکور ترمینځه وه. واړه واړه نور خطونه راښکل او وې فرمائیل چه دا انسان دې او دا د هغه مرګ دې کوم چه هغه لره ګیر کړې دې. او دا چه د مینځنی خط حصه، ده یا بهر وتلې ده. دا د هغه امید دې او واړه واړه خطوط مشکلات دی. پس انسان چه کله د یو (مشکل) نه بچ کیدو سره اوځی نو په بل کښې اونخلی او چه د دویم نه اوځی نو په دریم کښې اونخلی

**د اوږدو امیدونو دهوکه** : په دې حدیث کښې رسول الله ﷺ د انسانی ژوند د اوږدو امیدونو دهوکه ورکول بیان فرمائیلې دی چه انسان په خپل ژوند باندې د اوږدو امیدونو دنیا قائموی. د ارزوګانو دنیا ډولی کوی. د منصوبو یوه اوږده سلسله جوړوی خو هغه ته خبر نه وی چه هغه ډیر زر د دنیا نه روان دې. د هغه ژوند په زرګونو افتونو او مصیبتونو کښې ګیره ده. چه د یو آفت نه خلاص شی او بچ هم شی نو دویم آفت پرې راشی او دغه شان د هغه ژوند ختم شی.

**د نقشې په ذریعه د دنیا د حقیقت مثال** : رسول الله ﷺ دا حقیقت د یوې نقشې په ذریعه بیان فرمائیلې دې. هغوی یو چوکور مربع خط راښکلو. د هغې نه ئې یو خط د بهر طرف ته راښکلو او د مینځنی خط په خوا کښې ئې وړې وړې کرښې راښکلې. او د چوکور ډبې په شان خط طرف ته ئې اشاره کولو سره اوفرمائیل چه دا د انسان مرګ او اجل دې. چا چه دا انسان ګیر کړې دې او د هغې نه وړاندې انسان نه شی تلې. د مینځ خط طرف ته اشاره کولو سره ئې اوفرمائیل چه دا انسان دې او د وړو کرښو طرف ته اشاره کولو سره ئې اوفرمائیل چه دا هغه آفتونه دې کوم چه د انسانی ژوند طرف ته متوجه دی. د یو نه یو آفت انسان ښکار شی او که په آفت کښې ګیر نه شې نو طبعی مرګ خو بهر حال راتلل دی. علامه عینی ﷫ ددې نقشه داسې جوړه کړې ده.(۱)



مولانا محمد ادریس کاندهلوی ﷫ دې مخکښې نقشې ته معتمد وئیلې ده چه سیاق حدیث هم په دې باندې دلالت کوی. پس هغوی لیکی:

(۱) عمدة القاري : ۵۳/۲۳. (قلت : لفظ المربع فی الحدیث المذکور یدل علی ان الخط مربعا لا مستطیلا فخط مرتب کشف الباري لا یوافق الحدیث)

﴿ والاول المعتمد، وسياق الحديث يتنزل عليه فالاشارة بقوله هذا الانسان الى النقطة الداخلة وبقوله: وهذا اجله محيط به، الى المربع وبقوله: وهذا الذى هو خارج امله، على الخط المستطيل المنفرد، وبقوله: وهذه: الى الخطوط وهم المذكورة على سبيل المثال، لان المراد انحصارها فى عدد معين يؤيده قوله فى حديث انس بعده: اذ جاءه الخط الاقرب ... فانه اشارة به الى الخط المحيط به ﴾ (١)

يعني: اوله نقشه قابل اعتماد ده. او د حديث سياق هم په هغې نازليږي. په ﴿ هذا الانسان ﴾ سره اشاره ده دننه نقطې طرف ته او په ﴿ هذا اجله محيط به ﴾ سره اشاره ده د چوکور طرف ته او په ﴿ وهذا الذى هو خارج امله ﴾ سره اشاره ده د اوږد خط طرف ته کوم چه د بهر طرف ته وتلې دې او په ﴿ هذه ﴾ سره وړو خطونو طرف ته اشاره ده.

[٦٠٥٥] حَدَّثَنَا مُسْلِمٌ حَدَّثَنَا هَمَّامٌ عَنْ إِسْحَاقَ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ أَبِي طَلْحَةَ عَنْ أَنَسٍ قَالَ خَطَّ النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - خُطُوطًا فَقَالَ « هَذَا الأَمَلُ وَهَذَا أَجَلُهُ، فَبَيْنَمَا هُوَ كَذَلِكَ إِذْ جَاءَهُ الْخَطُّ الأَقْرَبُ ».

د سيدنا انس رضي الله عنه نه روايت دې چه رسول الله ﷺ څو خطونه راښکل او وې فرمائيل: دا اميد دې او دا مرګ دې. انسان هم په دې حالت کښې وي چه نزدې خط يعنې مرګ ته اورسيږي.

**قوله: ﴿ إِذْ جَاءَهُ الْخَطُّ الأَقْرَبُ ﴾:** د خط اقرب نه اجل مراد دې. علامه قسطلانى رحمه الله ليکي:

﴿ وهو الاجل المحيط به، اذ لا شك ان الخط المحيط هو اقرب من الخط الخارج عنه ﴾ (٢)

پس د بيهقي په روايت کښې د مرګ او د ترمذي په روايت کښې د اجل تصريح ده. (٣)

## ⑤ بَابُ مَنْ بَلَغَ سِتِّينَ سَنَةً فَقَدْ أَعْذَرَ اللَّهُ إِلَيْهِ فِي الْعُمُرِ

لِقَوْلِهِ (أَوَلَمْ نُعَمِّرْكُمْ مَا يَتَذَكَّرُ فِيهِ مَنْ تَذَكَّرَ وَجَاءَكُمُ النَّذِيرُ) فاطر: ٣٧ يعنى الشيب

**اوږد عمر اتمام حجت دې:** د امام بخارى رحمه الله مقصد دا دې چه يو سړي ته که الله پاک شپيته کاله ژوند ورکړو نو اوس هغه سره د آخرت د تيارئ په سلسله کښې هيڅ عذر باقي پاتې نه شو. اعذر د باب افعال نه دې او په دې کښې د سلب ماخذ خاصه ده. يعنې الله پاک د داسې سړي عذر زائل او ختم کړو، د دومره اوږد عمر موندلو باوجود که څوک د آخرت د فکر او تيارئ نه غافل شو نو داسې انسان سره به د دې غفلت او بې توجه کيدو هيڅ عذر نه وي چه پيش ئې کړې شي.

لِقَوْلِهِ (أَوَلَمْ نُعَمِّرْكُمْ مَا يَتَذَكَّرُ فِيهِ مَنْ تَذَكَّرَ وَجَاءَكُمُ النَّذِيرُ) فاطر: ٣٧ يعنى الشيب

(١) التعليق الصبيح شرح مشكاة المصابيح، باب الامل والحرص: ٦١/٦
(٢) ارشاد السارى: ٤٢٠/١٣
(٣) ارشاد السارى: ٤٢٠/١٣

ايا مونږ تاته دومره عمر نه وو درکړې چه په هغې کښې دې په څه باندې ځان پوهه کول غوښتل په هغې دې ځان پوهه کړې وې او تاته ويرونکې هم راغلې وو.

په دوزخ کښې پراته کفار به چغې وهى چه اې زمونږ ربه! مونږ د دې ځائې نه اوباسه: مونږ به اوس ښه نيک نيک کارونه کوو. د الله پاک د طرف نه به هغوى ته جواب ورکړې شى چه آيا مونږ تاسو ته دومره عمر نه وو ورکړې چه په هغې کښې تا ځان پوهه کول غوښتلې نو پوهه کولې دې شواو صرف په عمر درکولو باندې مو اکتفاء اونکړه. بلکه تاسو ته زمونږ د طرف نه ويرونکې هم راغلې وو.

**قوله: ﴿أَوَلَمْ نُعَمِّرْكُمْ﴾:** حکيم الامت مولانا اشرف على تهانوى رحمه الله فرمائى:

د عمر نه مراد د بلوغ عمر دې چه په قدر د ضرورت په هغې کښې کمال فهم حاصل شى. په دې وجه د مکلف کيدو هم دا حد مقرر کړې شوې دې. د امام قتادة رحمه الله په در منثور کښې هم دا تفسير منقول دې: **قال: اعلموا ان طول العمر حجة نزلت، وان فيهم لابن ثمان عشرة سنة.** او د دې نه مراد بلوغ دې لکه چه امام صاحب د اکثر بلوغ هم دا موده مقرر کړې ده او په بعض احاديثو کښې د دې په تفسير کښې شپيته کلونه راغلې دى. د دې نه مراد تخصيص نه دې بلکه مقصود دا دې چه په دې سره به نور هم زيات احتجاج وى.[1]

استفهام دپاره د انکار دې. واؤ دپاره د عطف دې او معطوف عليه مقدر دې او ما موصوله ده او تقديرى عبارت داسې دې: ﴿الم نهلكم ونعمركم الذى، اى: العمر الذى يتذكر فيه من تذكر﴾ ما موصوفه هم کيدې شى. ﴿ما﴾ نافيه وئيل غلط او مصدريه ظرفيه وئيل ضعيف دى.

**قوله: ﴿وَجَاءَكُمُ النَّذِيرُ﴾:** ددې عطف د جمله استفهاميه په معنى او مدلول باندې دې. گويا داسې اووئيلې شو ﴿عمرناكم وجاكم النذير﴾ غرض دا د عطف الخبر على الانشاء د قبيل نه نه دې.

**په ايت کريمه کښې د نذير مصداق:** ﴿نذير﴾ نه مراد يا خو رسول الله ﷺ دې، يا قرآن کريم دې. يا جنس نذير يعنى انبياء عليهم السلام دى. بعض وائى د دې نه مراد تبه ده. بعض وئيلې دى د دې نه مراد د خپلو خپلوانو مرگ دې. بعض ترې کمال عقل مراد کړې دې.[2] او د ابن عباس رضى الله عنهما نه روايت دې چه د دې نه د ويښتو سپين والې مراد دې. لکه چه امام بخارى رحمه الله دلته ذکر فرمائيلې دى.

[۶۰۵۶] حَدَّثَنِي عَبْدُ السَّلَامِ بْنُ مُطَهَّرٍ حَدَّثَنَا عُمَرُ بْنُ عَلِيٍّ عَنْ مَعْنِ بْنِ مُحَمَّدٍ الْغِفَارِيِّ عَنْ سَعِيدِ بْنِ أَبِي سَعِيدٍ الْمَقْبُرِيِّ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ -صلى الله عليه وسلم- فَقَالَ «أَعْذَرَ اللَّهُ إِلَى امْرِئٍ أَخَّرَ أَجَلَهُ حَتَّى بَلَّغَهُ سِتِّينَ سَنَةً».

تَابَعَهُ أَبُو حَازِمٍ وَابْنُ عَجْلَانَ عَنِ الْمَقْبُرِيِّ.

---

[1]) بيان القرآن ۲۲۵/۳

[2]) روح المعانى: ۵۱۲/۲۲

د سيدنا ابوهريره رضي الله عنه نه روايت دې چه رسول الله ﷺ اوفرمائيل. الله پاک د هغه سړى عذر ختم کړې دې د چا مرګ چه هغه دومره موخر کړو تردې چه شپيتو کالو ته نې اورسولو. د دې روايت متابعت ابو حازم او ابن عجلان هم د مقبرى په واسطې سره کړې دې.

**فائده**. په سند کښې د امام بخارى رحمه الله شيخ الشيخ عمر بن على دې. هغوى د معن بن محمد نه روايت کوى. عمر بن على مدلس دې او دلته هغوى د معن نه په عن سره روايت کوى. د مدلس عنعنه قبول نه وى. خو دا روايت احمد بن عبدالرزاق نقل کړې دې. په دې کښې عمر بن على د سماع تصريح کړې ده. خو په هغه روايت کښې د معن نوم نشته بلکه د (رجل من بني غفار) الفاظ دى. د رجل نه معن غفارى مراد دې. [1]

**قوله: (تَابَعَهُ أَبُو حَازِمٍ)**: يعنى د معن بن محمد غفارى رحمه الله متابعت ابو حازم سلمه بن دينار او محمد بن عجلان دواړو کړې دې، د ابو حازم دا متابعت امام نسائى رحمه الله او د ابن عجلان متابعت امام محمد رحمه الله موصولا نقل فرمائيلې دې. [2]

[٦٠٥٧] حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ حَدَّثَنَا أَبُو صَفْوَانَ عَبْدُ اللَّهِ بْنُ سَعِيدٍ حَدَّثَنَا يُونُسُ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ قَالَ أَخْبَرَنِي سَعِيدُ بْنُ الْمُسَيَّبِ أَنَّ أَبَا هُرَيْرَةَ - رضى الله عنه - قَالَ سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - يَقُولُ «لاَ يَزَالُ قَلْبُ الْكَبِيرِ شَابًّا فِي اثْنَتَيْنِ فِي حُبِّ الدُّنْيَا، وَطُولِ الأَمَلِ». قَالَ اللَّيْثُ حَدَّثَنِي يُونُسُ وَابْنُ وَهْبٍ عَنْ يُونُسَ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ قَالَ أَخْبَرَنِي سَعِيدٌ وَأَبُو سَلَمَةَ.

د سيدنا ابوهريره رضي الله عنه نه روايت دې چه رسول الله ﷺ اوفرمائيل: د بوډا سړى زړه د دوه څيزونو په باره کښې هميشه ځوان وى. د دنيا محبت او اوږد اميد.

**قوله: (قَالَ اللَّيْثُ)**: د ليث بن سعد رحمه الله دا تعليق اسماعيلى موصولا نقل کړې دې. په دې کښې د محمد بن شهاب دوه شيوخ دى. سعيد بن المسيب او ابو سلمة بن عبدالرحمن بن عوف. د سعيد د روايت الفاظ بعينه د روايت الباب الفاظ دى. خو په دې کښې د (فى حب الدنيا) په ځائې (فى حب المال) دې او د ابو سلمة د روايت الفاظ دى:

(قلب الشيخ شاب على حب اثنتين: طول الحياة وحب المال) [3]

يعنى د بوډا سړى زړه د دوه څيزونو په محبت سره ځوان وى، يو اوږد عمر او دويم د مال محبت.

---

[1] ارشاد السارى ٤٢١/١٣. فتح البارى ٢٨٨/١١

[2] فتح البارى: ٢٨٨/١١

[3] عمدة القارى: ٥٦/٢٣. ارشاد السارى: ٤٢٣/١٣

[۶۰۵۸] حَدَّثَنَا مُسْلِمُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ حَدَّثَنَا هِشَامٌ حَدَّثَنَا قَتَادَةُ عَنْ أَنَسٍ - رضى الله عنه - قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - « يَكْبَرُ ابْنُ آدَمَ وَيَكْبَرُ مَعَهُ اثْنَانِ حُبُّ الْمَالِ، وَطُولُ الْعُمُرِ ». رَوَاهُ شُعْبَةُ عَنْ قَتَادَةَ.

د سیدنا انس رضی الله عنه نه روایت دي چه رسول الله ﷺ اوفرمائیل د انسان عمر چه څومره څومره زیاتیږی. هغه سره دوه څیزونه هم په هغه کښې دننه زیاتیږی. د مال محبت او د عمر ډیروالي

**د امام شعبة رحمه الله خصوصیت** ﴿ رَوَاهُ شُعْبَةُ ﴾ د شعبه روایت امام مسلم رحمه الله موصولا نقل کړې دې [۱]

د شعبه دا تعلیق امام بخاری رحمه الله ذکر کولو سره د سند د انقطاع وهم لره د لرې کولو کوشش کړې دې. ځکه چه د روایت الباب په سند کښې امام قتادة رحمه الله په ﴿ عن ﴾ سره روایت نقل کوی او قتاده مدلس دې. او د شعبه معامله مختلف ده ځکه چه هغه د مدلس راویانو صرف هم هغه روایات نقل کوی چه د هغې په باره کښې د سماع د تصریح هغوی ته علم وی نو د شعبه د قتادة نه دا روایت نقل کول د تصریح سماع دلیل دې. په دې وجه امام بخاری رحمه الله ﴿ رواه شعبة عن قتادة ﴾ ذکر اوفرمائیل. [۲]

## ⑥ بَابُ الْعَمَلِ الَّذِي يُبْتَغَى بِهِ وَجْهُ اللَّهِ.

فِيهِ سَعْدٌ.

**د الله پاک د رضا والا عمل فضیلت** کوم عمل چه خالص د الله پاک د رضا دپاره کولې شی. د هغه په شریعت کښې ډیر اهمیت او فضیلت دې. امام بخاری رحمه الله په دې باب کښې د الله پا ک د رضا دپاره د کیدونکو اعمالو فضیلت بیان کړې دې.

﴿ فیه سعد ﴾ یعنی په دې باره کښې د سیدنا سعد بن ابی وقاص رضی الله عنه روایت دې کوم چه په کتاب الجنائز باب رثاء النبی صلی الله علیه وسلم سعد بن خولة د لاندې تیر شوې دې په هغې کښې دی چه کوم عمل د الله پاک د رضا دپاره اوکړې شی. په هغې سره به درجه او مرتبه اوچتیږی. د حدیث الفاظ دی ﴿ فَقُلْتُ: يَا رَسُولَ اللهِ، أُخَلَّفُ بَعْدَ أَصْحَابِي؟ قَالَ: إِنَّكَ لَنْ تُخَلَّفَ فَتَعْمَلَ عَمَلاً صَالِحًا، إِلاَّ ازْدَدْتَ بِهِ دَرَجَةً ﴾ [۳]

[۶۰۵۹] حَدَّثَنَا مُعَاذُ بْنُ أَسَدٍ أَخْبَرَنَا عَبْدُ اللَّهِ أَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ أَخْبَرَنِي مَحْمُودُ بْنُ الرَّبِيعِ وَزَعَمَ مَحْمُودٌ أَنَّهُ عَقَلَ رَسُولَ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - وَقَالَ وَعَقَلَ مَجَّةً مَجَّهَا مِنْ دَلْوٍ كَانَتْ فِي دَارِهِمْ.

---

[۱] عمدة القاری : ۵۶/۲۳. ارشاد الساری : ۴۲۳/۱۳

[۲] فتح الباری : ۲۹۰/۱۱. وعمدة القاری ۵۶/۲۳

[۳] فتح الباری ۲۹۱/۱۱. عمدة القاری ۵۶/۲۳

قَالَ سَمِعْتُ عِتْبَانَ بْنَ مَالِكٍ الْأَنْصَارِيَّ ثُمَّ أَحَدَ بَنِي سَالِمٍ قَالَ غَدَا عَلَيَّ رَسُولُ اللّٰهِ صلى الله عليه وسلم فَقَالَ «لَنْ يُوَافِيَ عَبْدٌ يَوْمَ الْقِيَامَةِ يَقُولُ لَا إِلٰهَ إِلَّا اللّٰهُ. يَبْتَغِي بِهِ وَجْهَ اللّٰهِ، إِلَّا حَرَّمَ اللّٰهُ عَلَيْهِ النَّارَ». [ر ۴۱۴]

سيدنا محمود بن ربيع رضی الله عنه به د دې حقيقت اظهار کولو چه رسول الله ﷺ د هغوی په ذهن کښې ښه محفوظ دې. هغوی فرمائی چه هغوی ته ياد دی چه رسول الله ﷺ د هغوی د کور د يوې بوقې نه اوبه اخستلو سره خوله مبارکه کنګال کړې وه. هغوی فرمائی: ما د عتبان بن مالک انصاری رضی الله عنه نه او بيا د بنو سالم د يو بلې صاحب نه واوريدل هغوی بيان اوکړو چه رسول الله ﷺ مونږ ته تشريف راوړلو او وې فرمائيل. کوم بنده هم چه د قيامت په ورځ په داسې حال کښې راشی چه هغه د کلمې ﴿لا اله الا الله﴾ اقرار کړې وی او په هغې سره د هغوی مقصد د الله پاک رضا حاصلول وی نو الله پاک به د دوزخ اور په هغه باندې حرام کړی.

**قوله:** ﴿قَالَ: سَمِعْتُ عِتْبَانَ بْنَ مَالِكٍ الْأَنْصَارِيَّ ثُمَّ أَحَدَ بَنِي سَالِمٍ﴾: سيدنا محمود بن الربيع رضی الله عنه فرمائی چه ما د سيدنا عتبان بن مالک انصاری او د بنو سالم د يو سړی نه واوريدل. په ﴿احد بنی سالم﴾ کښې دوه احتمالات دی.

① دا مرفوع دې او د دې عطف په محمود باندې دې. ای: اخبرنی محمود بن الربيع ثم احد بنی سالم ..... امام زهری رحمه الله فرمائی چه ماته محمود بن الربيع او د بنو سالم يو سړی حديث واورولو. ددې سړی نه حصين بن محمد انصاری مراد دې کوم چه د قبيله بنو سالم د سردارانو نه دې. امام زهری رحمه الله په يو بل روايت کښې د دې تصريح کړې ده.

② دويم احتمال دا دې چه د دې عطف په ﴿الانصاری﴾ باندې دې او دا منصوب دې يعنی ﴿سمعت عتبان الانصاری، واحد بنی سالم﴾ اوس په دې صورت کښې دوه مطلبونه کيدې شی.

الف محمود بن الربيع رحمه الله فرمائی چه ما د عتبان او بنو سالم د يو سړی نه حديث واوريدلو. ګويا د هغوی دوه شيوخ دی يو عتبان، دويم احد بنی سالم او د ﴿احد بنی سالم﴾ نه حصين بن محمد مراد دې کوم چه تابعی دې او حال دا چه محمود بن الربيع رضی الله عنه صحابی دې. صحابی د تابعی نه روايت کوی.

ب: او ﴿ثم احد بنی سالم﴾ دپاره ﴿الانصاری﴾ عطف تفسيری هم جوړولې شو، يعنی دا حديث ما د عتبان نه اوريدلې دې، کوم چه انصاری دې او د قبيله بنو سالم يو سړې دې، د عتبان بن مالک رضی الله عنه تعلق هم د قبيله بنو سالم سره دې.[1]

---

[1]) عمدة القارى: ۵۷/۲۳

[۲۰۲۰] حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ حَدَّثَنَا يَعْقُوبُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ عَنْ عَمْرٍو عَنْ سَعِيدٍ الْمَقْبُرِيِّ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - قَالَ «يَقُولُ اللَّهُ تَعَالَى مَا لِعَبْدِي الْمُؤْمِنِ عِنْدِي جَزَاءٌ، إِذَا قَبَضْتُ صَفِيَّهُ مِنْ أَهْلِ الدُّنْيَا، ثُمَّ احْتَسَبَهُ إِلاَّ الْجَنَّةُ».

د سیدنا ابوهریره رضی الله عنه نه روایت دې چه رسول الله ﷺ اوفرمائیل الله پاک فرمائی چه زما د دې مومن بنده چه څوک خپلوان او محبوب زه د دنیا نه اوچت کړم او هغه په دې باندې د ثواب نیت کولو سره صبر اوکړی نو د هغې بدله زما په نزد د جنت نه سوا هیڅ نه دی

﴿صَفِي﴾ د صاد په فتحې او د فاء په کسرې او د یاء په تشدید سره، هغه سړې کوم چه انسان ته محبوب وی لکه خوئې. رور. مخلص دوست [۱]

﴿احْتَسَبَهُ﴾ احتساب وائی. د ثواب او اجر نیت کول. ﴿الا الجنة﴾ د دې تعلق د ﴿مَا لِعَبْدِي الْمُؤْمِنِ﴾ سره دې [۲] هر یو کار که د آخرت د اجر او ثواب په نیت او ارادې سره اوکړې شی نو هغې ته د حدیث په اصطلاح کښې احتساب وائی

پس د رسول الله ﷺ یو مشهور حدیث دې ﴿من صام رمضان ایمانا واحتسابا غفر له ما تقدم من ذنبه وما تاخر﴾ یعنی کوم سړې هم چه د رمضان روژې د ایمان او د آخرت د اجر په نیت اونیسی. نو د هغه به وړاندې روستو ګناهونه معاف کړې شی په دې حدیث کښې د احتساب معنی د اجر او ثواب په نیت سره روژې نیول دی.

## ۷: بَاب مَا يُحْذَرُ مِنْ زَهْرَةِ الدُّنْيَا وَالتَّنَافُسِ فِيهَا

د امام بخاری رحمه الله په دې ترجمة الباب سره مقصد دا دې چه د دنیا د چمک دمک، کشش او د دنیا د حرص او هوس او په دې کښې د مقابلې نه ځان ساتل پکار دی.

[۲۰۲۱] حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ قَالَ حَدَّثَنِي إِسْمَاعِيلُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ بْنِ عُقْبَةَ عَنْ مُوسَى بْنِ عُقْبَةَ قَالَ ابْنُ شِهَابٍ حَدَّثَنِي عُرْوَةُ بْنُ الزُّبَيْرِ أَنَّ الْمِسْوَرَ بْنَ مَخْرَمَةَ أَخْبَرَهُ أَنَّ عَمْرَو بْنَ عَوْفٍ وَهُوَ حَلِيفٌ لِبَنِي عَامِرِ بْنِ لُؤَيٍّ كَانَ شَهِدَ بَدْرًا مَعَ رَسُولِ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - أَخْبَرَهُ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - بَعَثَ أَبَا عُبَيْدَةَ بْنَ الْجَرَّاحِ إِلَى الْبَحْرَيْنِ يَأْتِي بِجِزْيَتِهَا، وَكَانَ رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - هُوَ صَالَحَ أَهْلَ الْبَحْرَيْنِ، وَأَمَّرَ عَلَيْهِمُ الْعَلاَءَ بْنَ الْحَضْرَمِيِّ، فَقَدِمَ أَبُو عُبَيْدَةَ بِمَالٍ مِنَ الْبَحْرَيْنِ، فَسَمِعَتِ الأَنْصَارُ بِقُدُومِهِ فَوَافَتْهُ صَلاَةَ الصُّبْحِ مَعَ رَسُولِ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - فَلَمَّا انْصَرَفَ تَعَرَّضُوا لَهُ فَتَبَسَّمَ حِينَ رَآهُمْ وَقَالَ «أَظُنُّكُمْ سَمِعْتُمْ بِقُدُومِ أَبِي عُبَيْدَةَ، وَأَنَّهُ جَاءَ بِشَيْءٍ». قَالُوا أَجَلْ يَا رَسُولَ اللَّهِ.

---

[۱] عمدة القاری : ۵۷/۲۳

[۲] عمدة القاری : ۵۷/۲۳، وفتح الباری ۲۹۲/۱۱

قال «فأبشروا وأملوا ما يسركم، فوالله ما الفقر أخشى عليكم، ولكن أخشى عليكم أن تبسط عليكم الدنيا، كما بسطت على من كان قبلكم، فتنافسوها كما تنافسوها وتلهيكم كما ألهتهم». ار ۲۹۸۸

سیدنا مسور بن مخرمه رضي الله عنه خبر ورکړو چه سیدنا عمرو بن عوف رضي الله عنه کوم چه د بنو عامر بن لوئی حلیف وو او د بدر په جنګ کښې د رسول الله ﷺ سره شریک وو. هغوی بیان اوکړو چه رسول الله ﷺ سیدنا ابوعبیده بن الجراح رضي الله عنه د بحرین په جزیه راوړلو پسې اولیږلو. رسول الله ﷺ د بحرین والو سره صلح کړې وه. او په هغوی باندې ئې علاء بن حضرمی امیر مقرر کړې وو. چه کله ابوعبیده رضي الله عنه د بحرین د جزیې مال راوړلو نو انصارو د هغوی د راتلو واوریدل او د سحر مونځ ئې د رسول الله ﷺ سره اوکړو. او چه کله رسول الله ﷺ روان شو نو دا ټول خلق د هغوی مخې ته راغلل. رسول الله ﷺ د هغوی په لیدو باندې مسکې شو او وې فرمائیل زما خیال دې د ابوعبیده د راتلو متعلق تاسو اوریدلې دی او دا هم چه هغه څه راوړې دی؟ انصارو عرض اوکړو جی یا رسول الله ﷺ! رسول الله ﷺ اوفرمائیل: بیا دې تاسو ته زیرې وی تاسو د هغې امید ساتئ کوم چه به تاسو خوشحاله کړی. الله پاک ګواه دې: فقر او محتاجی هغه څیز نه دې چه د هغې نه زه ستاسو متعلق ویریږم. بلکه زه خو د دې نه ویریږم چه دنیا به په تاسو فراخه کړې شی څنګه چه په هغه خلقو باندې فراخه کړې شوې وه کوم چه ستاسو نه مخکښې وو او تاسو به هم د دې دپاره د یو بل نه د مخکښې کیدو داسې کوشش اوکړئ څنګه چه به هغوی کولو او تاسو به هم دغه شان غافل کړی څنګه چه ئې هغوی غافل کړې وو.

په سند کښې درې تابعین دی. موسی بن عقبة، ابن شهاب او عروة بن زبیر، دوه صحابه دی. سیدنا مسور بن مخرمه او سیدنا عمرو بن عوف رضي الله عنهما دا ټول مدنی دی. [1]

د علاء بن الخضرمی نوم عبدالله بن مالک بن ربیعه دې.

**قوله:** ﴿ما الفقر أخشى عليكم﴾: ﴿الفقر﴾ منصوب دې. ما اضمر عامله على شريطة التفسير د قبیل نه دې. او دې لره مبتداء جوړولو سره مرفوع هم لوستلې شو. په دواړو صورتونو کښې د ﴿اخشى﴾ مفعول به به حذف وی. په دې صورت کښې به هغه د وجې د اشتغال نه په ﴿الفقر﴾ کښې عمل نه شی کولې. لهذا د الفقر فعل به ناصب مقدر وی. کوم چه ﴿اخشى﴾ دې او په دویم صورت کښې به ﴿الفقر﴾ د ما اسم کیدو د وجې نه مرفوع وی. او خبر چه کله جمله وی نو په هغې کښې چونکه د عائد کیدل ضروری وی په دې وجه د ﴿اخشى﴾ مفعول به به مقدر منلې شی. کوم چه ضمیر غائب دې او د ﴿الفقر﴾ طرف ته راجع دې، تقدیری عبارت داسې دې: ﴿ما الفقر اخشاه عليكم﴾. [2]

[1]) فتح الباری ۲۹٤/۱۱، عمدة القاری: ۵۹/۲۳

[2]) فتح الباری ۲۹۵/۱۱، عمدة القاری: ۶۰/۲۳

[۶۰۶۲] حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ يَزِيدَ بْنِ أَبِي حَبِيبٍ عَنْ أَبِي الْخَيْرِ عَنْ عُقْبَةَ بْنِ عَامِرٍ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - خَرَجَ يَوْمًا فَصَلَّى عَلَى أَهْلِ أُحُدٍ صَلاَتَهُ عَلَى الْمَيِّتِ، ثُمَّ انْصَرَفَ إِلَى الْمِنْبَرِ فَقَالَ «إِنِّي فَرَطُكُمْ وَأَنَا شَهِيدٌ عَلَيْكُمْ، وَإِنِّي وَاللَّهِ لأَنْظُرُ إِلَى حَوْضِي الآنَ، وَإِنِّي قَدْ أُعْطِيتُ مَفَاتِيحَ خَزَائِنِ الأَرْضِ - أَوْ مَفَاتِيحَ الأَرْضِ - وَإِنِّي وَاللَّهِ مَا أَخَافُ عَلَيْكُمْ أَنْ تُشْرِكُوا بَعْدِي، وَلَكِنِّي أَخَافُ عَلَيْكُمْ أَنْ تَنَافَسُوا فِيهَا».

د سيدنا عقبه بن عامر رضي الله عنه نه روايت دې چه رسول الله ﷺ بهر تشريف راوړلو نو د جنګ احد په شهيدانو باندې ئې داسې مونځ اوکړو څنګه چه د مړی جنازه لوستلې شی. بيا رسول الله ﷺ منبر ته تشريف راوړلو او وې فرمائيل: زه به ستاسو نه مخکښې څم او زه به په تاسو باندې ګواه يم. والله! زه خپل حوض دې وخت کښې داسې وينم او ما ته د زمکې د خزانو کنجيانې راکړې شوې دی يا ئې اوفرمائيل، د زمکې کنجيانې راکړې شوې دی او والله! زه ستاسو متعلق د دې نه نه ويريږم چه تاسو به زما نه روستو شرک اوکړئ بلکه زما ستاسو متعلق د دې ويره ده چه تاسو به په دنيا کښې د دې د حصول دپاره د يو بل نه د مخکښې کيدو کوشش کوئ.

د ابو الخير نوم مرثد بن عبد الله دې

[۶۰۶۳] حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ قَالَ حَدَّثَنِي مَالِكٌ عَنْ زَيْدِ بْنِ أَسْلَمَ عَنْ عَطَاءِ بْنِ يَسَارٍ عَنْ أَبِي سَعِيدٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - «إِنَّ أَكْثَرَ مَا أَخَافُ عَلَيْكُمْ مَا يُخْرِجُ اللَّهُ لَكُمْ مِنْ بَرَكَاتِ الأَرْضِ». قِيلَ وَمَا بَرَكَاتُ الأَرْضِ قَالَ «زَهْرَةُ الدُّنْيَا». فَقَالَ لَهُ رَجُلٌ هَلْ يَأْتِي الْخَيْرُ بِالشَّرِّ فَصَمَتَ النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - حَتَّى ظَنَنَّا أَنَّهُ يُنْزَلُ عَلَيْهِ، ثُمَّ جَعَلَ يَمْسَحُ عَنْ جَبِينِهِ فَقَالَ «أَيْنَ السَّائِلُ». قَالَ أَنَا. قَالَ أَبُو سَعِيدٍ لَقَدْ حَمِدْنَاهُ حِينَ طَلَعَ ذَلِكَ. قَالَ «لاَ يَأْتِي الْخَيْرُ إِلاَّ بِالْخَيْرِ، إِنَّ هَذَا الْمَالَ خَضِرَةٌ حُلْوَةٌ، وَإِنَّ كُلَّ مَا أَنْبَتَ الرَّبِيعُ يَقْتُلُ حَبَطًا أَوْ يُلِمُّ، إِلاَّ آكِلَةَ الْخَضِرَةِ، أَكَلَتْ حَتَّى إِذَا امْتَدَّتْ خَاصِرَتَاهَا اسْتَقْبَلَتِ الشَّمْسَ، فَاجْتَرَّتْ وَثَلَطَتْ وَبَالَتْ، ثُمَّ عَادَتْ فَأَكَلَتْ، وَإِنَّ هَذَا الْمَالَ حُلْوَةٌ، مَنْ أَخَذَهُ بِحَقِّهِ وَوَضَعَهُ فِي حَقِّهِ، فَنِعْمَ الْمَعُونَةُ هُوَ، وَمَنْ أَخَذَهُ بِغَيْرِ حَقِّهِ، كَانَ الَّذِي يَأْكُلُ وَلاَ يَشْبَعُ». [ر: ۸۷۹]

د سيدنا ابو سعيد خدری رضي الله عنه نه روايت دې چه رسول الله ﷺ اوفرمائيل: زه ستاسو متعلق د ټولو نه زياته ويره د دې لرم. چه الله پاک به د زمکې برکتونه ستاسو دپاره راوباسی. تپوس اوکړې شو. د زمکې برکتونه څه دی؟ وې فرمائيل: د دنيا فراخی. په دې باندې يو سړی د رسول الله ﷺ نه تپوس اوکړو: آيا خير به شر راوړی؟ رسول الله ﷺ خاموش شو او مونږ خيال اوکړو چه کيدې شی په هغوی باندې وحی نازليږی. د دې نه پس رسول الله ﷺ تندې صفا کړو او تپوس ئې اوفرمائيلو هغه تپوس کونکې سړې چرته دې؟ تپوس کونکی اووې زه يم!

سيدنا ابوسعيد خدرى رضي الله عنه فرمائى چه كله د دې سوال حل زمونږ مخې ته راغلو نو مونږ د هغه صاحب تعريف اوكړو. رسول الله ﷺ اوفرمائيل خير خو صرف خير راوړى. خو دا مال د شين او ښكلي ګيا په شان دې او كوم څيزونه هم چه سپرلې راټوكوي هغه په حرص زيات خوراك كونكو لره هلك يا هلاكت ته نزدې كړى. سوا د هغه څاروى نه چا چه په ډكه خيټه خوراك كړې وى، تردې چه كله د هغه تشى ډک شى نو هغه نمر ته مخ كولو سره شخوند اوهلو. او بيا ئې واړۀ او لوئې بول اوكړل او بيا د هغې نه پس ئې بيا واپس كيدو سره خوراك اوكړو

او دا مال هم ډير خوږ دې، چا چه دا په حق سره واخستلو او په حق كښې ئې خرچ كړو نو هغه بهترينه ذريعه ده او چا چه دا په ناجائز طريقې سره حاصل كړو نو د هغه سړى په شان دې چه خوراك كوى خو مړيږى نه.

**قوله:** ﴿لَقَدْ حَمِدْنَاهُ حِينَ طَلَعَ ذَلِكَ﴾: يعنى په شروع كښې خو د هغه سوال په مونږ ښه او نه لګيدو ځكه چه د هغه په سوال كولو باندې رسول الله ﷺ خاموش شو (مونږ اوګڼړله چه هغوى خفه شو) خو چه كله خبره واضحه شوه نو مونږ د هغه تعريف اوكړو، ﴿ طلع بمعنى ظهر﴾ دې.

﴿خَضِرَةٌ﴾: د خاء په فتحې او د ضاد په كسرې سره دې په معنى د شين او سرسبز

﴿يَقْتُلُ حَبَطًا أَوْ يُلِمُّ﴾: ﴿حبط﴾ د زيات خوراک د وجې نه د خيټې پړسيدو ته وائى.

﴿حبطت الدابة﴾: څاروى دومره خوراک اوكړو چه خيټې ئې اوپړسيده او مړ شو. (۱)

﴿يلم﴾ يعنى موسمى سپرلې چه كومه ګيا راټوكوى او د زيات خوراک كولو د وجې نه وژل كوى يا ئې وژلو ته نزدې كړى.

﴿آكِلَةَ الْخَضِرِ﴾: اكلة: د اسم فاعل مونث صيغه ده، خوراک كونكې څاروې.

﴿امْتَدَّتْ خَاصِرَتَاهَا﴾: يعنى د هغه دواړه تشى ډک شو او ښه نيغ شو.

﴿فَاجْتَرَّتْ﴾ شخوند وهل، خوړلې شوې ګيا راويستلو سره دوباره ميده كول.

﴿ثلطت﴾: سوټه كول. (۲)

**قوله:** ﴿إِنَّ هَذَا الْمَالَ خَضِرَةٌ حُلْوَةٌ﴾: ﴿خضرة﴾ او ﴿حلوة﴾ مؤنث دې او مال مذكر دې او په اسم ﴿ان﴾ اودهغې په خبر كښې د تذكير او تانيث په اعتبار سره مطابقت ضرورى دې. په دې وجه په عبارت كښې مختلف تاويلات كړې شوې دى؛

---

(۱) حبطت الدابة حبطا : اذا اصابت مرعى طيبا، فافرطت فى الاكل حتى تنفخ، فتموت. (النهاية فى غريب الحديث : ۳۲٤/۱)

(۲) د لغاتو د تشريح دپاره اوګورئ : عمدة القارى ۶۲/۲۳، وفتح البارى : ۲۹۷/۱۱

① یو دا چه د مال نه مراد ﴿الحیاة بالمال﴾ دې او ﴿خضرة﴾ د دې خبر دې
② دویم دا چه د مال نه دنیا مراد ده او هغه مونث ده
③ دریم دا چه په دې سره تشبیه مقصود ده، ای: المال کالبقلة الخضرة الحلوة.[۱]

**قوله:** ﴿فَقَالَ لَهُ رَجُلٌ هَلْ يَأْتِي الْخَيْرُ بِالشَّرِّ؟﴾: یو سړي عرض اوکړو چه یا رسول الله ﷺ! ایا خیر به د ځان سره شر هم راوړي؟ یعنې د ملکي فتوحاتو او اقتدار د وجې نه به چه مونږ مسلمانانو ته کوم مال غنیمت او سازوسامان حاصلیږي، هغه خو به زمونږ دپاره د الله پاک نعمت وي، او هسې هم په جائز وسائلو او ذرائع سره حاصلیدونکي دولت او د رزق وغیره وسعت او فراخي یو ښه څیز دې، نو دا څنګه ممکن ده چه د الله پاک ورکړې شوې نعمت او یو ښه څیز زمونږ دپاره د بدئ او فتنې او ترک طاعات سبب او ذریعه جوړه شي.

**قوله:** ﴿فَقَالَ إِنَّهُ لَا يَأْتِي الْخَيْرُ بِالشَّرِّ وَإِنَّ مِمَّا يُنْبِتُ الرَّبِيعُ يَقْتُلُ، أَوْ يُلِمُّ إِلَّا آكِلَةَ الْخَضْرَاءِ﴾: رسول الله ﷺ اوفرمائیل چه حقیقت دا دې چه خیر کله هم د ځان سره شر نه راوړي، یعنې په جائز ذرائع سره د مال او دولت حاصلیدل او په رزق کښې د وسعت او فراخئ او خوشحالئ نصیب کیدل، په خیرونو کښې یو خیر دې او د دې په وجه هیڅ بدی نه راځي، بلکه اصل کښې د شر راتلل د هغه عوارضو د وجې نه دی کوم چه د دولت مندئ او خوشحالئ په وخت لاحق کیږي. لکه بخل او اسراف او د حد اعتدال نه تجاوز.

او د دې مثال سپرلي دې کوم چه د زمکې د خیټې نه ګیا وغیره راوباسی او د خپل ذات په اعتبار سره خو ښه او فائده مند وي، خو د هغې نه نقصان هغه وخت رسیږي چه کله یو ځاروې د خپل ضرورت نه زیاتی خوراک اوکړي او د ډیر خوراک د وجې نه په هلاکت کښې اخته شي.

پس خپله رسول الله ﷺ د دې مثال داسې بیان اوفرمائیلو چه د سپرلي موسم کومه ګیا راوباسی، هغه په حقیقت کښې خو د خیر او فائدې څیز وي چه هغه د خپل ځان سره هیڅ نقصان او بدی راوړلو سره د زمکې د خیټې نه نهٔ راوځي. خو هغه ځاروی لره د هغه خیټه پړسولو سره وژني، او که هغه مړ نه شي نو مرګ ته نزدې شي. یعنې کوم ځاروې چه په دې ګیا کښې د حد نه واوري، هغه د دې ګیا د وجې نه نهٔ بلکه د خپل فعل یعنې زیات خوراک د وجې نه ضرور په هلاکت کښې واقع شي. هغه داسې چه هغه خوراک کونکي ځاروی دا ګیا داسې اوخوړله چه کله د ډیر خوراک د وجې نه د هغه دواړه تشی اوپړسیدل نو هغه د نمر مخې ته کیناستلو. لکه چه د ځاروی عادت وي چه کله د بدهضمئ د وجې نه د هغه خیټه اوپړسیږي نو هغه په نمر کیني او د هغه وجود ګرمی موندلو سره نرم شي او په هغه کښې چه څه وي هغه بهر راشي، بیا چه کله نرمه سوټه او متیازې کولو سره هغه خپله خیټه سپکه کړي نو د سریدو دپاره د چراګاه طرف ته روان شي.

[۱]) ارشاد الساري: ۱۳/۴۲۸، فتح الباري: ۱۱/۲۹۷

**د دولت ډیر والې کله نعمت دې؟** ﴿ وَإِنَّ هٰذَا الْمَالَ خَضِرَةٌ حُلْوَةٌ ﴾ د مذکوره مثال او د هغې د مطابقت بیانولو نه پس رسول الله ﷺ دا مال او زر ډیر شین او نرم او مزیدار دې وئیلو سره د دې حقیقت طرف ته اشاره اوفرمائیله چه د دنیا مال او زر. د هغه د محبت او مصارف د تعلق نه د انسانانو حالات او خیالات مختلف وی. چه څه خلق خو هغه وی کوم چه صرف د حاجت او ضرورت په قدر د مال او اسباب په حصول باندې اکتفاء کوی او د هغې د حصول دپاره هم جائز او صحیح وسائل او ذرائع اختیاروی هم دغه شان هغوی سره چه کوم مال او اسباب او پیسې وی. هغوی هغې لره په ښه مصارفو کښې خرچ کوی.
خو څه خلق داسې وی کوم چه مال او دولت لره هرڅه ګنړی. د هغوی حرص او طمع په هیڅ حد باندې قناعت نه کوی. هغوی نه صرف دا چه د ضرورت او حاجت نه د زائد مال او زر حاصلولو سعی او کوشش کوی. او د هغې په راجمع کولو کښې لګیدلې وی. بلکه د هغې په حصول کښې د جائز او ناجائز ترمینځه هیڅ تمیز نه کوی. د سختو نه سختې بدئ ارتکاب کولو سره او حرام ذرائع لره اختیارولو سره دولت راټولوی.
د دې نه علاوه هغوی سره چه کوم مال دولت او روپئ پیسې وی. هغه په حقدارانو باندې او په هغه مصارفو کښې نه خرچ کوی. کوم چه د الله پاک د رضا باعث وی. او د مال او دولت متعلق د هغوی دا حرص او طمع هغوی لره د هغه سړی په شان کړی چه خوراک کوی. خو د حرص د غلبې د وجې نه نه مړیږی. یا د هغوی حالت د هغه سړي په شان شی کوم چه د استسقاء مریض وی چه هیڅ وخت هم نه مړیږی او څومره چه اوبه څکی. هم دومره ئې تنده زیاتیږی او خیټه ئې پړسیږی.

[۶۰۶۴] حَدَّثَنِي مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ حَدَّثَنَا غُنْدَرٌ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ قَالَ سَمِعْتُ أَبَا جَمْرَةَ قَالَ حَدَّثَنِي زَهْدَمُ بْنُ مُضَرِّبٍ قَالَ سَمِعْتُ عِمْرَانَ بْنَ حُصَيْنٍ - رضي الله عنهما - عَنِ النَّبِيِّ - صلى الله عليه وسلم - قَالَ «خَيْرُكُمْ قَرْنِي، ثُمَّ الَّذِينَ يَلُونَهُمْ، ثُمَّ الَّذِينَ يَلُونَهُمْ». قَالَ عِمْرَانُ فَمَا أَدْرِي قَالَ النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - بَعْدَ قَوْلِهِ مَرَّتَيْنِ أَوْ ثَلاَثًا «ثُمَّ يَكُونُ بَعْدَهُمْ قَوْمٌ يَشْهَدُونَ وَلاَ يُسْتَشْهَدُونَ، وَيَخُونُونَ وَلاَ يُؤْتَمَنُونَ، وَيَنْذِرُونَ وَلاَ يَفُونَ وَيَظْهَرُ فِيهِمُ السِّمَنُ». [ر ۲۵۰۸]

د سیدنا عمران بن حصین رضی الله عنه نه روایت دې چه رسول الله ﷺ اوفرمائیل په تاسو کښې د ټولو نه غوره زمانه ده، بیا د هغه خلقو زمانه ده کوم چه به د دې نه روستو وی، سیدنا عمران رضی الله عنه فرمائی ماته معلومه نه ده چه رسول الله ﷺ دا ارشاد دوه کرته بیان کړو یا درې کرته. بیا به د دې نه روستو هغه خلق وی کوم چه به ګواهی ورکوی خو د هغوی ګواهی به نه وی طلب کړې شوې. هغوی به خیانت کوی او د هغوی نه به اعتماد او چت کړې شی. هغوی به منخته کوی خو پوره کوی به ئې نه او په هغوی کښې به څورب والې خور شی.

**قوله:** ﴿ وَيَظْهَرُ فِيهِمُ السِّمَنُ ﴾: ﴿ سمن ﴾ څورب والی ته وائی. د سنن ترمذی په روایت

كنبي دى. ﴿ ثم يجئ قوم يتسمنون ويحبون السمن ﴾[1] يعنى د دې نه پس به داسې خلق راشى چه غورب به وى او غورب والى به خوښوى.

په يو بل حديث كښې راځى ﴿ ان الله يبغض الحبر السمين ﴾[2] يعنى الله پاک د غورب ملا سره بغض كوى علماء كرامو ليكلي دى چه د دې نه مراد صرف د بدن غورب والى نه دې مراد. بلكه مقصد ئې په تعيش او عيش و عشرت كښې اخته كيدل دى يعنى داسې خلق به راشى چه هغوى به عيش و عشرت او لوفرى خوښوى چونكه عموما غورب والي هم د لا پرواهئ او عيش وعشرت په نتيجه كښې وى. په دې وجه حديث كښې د دې ذكر راغلي دې.

[۲۰۶۵] حَدَّثَنَا عَبْدَانُ عَنْ أَبِي حَمْزَةَ عَنِ الأَعْمَشِ عَنْ إِبْرَاهِيمَ عَنْ عَبِيدَةَ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ رضى الله عنه - عَنِ النَّبِيِّ - صلى الله عليه وسلم - قَالَ «خَيْرُ النَّاسِ قَرْنِي، ثُمَّ الَّذِينَ يَلُونَهُمْ، ثُمَّ الَّذِينَ يَلُونَهُمْ، ثُمَّ يَجِيءُ مِنْ بَعْدِهِمْ قَوْمٌ تَسْبِقُ شَهَادَتُهُمْ أَيْمَانَهُمْ وَأَيْمَانُهُمْ شَهَادَتَهُمْ». ار: ۲۵۰۹]

د سيدنا عبدالله بن مسعود رضی الله عنه نه روايت دې چه رسول الله صلی الله علیه وسلم اوفرمائيل: د ټولو نه غوره زمانه زما ده. د هغې نه پس د هغه خلقو كوم چه به د دوى نه پس وى او د هغې نه پس به داسې خلق پيدا شى چه د هغوى ګواهئ به د هغوى د قسمونو نه مخكښې كيږى او قسمونه به ئې د ګواهو نه (يعنى په دروغه د ګواهئ وركولو شوقيان به وى)

﴿عبدان﴾ عبدالله بن عثمان مروزى لقب دې. د ابو حمزه نوم محمد بن ميمون دې

﴿عَبيدہ﴾ (د په فتحې او د باء په كسرې سره دې) د هغوى د پلاره نوم قيس دې.

قوله: ﴿ثُمَّ يَجِيءُ مِنْ بَعْدِهِمْ قَوْمٌ تَسْبِقُ شَهَادَتُهُمْ﴾: مطلب دا دې چه د هغوى نه په روستو راتلونكو خلقو كښې به تقوى نه وى. هغوى به د الله پاک د ويرې نه خالى وى او د دروغژنې ګواهئ او په دروغه قسم خوړلو دپاره به هر سړې تيار وى

[۲۰۶۶، ۲۰۶۷] حَدَّثَنِي يَحْيَى بْنُ مُوسَى حَدَّثَنَا وَكِيعٌ حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ عَنْ قَيْسٍ قَالَ سَمِعْتُ خَبَّابًا وَقَدِ اكْتَوَى يَوْمَئِذٍ سَبْعًا فِي بَطْنِهِ وَقَالَ لَوْلاَ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - نَهَانَا أَنْ نَدْعُوَ بِالْمَوْتِ لَدَعَوْتُ بِالْمَوْتِ، إِنَّ أَصْحَابَ مُحَمَّدٍ - صلى الله عليه وسلم - مَضَوْا وَلَمْ تَنْقُصْهُمُ الدُّنْيَا بِشَيْءٍ، وَإِنَّا أَصَبْنَا مِنَ الدُّنْيَا مَا لاَ نَجِدُ لَهُ مَوْضِعًا إِلاَّ التُّرَابَ.

قيس بن ابى حازم فرمائى چه ما د سيدنا خباب رضی الله عنه نه واوريدل او هغه ورځ د هغوى په خيټه كښې اووۂ داغونه لګيدې وو كه رسول الله صلی الله علیه وسلم مونږ د مرګ د دعا نه منع كړې نه وې

[1]) سنن الترمذى. ابواب الفتن. باب ما جاء فى القرن الثالث. رقم الحديث: ۲۲۲۱

[2]) الكاف الشاف فى تخريج احاديث الكشاف على حاشيته ۴۴/۲. والجامع لاحكام القرآن: ۳۷/۷ (سورة النجم) (قلت: ضعفه عبد العزيز بن محمد بن عبد المحسن فى محض الصواب فى فضائل عمر بن الخطاب وقال: إسناده ضعيف لانقطاعه. وفيه معلى الجعفى اتفق النقاد على تكذيبه. (التقريب رقم: ۶۸۰۷).

نو ما به د خپل خان دپاره د مرګ دعا کوله، د رسول الله ﷺ خوصحابه تير شواو دنيا د هغوى د خير د اعمالو نه هيڅ نه ووکم کړې، او مونږ د دنيا نه دومره څه حاصل کړل چه د خاورو نه سوا د هغې هيڅ ځائې نشته.

[۲۰۲۷] حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنَّى حَدَّثَنَا يَحْيَى عَنْ إِسْمَاعِيلَ قَالَ حَدَّثَنِي قَيْسٌ قَالَ أَتَيْتُ خَبَّابًا وَهُوَ يَبْنِي حَائِطًا لَهُ فَقَالَ إِنَّ أَصْحَابَنَا الَّذِينَ مَضَوْا لَمْ تَنْقُصْهُمُ الدُّنْيَا شَيْئًا، وَإِنَّا أَصَبْنَا مِنْ بَعْدِهِمْ شَيْئًا، لَا نَجِدُ لَهُ مَوْضِعًا إِلَّا التُّرَابَ. [ر: ۵۳۴۸]

قيس بن ابى حازم رحمه الله فرمائى چه زه د سيدنا خباب رضى الله عنه په خدمت کښې حاضر شوم هغوى د خپل باغ چار ديوارى جوړوله، هغوى اوفرمائيل چه زمونږ ملګرى کوم چه وفات شو دنيا د هغوى په اعمالو کښې هيڅ کمې اونکړو، خو مونږ د هغې نه روستو دومره حاصله کړه چه د خاورې نه سوا د هغې د ايخودلو هيڅ ځائې نه ملاويږى

[۲۰۲۸] حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ كَثِيرٍ عَنْ سُفْيَانَ عَنِ الْأَعْمَشِ عَنْ أَبِي وَائِلٍ عَنْ خَبَّابٍ رضى الله عنه - قَالَ هَاجَرْنَا مَعَ رَسُولِ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم -. [ر: ۱۲۱۷]

د سيدنا خباب رضى الله عنه نه روايت دې چه مونږ د رسول الله ﷺ سره هجرت اوکړو.

د هجرت واقعه ئې دلته بيان نه کړه، هغه په باب الهجرة الى المدينة کښې تيره شوې ده په هغې کښې دى: ﴿فَوَقَعَ أَجْرُنَا عَلَى اللَّهِ فَمِنَّا مَنْ مَضَى لَمْ يَأْخُذْ مِنْ أَجْرِهِ شَيْئًا مِنْهُمْ مُصْعَبُ بْنُ عُمَيْرٍ﴾ [۱]

## ⑧ باب قَوْلِ اللَّهِ تَعَالَى: يَا أَيُّهَا النَّاسُ إِنَّ وَعْدَ اللَّهِ حَقٌّ.....

فَلَا تَغُرَّنَّكُمُ الْحَيَاةُ الدُّنْيَا وَلَا يَغُرَّنَّكُمْ بِاللَّهِ الْغَرُورُ * إِنَّ الشَّيْطَانَ لَكُمْ عَدُوٌّ فَاتَّخِذُوهُ عَدُوًّا إِنَّمَا يَدْعُو حِزْبَهُ لِيَكُونُوا مِنْ أَصْحَابِ السَّعِيرِ). [فاطر: ۵، ۶] جَمْعُهُ سُعُرٌ، قَالَ مُجَاهِدٌ الْغَرُورُ الشَّيْطَانُ.

اې خلقو! بيشکه د الله پاک وعده حق ده، پس تاسو د دنيا ژوند په دهوکه کښې وانچوى او د الله پاک په باره کښې تاسو ته شيطان دهوکه درنکړى، بيشکه شيطان ستاسو دشمن دې او هغه تاسو په دشمنئ باندې اونيسئ، يقينا هغه خپل جماعت ته دعوت ورکوى چه هغوى جهنميان شى

**قوله:** ﴿قَالَ مُجَاهِدٌ الْغَرُورُ الشَّيْطَانُ﴾: مجاهد په آيت کريمه کښې د ﴿الغرور﴾ تفسير په شيطان سره کړې دې، فريابى دا تعليق موصولا نقل کړې دې. [۲]

غرور په حقيقت کښې هر هغه څيز ته وئيلې کيدې شى کوم چه انسان په دهوکه کښې واچوى، مال، د جاه شهوت او شيطان، په ټولو باندې د غرور اطلاق کيدې شى او شيطان

[۱] ارشاد السارى ۴۳۳/۱۳، وفتح البارى ۳۰۰/۱۱
[۲] ارشاد السارى: ۴۲۳/۱۲

چونكه په دې باب كښې د ټولو نه وړاندې دې، په دې وجه هغه ته د غرور مصداق وئيلې شوې دې.[1]

[٦٠٦٩] حَدَّثَنَا سَعْدُ بْنُ حَفْصٍ حَدَّثَنَا شَيْبَانُ عَنْ يَحْيَى عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ إِبْرَاهِيمَ الْقُرَشِيِّ قَالَ أَخْبَرَنِي مُعَاذُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ أَنَّ ابْنَ أَبَانَ أَخْبَرَهُ قَالَ أَتَيْتُ عُثْمَانَ بِطَهُورٍ وَهُوَ جَالِسٌ عَلَى الْمَقَاعِدِ، فَتَوَضَّأَ فَأَحْسَنَ الْوُضُوءَ ثُمَّ قَالَ رَأَيْتُ النَّبِيَّ - صلى الله عليه وسلم - تَوَضَّأَ وَهُوَ فِي هَذَا الْمَجْلِسِ، فَأَحْسَنَ الْوُضُوءَ ثُمَّ قَالَ: «مَنْ تَوَضَّأَ مِثْلَ هَذَا الْوُضُوءِ، ثُمَّ أَتَى الْمَسْجِدَ فَرَكَعَ رَكْعَتَيْنِ، ثُمَّ جَلَسَ، غُفِرَ لَهُ مَا تَقَدَّمَ مِنْ ذَنْبِهِ». قَالَ وَقَالَ النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - «لاَ تَغْتَرُّوا». [ر: ١٥٨]

ابن ابان فرمائى چه ما سيدنا عثمان رضی الله عنه دپاره د اودس اوبه راوړلې. هغوى په يو دالانګى كښې ناست وو بيا هغوى په ښه طريقه اودس اوكړو، د هغې نه پس ئې اوفرمائيل چه ما رسول الله صلی الله علیه وسلم هم په دې ځائې باندې په اودس كولو باندې ليدلې دې، رسول الله صلی الله علیه وسلم په ښه طريقه باندې اودس اوكړو بيا ئې اوفرمائيل: چه چا داسې اودس اوكړو او مسجد ته راتلو سره ئې دوه ركعته مونځ اوكړو، بيا د جماعت په انتظار كښې ناست وونو د هغه مخكښې ګناهونه معاف كيږى، هغوى اووې چه رسول الله صلی الله علیه وسلم اوفرمائيل: په دهوكه كښې مه راځئ.

﴿لاَ تَغْتَرُّوا﴾: يعنى په دهوكه كښې واقع نه شئ چه الله پاک په مانځه سره ټول ګناهونه معاف كوى نو د ګناهونو نه احتياط نه دې پكار، ځكه چه په مونځونو سره صرف واړهٔ ګناهونه معاف كيږى او كه لوئې ګناهونه هم الله پاک په خپل فضل او كرم سره معاف كړى نو هغه به په قبول شوى مانځه سره معاف كيږى او د قبوليت صلاة علم چاته هم نه شى كيدې.

## ⑨ باب ذَهَابِ الصَّالِحِينَ

﴿يقال: الذهاب: المطر﴾

[٦٠٧٠][2] حَدَّثَنِي يَحْيَى بْنُ حَمَّادٍ حَدَّثَنَا أَبُو عَوَانَةَ عَنْ بَيَانٍ عَنْ قَيْسِ بْنِ أَبِي حَازِمٍ عَنْ مِرْدَاسٍ الأَسْلَمِيِّ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - «يَذْهَبُ الصَّالِحُونَ

---

[1]) ارشاد السارى: ١٢/٤٢٣

[2]) قال ابن بطال: ذهاب الصالحين من أشراط الساعة، إلا إنه إذا بقى الناس فى حفالة كحفالة الشعير أو التمر؛ فذلک إنذار بقيام الساعة وفناء الدنيا. وهذا الحديث معناه الترغيب فى الاقتداء بالصالحين والتحذير من مخالفة طريقهم خشية أن يكون من خالفهم ممن لا يباليه الله ولا يعبأ به. وبَالة: مصدر باليت محذوف منه الياء التى هى لام الفعل. وكان أصله (بالية) فكرهوا ياءً قبلها كسرة. لكثرة استعمال هذه اللفظة فى نفى كل ما لا يحفل به. وتقول العرب أيضًا فى مصدر باليت مبالاةً كما تقول بالة. والحفالة: سفلة الناس وأصلها فى اللغة ما تساقط من قشور التمر والشعير وغيرهما. والحثالة والحشافة مثله. (انظر شرح ابن بطال للبخارى ١٠/١٦١)

الأَوَّلُ فَالأَوَّلُ، وَيَبْقَى حُفَالَةٌ كَحُفَالَةِ الشَّعِيرِ أَوِ التَّمْرِ، لاَ يُبَالِيهِمُ اللَّهُ بَالَةً». قَالَ أَبُوعَبْدِاللَّهِ يُقَالُ حُفَالَةٌ وَحُثَالَةٌ. [ر: ۳۹۲۵]

د سيدنا مرداس اسلمی رضی الله عنه نه روايت دې چه رسول الله ﷺ اوفرمائيل : نيكان بندګان به پرلپسې لاړ شي. او د اوربشو د بسو په شان ناكاره قسم خلق به پاتې شي. الله پاک به د هغوی لره پرواه هم نه کوي.

امام بخاری رحمه الله فرمائی : حُفَالَةٌ او حُثَالَة په يو معنی كښې استعمالولې شي.

﴿يقال : الذهاب : المطر﴾ : امام بخاری رحمه الله فرمائي چه د ذهاب معنی د باران راځی. دا لفظ د ذهاب الصالحين په مناسبت سره امام بخاری رحمه الله ذكر كړې دې.

## ⑩ باب مَا يُتَّقَى مِنْ فِتْنَةِ الْمَالِ

وَقَوْلِ اللَّهِ تَعَالَى (إِنَّمَا أَمْوَالُكُمْ وَأَوْلاَدُكُمْ فِتْنَةٌ)

**د ترجمة الباب مقصد** : په دې باب كښې د مال د فتنې نه د بچ كيدلو تاكيد كړې شوې دې [1] مال كه په جائز طريقې سره حاصل كړې شي او په جائز مصارف كښې استعمال كړې شي نو د الله پاک نعمت دې خو كه په ناجائز طريقې سره مال راشي يا مال په غلطو مصارفو كښې استعماليږي يا هغه د انسان د ګناهونو ذريعه جوړيږي. نو فتنه او لوئې ازميښت دې.

[۲۰۷۱] حَدَّثَنِي يَحْيَى بْنُ يُوسُفَ أَخْبَرَنَا أَبُو بَكْرٍ عَنْ أَبِي حَصِينٍ عَنْ أَبِي صَالِحٍ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ - رضى الله عنه - قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - «تَعِسَ عَبْدُ الدِّينَارِ وَالدِّرْهَمِ وَالْقَطِيفَةِ وَالْخَمِيصَةِ، إِنْ أُعْطِيَ رَضِيَ، وَإِنْ لَمْ يُعْطَ لَمْ يَرْضَ». [ر: ۲۷۳۰]

د سيدنا ابوهريره رضی الله عنه نه روايت دې چه رسول الله ﷺ اوفرمائيل د دينار او درهم غلام، د غوره ريښمي جامو او څادر غلام دې تباه شي، كه هغه ته وركړې شي نو خوشحاليږي او كه ورنكړې شي نو خفه كيږي.

د ابو حصين نوم عثمان بن عاصم دې. حصين (د حاء په فتحې او د صاد په كسرې سره) دې.

﴿القطيفة﴾ كمبل، كپړا. ﴿الخميصة﴾ تور څادر. د حديث مطلب دا دې كوم انسان د دنيا دومره عاشق او غلام وي چه په دنيا كښې د هغه د خوشحالئ او خفګان اول او آخر سبب وي، كه د دنيا يو څيز ورته ملاؤ شي نو خوشحاله. كه ملاؤ نه شي نو خفه كيږي، د دنيا داسې عاشق غلام دپاره رسول الله ﷺ بد دعا اوفرمائيله.

---

[1] ) قال ابن بطال : معنى الفتنة فى كلام العرب : الاختبار والابتلاء . ومنه قوله تعالى : ( وَفَتَنَّاكَ فُتُونًا ) ( طه : ٤٠ ) أى اختبرناك . والفتنة : الإمالة عن القصد . ومنه قوله تعالى : ( وَإِنْ كَادُوا لَيَفْتِنُونَكَ ) ( الإسراء : ٧٣ ) أى ليميلونك . والفتنة أيضًا : الإحراق من قوله تعالى : ( يَوْمَ هُمْ عَلَى النَّارِ يُفْتَنُونَ ) ( الذاريات : ١٣ ) أى يحرقون . هذا قول ابن الأنبارى . والاختبار والابتلاء بجمع ذلك كله . وقد أخبر الله تعالى عن الأموال والأولاد أنها فتنة. (شرح ابن بطال ١٦٢/١٠)

حَدَّثَنَا أَبُو عَاصِمٍ عَنِ ابْنِ جُرَيْجٍ عَنْ عَطَاءٍ قَالَ سَمِعْتُ ابْنَ عَبَّاسٍ - رضى الله عنهما - يَقُولُ سَمِعْتُ النَّبِيَّ - صلى الله عليه وسلم - يَقُولُ «لَوْ كَانَ لاِبْنِ آدَمَ وَادِيَانِ مِنْ مَالٍ لاَبْتَغَى ثَالِثًا، وَلاَ يَمْلأُ جَوْفَ ابْنِ آدَمَ إِلاَّ التُّرَابُ، وَيَتُوبُ اللَّهُ عَلَى مَنْ تَابَ».

د سيدنا ابن عباس رضي الله عنهما نه روايت دي چه ما د رسول الله ﷺ نه واوريدل: كه انسان سره د مال دوه واديانې وى نو هغه به د دريمې خواهش مند وى او د انسان خيټه د خاورو نه سوا يو څيز هم نه شي ډكولې او الله پاک د هغه چا توبه قبلوى چه توبه كوى.

**قوله:** ﴿وَلاَ يَمْلأُ جَوْفَ ابْنِ آدَمَ إِلاَّ التُّرَابُ﴾: د ابن آدم خيټه صرف خاوره ډكولې شى. خاوره د مرګ نه كنايه ده يعنى ترڅو پورې چه هغه ژوندې وى د مال خواهش به د هغه وى. تردې چه د هغه مرګ راشى، علامه قسطلانى رحمه الله ليكى:

﴿كناية عن الموت، لاستلزامه الامتلاء، كأنه قال: لايشبع من الدنيا حتى يموت﴾ [1]

[۲۰۷۳] حَدَّثَنِي مُحَمَّدٌ أَخْبَرَنَا مَخْلَدٌ أَخْبَرَنَا ابْنُ جُرَيْجٍ قَالَ سَمِعْتُ عَطَاءً يَقُولُ سَمِعْتُ ابْنَ عَبَّاسٍ يَقُولُ سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - يَقُولُ «لَوْ أَنَّ لاِبْنِ آدَمَ مِثْلَ وَادٍ مَالاً لأَحَبَّ أَنَّ لَهُ إِلَيْهِ مِثْلَهُ، وَلاَ يَمْلأُ عَيْنَ ابْنِ آدَمَ إِلاَّ التُّرَابُ، وَيَتُوبُ اللَّهُ عَلَى مَنْ تَابَ». قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ فَلاَ أَدْرِي مِنَ الْقُرْآنِ هُوَ أَمْ لاَ. قَالَ وَسَمِعْتُ ابْنَ الزُّبَيْرِ يَقُولُ ذَلِكَ عَلَى الْمِنْبَرِ.

د سيدنا ابن عباس رضي الله عنهما نه روايت دي چه ما د رسول الله ﷺ نه واوريدل، هغوى اوفرمائيل چه كه انسان سره د مال (كډو بيزو وغيره) يو پوره ميدان وى نو هغه به غواړى چه هغه ته يو هم دغه شان وادى بله ملاؤ شى او د انسان سترګې د خاورو نه علاوه يو څيز هم نه شى ډكولې او څوک چه الله پاک ته توبه اوباسى هغه د هغه توبه قبلوى، سيدنا ابن عباس رضي الله عنهما فرمائى چه ماته معلومه نه ده دا د قرآن نه دې يا نه؟

**قوله:** ﴿قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ فَلاَ أَدْرِي مِنَ الْقُرْآنِ هُوَ أَمْ لاَ﴾: سيدنا ابن عباس رضي الله عنهما فرمائى چه ماته معلومه نه ده چه دا حديث د قران كريم حصه ده (چه د هغې تلاوت منسوخ شوې دې) يا نه؟

**قوله:** ﴿قَالَ وَسَمِعْتُ ابْنَ الزُّبَيْرِ يَقُولُ ذَلِكَ عَلَى الْمِنْبَرِ﴾: د قال فاعل امام عطاء دې او دا د ماقبل سند سره متصل دې، امام عطاء بن ابى رباح رحمه الله فرمائى چه ما د عبدالله بن زبير رضي الله عنهما نه دا حديث په منبر باندې بيانولو سره واوريدلو، چونكه په وړاندې روايت كښې دى: ﴿سَمِعْتُ ابْنَ الزُّبَيْرِ عَلَى الْمِنْبَرِ بِمَكَّةَ فِي خُطْبَتِهِ﴾

[۲۰۷۴] حَدَّثَنَا أَبُو نُعَيْمٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ سُلَيْمَانَ بْنِ الْغَسِيلِ عَنْ عَبَّاسِ بْنِ سَهْلِ بْنِ سَعْدٍ قَالَ سَمِعْتُ ابْنَ الزُّبَيْرِ عَلَى الْمِنْبَرِ بِمَكَّةَ فِي خُطْبَتِهِ يَقُولُ يَا أَيُّهَا النَّاسُ

[1] ارشاد السارى: ۱۳/۴۳۶

إِنَّ النَّبِيَّ -صلى الله عليه وسلم- كَانَ يَقُولُ «لَوْ أَنَّ ابْنَ آدَمَ أُعْطِيَ وَادِيًا مَلأً مِنْ ذَهَبٍ أَحَبَّ إِلَيْهِ ثَانِيًا، وَلَوْ أُعْطِيَ ثَانِيًا أَحَبَّ إِلَيْهِ ثَالِثًا، وَلاَ يَسُدُّ جَوْفَ ابْنِ آدَمَ إِلاَّ التُّرَابُ، وَيَتُوبُ اللَّهُ عَلَى مَنْ تَابَ».

د سيدنا عبدالله بن زبير رضي الله عنهما نه روايت دې چه رسول الله ﷺ اوفرمائيل: چه که انسان ته يو وادى د سرو زرو ډکه ورکړې شي نو د بلې خواهش به کوى، که دويمه ورکړې شي نو د دريمې خواهش به کوى او د انسان خيټه د خاورې نه سوا يو څيز هم نه شى ډکولې او الله پاک د هغه چا توبه قبلوى چه توبه کوى.

د ابو نعيم نامه فضل بن دکين ده

[۲۰۷۵] حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيزِ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ سَعْدٍ عَنْ صَالِحٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ قَالَ أَخْبَرَنِي أَنَسُ بْنُ مَالِكٍ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صلى الله عليه وسلم قَالَ «لَوْ أَنَّ لاِبْنِ آدَمَ وَادِيًا مِنْ ذَهَبٍ أَحَبَّ أَنْ يَكُونَ لَهُ وَادِيَانِ، وَلَنْ يَمْلأَ فَاهُ إِلاَّ التُّرَابُ، وَيَتُوبُ اللَّهُ عَلَى مَنْ تَابَ». وَقَالَ لَنَا أَبُو الْوَلِيدِ حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ سَلَمَةَ عَنْ ثَابِتٍ عَنْ أَنَسٍ عَنْ أُبَيٍّ قَالَ كُنَّا نَرَى هَذَا مِنَ الْقُرْآنِ حَتَّى نَزَلَتْ (أَلْهَاكُمُ التَّكَاثُرُ).

د سيدنا انس بن مالک رضي الله عنه نه روايت دې چه رسول الله ﷺ اوفرمائيل. که د انسان سره د سرو زرو يو وادى وى نو هغه به غواړى چه هغه دوه شى او د هغه خوله سوا د خاورو نه بل يو څيز هم نه شى ډکولې او الله پاک د هغه چا توبه قبلوى څوک چه توبه کوى.

په دې حديث کښې د ﴿ فاه ﴾ يعنى فم (خولې) ذکر دې. په اول روايت کښې د بطن. او عين ذکر راغلې دې. علامه عينى او قسطلانى رحمهما الله فرمائى:

﴿ ليس المراد الحقيقة فى عضو بعينه بقرينة عدم الانحصار فى التراب إذ غيره يملؤه أيضا بل هو كناية عن الموت لأنه مستلزم للامتلاء فكأنه قال: لا يشبع من الدنيا حتى يموت فالغرض من العبارات كلها واحد وليس فيها إلا التفنن من الكلام ﴾ [۱]

يعنى: دلته متعين طور د بدن يو اندام مراد نه دې بلکه دا د مرګ نه کناية ده. د حديث حاصل دا دې چه دنيا نه انسان هغې پورې نه مړيږى. ترڅو پورې چه د هغه مرګ رانشى، د ټولو عبارتونو مقصد يو دې سوا د کلام د تنوع نه بل هيڅ مقصد نه دې

او حافظ ابن حجر رحمه الله ليکى: ﴿ وهذا يحسن فيما إذا اختلفت مخارج الحديث وأما إذا اتحدت فهو من تصرف الرواة ثم نسبة الامتلاء للجوف واضحة والبطن بمعناه وأما النفس فعبر بها عن الذات وأطلق الذات وأراد البطن من إطلاق الكل وإرادة البعض وأما النسبة إلى الفم فلكونه الطريق إلى الوصول للجوف ويحتمل أن يكون المراد بالنفس العين وأما العين فلأنها الأصل فى الطلب لأنه يرى ما يعجبه فيطلبه ليحوزه إليه وخص

[۱] عمدة القارى ۲۳/۶۹، وارشاد السارى ۱۳/۴۳۸

البطن فى أكثر الروايات لان أكثر ما يطلب المال لتحصيل المستلذات وأكثرها يكون للاكل والشراب ﴾[1]
دا وضاحت هغه وخت صحيح دې چه کله د حديث الفاظ مختلف واقع شوې وى. بيا د امتلاء يعنى ډکيدلو نسبت د خيټې طرف ته کول واضح دى. د بطن معنى هم دا ده او نفس وئيلو سره شخص او ذات مراد کولې شى. ذات وئيلو سره بطن يعنى خيټه مراد کول دا ﴿اطلاق الكل وارادة البعض﴾ د قبيل نه دې. يعنى کل وئيلو سره جزء مراد کول او فم يعنى د خولې طرف ته د دې نسبت په دې بناء دې چه د خولې په ذريعه خيټې ته څيز رسيږى او د سترګو ذکر په دې وجه دې چه په طلب او لټون کښې سترګه اصل ده او په اکثر رواياتو کښې د بطن يعنى خيټې ذکر دې، په دې وجه اکثر چه کوم مال طلب کولې شى، هغه د خوند حاصلولو د پاره کولې شى او د خوند ډير صورتونه د خوراک څکاک نه حاصليږى.

**قوله:** ﴿وَقَالَ لَنَا أَبُو الْوَلِيدِ﴾ : ابو الوليد هشام بن عبدالملک طيالسى د امام بخارى رحمه الله شيخ دې. هغوى د سيدنا ابى بن کعب رضى الله عنه نه نقل کوى چه دا حديث ﴿لوكان لابن ادم واديان من مال﴾ به مونږ د قرآن حصه ګنړله، تردې چه سورة تکاثر نازل شو، نو بيا مونږ ته معلومه شوه چه دا قرآن نه دې بلکه د رسول الله صلى الله عليه وسلم حديث دې، ځکه چه په سورة التکاثر کښې د حديث دا مفهوم په ډير بليغ طريقې سره بيان کړې شوې دې.
بعض حضرات وائى چه دا د قرآن کريم آيت وو، چه کله سورة التکاثر نازل شو نو د دې تلاوت منسوخ شو خو د دې حکم لا باقى دې.[2]

**فائده : د تعليقاتو په سلسله کښې د امام بخارى رحمه الله يو منهج :** امام بخارى رحمه الله تعليقات په ﴿قال فلان﴾ سره ذکر فرمائى خو چرته چرته چه ئې ﴿قال لنا﴾ وئيلې دې ظاهره ده چه هغه تعليق نه دې. بلکه موصول دې. دلته ئې ﴿قال لنا ابوالوليد﴾ فرمائيلې دې. دا هم موصول دې، حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى چه امام بخارى رحمه الله دا اسلوب هلته اختياروى چرته چه د حديث متن د هغوى د شرط مطابق نه وى، يا د سند څوک راوى د هغوى د شرط مطابق نه وى، پس حافظ ابن حجر رحمه الله ليکى :

﴿قوله قال لنا ظاهر فى الوصل وان كان بعضهم قال انها للاجازة أو للمناولة أو للمذاكرة فكل ذلك فى حكم الموصول وان كان التصريح بالتحديث أشد اتصالا والذى ظهر لى بالاستقراء من صنيع البخارى أنه لا يأتى بهذه الصيغة الا إذا كان المتن ليس على شرطه فى أصل موضوع كتابه كأن يكون ظاهره الوقف أوفى السند من ليس على شرطه فى الاحتجاج﴾[3]

[1] فتح البارى ۳۰۸/۱۱، وارشاد السارى ۴۳۹/۱۳
[2] ارشاد السارى : ۴۳۹/۱۳
[3] فتح البارى : ۳۰۹/۱۱

## (۱۱) باب قول النبي صلى الله عليه وسلم «هذا المال خضرة حلوة»

وقال الله تعالى (زين للناس حب الشهوات من النساء والبنين والقناطير المقنطرة من الذهب والفضة والخيل المسومة والأنعام والحرث ذلك متاع الحياة الدنيا).

قال عمر اللهم إنا لا نستطيع إلا أن نفرح بما زينته لنا، اللهم إني أسألك أن أنفقه في حقه.

ډولی کړې شوې دی (اکثر) خلقو دپاره مینه د مرغوب څیزونو (مثلا) زنانه شوې. خامن شو. د سرو او سپینو لګیدلی ډهیری، هغه اسونه چه په هغوی باندې نخښې وی. (یا نور) څاروی شو او فصل شو (خو) دا ټول استعمالیدونکی څیزونه دی د دنیا د ژوند او الله پاک سره ده غوره بدله (چه کله مرګ راشی)

مفتی اعظم پاکستان مولانا محمد شفیع رحمه الله په معارف القرآن کښې د دې آیت کریمه په تفسیر کښې لیکی:

د دې آیت کریمه نه معلومه شوه چه د دنیا د دې مرغوب څیزونو د انسان دپاره ډولی کول هم د الله پاک یو فعل دې، کوم چه په ډیرو حکمتونو باندې بناء دې. او بعض آیتونه چه په هغې کښې داسې قسم تزئین د شیطان طرف ته منسوب کړې شوې دې لکه ﴿ زين لهم الشيطان اعمالهم ﴾ په هغې کښې د داسې څیزونو تزئین مراد دې کوم چه عقلا او شرعا بد دې. یا د تزئین هغه درجه مراد ده کومه چه د حد نه د تیریدو د وجې نه بده ده. ګینې مباحاتو لره ډولی کول مطلقا بد نه دی، بلکه په هغې کښې ډیر فوائد هم دی، هم په دې وجه په بعض آیتونو کښې دا تزئین صراحتا د الله پاک طرف ته منسوب کړې شوې دې. لکه چه اوس بیان کړې شو.

خلاصه د کلام دا ده چه د دنیا خوندور او مرغوب څیزونه الله پاک په خپل فضل او حکمت سره د انسان دپاره مزئین فرمائیلو سره د هغې محبت د هغه په زړه کښې واچولو. چه په هغې کښې د ډیرو حکمتونو نه یو دا هم دې چه د انسان امتحان واخستلې شی چه دا سرسری او ظاهری مرغوبات او د هغې په څو ورځې لذت کښې اخته کیدو سره د دې ټولو څیزونو رب او خالق او مالک یاد اوساتی او دې څیزونو لره د هغه د معرفت او محبت ذریعه جوړوی یا هم د هغه څیزونو په محبت کښې اینختلو سره اصلی مالک او خالق او په آخرت کښې د هغه مخې ته پیښی او حساب او کتاب لره هیر کړی. اول سړې هغه دې چه هغه د دنیا نه هم فائده اوچته کړه او په آخرت کښې هم کامیاب پاتې شو، د دنیا مرغوبات د هغه دپاره د لارې خند جوړیدو په ځائې د لارې معلومات ورکونکې د اخرت د کامیابئ ذریعه جوړ شو او دویم سړې هغه دې کوم دپاره چه هم دا څیزونه د آخرت د بربادئ او د دائمی عذاب سبب شو او که په ژور نظر سره اوکتلې شی نو دا څیزونه د هغه دپاره په دنیا کښې عذاب جوړیږی په قرآن کریم کښې د هم داسې خلقو متعلق ارشاد دې ﴿ فلا تعجبك أموالهم ولا أولادهم إنما يريد الله ليعذبهم بها في الحياة الدنيا ﴾ یعنی تاسو د دې کفارو د مال او اولاد

نه په تعجب كښې نه شئ ځكه چه دې نافرمانو ته د مال او اولاد وركولو سره د هغوى هيڅ فائده اونشوه. بلكه دا اموال او اولاد به د هغوى دپاره په آخرت كښې خو د هغوى دپاره عذاب جوړيږى. په دنيا كښې هم شپه او ورځ د فكرونو او مشاغلو د وجې نه د هغوى دپاره د عذاب باعث جوړ شى.

الغرض د دنيا كوم څيزونه چه الله پاک د انسان دپاره مزين او مرغوب جوړ كړې دى. د شريعت مطابق په اعتدال سره د هغې د طلب او ضرورت موافق د هغې جمع كول د دنيا او آخرت فلاح ده او په ناجائز طريقو باندې د هغې استعمال يا په جائز طريقو كښې دومره غلو او رغبت چه د هغې په سبب د آخرت نه غافل شى. د حكمت باعث دې. مولانا رومى رحمه الله د دې څه ښه مثال بيان فرمائيلې دې!

آب اندر زير كشتى پشتى است آب در كشتى هلاك كشتى است

يعنى د دنيا سازوسامان د اوبو په شان دې او په دې كښې د انسان زړه د يوې كشتۍ په شان دې. اوبو چه ترڅو پورې د كشتۍ نه لاندې او يو خوا بل خوا وى نو د كشتۍ دپاره مفيد او معين او د هغې مقصد وجود لره پوره كونكى وى او كه اوبه په كشتۍ كښې دننه داخلې شى نو هم دا د كشتۍ د غرقيدو او هلاكت سامان شى. هم دغه شان د دنيا مال او متاع چه ترڅو پورې د انسان په زړه كښې غلبه بيا نه مومى. د هغه دپاره په دين او دنيا كښې معين او مددګار دى. او كوم وخت چه غواړى د هغه په زړه باندې خواره شى نو د زړه هلاكت دې. (۱)

**قوله: ﴿قَالَ عُمَرُ اللَّهُمَّ إِنَّا لَا نَسْتَطِيعُ إِلَّا أَنْ نَفْرَحَ بِمَا زَيَّنْتَهُ لَنَا﴾**: د سورة آل عمران په آيت كريمه كښې الله پاک د مختلف دنيوى څيزونو په باره كښې فرمائيلې دى چه الله پاک هغه د خلقو دپاره مزين كړې دى، سيدنا فاروق اعظم رضى الله عنه فرمائى: اې الله! كوم څيزونه چه تا زمونږ دپاره ډولې كړې دى هغې ته كتلو او موندلو سره د خوشحاليدو نه سوا مونږ سره بله لاره نشته.اې الله !زه ستانه ددې په خپل صحيح مصرف كښې د خرچ كولو دعا كوم.

دا تعليق دارقطنى موصولا نقل كړې دې او په هغې كښې دا تفصيل دې چه كله فتوحات شروع شو نو سيدنا عمر رضى الله عنه ته د مشرق نه مال راغلو. سيدنا عمر رضى الله عنه پرانستلو سره اوكتلو نو په هغې كښې كالى. جواهر او نور سازوسامان وو. سيدنا عمر رضى الله عنه په ژړا شو، خلقو تپوس اوكړو، اې امير المؤمنين! تاسو ولې ژاړئ؟ دا خو مال غنيمت دې. وې فرمائيل: د كوم قوم نه چه دا مال حاصل شو. دا مال د هغوى د قتل كولو او د هغوى د بې عزته كولو نه پس حاصل شوې دې، مقصد دا وو چه كه هغوى بغير د جنګ او قتال نه اسلام قبول كړې وې نو دې ته به ضرورت نه راتلو. بيا چه ئې كله هغه مال تقسيمولو نو د قرآن كريم دا آيت ﴿زين للناس﴾ تلاوت اوفرمائيلو! او وې فرمائيل : دا دنياوى څيزونه مونږ ته محبوب دى. اې الله! د دوى د شر نه مونږ بچ كړه او ماته توفيق راكړه چه دا په صحيح

(۱) معارف القران، سورة آل عمران : ۲۹/۲، ۳۰

مصرف کښې خرچ کړې شم (۱)

[۲۰۷۲] حَدَّثَنَا عَلِي بْنُ عَبْدِاللهِ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ قَالَ سَمِعْتُ الزُّهْرِي يَقُولُ أَخْبَرَنِى عُرْوَةُ وَسَعِيدُ بْنُ الْمُسَيَّبِ عَنْ حَكِيمِ بْنِ حِزَامٍ قَالَ سَأَلْتُ النَّبِي - صلى الله عليه وسلم - فَأَعْطَانِي، ثُمَّ سَأَلْتُهُ فَأَعْطَانِي، ثُمَّ سَأَلْتُهُ فَأَعْطَانِي، ثُمَّ قَالَ «هَذَا الْمَالُ - وَرُبَّمَا قَالَ سُفْيَانُ قَالَ لِي يَا حَكِيمُ - إِنَّ هَذَا الْمَالَ خَضِرَةٌ حُلْوَةٌ، فَمَنْ أَخَذَهُ بِطِيبِ نَفْسٍ بُورِكَ لَهُ فِيهِ، وَمَنْ أَخَذَهُ بِإِشْرَافِ نَفْسٍ لَمْ يُبَارَكْ لَهُ فِيهِ، وَكَانَ كَالَّذِى يَأْكُلُ وَلَا يَشْبَعُ، وَالْيَدُ الْعُلْيَا خَيْرٌ مِنَ الْيَدِ السُّفْلَى». [ر: ۱۳۶۱]

د سيدنا حکيم بن حزام رضي الله عنه نه روايت دې چه ما د رسول الله ﷺ نه (څه) اوغوښتل نو ماته ئې راکړل. ما بيا اوغوښتل نو ماته ئې راکړل. ما بيا اوغوښتل او رسول الله ﷺ راکړل. بيا ئې اوفرمائيل اې حکيم! دا مال شين او خوشګوار دې. پس کوم سړې چه دا په صحيح نيت سره اخلى نو د هغه په مال کښې برکت وى او څوک چه ئې په لالچ سره اخلى نو د هغه په مال کښې برکت نه وى. بلکه هغه سړې د هغه چا په شان وى چه خوراک کوى خو د هغه خېټه نه ډکيږى او پورته لاس د لاندې لاس نه غوره دې.

**قوله: ﴿ثُمَّ قَالَ هَذَا الْمَالُ، وَرُبَّمَا قَالَ سُفْيَانُ: قَالَ لِي يَا حَكِيمُ - إِنَّ هَذَا الْمَالَ﴾:** (۲) يعنى سفيان راوى ته شک دې چه رسول الله ﷺ ﴿ان هذا المال خضرة حلوة﴾ اوفرمائيلو يا ﴿يا حكيم ان هذا المال خضرة حلوة﴾ اوفرمائيلو. ﴿قال لى: يا حكيم﴾ يعنى رسول الله ﷺ ماته اوفرمائيل: اې حکيم....

## ⑫ باب مَا قَدَّمَ مِنْ مَالِهِ فَهُوَ لَهُ

انسان چه کوم مال د الله پاک په لاره کښې او د خير په کارونو کښې خرچ کوى د خپل ځان دپاره ئې د آخرت ذخيره کړى، هم هغه د هغه دې او د هغه په کار به راځى. امام بخارى رحمه الله په دې باب کښې هم د دې حقيقت طرف ته اشاره فرمائيلې ده.

[۲۰۷۷] حَدَّثَنِي عُمَرُ بْنُ حَفْصٍ حَدَّثَنِي أَبِي حَدَّثَنَا الأَعْمَشُ قَالَ حَدَّثَنِي إِبْرَاهِيمُ التَّيْمِيُّ عَنِ الْحَارِثِ بْنِ سُوَيْدٍ قَالَ عَبْدُ اللَّهِ قَالَ النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - «أَيُّكُمْ مَالُ وَارِثِهِ أَحَبُّ إِلَيْهِ مِنْ مَالِهِ». قَالُوا يَا رَسُولَ اللَّهِ مَا مِنَّا أَحَدٌ إِلاَّ مَالُهُ أَحَبُّ إِلَيْهِ. قَالَ:

---

(۱) ارشاد السارى: ۴۴۱/۱۳

(۲) وظاهر السياق أن حكيما قال لسفيان وليس كذلك لأنه لم يدركه لان بين وفاة حكيم ومولد سفيان نحو الخمسين سنة ولهذا لا يقرأ حكيم بالتنوين وانما المراد أن سفيان رواه مرة بلفظ ثم قال أى النبى صلى الله عليه و سلم ان هذا المال ومرة بلفظ ثم قال لى يا حكيم (فتح البارى: ۳۱۳/۱۱، وارشاد السارى: ۴۴۲/۱۲)

«فَإِنَّ مَالَهُ مَا قَدَّمَ، وَمَالُ وَارِثِهِ مَا أَخَّرَ».

د سیدنا عبدالله بن مسعود رضي الله عنه نه روایت دې چه رسول الله ﷺ اوفرمائیل : په تاسو کښې کوم یو دې چاته چه د خپل مال نه زیات د خپل وارث مال عزیز وی؟ صحابه کرامو رضي الله عنهم عرض اوکړو یارسول الله ﷺ! په مونږ کښې یوهم داسې نه دې چاته چه خپل مال عزیزنه وی. رسول الله ﷺ اوفرمائیل بیا د هغه مال هغه دې کوم چه هغه (د مرګ نه) مخکښې (د الله پاک په لاره کښې خرچ) کړو. اودهغه دوارث مال هغه دې کوم چه دهغه نه پاتې شو او مړ شو. [1]

## ⑬ باب الْمُكْثِرُونَ هُمُ الْمُقِلُّونَ

وَقَوْلُهُ تَعَالَى : مَنْ كَانَ يُرِيدُ الْحَيَاةَ الدُّنْيَا وَزِينَتَهَا نُوَفِّ إِلَيْهِمْ أَعْمَالَهُمْ فِيهَا وَهُمْ فِيهَا لَا يُبْخَسُونَ * أُولَئِكَ الَّذِينَ لَيْسَ لَهُمْ فِي الْآخِرَةِ إِلَّا النَّارُ وَحَبِطَ مَا صَنَعُوا فِيهَا وَبَاطِلٌ مَا كَانُوا يَعْمَلُونَ (هود: ۱۵. ۱۶)

د ﴿ مکثرون ﴾ نه مالدار خلق مراد دی چه هغوی سره د دولت کثرت وی. وې فرمائیل چه هغوی به په اجر او ثواب کښې کم تر وی. امام بخاری رحمه الله په باب کښې د سورة هود دوه آیتونه ذکر اوفرمائیل. چه د هغې ترجمه دا ده :

کوم سړې چه (په خپل اعمال خیر سره) صرف د دنیاوی ژوند (منفعت) او د هغې ډول (حاصلول) غواړی (لکه شهرت. نیک نامی او جاه ومرتبه او د آخرت د ثواب نیت د هغه نه وی) نو مونږ به د هغه خلقو د اعمالو جزاء هغوی ته په دنیا کښې ورپوره کړو او د هغوی دپاره په دنیا کښې هیڅ کمې نه وی. (یعنی په دنیا کښې د هغوی د اعمالو په عوض کښې هغوی ته نیک نامی او صحت و فراغ او عیش او کثرت مال و اولاد ورکولې شی چه کله د هغه اعمالو اثر په خپلو اضداد باندې غالب شی او که په اضداد باندې غالب نه شی نو بیا

---

[1] ) قال ابن بطال في شرحه : فإن قيل : هذا الحديث يدل على أن إنفاق المال في وجوه البر أفضل من تركه لوارثه . وهذا يعارض قوله ( صلى الله عليه وسلم ) لسعد : ( إنك إن تترك ورثتك أغنياء خير من أن تتركهم عالة يتكففون الناس ).

قيل : لا تعارض بينهما . وإنما خص النبي ( صلى الله عليه وسلم ) سعداً على أن يترك مالاً لورثته : لأن سعداً أراد أن يتصدق بماله كله في مرضه . وكان وارثه ابنته والابنة لا طاقة لها على الكسب . فأمره ( صلى الله عليه وسلم ) بأن يتصدق منه بثلثه ويكون باقيه لابنته ولبيت مال المسلمين . وله أجر في كل من يصل إليه من ماله شيء بعد موته . وحديث ابن مسعود إنما خاطب به ( صلى الله عليه وسلم ) أصحابه في صحتهم ونبّه به من شحّ على ماله . ولم تسمح نفسه بإنفاقه في وجوه البر أن ينفق منه في ذلك : لئلا يحصل وارثه عليه كاملاً موفراً . ويخيب هو من أجره . وليس فيه الأمر بصدقة المال كله فيكون معارضاً لحديث سعد . بل حديث عبد الله مجمل يفسره حديث سعد . ويدل على صحة هذا التأويل ما ذكره أهل السير . عن ابن شهاب أن أبا لبابة قال : ( يا رسول . إن من توبتي أن أهجر دار قومي التي أصبت فيها الذنب . وأنخلع من مالي صدقة إلى الله ورسوله . قال : يجزئك الثلث ) فلم يأمره بصدقة ماله كله. (شرح ابن بطال : ۱۰/۱۶۴. ۱۶۵

دا اثر نه مرتب کيږي. دا خو په دنيا کښې شوه او پاتې شو آخرت نو، دا داسې خلق دي چه د
هغوی دپاره په آخرت کښې سوا د دوزخ نه نور هيڅ (ثواب وغيره) نشته او هغوی چه څه
کړي وو هغه په آخرت کښې ټول (په ټوله) بيکاره (ثابت) شو.
د آيت کريمه مناسبت. د باب سره ظاهر دې چه کوم خلق دنيا غواړي. دنيا به هغوی ته ملاؤ
شی. خو د آخرت د اجر نه به محروم وی.

[٢٠٧٨] حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ حَدَّثَنَا جَرِيرٌ عَنْ عَبْدِ الْعَزِيزِ بْنِ رُفَيْعٍ عَنْ زَيْدِ بْنِ وَهْبٍ عَنْ أَبِي ذَرٍّ - رضي الله عنه - قَالَ خَرَجْتُ لَيْلَةً مِنَ اللَّيَالِي فَإِذَا رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - يَمْشِي وَحْدَهُ، وَلَيْسَ مَعَهُ إِنْسَانٌ - قَالَ - فَظَنَنْتُ أَنَّهُ يَكْرَهُ أَنْ يَمْشِيَ مَعَهُ أَحَدٌ - قَالَ - فَجَعَلْتُ أَمْشِي فِي ظِلِّ الْقَمَرِ فَالْتَفَتَ فَرَآنِي فَقَالَ « مَنْ هَذَا » . قُلْتُ أَبُو ذَرٍّ جَعَلَنِي اللَّهُ فِدَاءَكَ . قَالَ « يَا أَبَا ذَرٍّ تَعَالَهْ » . قَالَ فَمَشَيْتُ مَعَهُ سَاعَةً فَقَالَ « إِنَّ الْمُكْثِرِينَ هُمُ الْمُقِلُّونَ يَوْمَ الْقِيَامَةِ، إِلاَّ مَنْ أَعْطَاهُ اللَّهُ خَيْرًا، فَنَفَحَ فِيهِ يَمِينَهُ وَشِمَالَهُ وَبَيْنَ يَدَيْهِ وَوَرَاءَهُ، وَعَمِلَ فِيهِ خَيْرًا » . قَالَ فَمَشَيْتُ مَعَهُ سَاعَةً فَقَالَ لِي « اجْلِسْ هَا هُنَا » . قَالَ فَأَجْلَسَنِي فِي قَاعٍ حَوْلَهُ حِجَارَةٌ فَقَالَ لِي « اجْلِسْ هَا هُنَا حَتَّى أَرْجِعَ إِلَيْكَ » . قَالَ فَانْطَلَقَ فِي الْحَرَّةِ حَتَّى لاَ أَرَاهُ فَلَبِثَ عَنِّي فَأَطَالَ اللُّبْثَ، ثُمَّ إِنِّي سَمِعْتُهُ وَهُوَ مُقْبِلٌ وَهُوَ يَقُولُ « وَإِنْ سَرَقَ وَإِنْ زَنَى » . قَالَ فَلَمَّا جَاءَ لَمْ أَصْبِرْ حَتَّى قُلْتُ يَا نَبِيَّ اللَّهِ جَعَلَنِي اللَّهُ فِدَاءَكَ مَنْ تُكَلِّمُ فِي جَانِبِ الْحَرَّةِ مَا سَمِعْتُ أَحَدًا يَرْجِعُ إِلَيْكَ شَيْئًا . قَالَ « ذَلِكَ جِبْرِيلُ - عَلَيْهِ السَّلاَمُ - عَرَضَ لِي فِي جَانِبِ الْحَرَّةِ، قَالَ بَشِّرْ أُمَّتَكَ أَنَّهُ مَنْ مَاتَ لاَ يُشْرِكُ بِاللَّهِ شَيْئًا دَخَلَ الْجَنَّةَ، قُلْتُ يَا جِبْرِيلُ وَإِنْ سَرَقَ وَإِنْ زَنَى قَالَ نَعَمْ . قَالَ قُلْتُ وَإِنْ سَرَقَ وَإِنْ زَنَى قَالَ نَعَمْ، وَإِنْ شَرِبَ الْخَمْرَ » .

قَالَ النَّضْرُ أَخْبَرَنَا شُعْبَةُ وَحَدَّثَنَا حَبِيبُ بْنُ أَبِي ثَابِتٍ وَالأَعْمَشُ وَعَبْدُ الْعَزِيزِ بْنُ رُفَيْعٍ حَدَّثَنَا زَيْدُ بْنُ وَهْبٍ بِهَذَا.

قَالَ أَبُو عَبْدِ اللَّهِ حَدِيثُ أَبِي صَالِحٍ عَنْ أَبِي الدَّرْدَاءِ مُرْسَلٌ، لاَ يَصِحُّ، إِنَّمَا أَرَدْنَا لِلْمَعْرِفَةِ، وَالصَّحِيحُ حَدِيثُ أَبِي ذَرٍّ.

قِيلَ لأَبِي عَبْدِ اللَّهِ حَدِيثُ عَطَاءِ بْنِ يَسَارٍ عَنْ أَبِي الدَّرْدَاءِ قَالَ مُرْسَلٌ أَيْضًا لاَ يَصِحُّ، وَالصَّحِيحُ حَدِيثُ أَبِي ذَرٍّ. وَقَالَ اضْرِبُوا عَلَى حَدِيثِ أَبِي الدَّرْدَاءِ هَذَا. إِذَا مَاتَ قَالَ لاَ إِلَهَ إِلاَّ اللَّهُ. عِنْدَ الْمَوْتِ. [ر: ٢٢٥٨]

د سيدنا ابوذر غفاري ﷺ نه روايت دې چه يوه ورځ زه بهر اوتلم نو اومې کتل چه رسول الله ﷺ يواځې روان ووم او هغوی سره څوک هم نه وو. سيدنا ابوذر ﷺ فرمائی چه ما دا اوګنړله چه رسول الله ﷺ به دا خبره خوښه نه کړی چه هغوی سره دې څوک وی، پس زه د سپوږمۍ په رڼړا کښې په رسول الله ﷺ پسې شاته روان شوم، په دې کښې رسول الله ﷺ راستون شو او ماته کتلو سره ئې اوفرمائيل: څوک ئې؟ ما عرض اوکړو: ابوذر! الله پاک

دي ما په رسول الله ﷺ باندې قربان کړې. رسول الله ﷺ اوفرمائیل : ابوذر: دلته راشه
ابوذر رضی الله عنه فرمائی چه زه د لږ وخته پورې هغوی سره روان اوم د دې نه پس رسول الله ﷺ
اوفرمائیل چه کوم خلق (په دنیا کښې) زیات مال او دولت جمع کړې دې. د قیامت په ورځ
به هم هغوی غریبانان وی سوا د هغوی نه چاته چه الله پاک مال ورکړې وی او هغوی هغه
ښی او ګس. وړاندې روستو خرچ کړې وی او هغه ئې په نیکو کارونو کښې صرف کړې وی
سیدنا ابوذر رضی الله عنه فرمائی چه زه بیا د لږ ساعته پورې د رسول الله ﷺ سره روان اوم. رسول
الله ﷺ اوفرمائیل، دلته کینه. رسول الله ﷺ زه په یو هواره زمکه باندې کینولم چه د هغې
نه چاپیره کانړی وو او وې فرمائیل : دلته تر هغه وخته پورې کینه چه ترڅو پورې زه تاته
واپس رانشم.

سیدنا ابوذر رضی الله عنه فرمائی رسول الله ﷺ د کانړیزې زمکې طرف ته لاړو او د سترګو نه غیب
شو. هغوی هلته وو او د ډیر وخته پورې وو. بیا ما د رسول الله ﷺ نه واوریدل هغوی په
دې وئیلو سره تشریف راوړلو ﴿ وان سرق وان زنی ﴾ که غلا ئې کړې وی او که زنا ئې کړې وی.
سیدنا ابوذر رضی الله عنه فرمائی چه کله رسول الله ﷺ تشریف راوړلو نو زما نه صبر اونشو او ما
عرض اوکړو یا رسول الله ﷺ! الله پاک دې ما په تاسو باندې قربان کړی؛ د دې کانړیزې
زمکې په غاړه تاسو د چا سره خبرې کولې. ما خو بل چا لره تاسو سره په خبرو کولو باندې
نه وو لیدلې؟ رسول الله ﷺ اوفرمائیل : جبرائیل علیه السلام وو. د کانړیزې زمکه (حرة) په غاړه
باندې ما سره ملاؤ شو او وې فرمائیل چه خپل امت ته دې زیرې واوروه چه کوم انسان هم
په دې حال کښې مړ شو چه هغه د الله پاک سره څوک نه وی شریک کړې هغه به جنت ته ځی.
ما عرض اوکړو اې جبریل! اګر چه هغه غلا کړې وی او زنا ئې کړې وی؟ وې فرمائیل : او
اګر چه هغه شراب هم څکلې وی.

**د سند وضاحت** : امام بخاری رحمه الله چه کوم روایت ذکر فرمائیلې دې د دې په سند کښې
﴿عبدالعزیز بن رفیع عن زید بن وهب ﴾ عبدالعزیز د زید بن وهب نه په عن سره نقل کوی. د
نضر به شمیل په دې روایت کښې د شعبه درې شیوخ دی اول حبیب بن ابی ثابت، دویم
سلیمان اعمش او دریم عبدالعزیز بن رفیع او دا درې واړه د ﴿عن﴾ په ځائې ﴿ حدثنا زید بن
وهب بهذا ﴾ یعنې په تصریح د تحدیث سره نقل کوی. بهذا سره حدیث مذکور مراد دې.
د امام بخاری رحمه الله مقصد دا دې چه د قتیبه بن سعید په طریق کښې اګر چه عنعنه ده.
عبدالعزیز بن رفیع په عن سره ذکر کوی خو د شعبه په روایت کښې د تحدیث تصریح ده.

**یو اعتراض او د هغې جواب** : اسماعیلی په امام بخاری رحمه الله باندې اعتراض کړې دې چه د
شعبه په طریق کښې د مکثرین او مقلین والا حصه نشته، صرف ﴿ مَنْ مَاتَ لَا يُشْرِكُ بِاللّٰهِ شَيْئًا ﴾
والا حصه ده. په داسې صورت کښې د قتیبة بن سعید او شعبه دواړو روایاتو ته یو څنګه
وئیلې کیدې شی.
شارحینو د دې جواب دا ورکړې دې چه په حقیقت کښې د سیدنا ابوذر رضی الله عنه دا حدیث په

درې خبرو باندې مشتمل دې

① يو مكثرين او مقلين والا خبره

② دويم ﴿ ما يسرنى ان عند مثل احد ذهبا ﴾ لكه چه د وړاندې په باب په روايت كښې راروان دى، ③ دريم ﴿ مَاتَ لَا يُشْرِكُ بِاللّٰهِ شَيْئًا ﴾.

رسول الله ﷺ دا درې واړه خبرې سيدنا ابوذر غفارى رضى الله عنه ته ارشاد اوفرمائيلې د دې نه په هره يوه خبره باندې د حديث اطلاق كيدلې شى. اګر چه پوره حديث په درې بيلو بيلو خبرو باندې مشتمل دې [1]

**قوله: ﴿ قَالَ أَبُو عَبْدِ اللّٰهِ حَدِيثُ أَبِي صَالِحٍ، عَنْ أَبِي الدَّرْدَاءِ مُرْسَلٌ لَا يَصِحُّ إِنَّمَا أَرَدْنَا لِلْمَعْرِفَةِ وَالصَّحِيحُ حَدِيثُ أَبِي ذَرٍّ ﴾:** امام بخارى رحمه الله فرمائى : ﴿ ابوصالح عن ابى الدرداء ﴾ والا حديث دې او صحيح نه دې. صحيح حديث د سيدنا ابوذر رضى الله عنه دې. د دې تذكره مونږ په دې وجه باندې اوكړه چه صحيح صورت حال او حقيقت واضح او معلوم شى.

﴿ انما اردناه للمعرفة اى : انما اردنا ان نذكره للمعرفة بحاله ﴾

د سيدنا ابوذر رضى الله عنه د روايت تفصيل ستاسو مخې ته راغلو. په وړاندې باب كښې دا روايت راروان دې. په هغې كښې رسول الله ﷺ ته سيدنا جبريل عليه السلام زيرې اورولې دې چه ﴿ مَنْ مَاتَ لَا يُشْرِكُ بِاللّٰهِ شَيْئًا دَخَلَ الْجَنَّةَ..... وَإِنْ سَرَقَ وَإِنْ زَنَىٰ ﴾

بالكل هم دغه شان يو روايت د سيدنا ابوالدرداء رضى الله عنه نه ذكوان ابو صالح نقل فرمائيلې دې د سيدنا ابوذر رضى الله عنه نه دا روايت زيد بن وهب نقل فرمائى. سليمان اعمش د خپل شيخ زيد بن وهب نه تپوس اوكړو چه ماته دا خبره رارسيدلې ده چه دا حديث رسول الله ﷺ سيدنا ابوالدرداء رضى الله عنه ته اورولې وو او هغوى د دې راوى دې، نو زيد بن وهب اووې چه ماته صرف سيدنا ابوذر رضى الله عنه دا حديث په مقام ربذه كښې اورولې وو (ابوالدرداء رضى الله عنه نه) نو سليمان اعمش اوفرمائيل چه ابوصالح ماته د سيدنا ابوالدرداء رضى الله عنه هم دغه شان حديث نقل فرمائيلې دې [2]

امام بيهقى رحمه الله فرمائى چه دا دواړه بيل بيل احاديث دى. اګر چه معنوى لحاظ سره د دواړو مفهوم يو دې. خو په دوه بيلو بيلو موقعو باندې رسول الله ﷺ دا ارشاد اوفرمائيلو [3]

امام بخارى رحمه الله د دواړو احاديثو ترمينځه محاكمه كولو سره اوفرمائيل چه صحيح حديث د ابى ذر رضى الله عنه دې او ابو صالح ذكوان چه د سيدنا ابوالدرداء رضى الله عنه نه هم دغه شان كوم روايت نقل كړې دې هغه مرسل دې صحيح نه دې.

---

[1] ارشاد السارى ٤٤٥/١٣، وفتح البارى : ٣١٧/١١، وعمدة القارى : ٧٩/٢٣

[2] وفتح البارى : ٣٢٢/١١، وعمدة القارى : ٧٨/٢٣

[3] وفتح البارى : ٣٢٣/١١، ارشاد السارى ٤٤٥/١٣

خو صاحب تلويح د امام بخاري رحمه الله په محاكمه باندې تنقيد كړې دې او فرمائي چه امام نسائي رحمه الله دا حديث د امام مسلم په شرط باندې په صحيح سند سره نقل كړې دې (١)

﴿ قِيلَ لِأَبِي عَبْدِ اللهِ حَدِيثُ عَطَاءِ بْنِ يَسَارٍ ، عَنْ أَبِي الدَّرْدَاءِ قَالَ مُرْسَلٌ أَيْضًا لَا يَصِحُّ وَالصَّحِيحُ حَدِيثُ أَبِي ذَرٍّ وَقَالَ اضْرِبُوا عَلَى حَدِيثِ أَبِي الدَّرْدَاءِ ﴾

د امام بخاري رحمه الله نه د عطاء بن يسار رحمه الله د هغه روايت په باره كښې تپوس اوكړې شو. كوم چه هغوى د سيدنا ابوالدرداء رضي الله عنه نه نقل فرمائيلې دې. چه د هغې تخريج امام نسايي رحمه الله كړې دې، د هغې الفاظ دا دي:

﴿ أَنَّهُ سَمِعَ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ يَقُصُّ عَلَى الْمِنْبَرِ الْبَقَرَةَ يَقُولُ : {وَلِمَنْ خَافَ مَقَامَ رَبِّهِ جَنَّتَانِ} الْبَقَرَةَ فَقُلْتُ : وَإِنْ زَنَى وَإِنْ سَرَقَ يَا رَسُولَ اللهِ ؟ فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الثَّانِيَةَ : {وَلِمَنْ خَافَ مَقَامَ رَبِّهِ جَنَّتَانِ} الْبَقَرَةَ فَقُلْتُ الثَّانِيَةَ : وَإِنْ زَنَى وَإِنْ سَرَقَ يَا رَسُولَ اللهِ ؟ فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي الثَّالِثَةِ : {وَلِمَنْ خَافَ مَقَامَ رَبِّهِ جَنَّتَانِ} الْبَقَرَةَ فَقُلْتُ الثَّالِثَةَ : وَإِنْ زَنَى وَإِنْ سَرَقَ يَا رَسُولَ اللهِ ؟ قَالَ : وَإِنْ رَغِمَ أَنْفُ أَبِي الدَّرْدَاءِ ﴾ (٢)

يعنى: سيدنا ابوالدرداء رضي الله عنه فرمائي چه هغوى د رسول الله صلى الله عليه وسلم نه په منبر باندې واوريدل ﴿وَلِمَنْ خَافَ مَقَامَ رَبِّهِ جَنَّتَانِ﴾ يعنى څوک چه د خپل رب مخې ته د اودريدلو نه اويريدو. د هغه دپاره دوه جنتونه دي. نو ما اووې اګر چه هغه زنا او غلا كړې وى يا رسول الله صلى الله عليه وسلم! رسول الله صلى الله عليه وسلم اوفرمائيل اګر چه هغه غلا او زنا كړې وى. ما دوباره اووې. رسول الله صلى الله عليه وسلم دوباره ارشاد اوفرمائيلو. دريم كرت رسول الله صلى الله عليه وسلم اوفرمائيل: اګر چه د ابوالدرداء پوزه په خاورو باندې ككړه شى.

امام بخاري رحمه الله د دې حديث په باره كښې هم اوفرمائيل چه دا هم مرسل دې، صحيح نه دې. صحيح حديث د ابوذر رضي الله عنه دې، وې فرمائيل: د سيدنا ابوالدرداء رضي الله عنه په حديث كرښه راكاږئ. يعنى هغه پريږدئ ﴿إِذَا مَاتَ قَالَ: لَا إِلَهَ إِلَّا اللهُ عِنْدَ الْمَوْتِ﴾، ځكه چه هغه مرسل دې.

**د نسخو فرق: دلته دوه نسخې دي:** ① په اوله نسخه كښې ﴿إِذَا مَاتَ قَالَ : لَا إِلَهَ إِلَّا اللهُ عِنْدَ الْمَوْتِ﴾ الفاظ دي، مونږ چه كومه نسخه د متن په طور اختيار كړې ده. په هغې كښې د ﴿اذا مات﴾ الفاظ دي. په دې صورت كښې ﴿ اضْرِبُوا عَلَى حَدِيثِ أَبِي الدَّرْدَاءِ هَذَا ﴾ سره د سيدنا ابوالدرداء رضي الله عنه د حديث طرف ته اشاره ده، د سيدنا ابوالدرداء رضي الله عنه د حديث دا الفاظ نقل كولو سره امام بخاري رحمه الله فرمائي چه د ابوالدرداء رضي الله عنه د حديث ﴿ اذا مات قال: لا اله الا الله عند الموت ﴾ باندې خط راكاږئ او هغه پريږدئ ځكه چه هغه مرسل دې.

---

(١) ارشاد السارى ١٣/٤٤٥، وعمدة القارى : ٧٩/٢٣

(٢) السنن الكبرى للنسائى، كتاب التفسير، سورة الرحمن : ٤٤٨/٦. (رقم الحديث : ١١٥٦)

② دویم نسخه دا ده ﴿ هذا، اذ تاب قال : لا اله الا الله عند الموت ﴾ په هندوستانی نسخه کښې د ﴿اذا تاب ﴾ الفاظ دی. د دې نسخې مطابق په ﴿ اضربوا على حديث ابى الدرداء ﴾ باندې خبره ختمه شوې ده او ﴿ هذا اذا تاب، قال : لا اله الا الله عند الموت ﴾ دا د امام بخاری رحمه الله د طرف نه په حدیث الباب باندې تبصره ده. په حدیث الباب کښې دی چه چا ﴿ لا اله الا الله ﴾ او وې. هغه به جنت ته داخليږي. اګر چه هغه زنا او غلا کړې وی. امام بخاری رحمه الله فرمائی چه دا حکم په هغه صورت کښې دې چه کله هغه د ګناهونو نه توبه کړې وی او د مرګ په وخت ئې کلمه طيبه وئیلې وی. ظاهره ده چه په توبې سره دا ګناهونه معاف کیږی نو داسې انسان به جنت ته ځی.
دا د امام بخاری رحمه الله تاویل دې. نور حضرات فرمائی چه که توبه ئې نه وی کړې نو هم د خپلو ګناهونو سزا خوړلو نه پس جنت ته داخليږی ﴿ دخل الجنة ﴾ نه مراد دا کیدې شی چه بالآخر به جنت ته داخلیږی. پس شاه انور شاه کشمیری رحمه الله لیکی :

﴿ قوله : (قال أبو عبد الله : هذا إذا مات، وقال : لا إله إلا الله عند الموت) لمّا استشكلَ المصنِّفُ النجاةَ مع ارتكاب الزنا، والسرقة، حمله على أن المرادَ من الزنا والسرقةِ الذى قد تاب منه، فإذا تابَ منه قبل الموت، وقال الكلمة، فذلك يَدْخُلُ الجنةَ. والذى تبيَّن لى أن الحديثَ سِيقَ لبيان أن المؤمنَ العاصى يَدْخُلُ الجنة آخراً، وإنما عبَّر كذلك فى اللفظ، لأنَّ الكافرَ لا يَدْخُلُها أبداً حتى يَلِجَ الجملُ فى سَمِّ الخياط. وإذا كان المؤمنُ العاصى دَاخِلَها، ولو بعد التعذيب يسيراً، صحَّ الإطلاقُ فى التعبير. فالدخولُ فى الجنة، أو تحريمُ النار عليه، كلُّه بالنظر إلى حال الكافر. ولمّا تعلَّم الناسُ المسألةَ فى المؤمن المُسْرِفِ، وتقرَّرت فى أذهانهم، صارت عندهم كالبديهى، فَزَعَمُوا أنها لا تحتاج إلى تنبيه، مع أنه لولم يُعَلِّمنا لمَا عَلِمْنَا : {وما كُنَّا لِنَهْتَدِىَ لعلا لا أن هَدَانا الله} (الأعراف : ٤٣). فهذا هو المرادُ عندى، والله تعالى أعلم بالصواب ﴾ (۱)

بهر حال د عطاء بن یسار رحمه الله ته هم امام بخاری رحمه الله غیر صحیح او مرسل وئیلې دې.
خو حافظ ابن حجر رحمه الله د امام بخاری رحمه الله خبرې ته قابل اشکال وئیلې ده. هغوی فرمائی چه د عطاء روایت مرسل نه دې، ځکه چه د عطاء بن یسار رحمه الله سماعت د ابو الدرداء رضی الله عنه نه ثابت دې. لکه چه ابن ابی حاتم او طبرانی او د بیهقی په روایت کښې دی. پس هغهوی لیکی :

﴿ وقد وقع التصريح بسماع عطاء بن يسار له من أبى الدرداء فى رواية بن أبى حاتم فى التفسير والطبرانى فى المعجم والبيهقى فى شعبه ﴾ (۲)

---

(۱) فیض الباری ٤/٤٢٥
(۲) فتح الباری ١١/٣٢٣

## ⑭ باب قول النبي صلى الله عليه وسلم «مَا أُحِبُّ أَنَّ لِي مِثْلَ أُحُدٍ ذَهَبًا».

[۲۰۷۹] حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ الرَّبِيعِ حَدَّثَنَا أَبُو الْأَحْوَصِ عَنِ الْأَعْمَشِ عَنْ زَيْدِ بْنِ وَهْبٍ قَالَ قَالَ أَبُو ذَرٍّ كُنْتُ أَمْشِي مَعَ النَّبِيِّ - صلى الله عليه وسلم - فِي حَرَّةِ الْمَدِينَةِ فَاسْتَقْبَلَنَا أُحُدٌ فَقَالَ «يَا أَبَا ذَرٍّ».
قُلْتُ لَبَّيْكَ يَا رَسُولَ اللَّهِ. قَالَ «مَا يَسُرُّنِي أَنَّ عِنْدِي مِثْلَ أُحُدٍ هَذَا ذَهَبًا، تَمْضِي عَلَيَّ ثَالِثَةٌ وَعِنْدِي مِنْهُ دِينَارٌ، إِلَّا شَيْئًا أَرْصُدُهُ لِدَيْنٍ، إِلَّا أَنْ أَقُولَ بِهِ فِي عِبَادِ اللَّهِ هَكَذَا وَهَكَذَا وَهَكَذَا». عَنْ يَمِينِهِ وَعَنْ شِمَالِهِ وَمِنْ خَلْفِهِ. ثُمَّ مَشَى فَقَالَ «إِنَّ الْأَكْثَرِينَ هُمُ الْأَقَلُّونَ يَوْمَ الْقِيَامَةِ إِلَّا مَنْ قَالَ هَكَذَا وَهَكَذَا وَهَكَذَا - عَنْ يَمِينِهِ وَعَنْ شِمَالِهِ وَمِنْ خَلْفِهِ - وَقَلِيلٌ مَا هُمْ». ثُمَّ قَالَ لِي «مَكَانَكَ لَا تَبْرَحْ حَتَّى آتِيَكَ». ثُمَّ انْطَلَقَ فِي سَوَادِ اللَّيْلِ حَتَّى تَوَارَى فَسَمِعْتُ صَوْتًا قَدِ ارْتَفَعَ، فَتَخَوَّفْتُ أَنْ يَكُونَ قَدْ عَرَضَ لِلنَّبِيِّ - صلى الله عليه وسلم - فَأَرَدْتُ أَنْ آتِيَهُ فَذَكَرْتُ قَوْلَهُ لِي «لَا تَبْرَحْ حَتَّى آتِيَكَ» فَلَمْ أَبْرَحْ حَتَّى أَتَانِي، قُلْتُ يَا رَسُولَ اللَّهِ لَقَدْ سَمِعْتُ صَوْتًا تَخَوَّفْتُ، فَذَكَرْتُ لَهُ فَقَالَ «وَهَلْ سَمِعْتَهُ». قُلْتُ نَعَمْ. قَالَ «ذَاكَ جِبْرِيلُ أَتَانِي فَقَالَ مَنْ مَاتَ مِنْ أُمَّتِكَ لَا يُشْرِكُ بِاللَّهِ شَيْئًا دَخَلَ الْجَنَّةَ». قُلْتُ وَإِنْ زَنَى وَإِنْ سَرَقَ قَالَ «وَإِنْ زَنَى وَإِنْ سَرَقَ». [ر: ۲۲۵۸]

د سيدنا ابو الدرداء رضي الله عنه نه روايت دې چه زه د رسول الله ﷺ سره د مدينې په کانړيزې علاقه کښې روان اوم. هم په دې دوران کښې د احد غر زمونږ مخې ته راغلو، رسول الله ﷺ تپوس اوفرمائيلو : ابوذر! ما عرض اوکړو حاضر يم يا رسول الله ﷺ! رسول الله ﷺ اوفرمائيل : زه به په دې کله هم خوشحاله نه شم چه ما سره ددې احد د غر برابر سره زر وی او په هغې باندې درې ورځې تيرې شی چه د هغې نه يو دينار هم باقی پاتې شی، سوا د هغه لږ مال نه چه کوم زه د قرض د ادا کولو دپاره پريږدم، بلکه هغه به زه د الله پاک په بندګانو کښې داسې خرچ کړم. خپل ښی ګس او شاته (يعنی هر طرف ته ئې خرچ کړم) بيا رسول الله ﷺ روان وو، د دې نه پس ئې اوفرمائيل. زيات مال ساتونکی به د قيامت په ورځ باندې غريبانان وی سوا د هغه سړی نه کوم چه خپل مال ښی، ګس او شاته خرچ کړی او داسې خلق کم دی.
بيا ئې ماته اوفرمائيل : هم دلته اودريږه، د دې ځائې نه تر هغه وخته پورې مه ځه ترڅو چه زه واپس نه يم راغلې، بيا رسول الله ﷺ د شپې په تيارهٔ کښې لاړو او د سترګو نه غائب شو. د دې نه پس ما آواز واوريدلو چه اوچت وو. زه اويريدم چه رسول الله ﷺ ته څه تکليف نه وی رسيدلې، ما د رسول الله ﷺ په خدمت کښې د رسيدلو اراده اوفرمائيله خو د هغوی ارشاد راياد شو چه د خپل ځائې نه مه خوزه، ترڅو چه زه واپس نه يم راغلې، پس

ترخو پورې چه رسول الله ﷺ تشریف نه وو راوړې زه د هغه ځائې نه بیرته نه شوم ما عرض اوکړو. یا رسول الله ﷺ ما یو آواز اوریدلې وو، ماته خطره هم محسوس شوه. خو بیا ستاسو ارشاد راياد شو. رسول الله ﷺ تپوس اوفرمائيلو چه تا اوریدلې وو؟ ما عرض اوکړو اوجی! رسول الله ﷺ اوفرمائيل: هغه جبرائيل علیه السلام وو. او هغه اووې چه ستاسو د امت چه کوم سړې په داسې حال کښې مړ شي چه هغه د الله پاک سره څوک شریک کړې نه وی نو هغه به جنت ته ځی ما تپوس اوکړو اگر چه هغه زنا یا غلا کړې وی. هغه اوفرمائيل. او اگر چه زنا او غلې ئې ولې نه وی کړې (۱)

**قوله:** ﴿تَمْضِي عَلَيَّ ثَالِثَةٌ﴾: په دې کښې د ﴿ثالثة﴾ نه ﴿ليلة ثالثة﴾ مراد ده. د باب په وړاندې روایت کښې دی، ﴿أَنْ لَا تَمُرَّ عَلَيَّ ثَلَاثُ لَيَالٍ أَرْصُدُهُ لِدَيْنٍ﴾ یعنی هغه چه ما د قرض لرې کولو دپاره کیخودلې دې. ﴿الا ان اقول به عباد الله﴾: مگر هغه چه زه ئې د الله پاک په بندګانو باندې خرچ کړم، ﴿اقول به﴾ نه انفاق مراد دې، ﴿الا من قال: هکذا وهکذا وهکذا﴾ مگر چه دې طرف ته. هغه طرف ته خرچ کوی، من قال يعني صرف المال في حقه.

[۶۰۸۰] حَدَّثَنِي أَحْمَدُ بْنُ شَبِيبٍ حَدَّثَنَا أَبِي عَنْ يُونُسَ . وَقَالَ اللَّيْثُ حَدَّثَنِي يُونُسُ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُتْبَةَ قَالَ أَبُو هُرَيْرَةَ -رضي الله عنه- قَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- «لَوْ كَانَ لِي مِثْلُ أُحُدٍ ذَهَبًا لَسَرَّنِي أَنْ لَا تَمُرَّ عَلَيَّ ثَلَاثُ لَيَالٍ وَعِنْدِي مِنْهُ شَيْءٌ، إِلَّا شَيْئًا أَرْصُدُهُ لِدَيْنٍ». [ر: ۲۲۵۹]

د سيدنا أبوهريره رضی الله عنه نه روايت دې چه رسول الله ﷺ اوفرمائيل: که ما سره د احد د غر په مقدار سره زر وی نو زه به په دې باندې خوشحاله یم چه په هغې درې ورځې هم تیرې نه شی چه ماته پکښې څه هم پاتې شي، سوا د هغه معمولی رقم نه کوم چه زه د قرض د ادا کولو دپاره کیږدم. علامه قسطلانی رحمه الله فرمائی:

﴿ وفيه الحث على الإنفاق في وجوه الخيرات، وأنه -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- كان في أعلى درجات الزهد في الدنيا بحيث إنه لا يحب أن يبقى في يده شيء من الدنيا إلا لإنفاقه فيمن يستحقه وإما لإرصاده لمن له حق ﴾ (۲)

---

(۱) قال ابن بطال: في هذا الحديث أن المؤمن لا ينبغي له أن يتمنّى كثرة المال إلا بشريطة أن يسلطه الله على إنفاقه في طاعته اقتداءً بالنبي (صلى الله عليه وسلم) في ذلك.
وفيه: أن المبادرة إلى الطاعة أفضل من التواني فيها. ألا ترى أن النبي (صلى الله عليه وسلم) لم يحب أن يبقى عنده من مقدار جبل أحد ذهبًا. لو كان له. بعد ثلاث إلا دينار يرصده لدين.
وفيه: أن النبي (صلى الله عليه وسلم) كان يكون عليه الدين لكثرة مواساته بقوته وقوت عياله. وإيثاره على نفسه أهل الحاجة. والرضا بالتقلل والصبر على خشونة العيش. وهذه سيرة الأنبياء والصالحين. وهذا كله يدل على أن فضل المال في إنفاقه في سبيل الله لا في إمساكه وادّخاره. (شرح ابن بطال ۱۶۶/۱۰)
(۲) ارشاد الساری ۴۴۸/۱۳، هم دغه شان اوګورئ: فتح الباری: ۳۲۶/۱۱

يعنى په دې كښې د نيكئ په لارو كښې د خرچ كولو ترغيب وركړې شوې دې. او په دې امر باندې ترغيب وركړې شوې دې چه انسان په دنيا كښې د زهد اعلى درجه اختيار كړى. په دې طريقه چه هغه دا خواهش اوساتى چه د هغه په لاس كښې چه څومره مال او دولت دې هغه هغې لره په مستحق خلقو باندې خرچ كړى يا د صاحب حق د حق د ادا كولو دپاره ئې تيار اوساتى.

## ⑮ باب الغنى غنى النفس

وَقَوْلُ اللّٰهِ تَعَالَى (أَيَحْسَبُونَ أَنَّ مَا نُمِدُّهُمْ بِهِ مِنْ مَالٍ وَبَنِينَ) إِلَى قَوْلِهِ تَعَالَى (مِنْ دُونِ ذٰلِكَ هُمْ لَهَا عَامِلُونَ). قَالَ ابْنُ عُيَيْنَةَ لَمْ يَعْمَلُوهَا لَا بُدَّ مِنْ أَنْ يَعْمَلُوهَا.

لكه چه د ترجمة الباب نه واضح ده. امام بخارى رحمه الله په ترجمة الباب كښې د حديث الفاظ ذكر كړې دى. چه د هغې حاصل دا دې چه اصل مالدارى د زړه مالدارى ده. د دې نه پس امام بخارى رحمه الله د سورة المومنون آيت نمبر ۵۵ نه واخله تر آيت نمبر ۶۳ پورې يعنى اتۀ آيتونه په ترجمة الباب كښې ذكر فرمائيلى دى، هغه آيتونه دا دى:

﴿ أَيَحْسَبُونَ أَنَّمَا نُمِدُّهُمْ بِهِ مِنْ مَالٍ وَبَنِينَ ۝ نُسَارِعُ لَهُمْ فِي الْخَيْرَاتِ ۚ بَلْ لَا يَشْعُرُونَ ۝ إِنَّ الَّذِينَ هُمْ مِنْ خَشْيَةِ رَبِّهِمْ مُشْفِقُونَ ۝ وَالَّذِينَ هُمْ بِآيَاتِ رَبِّهِمْ يُؤْمِنُونَ ۝ وَالَّذِينَ هُمْ بِرَبِّهِمْ لَا يُشْرِكُونَ ۝ وَالَّذِينَ يُؤْتُونَ مَا آتَوْا وَقُلُوبُهُمْ وَجِلَةٌ أَنَّهُمْ إِلَىٰ رَبِّهِمْ رَاجِعُونَ ۝ أُولَٰئِكَ يُسَارِعُونَ فِي الْخَيْرَاتِ وَهُمْ لَهَا سَابِقُونَ ۝ وَلَا نُكَلِّفُ نَفْسًا إِلَّا وُسْعَهَا ۖ وَلَدَيْنَا كِتَابٌ يَنْطِقُ بِالْحَقِّ ۚ وَهُمْ لَا يُظْلَمُونَ ۝ بَلْ قُلُوبُهُمْ فِي غَمْرَةٍ مِنْ هَٰذَا وَلَهُمْ أَعْمَالٌ مِنْ دُونِ ذَٰلِكَ هُمْ لَهَا عَامِلُونَ ۝ ﴾

**ترجمه** : آيا دا خلق په دې خيال كښې دى چه مونږ دوى ته كوم مال او دولت وركوو. نو آيا هغوى ته د خير په رسولو كښې تندى كوو؟ (دا خبره هرگز نه ده، بلكه هغوى (د دې مهلت، په حقيقت پوهيږى نه. (يعنى دا مهلت خو هغوى ته په طور د استدراج وركړې شوې دې. كوم چه به په آخره كښې د هغوى دپاره د نور عذاب سبب هم جوړيږى. ځكه چه زمونږ په مهلت وركولو سره به دوى نور هم مغرور كيدو سره په سركشئ او گناهونو كښې زيادت شروع كړى او عذاب به پرې زيات شى. حقيقت دا دې چه كوم خلق د خپل رب د هيبت نه ويريږى. او كوم خلق چه د خپل رب په آيتونو باندې ايمان راوړى، او څوک چه د خپل رب سره هيڅ څوک شريک نه جوړوى او كوم خلق چه (د الله پاک په لاره كښې) وركړه كوى چه څه وركوى او (سره د الله پاک لاره كښې د خرچې كولو) د هغوى زړونه د دې نه په ويره كښې وى چه هغوى خپل رب سره ملاويدونكى دى. (گوره چه هلته تلو سره د دې صدقاتو څه ثمره ظاهر شى. چرته داسې اونشى چه دا دنيا د حكم موافق نه شى مثلا مال حلال نه وى يا نيت د الله پاک دپاره خالص نه وى او په نيت كښې اخلاص كامل نه كيدل او د مال حراميدل مونږ ته معلوم نه وى نو التـه به په دې باندې مواخذه شروع شى نو په كومو خلقو كښې چه دا صفات وى) دا خلق خپلې فائدې زر زر حاصلوى او د هغوى طرف ته منډې وهى او (دا اعمال مذكوره څه سخت هم نه دى چه د هغې كول گران وى ځكه چه)، مونږ چاته د هغه د وس نه بهر كار كولو نه وايو (په دې وجه دا ټول كارونه آسان دى او هغه سره د هغوى انجام او ثمره

یقیني ده ځکه چه، مونږ سره یو کتاب (اعمال نامه محفوظ) ده کوم چه صحیح صحیح (د ټولو حال) بیان کړی. او په خلقو باندې به ظلم نه وی. (دا خو مې پورته د مومنانو حالت واوریدلو خو کفار داسې نه دی) بلکه (برعکس) د هغې کفارو زړونه د دې دین د طرف نه (چه د هغې ذکر بایات ربهم کښې دی) جهالت (او شک) کښې (ډوب شوې) دی. (چه د هغې حل پورته هم معلوم شوې دې فذرهم فی غمرتهم) او د دې (جهالت او انکار) نه علاوه د دې خلقو نور هم (بدبد) اعمال دی کوم چه دوی (مسلسل) کوی.

**قوله: ﴿قَالَ ابْنُ عُيَيْنَةَ لَمْ يَعْمَلُوهَا لَا بُدَّ مِنْ أَنْ يَعْمَلُوهَا﴾:** د قرآن کریم د آیت کریمه ﴿مِنْ دُونِ ذَٰلِكَ هُمْ لَهَا عَامِلُونَ﴾ په باره امام سفیان بن عیینه رحمه الله فرمائی چه ډیر هغه بد اعمال کوم چه هغوی اوسه پورې نه دی کړی هغه به هم ضرور کوی او دغه شان به د الله پاک د عذاب مستحق شی.

[۶۰۸۱] حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ يُونُسَ حَدَّثَنَا أَبُو بَكْرٍ حَدَّثَنَا أَبُو حَصِينٍ عَنْ أَبِي صَالِحٍ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ - صلى الله عليه وسلم - قَالَ «لَيْسَ الْغِنَى عَنْ كَثْرَةِ الْعَرَضِ، وَلَكِنَّ الْغِنَى غِنَى النَّفْسِ».

د سیدنا ابوهریره رضی الله عنه نه روایت دې چه رسول الله صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل: غنا او مالداری دا نه ده چه سامان زیات وی. بلکه اصل غناء دا ده چه زړه غنی وی.

**په ایت کریمه او حدیث کښې مناسبت:** امام بخاری رحمه الله په ترجمة الباب کښې د سورة المومنون چه کوم آیتونه ذکر فرمائیلې دی، د حدیث الباب سره د هغې مناسبت بیانولو باندې حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی چه د آیت کریمه نه دا حقیقت معلومیږی چه مال فی نفسه.د څه خیر او نفع څیز نه دې، بلکه د هغې نافعیت. د هغې د متعلق په اعتبار سره دې. هغه که دې لره په صحیح مصرف کښې استعمال کړی نو د صحیح او غوره مصرف د وجې نه به د هغې نافعیت او غوره والې واضح او ظاهر وی. هم دغه شان د زیات مال د وجې نه انسان غني کیږی نه ترڅو پورې چه هغه د زړه نه غنی نه وی. که د زړه نه غنی وو هغې لره به په صحیح او ضروری مصرف کښې خرچ کوی، او که د زړه فقیر وی نو هغه به د مال خرچ کولو نه روستو کیږی او دغه شان به هغه مال د هغه په دین او دنیا کښې په کار نه راځی.[1]

## ⑯ بَابُ فَضْلِ الْفَقْرِ

[۶۰۸۲] حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ قَالَ حَدَّثَنِي عَبْدُ الْعَزِيزِ بْنُ أَبِي حَازِمٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ سَهْلِ بْنِ سَعْدٍ السَّاعِدِيِّ أَنَّهُ قَالَ مَرَّ رَجُلٌ عَلَى رَسُولِ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - فَقَالَ لِرَجُلٍ عِنْدَهُ جَالِسٍ «مَا رَأْيُكَ فِي هَذَا». فَقَالَ رَجُلٌ مِنْ أَشْرَافِ النَّاسِ، هَذَا وَاللَّهِ حَرِيٌّ إِنْ

[1]) فتح الباری ۳۲۸/۱۱، ارشاد الساری: ۴۵۰/۱۳

خطب أن ينكح، وإن شفع أن يشفع. قال فسكت رسول الله - صلى الله عليه وسلم - ثم مر رجل فقال له رسول الله - صلى الله عليه وسلم - «ما رأيك في هذا». فقال يا رسول الله هذا رجل من فقراء المسلمين، هذا حري إن خطب أن لا ينكح، وإن شفع أن لا يشفع، وإن قال أن لا يسمع لقوله. فقال رسول الله - صلى الله عليه وسلم - « هذا خير من ملء الأرض مثل هذا». [ر: ۴۸۰۳]

د سیدنا سهل بن ساعدی رضی الله عنه نه روایت دي چه یو سړي د رسول الله ﷺ په خوا کښې تیر شو، نو رسول الله ﷺ د یو بل سړي چه د هغوی په خوا کښې ناست وو. تپوس اوکړو (چه د تیریدونکي) صاحب ستا متعلق ستاسو څه خیال دې؟ هغوی اووې چه دې د معزز خلقو نه دې. او قسم په الله د دې قابل دې چه که دې د نکاح پیغام اولیږي نو د هغه سره نکاح اوکړې شي، که دې سفارش اوکړي نو د هغوی سفارش قبول کړې شي.

سیدنا سهل رضی الله عنه فرمائي : رسول الله ﷺ په دې باندې خاموش شو د دې نه پس یو بل سړې تیر شو، رسول الله ﷺ تپوس اوفرمائیلو چه د دې سړي په باره کښې ستاسو څه رائې ده؟ هغوی اووې چه یا رسول الله ﷺ! دا صاحب د مسلمانانو د غریبې طبقې نه دې او د دې قابل دې چه که د نکاح پیغام اولیږي نو هغه سره به نکاح اونکړې شي، که سفارش اوکړي نو د هغوی سفارش به قبول نه کړې شي او که څه اوائي نو د هغوی خبره وانوریدلې شي.

رسول الله ﷺ د دې نه پس اوفرمائیل : دا (غریب) سړي د هغه (امیر) په شان د ټولې دنیا د انسانانو نه غوره دې

دا حدیث، کتاب النکاح کښې تیر شوې دې.

[۶۰۸۳] حدثنا الحميدي حدثنا سفيان حدثنا الأعمش قال سمعت أبا وائل قال عدنا خبابا فقال هاجرنا مع النبي - صلى الله عليه وسلم - نريد وجه الله، فوقع أجرنا على الله، فمنا من مضى لم يأخذ من أجره، منهم مصعب بن عمير قتل يوم أحد، وترك نمرة فإذا غطينا رأسه بدت رجلاه، وإذا غطينا رجليه بدا رأسه، فأمرنا النبي - صلى الله عليه وسلم - أن نغطي رأسه، ونجعل على رجليه من الإذخر، ومنا من أينعت له ثمرته فهو يهدبها. [ر: ۱۲۱۷]

د سیدنا خباب رضی الله عنه نه روایت دې چه مونږ د رسول الله ﷺ سره د الله پاک د رضا حاصلولو دپاره هجرت اوکړو، پس زمونږ اجر د الله پاک په ذمه وو، په مونږ کښې څوک خو وفات شو او خپل اجر ئې په دې دنیا کښې وانخستلو. سیدنا مصعب بن عمیر رضی الله عنه هم د هغوی نه وو، هغوی د جنګ احد په موقع باندې شهید شوې وو. او یو څادر ئې پریخودلې وو (په هغه څادر کښې هغوی ته کفن ورکړې شوې وو) په هغه څادر سره به که مونږ د هغوی سر پټ کړو نو د هغوی خپې به ښکاره کیدلې. پس رسول الله ﷺ مونږ ته حکم راکړو چه مونږ د هغه سر پټ کړو او په خپو باندې ورله سرکړې واچوو او په مونږ کښې ډیر داسې دی چه د هغوی د محنت میوه په دنیا کښې راډیره شوه او هغه راشوکوي.

ابو وائل د شقیق بن سلمة رحمه الله كنیت دې (يهذها: يقطعها، هذب) معنی دمیوې شو کولو راځي

[۶۰۸۴] حَدَّثَنَا أَبُو الْوَلِيدِ حَدَّثَنَا سَلْمُ بْنُ زَرِيرٍ حَدَّثَنَا أَبُو رَجَاءٍ عَنْ عِمْرَانَ بْنِ حُصَيْنٍ - رضي الله عنهما - عَنِ النَّبِيِّ - صلى الله عليه وسلم - قَالَ «اطَّلَعْتُ فِي الْجَنَّةِ فَرَأَيْتُ أَكْثَرَ أَهْلِهَا الْفُقَرَاءَ، وَاطَّلَعْتُ فِي النَّارِ فَرَأَيْتُ أَكْثَرَ أَهْلِهَا النِّسَاءَ». تَابَعَهُ أَيُّوبُ وَعَوْفٌ، وَقَالَ صَخْرٌ وَحَمَّادُ بْنُ نَجِيحٍ عَنْ أَبِي رَجَاءٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ. [ر: ۳۰۶۹]

د سیدنا عمران بن حصین رضي الله عنه نه روایت دې چه رسول الله صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل . ما په جنت کښې اوکتل نو په هغې کښې اکثر اوسیدونکی غریبانان وو او ما په دوزخ کښې اوکتل نو په هغې کښې اکثر اوسیدونکی زنانه وې.

ابو الولید . هشام بن عبد الملک طیالسی او ابو رجاء عمران بن تمیم عطار ددوی کنیت دې

**قوله: (تَابَعَهُ أَيُّوبُ وَعَوْفٌ)**: د ابو رجاء متابعت ایوب سختیانی رحمه الله او عوف کړې دې. د ایوب متابعت امام نسائی رحمه الله او د عوف متابعت امام بخاری رحمه الله موصولا کړې دې (١)

**قوله: (وَقَالَ صَخْرٌ وَحَمَّادُ بْنُ نَجِيحٍ، عَنْ أَبِي رَجَاءٍ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ)**: د صخر بن جویره او حماد بن نجیح تعلیق امام نسائی رحمه الله موصولا نقل کړې دې. (٢) دې دواړو دا روایت د سیدنا ابن عباس رضي الله عنهما نه نقل کړې دې.

[۶۰۸۵] حَدَّثَنَا أَبُو مَعْمَرٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَارِثِ حَدَّثَنَا سَعِيدُ بْنُ أَبِي عَرُوبَةَ عَنْ قَتَادَةَ عَنْ أَنَسٍ - رضي الله عنه - قَالَ لَمْ يَأْكُلِ النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - عَلَى خِوَانٍ حَتَّى مَاتَ، وَمَا أَكَلَ خُبْزًا مُرَقَّقًا حَتَّى مَاتَ.

د سیدنا انس رضي الله عنه نه روایت دې چه رسول الله صلی الله علیه وسلم کله هم په خوان یعنی د میز په شان تخت باندې خوراک نه دې فرمائیلې. تردې چه د هغوی وفات اوشو.

(خوان) د میز په شان تخت ته وائی، چه په هغې باندې به مالدارو خوراک کولو.

علامه قسطلانی رحمه الله فرمائی: (هو ما يؤكل عليه الطعام وهو من دأب المترفين وصنع الجبابرة المنعمين لئلا يفتقروا إلى التطاطؤ عند أكل) (٣)

یعنی: خوان هغه د میز په شان تخت ته وائی، په کوم باندې چه ډوډئ خوړلې شی، دا عموما متکبر قسم مالدار خلق استعمالوی، چه د خوراک کولو په وخت هغوی سر ښکته نه کړی.

---

(١) عمدة القاری ۸۶/۲۳، ارشاد الساری: ۴۵۲/۱۳، فتح الباری: ۳۳۷/۱۱

(٢) عمدة القاری ۸۶/۲۳، ارشاد الساری: ۴۵۲/۱۳، فتح الباری: ۳۳۷/۱۱

(٣) ارشاد الساری ۴۵۳/۱۳

[٦٠٨٦] حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ حَدَّثَنَا أَبُو أُسَامَةَ حَدَّثَنَا هِشَامٌ عَنْ أَبِيهِ عَنْ عَائِشَةَ رضي الله عنها قَالَتْ لَقَدْ تُوُفِّيَ النَّبِيُّ صلى الله عليه وسلم وَمَا فِي رَفِّي مِنْ شَيْءٍ يَأْكُلُهُ ذُو كَبِدٍ، إِلَّا شَطْرُ شَعِيرٍ فِي رَفٍّ لِي، فَأَكَلْتُ مِنْهُ حَتَّى طَالَ عَلَيَّ، فَكِلْتُهُ، فَفَنِيَ. [ر: ٢٩٣٠]

د سيده عائشه رضي الله عنها نه روايت دې چه رسول الله ﷺ وفات شو نو زمونږ په كندو كښې يو هم داسې څيز نه وو چه هغه د يو جاندار د خوراك قابل وى سوا د لږ شان جوارو كوم چه زما په كندو كښې وو. ما به د هغې نه خوراك كولو. ډيرې ورځې اوشوې نو ما هغه اوتللې. آخر هغه هم ختمې شوې.

﴿رف﴾ كندو ته وائى. ﴿ذوكبد﴾ د اينې والا. مراد دې نه جاندار دې.

**د معاش په اعتبار سره د مومن درې حالتونه:** د معاش په لحاظ سره د يو مومن درې حالتونه كيدې شى:

① اول حالت فقر دې. امام بخارى رحمه الله دا باب د فقر په فضيلت باندې قائم فرمائيلې دې، او په دې باب كښې چه څومره روايات ذكر كړې شوې دى. په دې ټولو رواياتو كښې د فقر فضيلت بيان كړې شوې دې. خپله د رسول الله ﷺ ژوند. فقر او غربت والا وو. لكه چه د روايات الباب نه واضح دې. د رسول الله ﷺ دا فقر اختيارى وو او د اكثر حضرات صحابه كرامو رضي الله عنهم ژوند هم فقيرانه او درويشانه وو.

② دويم حالت د مالدارئ او د دولت د ډير والى او معاش وو. اول حالت چه كوم چه د صبر دې. دا دويم حالت د يو مومن دپاره د الله پاك په نعمتونو باندې د شكر او حمد موقع وركوى، په ډير احاديثو كښې د مالدارئ فضيلت راغلې دې:

* ..... په كتاب الوصايا كښې د سيدنا سعد بن ابى وقاص رضي الله عنه روايت تير شوې دې چه په هغې كښې دى:

﴿إِنَّكَ أَنْ تَدَعَ وَرَثَتَكَ أَغْنِيَاءَ خَيْرٌ مِنْ أَنْ تَدَعَهُمْ عَالَةً يَتَكَفَّفُونَ النَّاسَ فِي أَيْدِيهِمْ﴾ [1] يعنى: چه ته خپل وارثان مالدار پريږدې چه د دې دنيا نه رخصت شو دا د دې نه غوره ده چه هغوى محتاج او فقيران پريږدې.

* ..... سيدنا كعب رضي الله عنه د رسول الله ﷺ سره مشوره اوكړه چه هغه خپل ټول مال د الله پاك په لاره كښې خرچ كړى؟ رسول الله ﷺ هغوى ته اوفرمائيل:

﴿أَمْسِكْ عَلَيْكَ بَعْضَ مَالِكَ فَهُوَ خَيْرٌ لَكَ﴾ [2] يعنى: څه مال بچت اوساته. په دې كښې ستاسو دپاره خير دې.

* .. هم دغه شان په كتاب الدعوات كښې ﴿ذهب اهل الدثور بالاجور﴾ والا روايت تير شوې

[1] صحيح البخارى، كتاب الوصايا، باب ان يترك ورثته اغنياء خير من ان يتكففوا الناس، رقم الحديث: ٢٧٤٢

[2] صحيح البخارى، كتاب الوصايا، باب اذا تصدق، او اوقف بعض ماله او بعض رقيقه، او داوته فهو جائز (رقم الحديث: ٢٧٥٧)

دي. چه د هغې په آخر کښې دی ﴿ذٰلِكَ فَضْلُ اللّٰهِ يُؤْتِيهِ مَنْ يَشَاءُ﴾.

★ ...د سيدنا عمرو بن العاص رضي الله عنه امام احمد رحمه الله نقل فرمائيلې دی. ﴿نعم المال الصالح للمرء الصالح﴾ [1] يعنى: هغه حلال مال څه ښه دې، کوم چه د نيک سړى سره وى.

د دې ټولو رواياتو نه معلوميږى چه مومن سره د مال او دولت ډيروالې. د هغه په حق کښې يو مفيد څيز دې، ځکه چه د مال او دولت ډير والې، د هغه دپاره د الله پاک په لاره کښې د خرچ کولو ډيرې زياتې موقعې ورکوى او د دين ډير کارونه به د هغې په ذريعه اوکړى.

③ يو دريم حالت د د مينځ حالت دې چه انسان نه مالدار دې. نه فقير او محتاج دې. بلکه د هغه ضرورتونه پوره کيږى او په قدر د ضرورت هغه سره مال او دولت موجود دې. دې حالت ته ﴿کفاف﴾ وائى. علامه قرطبى رحمه الله په شرح د مسلم کښې او علامه ابن بطال په شرح د بخارى کښې دې حالت ته د ټولو نه غوره وئيلې دې، ځکه چه په دې کښې د فقر او مالدارئ دواړو حالتونو د فتنې نه سلامتى ده او رسول الله ﷺ د مالدارئ او فقر دواړو د فتنې نه پناه غوښتلې ده. [2]

امام مسلم رحمه الله په صحيح مسلم د سيدنا عبدالله بن عمرو بن العاص رضي الله عنهما نه مرفوع روايت نقل کړې دې، د هغې الفاظ دا دى:

﴿قَدْ أَفْلَحَ مَنْ أَسْلَمَ وَرُزِقَ كَفَافًا وَقَنَّعَهُ اللّٰهُ بِمَا آتَاهُ﴾ [3] يعنى: هغه سړې کامياب دې چا چه اسلام قبول کړو، هغه ته په قدر د ضرورت روزى ورکړې شوه او هغه قناعت اختيار کړو.

هم دغه شان په وړاندې باب کښې روايت راروان دې، رسول الله ﷺ فرمائى:

﴿اللهم ارزق آل محمد قوتا﴾ يعنى اې الله! ته آل محمد ﷺ ته په قدر د ضرورت روزى ورکړه.

امام ابن ماجة په خپل سنن کښې يو مرفوع روايت د سيدنا انس رضي الله عنه نه نقل کړې دې، په هغې کښې دى:

﴿مَا مِنْ غَنِيٍّ، وَلَا فَقِيرٍ، إِلَّا وَدَّ يَوْمَ الْقِيَامَةِ أَنَّهُ أُتِيَ مِنَ الدُّنْيَا قُوتًا﴾ [4] يعنى د قيامت په ورځ به هر مالدار او فقيرسړې دا تمناکوى، چه ارمان: هغه ته په قدر د ضرورت دنيا ورکړې شوې وې.

د دې رواياتو نه د معاش دريم حالت کوم چه د فقر او غنا ترمينځه او بين بين دې، غوره والې او افضليت معلوم شو.

**فقر افضل دې او که مالدراى؟** په دې باندې د ټولو علماء کرامو اتفاق دې چه داسې فقر او

---

[1] مسند احمد: ٩٥/٦، رقم الحديث: ١٧٩١٥

[2] فتح البارى ٣٣١/١١، شرح ابن بطال: ١٧٠/١٠، ١٧٤

[3] صحيح مسلم، كتاب الزكاة، باب فى الكفاف والقناعة: ٧٣٠/٢، رقم الحديث: ١٠٤٥، وسنن ابن ماجة، كتاب الزهد، باب القناعة: ١٣٨٦/٢، رقم الحديث: ٤١٣٨، ولفظه: قد افلح من هُدى الى الاسلام، ورزق الكفاف، وقنع به، وفتح البارى: ٣٣١/١١.

[4] سنن ابن ماجة، كتاب الزهد، باب القناعة: ١٣٨٧/٢، رقم الحديث: ٤١٤٠

احتياج چه په هغې باندې انسان صبر اونکړې شي او کوم چه د انسان د دين او ايمان دپاره د خطرې باعث وي او کوم چه د الله پاک طاعت د انسان نه هير کړي، د هغې نه هغه مالداري او غنا افضل دې، کوم چه د الله پاک د شکر او طاعت سره وي.
هم دغه شان دا خبره متفق عليه ده چه هغه مالداري او د دولت ډير والې کوم چه انسان د الله پاک په نافرمانئ او عجب کښې اخته کړي، د انسان دپاره فتنه ده، د هغې په مقابله کښې هغه فقر او غريبي په زر چنده غوره ده کوم چه د الله پاک د صبر او طاعت سره وي. [1]
خو فقر که د صبر او تقوی سره وي او مالداري د شکر او تقوی سره وي نو بيا په دې دواړو کښې کوم يو افضل او راجح دې، په دې کښې د علماء کرامو اختلاف دې:
علامه ابن تيمية رحمه الله فرمايي چه دا دواړه برابر دي، يعنی يو ته هم په بل باندې فوقيت نه دې حاصل. [2]
د ابو القاسم قشيري او امام طبري رحمهما الله خيال دې چه د فقر په مقابله کښې غناء او مالداري افضل ده، د مطرف بن عبدالله قول دې:
﴿لان اعافى فاشكر احب الى من ابتلى فاصبر﴾ [3] يعنی: په عافيت سره مالداري او شکر ماته د دې نه زيات خوښ دي چه زه د فقر په ازميښت کښې واچولې شم او صبر اوکړم.
اووجه ددې ښکاره ده چه د انسان دپاره شکرکول زيات اسان دي، په نسبت د صبر کولو کښې. علامه ابن الجوزي او جمهور صوفياء د غناء او مالدارئ په مقابلې کښې فقر ته ترجيح ورکوي چه په دې کښې د نفس مجاهده ده کومه چه د منازلو د ترقئ دپاره مفيد ده، علامه ابن الجوزي رحمه الله فرمائي، د مالدارئ فتنه د فقر د فتنې نه زياته ده. [4]

---

[1]) فتح البارى : ۳۳۱/۱۱
[2]) ارشاد السارى: ۴۵۳/۱۳، فتح البارى ۳۳۲/۱۱، قال ابن بطال : فأى الرجلين أفضل : المبتلى بالفقر ، أو المبتلى بالغنى إذا صلحت حال كل واحد منهما ؟ قيل : السؤال عن هذا لا يستقيم ؛ إذ قد يكون لهذا أعمال سوى تلك المحنة يفضل بها صاحبه والآخر كذلك ، وقد يكون هذا الذى صلح حاله على الفقر لا يصلح حاله على الغنى ، ويصلح حال الآخر على الفقر والغنى . فإن قيل : فإن كان كل واحد منهما يصلح حاله فى الأمرين ، وهما فى غير ذلك من الأعمال متساويان قد أدّى الفقير ما يجب عليه فى فقره من الصبر والعفاف والرضا ، وأدّى الغنى ما يجب عليه من الإنفاق والبذل والشكر والتواضع ، فأى الرجلين أفضل ؟ قيل : علم هذا عند الله. (وانظر شرح ابن بطال : ۱۷۳/۱۰)
[3]) فتح البارى : ۳۳۳/۱۱
[4]) فتح البارى ۳۳۲/۱۱، ارشاد السارى ۴۵۴/۱۳

## ⑰ باب كَيْفَ كَانَ عَيْشُ النَّبِيِّ صلى الله عليه وسلم وَأَصْحَابِهِ، وَتَخَلِّيهِمْ مِنَ الدُّنْيَا.

په دې باب کښې امام بخاری رحمه الله د رسول الله ﷺ او د حضرات صحابه کرامو رضی الله عنهم د فقیرانه او درویشانه ژوند یو جهلک ښودلې دې او هغه احادیث ئې ذکر کړې دی چه په هغې کښې د رسول الله ﷺ اهل بیت یا د حضرات صحابه کرامو رضی الله عنهم د غریبئ او فقیرئ پته لګی.

[۶۰۸۷] حَدَّثَنِي أَبُو نُعَيْمٍ بِنَحْوٍ مِنْ نِصْفِ هَذَا الْحَدِيثِ حَدَّثَنَا عُمَرُ بْنُ ذَرٍّ حَدَّثَنَا مُجَاهِدٌ أَنَّ أَبَا هُرَيْرَةَ كَانَ يَقُولُ آللَّهِ الَّذِي لاَ إِلَهَ إِلاَّ هُوَ إِنْ كُنْتُ لأَعْتَمِدُ بِكَبِدِي عَلَى الأَرْضِ مِنَ الْجُوعِ، وَإِنْ كُنْتُ لأَشُدُّ الْحَجَرَ عَلَى بَطْنِي مِنَ الْجُوعِ، وَلَقَدْ قَعَدْتُ يَوْمًا عَلَى طَرِيقِهِمُ الَّذِي يَخْرُجُونَ مِنْهُ، فَمَرَّ أَبُو بَكْرٍ، فَسَأَلْتُهُ عَنْ آيَةٍ مِنْ كِتَابِ اللَّهِ، مَا سَأَلْتُهُ إِلاَّ لِيُشْبِعَنِي، فَمَرَّ وَلَمْ يَفْعَلْ، ثُمَّ مَرَّ بِي عُمَرُ فَسَأَلْتُهُ عَنْ آيَةٍ مِنْ كِتَابِ اللَّهِ، مَا سَأَلْتُهُ إِلاَّ لِيُشْبِعَنِي، فَمَرَّ فَلَمْ يَفْعَلْ، ثُمَّ مَرَّ بِي أَبُو الْقَاسِمِ - صلى الله عليه وسلم - فَتَبَسَّمَ حِينَ رَآنِي وَعَرَفَ، مَا فِي نَفْسِي وَمَا فِي وَجْهِي ثُمَّ قَالَ «أَبَا هِرٍّ». قُلْتُ لَبَّيْكَ يَا رَسُولَ اللَّهِ. قَالَ «الْحَقْ». وَمَضَى فَتَبِعْتُهُ، فَدَخَلَ فَاسْتَأْذَنَ، فَأَذِنَ لِي، فَدَخَلَ فَوَجَدَ لَبَنًا فِي قَدَحٍ فَقَالَ «مِنْ أَيْنَ هَذَا اللَّبَنُ». قَالُوا أَهْدَاهُ لَكَ فُلاَنٌ أَوْ فُلاَنَةُ. قَالَ «أَبَا هِرٍّ». قُلْتُ لَبَّيْكَ يَا رَسُولَ اللَّهِ. قَالَ «الْحَقْ إِلَى أَهْلِ الصُّفَّةِ فَادْعُهُمْ لِي». قَالَ وَأَهْلُ الصُّفَّةِ أَضْيَافُ الإِسْلاَمِ، لاَ يَأْوُونَ إِلَى أَهْلٍ وَلاَ مَالٍ، وَلاَ عَلَى أَحَدٍ، إِذَا أَتَتْهُ صَدَقَةٌ بَعَثَ بِهَا إِلَيْهِمْ، وَلَمْ يَتَنَاوَلْ مِنْهَا شَيْئًا، وَإِذَا أَتَتْهُ هَدِيَّةٌ أَرْسَلَ إِلَيْهِمْ، وَأَصَابَ مِنْهَا وَأَشْرَكَهُمْ فِيهَا، فَسَاءَنِي ذَلِكَ فَقُلْتُ وَمَا هَذَا اللَّبَنُ فِي أَهْلِ الصُّفَّةِ كُنْتُ أَحَقُّ أَنَا أَنْ أُصِيبَ مِنْ هَذَا اللَّبَنِ شَرْبَةً أَتَقَوَّى بِهَا، فَإِذَا جَاءَ أَمَرَنِي فَكُنْتُ أَنَا أُعْطِيهِمْ، وَمَا عَسَى أَنْ يَبْلُغَنِي مِنْ هَذَا اللَّبَنِ، وَلَمْ يَكُنْ مِنْ طَاعَةِ اللَّهِ وَطَاعَةِ رَسُولِهِ - صلى الله عليه وسلم - بُدٌّ، فَأَتَيْتُهُمْ فَدَعَوْتُهُمْ فَأَقْبَلُوا، فَاسْتَأْذَنُوا فَأَذِنَ لَهُمْ، وَأَخَذُوا مَجَالِسَهُمْ مِنَ الْبَيْتِ قَالَ «يَا أَبَا هِرٍّ». قُلْتُ لَبَّيْكَ يَا رَسُولَ اللَّهِ. قَالَ «خُذْ فَأَعْطِهِمْ». قَالَ فَأَخَذْتُ الْقَدَحَ فَجَعَلْتُ أُعْطِيهِ الرَّجُلَ فَيَشْرَبُ حَتَّى يَرْوَى، ثُمَّ يَرُدُّ عَلَى الْقَدَحَ، فَأُعْطِيهِ الرَّجُلَ فَيَشْرَبُ حَتَّى يَرْوَى، ثُمَّ يَرُدُّ عَلَى الْقَدَحَ فَيَشْرَبُ حَتَّى يَرْوَى، ثُمَّ يَرُدُّ عَلَى الْقَدَحَ، حَتَّى انْتَهَيْتُ إِلَى النَّبِيِّ - صلى الله عليه وسلم - وَقَدْ رَوِيَ الْقَوْمُ كُلُّهُمْ، فَأَخَذَ الْقَدَحَ فَوَضَعَهُ عَلَى يَدِهِ فَنَظَرَ إِلَى فَتَبَسَّمَ فَقَالَ «أَبَا هِرٍّ». قُلْتُ لَبَّيْكَ يَا رَسُولَ اللَّهِ. قَالَ «بَقِيتُ أَنَا وَأَنْتَ». قُلْتُ صَدَقْتَ يَا رَسُولَ اللَّهِ. قَالَ «اقْعُدْ فَاشْرَبْ». فَقَعَدْتُ فَشَرِبْتُ. فَقَالَ «اشْرَبْ». فَشَرِبْتُ، فَمَا زَالَ يَقُولُ «اشْرَبْ». حَتَّى قُلْتُ لاَ وَالَّذِي بَعَثَكَ بِالْحَقِّ، مَا أَجِدُ لَهُ مَسْلَكًا. قَالَ «فَأَرِنِي». فَأَعْطَيْتُهُ الْقَدَحَ فَحَمِدَ اللَّهَ وَسَمَّى، وَشَرِبَ الْفَضْلَةَ.

[ر: ۵۸۹۲]

د سيدنا ابوهريره ﷺ نه روايت دي چه قسم په الله ! چه د هغه نه سوا بل معبود نشته، زه به د لوږې د وجې نه په زمكه باندې الته سملاستم، ما به د لوږې د وجې نه په خپله خيټه باندې كاڼړې تړل، يوه ورځ زه په لاره كښې كيناستلم چه په هغې باندې به صحابه كرام ﷺ وتل، سيدنا ابوبكر ﷺ تير شو او ما د هغوى نه د كتاب الله د يو آيت په باره كښې تپوس اوكړو، زما د تپوس كولو مقصد صرف دا وو چه په ما باندې څه اوخورى. هغوى لاړل او هيڅ ئې اونكړل، بيا سيدنا عمر ﷺ زما په خوا تير شو، ما د هغوى نه هم د قرآن كريم يو آيت اوتپوسلو او د تپوس كولو مقصد مې صرف دا وو چه هغوى په ما باندې څه اوخورى، هغوى هم لاړل او هيڅ ئې اونكړل.

د دې نه پس رسول الله ﷺ راغلو، هغوى چه كله زه اوليدم نو مسكې شو او رسول الله ﷺ زما د زړه په خبره پوهه شو او زما د مخ نه هغوى هر څه معلوم كړل، بيا رسول الله ﷺ اوفرمائيل : ابا هريره! ما عرض اوكړو : لبيک يا رسول الله ﷺ! وې فرمائيل : ما سره راشه او رسول الله ﷺ روان شو، زه په رسول الله ﷺ پسې شوم، بيا رسول الله ﷺ دننه تشريف يوړلو. اجازت مې اوغوښتلو نو ماته اجازت ملاؤ شو، بيا چه داخل شو نو په يو پياله كښې راته پئ ملاؤ شو، تپوس ئې اوكړو چه دا پئ د چرته نه راغلې دى، اووئيلې شو چه فلانى فلانى د رسول الله ﷺ دپاره هديه راليږلې ده.

رسول الله ﷺ اوفرمائيل، ابا هريره! ما عرض اوكړو، لبيک يا رسول الله ﷺ! وې فرمائيل : اهل صفه ته لاړشه اوهغوى ټول ماته راوله،سيدنا ابوهريره ﷺ فرمائى چه اهل صفه د اسلام ميلمانهٔ وو،.هغوى به نه د چا په كور كښې پناه اخستله نه د چا په مال كښې او نه د چا سره چه كله به رسول الله ﷺ ته صدقه راتله نو هغوى به هغه صدقه هغوى ته ورليږله او خپله به ئې د هغې نه هيڅ نه ساتل، خو چه كله به رسول الله ﷺ ته هديه راغله نو هغوى به ئې راطلب كړل نو خپله به ئې هم خوړله او هغوى به ئې هم پكښې شريک كړل.

پس په ما باندې دا خبره ښه او نه لګيده او ما سوچ اوكړو چه دا پئ دى څومره! چه په ټول صفه والو كښې تقسيم كړې شى، د دې حق دار خو زه اوم، د دې په څكلو به مې څه طاقت حاصل كړې وې، چه اهل صفه راشى نو رسول الله ﷺ به ماته اوفرمائى او زه به هغوى ته دا پئ وركوم. ماته خو كيدې شى چه په دې كښې هيڅ ملاؤ نه شى، خو د الله پاک او د هغه د رسول ﷺ د اطاعت نه علاوه هم څه چاره نه وه.

پس زه هغوى ته راغلم او د رسول الله ﷺ دعوت مې ورته راورسولو، اهل صفه راغلل او اجازت ئې طلب كړو. هغوى ته اجازت ملاؤ شو، بيا هغوى په كور كښې په خپل خپل ځائې باندې كيناستل، رسول الله ﷺ اوفرمائيل : اباهر! ما عرض اوكړو، لبيک يا رسول الله ﷺ! وې فرمائيل : واخله او دې ټولو حضراتو ته وركړه.

سيدنا ابوهريره ﷺ فرمائى ما يو پياله اونيوله او يو يو ته به مې وركوله، يو سړې به چه كله د پيو څكلو سره موړ شو نو ماته به ئې واپس كړه او هم دغه شان به دويم څكلو سره پياله ماته راواپس كړه، دغه شان زه رسول الله ﷺ ته راورسيدم، ټول خلق څكلو سره سيراب شوې وو، رسول الله ﷺ پياله اونيوله او په خپل لاس مبارک باندې نيولو سره ئې

زما طرف ته اوکتل او مسکي کیدو سره ئي اوفرمائیل. اباهر! ما عرض اوکړو. لبیک یا رسول الله ﷺ! وې فرمائیل : اوس زه او ته باقي پاتي شو ما عرض اوکړو یا رسول الله ﷺ: تاسو رشتیا اوفرمائیل. رسول الله ﷺ اوفرمائیل : کینه او اوڅکه: او پئ څکل مې شروع کړل او رسول الله ﷺ راته برابر فرمائیل چه څکه. آخر چه ما اووې بس: قسم په هغه ذات چه تاسو ئي په حقه رالیږلي یئ اوس نور ګنجائش نشته رسول الله ﷺ اوفرمائیل : بیا ئي ماته راکړه. ما پیاله رسول الله ﷺ ته ورکړه. رسول الله ﷺ د الله پاک حمد بیان کړو او بسم الله لوستلو سره ئي بچ شوې پئ اوڅکل.

**قوله:** ﴿حَدَّثَنِي أَبُو نُعَيْمٍ بِنَحْوٍ مِنْ نِصْفِ هَذَا الْحَدِيثِ﴾: امام بخاری رحمه الله فرمائی چه ابو نعیم (فضل بن دکین) ماته دا حدیث نیم بیان کړې دې. د دې مطلب دا دې چه باقي نیمه حصه متصل نه ده، بلکه بغیر د سند نه ده. امام د نیمې حصې تعین هم نه دې کړې چه د حدیث کومه نیمه حصه مراد ده، اول نیمه یا آخر؟

په کتاب الاستئذان کښې ئې ﴿بَابٌ إِذَا دُعِيَ الرَّجُلُ فَجَاءَ هَلْ يَسْتَأْذِنُ﴾ د لاندې د ابونعیم نه د دې حدیث صرف دومره جزء نقل کړې دې.

﴿دَخَلْتُ مَعَ رَسُولِ اللهِ صلى الله عليه وسلم فَوَجَدَ لَبَنًا فِي قَدَحٍ فَقَالَ أَبَا هِرٍّ الْحَقْ أَهْلَ الصُّفَّةِ فَادْعُهُمْ إِلَيَّ قَالَ فَأَتَيْتُهُمْ فَدَعَوْتُهُمْ فَأَقْبَلُوا فَاسْتَأْذَنُوا فَأُذِنَ لَهُمْ فَدَخَلُوا﴾

یعنې : زه د رسول الله ﷺ سره کور ته داخل شوم، نو رسول الله ﷺ ته په پیاله کښې پئ پراتهٔ ملاؤ شو. رسول الله ﷺ اوفرمائیل : ابوهریره! لاړ شه اهل صفه راوغواړه. ما اهل صفه راوغوښتل. هغوی د رسول الله ﷺ نه د دننه تلو اجازت طلب کړو. په اجازت ملاویدو باندې هغوی دننه راغلل.

خو دا د دې اوږد حدیث صرف یو جزء دې. نیمه حصه نه ده.

شارحینو لیکلي دی چه کیدې شی امام په طریق د وجادة یا په طریق د اجازة د باقی حصې روایت کړې وی او دا هم ممکن ده چه باقي نیمه حصه ئې خپله د براه راست اوریدلو په ځائې د یو داسې سړی نه اوریدلې وی، چا چه د ابونعیم نه براه راست اوریدلې وی. [1]

**قوله:** ﴿كان يقول : اللهَ الذي لا اله الا هو﴾: په دې کښې لفظ ﴿الله﴾ منصوب بنزع الخافض دې. او د دې نه مخکښې واؤ قسمیه محذوف دې. [2]

[۶۰۸۸] حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا يَحْيَى عَنْ إِسْمَاعِيلَ حَدَّثَنَا قَيْسٌ قَالَ سَمِعْتُ سَعْدًا يَقُولُ إِنِّي لأَوَّلُ الْعَرَبِ رَمَى بِسَهْمٍ فِي سَبِيلِ اللَّهِ، وَرَأَيْتُنَا نَغْزُو، وَمَا لَنَا طَعَامٌ إِلاَّ وَرَقُ الْحُبْلَةِ وَهَذَا

[1]) ارشاد الساری ۴۵۷/۱۳، فتح الباری : ۳۴۲/۱۱

[2]) فتح الباری ۳۴۳/۱۱، ارشاد الساری ۴۵۵/۱۳، عمدة القاری ۸۹/۲۳

النَّمرُ، وَإِنَّ أَحَدَنَا لَيَضَعُ كَمَا تَضَعُ الشَّاةُ، مَا لَهُ خِلْطٌ، ثُمَّ أَصْبَحَتْ بَنُو أَسَدٍ تُعَزِّرُنِي عَلَى الإِسْلَامِ، خِبْتُ إِذًا وَضَلَّ سَعْيِي. [ر ٣٥٢٢]

د سيدنا سعد رضي الله عنه نه روايت دې چه رسول الله ﷺ بيان اوکړو چه زه د تولو نه ړومبې عرب يم چا چه د الله پاک په لاره کښې غشى ويشتل. او وخت په دا سې حال کښې تير کړې دې چه په جنګ به اخته وو او مونږ سره به د خوراک څه څيز سوا د کيکر د پاڼو نه هيڅ نه وو. او د چيلو د پچو شان به مو پچې کولې. اوس دې د بنو اسد خلقو زما په اسلام باندې شک شروع کړو (که د دوى خبره صحيح وى) بيا خو زه بالکل نامراد پاتې شوم او زما تول کوشش ضائع شو.

[٦٠٩٠] حَدَّثَنِي عُثْمَانُ حَدَّثَنَا جَرِيرٌ عَنْ مَنْصُورٍ عَنْ إِبْرَاهِيمَ عَنِ الأَسْوَدِ عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ مَا شَبِعَ آلُ مُحَمَّدٍ صلى الله عليه وسلم مُنْذُ قَدِمَ الْمَدِينَةَ مِنْ طَعَامِ بُرٍّ ثَلَاثَ لَيَالٍ تِبَاعًا حَتَّى قُبِضَ.

د سيده عائشه رضي الله عنها نه روايت دې چه د رسول الله ﷺ د کور خلقو ته مدينې ته د راتلو نه پس کله هم تر درې ورځو پورې متواتر اوربشې د خوراک دپاره نه دى ملاؤ شوې. تردې چه رسول الله ﷺ وفات شو.

﴿تباعا﴾ دا د فعال په وزن باندې د باب مفاعله مصدر دې په معنى پرلپسې. مسلسل

[٦٠٩١] حَدَّثَنِي إِسْحَاقُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ حَدَّثَنَا إِسْحَاقُ - هُوَ الأَزْرَقُ - عَنْ مِسْعَرِ بْنِ كِدَامٍ عَنْ هِلَالٍ عَنْ عُرْوَةَ عَنْ عَائِشَةَ - رضي الله عنها - قَالَتْ مَا أَكَلَ آلُ مُحَمَّدٍ - صلى الله عليه وسلم - أَكْلَتَيْنِ فِي يَوْمٍ إِلَّا إِحْدَاهُمَا تَمْرٌ.

د سيده عائشه رضي الله عنها نه روايت دې چه آل د محمد ﷺ که په يو ورځ کښې دوه کرته ډوډئ خوړلې دى. نو لازما به هغې کښې يو وخت کهجورې وې.

[٦٠٩٢] حَدَّثَنِي أَحْمَدُ بْنُ أَبِي رَجَاءٍ حَدَّثَنَا النَّضْرُ عَنْ هِشَامٍ قَالَ أَخْبَرَنِي أَبِي عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ كَانَ فِرَاشُ رَسُولِ اللَّهِ صلى الله عليه وسلم مِنْ أَدَمٍ، وَحَشْوُهُ مِنْ لِيفٍ. [ر ٥٠٧٠]

د سيده عائشه رضي الله عنها نه روايت دې چه د رسول الله ﷺ بستره د څرمنې وه او هغه د کهجورو د پوستکو نه ډکه کړې شوې وه.

[٦٠٩٣، ٦٠٩٤] حَدَّثَنَا هُدْبَةُ بْنُ خَالِدٍ حَدَّثَنَا هَمَّامُ بْنُ يَحْيَى حَدَّثَنَا قَتَادَةُ قَالَ كُنَّا نَأْتِي أَنَسَ بْنَ مَالِكٍ وَخَبَّازُهُ قَائِمٌ وَقَالَ كُلُوا فَمَا أَعْلَمُ النَّبِيَّ - صلى الله عليه وسلم - رَأَى رَغِيفًا مُرَقَّقًا، حَتَّى لَحِقَ بِاللَّهِ، وَلَا رَأَى شَاةً سَمِيطًا بِعَيْنِهِ قَطُّ. [ر: ٥٠٧٠]

د قتاده رحمه الله نه روايت دې چه مونږ د سيدنا انس بن مالک رضي الله عنه په خدمت کښې حاضر شو، د هغوى خانسامه هم هلته موجود وو. هغوى به وئيل خورئ، ما رسول الله ﷺ کله هم په غوړه ډوډئ خوړلو باندې نه دې ليدلې. تردې چه هغوى د الله پاک سره ملاؤ شو او نه رسول الله ﷺ

کله په خپلو ستر گو باندې ورته کړې شوې ثابته بیزه لیدلې ده.

[۶۰۹۳، ۶۰۹۴] حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنَّى حَدَّثَنَا يَحْيَى حَدَّثَنَا هِشَامٌ أَخْبَرَنِي أَبِي عَنْ عَائِشَةَ رضی الله عنها - قَالَتْ كَانَ يَأْتِي عَلَيْنَا الشَّهْرُ مَا نُوقِدُ فِيهِ نَارًا، إِنَّمَا هُوَ التَّمْرُ وَالْمَاءُ، إِلاَّ أَنْ نُؤْتَى بِاللُّحَيْمِ.

د عائشې رضی الله عنها نه روایت دې چه په مونږ باندې به داسې میاشت هم تیره شوه چه نغری کنبې به اورنه بلیدو، صرف کهجورې او اوبه به وې، اوکه چرته غوښه به راغله (نو اور به بل شو).

[۶۰۹۴] حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيزِ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ الأُوَيْسِيُّ حَدَّثَنِي ابْنُ أَبِي حَازِمٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ يَزِيدَ بْنِ رُومَانَ عَنْ عُرْوَةَ عَنْ عَائِشَةَ أَنَّهَا قَالَتْ لِعُرْوَةَ ابْنَ أُخْتِي إِنْ كُنَّا لَنَنْظُرُ إِلَى الْهِلاَلِ ثَلاَثَةَ أَهِلَّةٍ فِي شَهْرَيْنِ، وَمَا أُوقِدَتْ فِي أَبْيَاتِ رَسُولِ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - نَارٌ. فَقُلْتُ مَا كَانَ يُعِيشُكُمْ قَالَتِ الأَسْوَدَانِ التَّمْرُ وَالْمَاءُ إِلاَّ أَنَّهُ قَدْ كَانَ لِرَسُولِ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - جِيرَانٌ مِنَ الأَنْصَارِ كَانَ لَهُمْ مَنَائِحُ، وَكَانُوا يَمْنَحُونَ رَسُولَ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - مِنْ أَبْيَاتِهِمْ، فَيَسْقِينَاهُ. [ر: ۲۴۲۸]

د سیده عائشه رضی الله عنها نه روایت دې چه هغوی عروه ته اوفرمائیل : اې خوریه! مونږ به په دوه میاشتو کنبې درې میاشتې اولیدې او د رسول الله ﷺ (د بیبیانو) په کورنو کنبې به اور نه بلیدو، ما تپوس اوکړو چه نو بیا به تاسو خلق ژوندئ په څه باندې اوسیدئ؟ وې فرمائیل : صرف په دوه تورو څیزونو باندې. په کهجورو باندې او په اوبو باندې. د رسول الله ﷺ څه انصاریان ګاونډیان وو. هغوی سره به د پیو والا څاروی وو. هغوی به د رسول الله ﷺ دپاره د خپلو کورونو نه پئ راليږل نو رسول الله ﷺ به مونږ باندې اوڅکل

**قوله:** ﴿إِنْ كُنَّا لَنَنْظُرُ إِلَى الْهِلاَلِ ثَلاَثَةَ أَهِلَّةٍ فِي شَهْرَيْنِ﴾: په دوه میاشتو کنبې به مونږ درې میاشتې (سپوږمئ) لیدلې، دریمه سپوږمئ به د دریمې میاشتې وه، کومه چه به ئې د دویمې میاشتې په ختمیدو باندې لیده. [۱]

﴿إِنْ كُنَّا لَنَنْظُرُ﴾ دا ﴿ ان ﴾ مخفف من المثقل دې. [۲] او ﴿ لننظر ﴾ کنبې لام فارقه دې. دا ﴿ ان ﴾ په نافیه سره فرق کولو او جدا کولو په غرض باندې په خبر داخلیږي.

[۱] ارشاد الساری ۴۶۰/۱۳، عمدة القاری ۹۵/۲۳

[۲] قال ابن بطال فی شرحه : ( اللهم ارزق آل محمد قوتًا ) . فيه دليل على فضل الكفاف وأخذ البلغة من الدنيا . والزهد فيما فوق ذلك رغبة فى توفير نعيم الآخرة . وإيثارًا لما يبقى على ما يفنى لتقتدى بذلك أمته . ويرغبوا فيما رغب فيه نبيهم ( صلى الله عليه وسلم ) . وروى الطبرى بإسناده عن ابن مسعود قال : حبذا المكروهان الموت والفقر . والله ما هو إلا الغنى والفقر وما أبالى بأيهما ابتليت . إن حق الله فى كل واحد منهما واجب . إن كان الغنى ففيه التعطف . وإن كان الفقر ففيه الصبر . قال الطبرى : فمحنة الصابر أشد من محنة الشاكر . وإن كانا شريفى المنزلة . غير أنى أقول كما قال مطرف بن عبد الله: ...[بقيه برصفحه آئنده...

﴿كَانَتْ لَهُمْ مَنَائِحُ﴾ ﴿منائح﴾، د ﴿منيحة﴾ جمع ده. او د پيو والا اوښې ته وائي.

[۶۰۹۵] حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ فُضَيْلٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ عُمَارَةَ عَنْ أَبِي زُرْعَةَ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رضي الله عنه - قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - «اللَّهُمَّ ارْزُقْ آلَ مُحَمَّدٍ قُوتًا».

د سيدنا ابوهريره رضي الله عنه نه روايت دې چه رسول الله ﷺ دعا اوکړه، اې الله: آل محمد ﷺ ته دومره روزي ورکړه چه هغوی پرې بس ژوندی پاتې شي. [۱]

د ابوزرعه نوم هرام بن عمرو بن جرير دې.

## ⑱ بَابُ الْقَصْدِ وَالْمُدَاوَمَةِ عَلَى الْعَمَلِ

**د ترجمة الباب وضاحت**: امام بخاری رحمه الله په دې ترجمة الباب کښې دوه خبرې بيان فرمائيلې دي. يو قصد او ميانه روی او دويم مداومت. په طاعاتو او عباداتو کښې دننه، دا دواړه اوصاف په شريعت کښې مطلوب او محمود دي او په هغې کښې هم قصد او ميانه روی چونکه د مداومت او استقامت ذريعه او سبب دې، په دې وجه ئې دواړه يوځائې ذکر کړې. که د حد نه تجاوز او مبالغه کولو سره نيک عمل اختيار کړې شي نو عموما انسان آخر ستړې شي. خو خپل طاقت ته کتلو سره که په ميانه روئ سره اعمال اوکړې شي نو ذوق او شوق هم باقي وي او دوام او استقامت هم حاصل وي.

[۶۰۹۶، ۶۰۹۷] حَدَّثَنَا عَبْدَانُ أَخْبَرَنَا أَبِي عَنْ شُعْبَةَ عَنْ أَشْعَثَ قَالَ سَمِعْتُ أَبِي قَالَ سَمِعْتُ مَسْرُوقًا قَالَ سَأَلْتُ عَائِشَةَ - رضي الله عنها - أَيُّ الْعَمَلِ كَانَ أَحَبَّ إِلَى النَّبِيِّ - صلى الله عليه وسلم - قَالَتِ الدَّائِمُ. قَالَ قُلْتُ فَأَيَّ حِينٍ كَانَ يَقُومُ قَالَتْ كَانَ يَقُومُ إِذَا سَمِعَ الصَّارِخَ.

امام مسروق رحمه الله فرمائي چه ما د عائشې رضي الله عنها نه تپوس اوکړو، کوم عمل رسول الله ﷺ ته زيات خوښ وو؟ وې فرمائيل: داسې عمل کوم چه هميشه اوکړې شي، مسروق فرمائي چه ما تپوس اوکړو، رسول الله ﷺ به د شپې کومې پورې مونځ کولو؟ وې فرمائيل چه کله به ئې د چرګ آذان واوريدلو، تر هغه وخته پورې به ئې مونځ (تهجد) کول.

عبدان، د عبدالله بن عثمان بن حيله لقب دې، اشعث نه ابن ابی الشعثاء مراد دې، د ابوالشعثاء نوم سليم بن الاسود محاربی دې.

---

...بقيه ازحاشيه گذشته] لأن أعافى فأشكر أحب إليَّ من أن أبتلى فأصبر. ومن فضل قلة الأكل ما روى يحيى بن أبي كثير، عن أبي سلمة، عن أبي هريرة قال: قال رسول الله: (إن أهل البيت ليقل طعمهم فتستنير بيوتهم) (شرح ابن بطال: ۱۷۹/۱)

[۱] عمدة القاري: ۹۵/۲۳

[۶۰۹۷] حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ عَنْ مَالِكٍ عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ عَنْ أَبِيهِ عَنْ عَائِشَةَ أَنَّهَا قَالَتْ كَانَ أَحَبُّ الْعَمَلِ إِلَى رَسُولِ اللَّهِ صلى الله عليه وسلم الَّذِي يَدُومُ عَلَيْهِ صَاحِبُهُ. [ر: ۱۰۸۰]

د سيده عائشه رضي الله عنها نه روايت دې چه رسول الله ﷺ ته د ټولو نه زيات خوښ عمل هغه وو چه په هغې باندې صاحب عمل هميش والې اختيار کړي.

[۶۰۹۸] حَدَّثَنَا آدَمُ حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي ذِئْبٍ عَنْ سَعِيدٍ الْمَقْبُرِيِّ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ -رضى الله عنه- قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- «لَنْ يُنَجِّيَ أَحَدًا مِنْكُمْ عَمَلُهُ». قَالُوا وَلاَ أَنْتَ يَا رَسُولَ اللَّهِ قَالَ «وَلاَ أَنَا، إِلاَّ أَنْ يَتَغَمَّدَنِي اللَّهُ بِرَحْمَةٍ، سَدِّدُوا وَقَارِبُوا، وَاغْدُوا وَرُوحُوا، وَشَىْءٌ مِنَ الدُّلْجَةِ. وَالْقَصْدَ الْقَصْدَ تَبْلُغُوا». [ر: ۵۳۴۹]

د سيدنا ابوهريره رضي الله عنه نه روايت دې چه رسول الله ﷺ اوفرمائيل. په تاسو کښې چاته هم د هغه عمل خلاصې ورنکړي، صحابه کرامو رضي الله عنهم عرض اوکړو او تاسو ته هم يا رسول الله ﷺ! وې فرمائيل : او ماته هم نه؛ سوا د دې نه چه الله پاک ما د خپل رحمت په سورى کښې پټ کړي. په صحيح لاره باندې ځئ او ميانه راوى اختيار کړئ او سحر او مانښام او د شپې په څه حصه کښې د الله پاک عبادت کوئ، ميانه روى اختيار کړئ، ميانه روى، نو منزل مقصود ته به اورسئ. د ابن ابى الذئب نوم محمد بن عبد الرحمن دې.

﴿ سددوا ﴾ : صحيح لاره اختيار کړئ. علامه عينى رحمه الله فرمائى : معناه : اقصدوا السداد اى الصواب.[1]

﴿ قاربوا ﴾ : په ميانه روئ سره ځئ. وئيلې شى : ﴿ قارب فلان فى اموره ﴾ هغه په خپلو معاملاتو کښې ميانه راوى اختيار کړه. علامه ابن اثير رحمه الله ليکى : ﴿ اى اقتصدوا فى الامور كلها، واتركوا الغلو فيها والتقصير ﴾[2] علامه کرمانى رحمه الله فرمائى : اى : لاتبلغوا الغاية، بل تقربوا منها.

﴿ اغدوا ﴾ : سحر روان شئ. ﴿ روحوا ﴾ : مانښام روان شئ.

﴿ وشئ من الدلجة ﴾ : او د شپې په څه حصه کښې روان شئ. په بعض نسخو کښې ﴿ شيئا ﴾ منصوب دې، ﴿ دلجة ﴾ (د دال په ضمې او فتحې سره) د شپې په وخت تلو ته وائى.[3]

﴿ القصد القصد ﴾ : دا منصوب على الاغراء دې، د هغه فعل ﴿ الزم ﴾ وجوبا محذوف دې، يعنى: ﴿ الزم القصد القصد ﴾ ميانه روى لازم اونيسئ. علامه قسطلانى رحمه الله ليکى :

﴿ وقد شبه التعبدين بالمسافرين لأن العابد كالمسافر الى محل اقامته وهو الجنة وكأنه قال: لا تستوعبوا

---

[1] عمدة القارى : ۹۷/۲۳
[2] النهاية لابن الاثير : ۴۳۱/۲
[3] النهاية لابن الاثير : ۵۷۸/۱ .

الأوقات كلها بالسير بل اغتنموا أوقات نشاطكم وهو أول النهار وآخره وبعض الليل وارحموا أنفسكم فيما بينهما لئلا ينقطع بكم ﴾ (١)

يعنى دلته عبادت گزارو ته د مسافرو سره تشبيه وركړې شوې ده. ځكه چه عابد د مسافر په شان دې. د دې منزل جنت دې. گويا رسول الله ﷺ اوفرمائيل: ټول وخت په عبادت كښې مه لگوئ، بلكه د خپلې خوشحالئ اوقات غنيمت اوگنړئ او د خوشحالئ وختونه د ورځې اول او آخر حصه او د شپې څه حصه ده. د هغې په مينځنى وخت كښې په خپلو ځانونو باندې رحم اوكړئ، چه منع نه شئ او څه عمل ستاسو نه پاتې نه شى

[٦٠٩٩] حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيزِ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ عَنْ مُوسَى بْنِ عُقْبَةَ عَنْ أَبِي سَلَمَةَ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ عَنْ عَائِشَةَ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صلى الله عليه وسلم قَالَ «سَدِّدُوا وَقَارِبُوا، وَاعْلَمُوا أَنْ لَنْ يُدْخِلَ أَحَدَكُمْ عَمَلُهُ الْجَنَّةَ، وَأَنَّ أَحَبَّ الأَعْمَالِ أَدْوَمُهَا إِلَى اللَّهِ، وَإِنْ قَلَّ» [٦١٠٢]

د سيده عائشه رضي الله عنها نه روايت دې چه رسول الله ﷺ اوفرمائيل: برابره لار او ميانه راوى اختيار كړئ او پوهه شئ چه په تاسو كښې به د چا عمل هم هغه جنت ته داخل نه كړې شى. زما په نزد د ټولو نه غوره عمل هغه دې چه په هغې باندې هميشوالې اختيار كړې شى. اگر كه هغه كم ولې نه وى.

[٦١٠٠] حَدَّثَنِي مُحَمَّدُ بْنُ عَرْعَرَةَ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ سَعْدِ بْنِ إِبْرَاهِيمَ عَنْ أَبِي سَلَمَةَ عَنْ عَائِشَةَ رضى الله عنها - أَنَّهَا قَالَتْ سُئِلَ النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - أَيُّ الأَعْمَالِ أَحَبُّ إِلَى اللَّهِ قَالَ «أَدْوَمُهَا وَإِنْ قَلَّ». وَقَالَ «اكْلَفُوا مِنَ الأَعْمَالِ مَا تُطِيقُونَ».

د عائشې رضي الله عنها نه روايت دې چه د رسول الله ﷺ نه تپوس اوكړې شو. كوم عمل د الله پاک په نزد زيات خوښ دې. وې فرمائيل چه په هغې باندې هميش والې اختياركړې شى. اگرچه هغه كم وى او وې فرمائيل، هغه كارونه په خپل سر واخلئ د كومو چه په تاسو كښې طاقت وى.

**قوله: ﴿ ما تطيقون ﴾:** په دې كښې ما مصدريه هم كيدې شى اى: قدر طاقتكم او ما موصوله هم كيدې شى: اى الذى تطيقونه.

[٦١٠١] حَدَّثَنِي عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ حَدَّثَنَا جَرِيرٌ عَنْ مَنْصُورٍ عَنْ إِبْرَاهِيمَ عَنْ عَلْقَمَةَ قَالَ سَأَلْتُ أُمَّ الْمُؤْمِنِينَ عَائِشَةَ قُلْتُ يَا أُمَّ الْمُؤْمِنِينَ كَيْفَ كَانَ عَمَلُ النَّبِيِّ صلى الله عليه وسلم - هَلْ كَانَ يَخُصُّ شَيْئًا مِنَ الأَيَّامِ قَالَتْ لاَ، كَانَ عَمَلُهُ دِيمَةً، وَأَيُّكُمْ يَسْتَطِيعُ مَا كَانَ النَّبِيُّ صلى الله عليه وسلم - يَسْتَطِيعُ. [ر ١٨٨٦]

د امام علقمه رحمه الله نه روايت دې چه ما د ام المومنين سيده عائشه صديقه رضي الله عنها نه تپوس

---
(١) ارشاد السارى ١٣/٤٦٣

اوكړو. ما تپوس اوكړو : اې ام المومنين! د رسول الله ﷺ عمل څنګه وو؟ آيا هغوى د عمل دپاره څه ورځې خاص كړې وې؟ وې فرمائيل نه ! د رسول الله ﷺ په عمل كښې هميش والى وو او په تاسو كښې څوک دې كوم چه د هغه اعمالو طاقت لرى، كوم چه به رسول الله ﷺ كول.

**قوله: ﴿كان عمله ديمة﴾**: يعنى د رسول الله ﷺ عمل دائمى وو. ديمة په اصل كښې مسلسل وريدونكى باران ته وائى د حديث شريف مقصد دا دې چه د رسول الله ﷺ عمل داسې نه وو چه د څو ورځو پورې يو عمل رسول الله ﷺ كولو او د هغې نه پس ئې هغه مستقلا پريخودلې وى بلكه د هغوى په معمولاتو كښې يو استقامت او هميش والى وو. اګر چه بعض مخصوص وختونه او مخصوص ورځو كښې به هغوى مختلف اعمال پوره كول او هغه د دې منافى نه دى، دلته صرف د رسول الله ﷺ د دوام او په معمولاتو كښې د هغوى استقامت بيانول مقصود دى. (١)

[٦١٠٢] حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الزِّبْرِقَانِ حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ عُقْبَةَ عَنْ أَبِي سَلَمَةَ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ عَنْ عَائِشَةَ عَنِ النَّبِيِّ - صلى الله عليه وسلم - قَالَ «سَدِّدُوا وَقَارِبُوا، وَأَبْشِرُوا، فَإِنَّهُ لاَ يُدْخِلُ أَحَدًا الْجَنَّةَ عَمَلُهُ». قَالُوا وَلاَ أَنْتَ يَا رَسُولَ اللَّهِ قَالَ «وَلاَ أَنَا إِلاَّ أَنْ يَتَغَمَّدَنِي اللَّهُ بِمَغْفِرَةٍ وَرَحْمَةٍ». قَالَ أَظُنُّهُ عَنْ أَبِي النَّضْرِ عَنْ أَبِي سَلَمَةَ عَنْ عَائِشَةَ.
وَقَالَ عَفَّانُ حَدَّثَنَا وُهَيْبٌ عَنْ مُوسَى بْنِ عُقْبَةَ قَالَ سَمِعْتُ أَبَا سَلَمَةَ عَنْ عَائِشَةَ عَنِ النَّبِيِّ - صلى الله عليه وسلم - «سَدِّدُوا وَأَبْشِرُوا». [ر: ٦٠٩٩]
وَقَالَ مُجَاهِدٌ (قَوْلاً سَدِيدًا) النساء: ٩ / وَسَدَادًا صِدْقًا.

د سيده عائشه رضي الله عنها نه روايت دې چه رسول الله ﷺ اوفرمائيل : برابره لار او ميانه روى اختيار كړئ او تاسو ته زيرې دې، ځكه چه څوک به هم د خپل عمل د وجې نه جنت ته نه

---

(١) قال ابن بطال : إن قول عائشة : إن النبى لم يكن يخص شيئًا من الأيام بالعمل : يعارضه قولها : ما رأيت رسول الله أكثر صيامًا منه فى شعبان . قيل : لا تعارض بين شيء من ذلك ، وذلک أنه كان كثير الأسفار فى الجهاد ، فلا يجد سبيلا إلى صيام الثلاثة الأيام من كل شهر ، فيجمعها فى شعبان ، ألا ترى قول عائشة : كان يصوم حتى نقول لا يفطر ، ويفطر حتى نقول لا يصوم فهذا يبين أنه كان لا يخصّ شيئًا من الزمان ؛ بل كان يوقع العبادة على قدر نشاطه ، وفراغه لذلک من جهاده وأسفاره ، فيقل مرةً ويكثر أخرى . هذا قول المهلب . وقد قيل فى معنى كثرة : صيامه فى شعبان وجوه آخر قد ذكرتها فى باب صوم شعبان فى كتاب الصيام.
فإن قيل : فما معنى ذكر حديث أنس فى هذا الباب ؟ قيل : معناه أن يوجب ملازمة العمل وإدمانه ما مثل له من الجنة للرغبة ، ومن النار للرهبة . فكان فى ذلک فائدتان : إحداهما : تنبيه للناس أن يتمثلوا الجنة والنار بين أعينهم إذا وقفوا بين يدى الله ، كما مثلها الله لنبيه ، وشغله بالفكرة فيهما عن سائر الأفكار الحادثة عن تذكير الشيطان بما يسهيه حتى لا يدرى كم صلّى ، والثانية : أن يكون الخوف من النار الممثلة والرغبة فى الجنة نصب عينى المصلى فيكونا باعثين له على الصبر ، والمداومة على العمل المبلغ إلى رحمة الله والنجاة من النار برحمته. (شرح ابن بطال : ١٨٢/١، ١٨٣)

خي. صحابه كرامو رضي الله عنهم عرض اوكړو يا رسول الله ﷺ! او تاسو به هم نه خئ (يعني د خپل عمل د وجې نه)، وې فرمائيل : او زه هم نه شم تلې. مگر دا چه الله پاک د خپل مغفرت او رحمت په سورى كښې پټ كړى.

**محمد بن زبرقان** : محمد بن زبرقان (د زاء په كسرې. باء په سكون او راء په كسرې سره) په بخارى كښې صرف يو روايت دې. په ائمه جرح او تعديل كښې ابو حاتم. ابو زرعه، نسائى. دارقطنى او ابن المدينى د هغوى توثيق كړې دې. ابن حبان په كتاب الثقات كښې هغوى اخستلې دى او وئيلې ئې دى : ﴿ ربما اخطاء ﴾، امام بخارى رحمه الله په تاريخ كبير كښې هغوى ته ﴿ معروف الحديث ﴾ وئيلې دې. [1]

**قوله:** ﴿ قال : اظنه عن ابى النضر عن ابى سلمة عن عائشة ﴾ : د امام بخارى رحمه الله شيخ على بن عبدالله مدينى فرمائى چه زما خيال دې موسى بن عقبة د ابوسلمه نه براه راست نقل نه كوى بلكه د ابوالنضر سالم بن اميه په مينځ كښې واسطه ده، ابو النضر. د ابو سلمه نه نقل كوى. پورته د متن په سند كښې ﴿ موسى بن عقبة عن ابى سلمة ﴾ دې. على بن عبدالله ته شک دې چه موسى دا روايت د ابو سلمه نه براه راست اوريدلې دې. بلكه د ابو النضر په واسطه ئې اوريدلې دې.

خو امام بخارى رحمه الله د عفان بن مسلم تعليق، د هغې نه متصل پس ذكر كولو سره د على مدينى دا وهم دفع كړې دې، ځكه چه د عفان په روايت كښې موسى بن عقبه د سماع تصريح كړې ده، په هغې كښې دى، ﴿ سمعت اباسلمة، عن عائشة ﴾.

امام احمد بن حنبل رحمه الله د عفان تعليق په خپل مسند كښې موصولا نقل كړې دې. [2]

**يو اشكال او د هغې جوابات** : په دې روايت او مخكښې روايت كښې رسول الله ﷺ اوفرمائيل چه د يو سړى نيک عمل هم هغه لره جنت ته نه شى داخلولې. بلكه جنت ته چه څوک هم داخليږى، د الله پاک په فضل او كرم سره به ټول داخليږى. ګويا اعمال صالحه جنت ته د داخليدو سبب نه دى، بلكه چه د الله پاک فضل شامل حال وى نو هله به جنت ته داخليږى، او د قرآن كريم د ايتونو نه. د دخول سبب، عمل صالح معلوميږى

سورة زخرف كښې دى : ﴿ وَتِلْكَ الْجَنَّةُ الَّتِي أُورِثْتُمُوهَا بِمَا كُنْتُمْ تَعْمَلُونَ ﴾

په سورة النحل كښې دى : ﴿ سَلَامٌ عَلَيْكُمُ ادْخُلُوا الْجَنَّةَ بِمَا كُنْتُمْ تَعْمَلُونَ ﴾

① د دې تعارض حل دا راويستلې شوې دې چه جنت ته نفس دخول خو به د الله پاک فضل او كرم باندې كيږى. لكه چه په احاديث نبوى ﷺ كښې دى، خو د جنت مختلف منازل او درجات كښې به د اعمالو په لحاظ سره داخله وى، د درجاتو تقسيم به د اعمال صالحه په

[1] فتح البارى : ۳۶۲/۱۱، ارشاد السارى : ۴۶۵/۱۳، عمدة القارى ۹۹/۲۳

[2] فتح البارى : ۳۶۲/۱۱

اعتبار سره وى، حاصل دا دې چه اعمال صالحه د جنت منازلو ته د داخلې سبب خو دې او آيت كريمه ﴿ ادخلوا الجنة ﴾ كښې مضاف منازل محذوف دې. اى: ادخلوا منازل الجنة [1]
④ بعض حضراتو وئيلي دى چه په دنيا كښې دننه د اعمال صالحه توفيق. د الله پاک په فضل او كرم سره ملاويږى. په دې وجه د دخول جنت سبب اګر چه عمل صالح دې لکه په آيت كريمه كښې دى، خو د عمل صالح سبب د الله پاک فضل او كرم او توفيق دې. كه د الله پاک توفيق شامل حال نه وى نو عمل صالح به نه وي. او كه عمل صالح نه وي نو جنت كښې به داخله هم نه وي. [2]

**قوله: ﴿ وقال مجاهد: سدادا سديدا. صدقا ﴾:** امام مجاهد رحمه الله فرمائى چه د ﴿ سداد او سديد ﴾ معنى د صدق او برابر خبرې كولو ده. د سورة النساء په آيت كريمه كښې ﴿ قولا سديدا ﴾ راغلي دي. طبرانى دا تعليق موصولا نقل كړي دي. [3]

[٦١٠٣] حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ الْمُنْذِرِ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ فُلَيْحٍ قَالَ حَدَّثَنِي أَبِي عَنْ هِلَالِ بْنِ عَلِيٍّ عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ -رضي الله عنه- قَالَ سَمِعْتُهُ يَقُولُ إِنَّ رَسُولَ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- صَلَّى لَنَا يَوْمًا الصَّلَاةَ، ثُمَّ رَقِيَ الْمِنْبَرَ فَأَشَارَ بِيَدِهِ قِبَلَ قِبْلَةِ الْمَسْجِدِ، فَقَالَ «قَدْ أُرِيتُ الآنَ - مُنْذُ صَلَّيْتُ لَكُمُ الصَّلَاةَ - الْجَنَّةَ وَالنَّارَ مُمَثَّلَتَيْنِ فِي قُبُلِ هَذَا الْجِدَارِ، فَلَمْ أَرَ كَالْيَوْمِ فِي الْخَيْرِ وَالشَّرِّ، فَلَمْ أَرَ كَالْيَوْمِ فِي الْخَيْرِ وَالشَّرِّ». [ر: ٤٠٩]

د هلال بن على رحمه الله نه روايت دې چه ما د سيدنا انس رضي الله عنه نه واوريدل چه رسول الله ﷺ مونږ ته يوه ورځ مونځ راكړو، بيا منبر ته اوختل او په خپل لاس باندې ئې د مسجد د قبلې طرف ته آشاره اوفرمائيله او وې فرمائيل چه دې وخت چه ما تاسو ته مونځ دركړو نو ما ته جنت او دوزخ اوښودلې شو، د هغې شكلونه د دې ديوال نه وړاندې جوړ كړې شوې وو، د نن ورځې په شان خير او شرما كله هم نه دي ليدلي.

**د باب سره د حديث مناسبت:** د باب سره د حديث مناسبت بيانولو سره علامه قسطلانى رحمه الله ليكى: ﴿ وفى هذا الحديث تنبيه المصلى على أن يمثل الجنة والنار بين عينيه ليكونا شاغلين له عن الأفكار الحادثة عن تذكر الشيطان ومن مثلهما بين يديه بعثه ذلك على المواظبة على الطاعة والكف عن المعصية، وبهذا تحصل المطابقة بين الحديث والترجمة ﴾ [4]

يعنى: په دې حديث كښې مونځ كونكى ته په دې خبره باندې تنبيه كړې شوې ده چه جنت او دوزخ دې خپلې مخې ته ساتى، چه دا دواړه هغه لره د شيطان د رايادونكې فكرونو نه لرې

[1]) ارشاد السارى: ١٣/، وفتح البارى: ٣٥٧/١١، وعمدة القارى: ٩٧/٢٤
[2]) فتح البارى: ٣٥٧/١١
[3]) فتح البارى: ٣٦٣/١١
[4]) ارشاد السارى: ٤٦٦/١١ هم دغه شان اوګورئ: فتح البارى: ٣٦٣/١١

ساتی. کوم انسان چه جنت او دزوخ د خپلو سترګو مخې ته ساتی دا به د هغه دپاره د الله پاک په طاعت باندې د دوام او د الله پاک د نافرمانئ نه د بچ کیدو باعث جوړیږی. په دې حدیث سره به حدیث او ترجمة الباب کښې مطابقت حاصل شی
یعنی په حدیث کښې اګر چه د مداومت فی العمل او میانه روئ ذکر نشته. په کوم باندې چه امام بخاری رحمه الله ترجمة الباب قائم کړې دې. خو چونکه جهنم او جنت مخې ته سال د مداومت او میانه روئ باعث او ذریعه جوړیدې شی په دې وجه امام بخاری رحمه الله دا حدیث د دې باب د لاندې ذکر فرمائیلې دې.
حدیث الباب. په کتاب الصلاة کښې باب رفع البصر الی الامام د لاندې تیر شوې دې.

## ⑲ باب الرجاء مع الخوف

﴿ رجاء ﴾ امید ته وائی. د امام بخاری رحمه الله مقصد دا دې چه د الله پاک د رحمت او فضل او کرم د امید سره سره. د الله پاک ویره هم ساتل پکار دی. چه صرف امید انسان ساتی نو انسان د بې عملئ او مکر او دهوکې ښکار کیږی. او صرف ویره بغیر د امید نه انسان مایوسئ ته رسوی. (۱)
بعض علماء کرام فرمائی چه خوف او رجاء د یو مومن دپاره د مرغئ د دوه وزرو په شان دی چه دواړه وزرې ئې برابر وی نو الوتل کیدې شی او که په یو کښې څه خرابی یا کوتاهی نو پروازه نه شی کیدې. (۲)
په دې وجه په علماء کرامو او اسلافو کښې دا جمله مشهوره ده﴿ الایمان من الخوف والرجاء ﴾(۳)،
بعض علماء کرامو لیکلې دی چه د ځوانئ او د صحت په زمانه کښې د ویرې غلبه کیدل او په بوډاتوب او ضعف او کمزورئ کښې د رجاء او امید غلبه کیدل ضروری دی (۴)
**د حضرت مدنی رحمه الله رائې**: شیخ الاسلام مولانا حسین احمد مدنی رحمه الله د خوف او رجاء متعلق په یو مکتوب کښې لیکی:
په مسئله مذکوره کښې څه غلطی ده، اګر که ستاسو په یادداشت یا د استاذ په بیان کښې متحقق شوې نه وی. ایمان لره همیشه ﴿ بین الخوف والرجاء ﴾ کیدل پکار دی. ﴿ وادعوه خوفا وطمعا ﴾ نص قرآنی دې. او په دې معنی باندې مختلف آیات صریحه موجود دی، خو د ژوند په حالت کښې غلبه د ویرې کیدل پکار دی او مرګ ته نزدې غلبه د رجاء کیدل پکار دی...
﴿ لقوله علیه السلام فی الحدیث القدسی : انا عند ظن عبدی بی، وقال سبحانه وتعالی : ﴿ أَفَأَمِنَ أَهْلُ الْقُرَىٰ أَن يَأْتِيَهُم بَأْسُنَا بَيَاتًا وَهُمْ نَائِمُونَ ﴾ • ﴿ أَوَأَمِنَ أَهْلُ الْقُرَىٰ أَن يَأْتِيَهُم بَأْسُنَا ضُحًى وَهُمْ يَلْعَبُونَ ﴾ • ﴿ أَفَأَمِنُوا مَكْرَ

(۱) فتح الباری ۳۶۳/۱۱، عمدة القاری ۱۰۱/۲۳، ارشاد الساری ۴۹۷/۱۳
(۲) ارشاد الساری : ۴۶۷/۱۳
(۳) بعض حضراتو دې ته حدیث وئیلې دې خو دا حدیث نه دې.
(۴) فتح الباری ۳۶٤/۱۱

اللهِ فَلَا يَأْمَنُ مَكْرَ اللهِ إِلَّا الْقَوْمُ الْخَاسِرُونَ ﴾ • وقال ﴿ وَلَا تَيْأَسُوا مِنْ رَوْحِ اللهِ ﴾ (۱)
شیخ الاسلام رحمه الله چه د دې خپل خط په شروع کښې د کومو درې آيتونو ذکر کړې دې. په هغې کښې د الله پاک د عذاب نه د ويرې بيان دې او په آخرى آيت کښې د نه مايوس کيدو حکم ورکړې شوې دې. نو معلومه شوه چه ايمان د خوف او رجاء دواړو نوم دې.

وَقَالَ سُفْيَانُ مَا فِي الْقُرْآنِ آيَةٌ أَشَدُّ عَلَيَّ مِنْ ﴿ لَسْتُمْ عَلَى شَيْءٍ حَتَّى تُقِيمُوا التَّوْرَاةَ وَالْإِنْجِيلَ وَمَا أُنْزِلَ إِلَيْكُمْ مِنْ رَبِّكُمْ ﴾. المائده: ۶۸

امام سفيان بن عيينه رحمه الله فرمائى چه په دې آيت ﴿ قُلْ يَا أَهْلَ الْكِتَابِ لَسْتُمْ عَلَى شَيْءٍ ﴾ نه زيات درونړ په ما باندې هيڅ آيت نه دې، ځکه چه په دې آيت کريمه کښې د قرآن کريم د ټولو احکاماتو د مکلف کولو حکم دې، په آيت کريمه کښې اهل کتاب ته خطاب دې يعنى اې اهل کتاب! چه تر څو پورې تاسو په تورات، انجيل او ستاسو د رب د طرف نه په نازل کړې شوې قرآن باندې عمل قائم نه کړئ تاسو به په هيڅ لاره نه يئ.

**د ترجمة الباب سره د ايت کريمه مناسبت** : د ترجمة الباب د آيت کريمه سره مناسبت بيانولو باندې علامه قسطلانى رحمه الله ليکى :

﴿ ووجه المناسبة للترجمة أن الآية تدل على أن من لم يعمل بما تضمنه الكتاب الذى أنزل عليه لم تحصل له النجاة ولا ينفعه رجاؤه من غير عمل ما أمر به ﴾ (۲)

يعنى : د ترجمة الباب سره د دې آيت کريمه مناسبت په دې طريقه دې چه دا آيت کريمه په دې خبره باندې دلالت کوى چه کوم سړى په رسول الله ﷺ باندې د نازليدونکى کتاب په مقتضى باندې عمل اونکړو نو هغه ته به خلاصې نه ملاويږى او نه به د عمل نه بغير صرف اميد او رجاء د هغه په کار راشى.

[۶۱۰۴] حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ حَدَّثَنَا يَعْقُوبُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ عَنْ عَمْرِو بْنِ أَبِي عَمْرٍو عَنْ سَعِيدِ بْنِ أَبِي سَعِيدٍ الْمَقْبُرِيِّ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ - رضى الله عنه - قَالَ سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - يَقُولُ «إِنَّ اللَّهَ خَلَقَ الرَّحْمَةَ يَوْمَ خَلَقَهَا مِائَةَ رَحْمَةٍ، فَأَمْسَكَ عِنْدَهُ تِسْعًا وَتِسْعِينَ رَحْمَةً، وَأَرْسَلَ فِي خَلْقِهِ كُلِّهِمْ رَحْمَةً وَاحِدَةً، فَلَوْ يَعْلَمُ الْكَافِرُ بِكُلِّ الَّذِي عِنْدَ اللَّهِ مِنَ الرَّحْمَةِ لَمْ يَيْأَسْ مِنَ الْجَنَّةِ، وَلَوْ يَعْلَمُ الْمُؤْمِنُ بِكُلِّ الَّذِي عِنْدَ اللَّهِ مِنَ الْعَذَابِ لَمْ يَأْمَنْ مِنَ النَّارِ». [ر: ۵۶۵۴]

سيدنا ابوهريره رضى الله عنه فرمائى چه ما د رسول الله ﷺ نه واوريدل، هغوى اوفرمائيل : چه الله پاک چه رحمت د کومې ورځې نه پيدا کړې دې نو د هغې ئې سل حصې کړې او خپل ځان سره ئې د هغې نه نهه نوى کيخودلې، د هغې نه پس ئې د رحمت صرف يوه حصه راوليږله،

---
(۱) معارف مدنى، ص ۱۹۷.
(۲) ارشاد السارى : ۴۶/۱۳

پس كه كافر ته هغه ټول رحمتونه معلوم شي، كوم چه د الله پاك سره دي نو هغوى به د جنت نه مايوس نه شي او كه مومن ته هغه ټول عذابونه معلوم شي، كوم چه د الله پاك سره دي نو هغه به د دوزخ نه بې ويرې نه شي. (۱)

**د ترجمة الباب سره د حديث مناسبت** : دا حديث په وعد او وعيد دواړو باندې مشتمل دې، رجاء د وعد تقاضه كوى او د خوف تعلق د وعيد سره دې يعنى الله پاك چه د كومو نعمتونو وعده فرمائيلې ده، د هغې اميد كول او كوم عذاب چه ئې ذكر كړې دې د هغې نه ويريدل پكار دى، دغه شان د حديث مناسبت د ترجمة الباب سره واضح كيږى.

پس حافظ ابن حجر رحمه الله ليكى: ﴿ ومطابقة الحديث للترجمة أنه اشتمل على الوعد والوعيد المقتضيين للرجاء والخوف فمن علم أن من صفات الله تعالى الرحمة لمن أراد أن يرحمه والانتقام ممن أراد أن ينتقم منه لا يأمن انتقامه من يرجو رحمته ولا ييأس من رحمته من يخاف انتقامه وذلك باعث على مجانبة السيئة ولو كانت صغيرة وملازمة الطاعة ولو كانت قليلة ﴾ (۲)

## ۲۰: باب الصَّبْرِ عَنْ مَحَارِمِ اللّٰهِ

وقوله عزوجل: (إِنَّمَا يُوَفَّى الصَّابِرُونَ أَجْرَهُمْ بِغَيْرِ حِسَابٍ). وَقَالَ عُمَرُ وَجَدْنَا خَيْرَ عَيْشِنَا بِالصَّبْرِ

د صبر درې معنې مشهور دى.

① يو ﴿صبر على الاطاعة﴾ يعنى د الله پاك په طاعت او بندګئ باندې استقامت اختيارول.

②: دويم ﴿ صبر فى المصيبت ﴾ يعنى د مصيبت په وخت ګله او شكايت نه كول او راضى بالقضاء اوسيدل.

③ دريم ﴿ صبر عن المعصية ﴾ يعنى د ګناهونو نه بچ كيدل. (۳) دلته په ترجمة الباب كښې صبر عن محارم الله نه دا درې معنې مراد دى چه الله پاك كوم څيزونه حرام كړې دى، د هغې نه بچ كيدل او ځان ساتل.

**قوله:** ﴿إِنَّمَا يُوَفَّى الصَّابِرُونَ أَجْرَهُمْ بِغَيْرِ حِسَابٍ﴾: يعنى صبر كونكو ته به د هغوى اجر بغير د حساب نه پوره پوره وركولې شي.

---

(۱) قال الحافظ ابن حجر : والمقصود من الحديث أن المكلف ينبغى له أن يكون بين الخوف والرجاء حتى لا يكون مفرطا فى الرجاء بحيث يصير من المرجئة القائلين لا يضر مع الإيمان شىء ولا فى الخوف بحيث لا يكون من الخوارج والمعتزلة القائلين بتخليد صاحب الكبيرة إذا مات عن غير توبة فى النار بل يكون وسطا بينهما كما قال الله تعالى يرجون رحمته ويخافون عذابه ومن تتبع دين الإسلام وجد قواعده أصولا وفروعا كلها فى جانب الوسط. (فتح البارى : ۱۱/۳۶۶)

(۲) فتح البارى : ۱۱/۳۶۵، ۳۶۶

(۳) ارشاد السارى : ۱۳/۴۷۰

**قوله:** ﴿وَقَالَ عُمَرُ وَجَدْنَا خَيْرَ عَيْشِنَا بِالصَّبْرِ﴾: يعنې مونږ د صبر په سبب بهترين ژوند بيا موندلو. د سيدنا عمر رضي الله عنه دا تعليق امام احمد رحمه الله په كتاب الزهد كښې موصولا ذكر كړې دې. [1]

[۶۱۰۵] حَدَّثَنَا أَبُو الْيَمَانِ أَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ أَخْبَرَنِي عَطَاءُ بْنُ يَزِيدَ أَنَّ أَبَا سَعِيدٍ أَخْبَرَهُ أَنَّ أُنَاسًا مِنَ الأَنْصَارِ سَأَلُوا رَسُولَ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - فَلَمْ يَسْأَلْهُ أَحَدٌ مِنْهُمْ إِلاَّ أَعْطَاهُ حَتَّى نَفِدَ مَا عِنْدَهُ فَقَالَ لَهُمْ حِينَ نَفِدَ كُلُّ شَيْءٍ أَنْفَقَ بِيَدَيْهِ «مَا يَكُنْ عِنْدِي مِنْ خَيْرٍ لاَ أَدَّخِرْهُ عَنْكُمْ، وَإِنَّهُ مَنْ يَسْتَعِفَّ يُعِفَّهُ اللَّهُ، وَمَنْ يَتَصَبَّرْ يُصَبِّرْهُ اللَّهُ، وَمَنْ يَسْتَغْنِ يُغْنِهِ اللَّهُ، وَلَنْ تُعْطَوْا عَطَاءً خَيْرًا وَأَوْسَعَ مِنَ الصَّبْرِ». [ر: ۱۴۰۰]

د سيدنا ابوسعيد خدري رضي الله عنه نه روايت دې چه څو انصاري صحابه كرامو رضي الله عنهم د رسول الله صلى الله عليه وسلم نه څه غوښتنه اوكړه، او چا چه هم غوښتنه اوكړه رسول الله صلى الله عليه وسلم هغوى ته هغه څيز وركړو. تردې چه كوم مال د رسول الله صلى الله عليه وسلم سره وو هغه ختم شو. رسول الله صلى الله عليه وسلم هر څه صحابه كرامو رضي الله عنهم ته په خپل لاس باندې وركولو سره ختم كړل او بيا ئې اوفرمائيل چه كوم به څيز هم ما سره وى زه تاسو د هغې نه بچ نه شم ساتلې. خو څوک چه په تاسو كښې د سوال نه بچ كيږى الله پاک به هم هغه لره محفوظ ساتى او څوک چه صبر كوى الله پاک به هم هغه ته صبر وركوى او څوک چه ځان بې نيازه كړى الله پاک به هم هغه بې نيازه كړى، تاسو ته د صبر نه زيات او د هغې نه وسيع خير نه دې دركړې شوې.

دا حديث په كتاب الزكاة كښې تير شوې دې.

[۶۱۰۶] حَدَّثَنَا خَلاَّدُ بْنُ يَحْيَى حَدَّثَنَا مِسْعَرٌ حَدَّثَنَا زِيَادُ بْنُ عِلاَقَةَ قَالَ سَمِعْتُ الْمُغِيرَةَ بْنَ شُعْبَةَ يَقُولُ كَانَ النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - يُصَلِّي حَتَّى تَرِمَ - أَوْ تَنْتَفِخَ - قَدَمَاهُ فَيُقَالُ لَهُ، فَيَقُولُ «أَفَلاَ أَكُونُ عَبْدًا شَكُورًا». [ر: ۱۰۷۸]

د سيدنا مغيره بن شعبة رضي الله عنه نه روايت دې چه رسول الله صلى الله عليه وسلم به دومره مونځ لوستلو چه خپو كښې به ئې پړسوب راغلو او يا ئې اووې چه خپې مباركې به ئې اوپړسيدلې، رسول الله صلى الله عليه وسلم ته به عرض اوكړې شو (چه ستاسو خطاګانې خو معاف دى؟) نو رسول الله صلى الله عليه وسلم به اوفرمائيل: آيا زه د الله پاک شكر ګزار بنده جوړ نه شم؟

**قوله:** ﴿حتى ترم او تنتفخ قدماه﴾: ترم: وَرِمَ يَرِمُ (على وزن وِرِث يرِث) معنى ده: پړسيدل، پړسوب راتلل، د راوى شک دې چه ﴿ترم قدماه﴾ ئې وئيلې دې او كه ﴿تنتفخ قدماه﴾ ئې وئيلې دې.

**د ترجمة الباب د حديث سره مطابقت:** د باب د حديث سره مطابقت بيانولو باندې علامه قسطلانى رحمه الله ليكى:

---

[1]) ارشاد السارى: ۱۳/ ۴۶۹

﴿ ومطابقة الحديث للترجمة من حيث إنه -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- صبر على الطاعة حتى تورمت قدماه ﴾ [1].

یعنی: د حدیث د ترجمة الباب سره مناسبت دا سې دې چه رسول الله ﷺ د الله پاک په طاعت باندې د دومره صبر او استقامت مظاهر اوکړه چه د هغوی خپې مبارکې اوپړسیدلې

**د صبر په باره کښې د بزرګانو څو اقوال** سیدنا علی رضی الله عنه فرمائی: د الله پاک د عظمت او معرفت تقاضه دا ده چه انسان د خپل څه تکلیف یا مصیبت ذکر د الله پاک نه سوا چاته هم اونکړی [2]

د یو مشهور بزرګ احنف نظر ختم شو هغوی تر څلویښتو کالو پورې چاته دهغې ذکر اونکړو. [3]

شقیق بلخی فرمائی چه د غیر الله مخکښې د خپل څه مصیبت شکایت کونکې د الله پاک په عبادت او حلوت کښې کله هم خوند نه مومی. [4] په قرآن کریم کښې د صبر لفظ په کثرت سره استعمال شوې دې.

لاندې مونږ د صبر متعلق تفصیل نقل کوو چه په هغې په قرآن کریم کښې چه هر ځائې کښې د صبر مختلف مفاهیم استعمال شوې دی. د هغې وضاحت کړې شوې دې

**د قران کریم په ایتونو کښې راغلې د صبر معانی:** ﴿ فَاصْبِرْ كَمَا صَبَرَ أُولُوا الْعَزْمِ مِنَ الرُّسُلِ ﴾ [5].

د صبر په حقیقت باندې د عوامو غلط فهمئ خو پردې اچولې دی چه هغه د هغوی په نزد د بې وسئ او بې اسرې کیدو تصویر دې. او د هغې معنی د خپل دشمن نه د انتقام نه اخستلو ده. خو آیا په حقیقت کښې هم دغه شان ده؟

د صبر لغوی معنی د بندولو. او اسرې ده. یعنی خپل نفس لره د اضطراب او ویرې نه منع کول. او هغه لره په خپل ځائې باندې ثابت قدم ساتل او هم دا د صبر لغوی حقیقت هم دې. یعنی د دې معنی د بې اختیارئ خاموشی او د انتقام نه اخستلو مجبوری نه ده. بلکه بهادری، د زړه مضبوطوالې، اخلاقی جراءت او ثبات قدر دې.

د سیدنا موسی او سیدنا خضر علیهما السلام په قصه کښې په یو آیت کښې درې ځایه دا لفظ راغلې دې. او هر ځائې کښې هم دا معنی مراد ده. سیدنا خضر علیه السلام فرمائی

﴿ إِنَّكَ لَنْ تَسْتَطِيعَ مَعِيَ صَبْرًا ● وَكَيْفَ تَصْبِرُ عَلَىٰ مَا لَمْ تُحِطْ بِهِ خُبْرًا ﴾ [6].

یعنی: ته به ما سره صبر اونکړې شې. او څنګه به په دې خبره باندې صبر اوکړې، چه د هغې تاته علم نه وی.

---

[1]) ارشاد الساری: ۴۷۰/۱۳
[2]) ارشاد الساری: ۴۷۱/۱۳
[3]) ارشاد الساری: ۴۷۱/۱۳
[4]) ارشاد الساری: ۴۷۱/۱۳
[5]) سورة احقاف: ۴
[6]) سورة الكهف: ۶۷، ۶۸

سیدنا موسی علیه السلام په جواب کښې فرمائي: ﴿قَالَ سَتَجِدُنِيٓ إِن شَآءَ ٱللَّهُ صَابِرًا﴾ [1] یعنی که الله پاک اوغوښتله نو تاسو به ما صبر کونکی بیا مومئ.

په دې صبر سره مقصود د لا علمئ په حالت کښې د غیر معمولي واقعاتو د وجې نه په زړه کښې اضطراب او د بې صبرئ نه پیدا کیدل. کفارو د خپلو پیغمبرانو د پوهه کولو باوجود ښه په سختئ او پابندئ سره په خپله بت پرستئ باندې قائم اوسیږي. نو د هغوی حکایت د هغوی په ژبه باندې قرآن کریم داسې بیانوي:

﴿إِن كَادَ لَيُضِلُّنَا عَنْ ءَالِهَتِنَا لَوْلَآ أَن صَبَرْنَا عَلَيْهَا﴾ [2]

یعنی: دې سړی (د پیغمبرئ مدعی) خو مونږ د خپلو خدایانو (بتانو) نه لرې کول غوښتلو. که مونږ په دې باندې صابر (ثابت) نه وو پاتې شوې.

﴿وَلَوْ أَنَّهُمْ صَبَرُوا۟ حَتَّىٰ تَخْرُجَ إِلَيْهِمْ لَكَانَ خَيْرًا لَّهُمْ﴾ [3]

یعنی: که هغوی لږ شان صبر کړې وې (یعنی ایسار شوې وې) تردې چه ته (اې رسول ﷺ) هغوي ته ور اوتلې وې نو د هغوی دپاره به غوره وه.

په قرآن کریم کښې د صبر لفظ په یوه معنی کښې استعمال شوې دې اګر چه د حالاتو په تغیر سره د هغې په مفهوم کښې بعض بعض ځایونو کښې لږ لږ فرق پیدا شوې دې. هم په دې وجه د دې ټولو مرجع یو دې. یعنی ثابت قدمی او استقامت. د صبر دا مختلف مفهوم په کوم چه قرآن کریم دا لفظ استعمال کړې دې، لاندې لیکلې شي.

**د مناسب وخت انتظار کول**: اول دا دې چه هر قسم تکلیف اوچتولو سره په خپل مقصد باندې کلکیدلو سره د کامیابئ د وخت انتظار کول. رسول الله ﷺ چه کله په شروع کښې مخامخ د توحید دعوت او د اسلام تبلیغ شروع کړو. نو د عربو یوه یوه ذره د هغوی په مخالفت کښې راپاسیده. د هر طرف نه د دشمنئ او عداوت مظاهرې شروع شوې او د هر طرف نه په قدم قدم باندې مخالفین او رکاوټونه پیش کیدل شروع شو. نو په دې وخت کښې د بشریت په اقتضاء سره د هغوی اضطراب پیدا شو او د کامیابئ منزل ورته لرې په نظر راغلو. هغه وخت د تسلئ دا پیغام راغلو چه د اضطراب او ویرې ضرورت نشته. تاسو ښه په کلکه خپل کار کوئ. الله پاک ستاسو مل دې، د الله پاک فیصله به په خپل وخت باندې راځي:

﴿وَٱصْبِرْ لِحُكْمِ رَبِّكَ فَإِنَّكَ بِأَعْيُنِنَا﴾ [4] یعنی اې نبی ﷺ! ته د خپل رب په فیصله باندې ثابت قدم اوسیدو سره منتظر اوسیږه. ځکه چه ته زمونږ په سترګو کښې یې.

---

[1] ) سورة الکهف: ٦٩

[2] ) سورة فرقان: ٤٢

[3] ) سورة الحجرات: ٥

[4] ) سورة الطور: ٤٨

﴿ فَاصْبِرُوا حَتّٰى يَحْكُمَ اللّٰهُ بَيْنَنَا ﴾[1] يعنى: نه ثابت قدم اوسيدو سره منتظر اوسيږه. تردې چه الله پاک زمونږ ترمينځه فيصله اوکړى
﴿ وَاصْبِرْ حَتّٰى يَحْكُمَ اللّٰهُ وَهُوَ خَيْرُ الْحَاكِمِينَ ﴾[2] يعنى: او ثابت قدم اوسيدو سره انتظار كوه. تردې چه الله پاک فيصله اوکړى. هغه دټولو فيصله كونكو نه غوره دې. ﴿ فَاصْبِرْ إِنَّ الْعَاقِبَةَ لِلْمُتَّقِينَ ﴾[3] يعنى ثابت قدم اوسيدو سره دوخت منتظر اوسيږه. بيشكه انجام د متقيانو غوره دې.
د انتظار د دې كشمكش په حالت كښې چه كله د يو طريق حق بې وسى. بې اسرې كيدل خپې خويوى. او بل طرف ته د باطل عارضى شور او هنگامى غلبه زړه كمزورې كوى. په حق باندې قائم اوسيدو سره د هغې د كاميابئ پوره توقع نه شى كيدې ﴿ فَاصْبِرْ إِنَّ وَعْدَ اللّٰهِ حَقٌّ ﴾[4] يعنى: ثابت قدمئ سره منتظر اوسيږه بيشكه د الله پاک وعده رشتينې ده.
چرته داسې اونشى چه د الله پاک د وعدې په ظاهريدلو كښې كه لږ شان ناوخته شى نو د مشكلاتو نه ويريدلو سره د حق ملگرتيا پريږدئ، او د باطل په ډله كښې ملاؤ شئ
﴿ فَاصْبِرْ لِحُكْمِ رَبِّكَ وَلَا تُطِعْ مِنْهُمْ آثِمًا أَوْ كَفُورًا ﴾[5] يعنى: د خپل رب په فيصله باندې په ثابت قدمئ سره منتظر اوسيږه. او په دوى (مخالفينو كښې) د يو گنهگار يا كافر وينا مه منه.
**نه بې قراره كيدل**: د صبر دويم مفهوم دا دې چه په مصيبتونو كښې اضطراب او بې قرارى نه وى. بلكه هغه د الله پاک حكم او مصلحت گڼړلو سره په خوشحالئ باندې اوزغملې شى او دا يقين اوساتلې شى چه كله وخت راشى نو الله پاک به په خپل رحمت سره خپله هغه لرې كړى. الله پاک د داسې خلقو مدح فرمائيلې ده: ﴿ وَالصَّابِرِينَ عَلَىٰ مَا أَصَابَهُمْ ﴾[6] يعنى: او كوم خلق چه په مصيبت كښې صبر كوى.
سيدنا يعقوب عليه السلام د خامنو نه دروغژن خبر اوريدلو سره چه ليوۀ سيدنا يوسف عليه السلام اوخوړلو. فرمائى: ﴿ بَلْ سَوَّلَتْ لَكُمْ أَنْفُسُكُمْ أَمْرًا فَصَبْرٌ جَمِيلٌ وَاللّٰهُ الْمُسْتَعَانُ عَلَىٰ مَا تَصِفُونَ ﴾[7] يعنى: بلكه ستاسو زړونو يوه خبره جوړه كړې ده، نو صبر غوره دې او د الله پاک نه په هغه څيز باندې مدد غوښتلې شى كوم چه تاسو بيانوئ
بيا د خپل دويم ځوى (بنيامين) په مصر كښې د ايساريدلو خبر اوريدلو سره فرمائى:

---

[1]) سورة الاعراف : ۸۷
[2]) سورة يونس : ۱۰۹
[3]) سورة هود : ٤۹
[4]) سورة الروم : ٦۰، سورة مومن : ۵۵
[5]) سورة الانسان : ۲٤
[6]) سورة الحج : ۳۵
[7]) سورة يوسف : ۱۸

﴿ بَلْ سَوَّلَتْ لَكُمْ أَنْفُسُكُمْ أَمْرًا فَصَبْرٌ جَمِيلٌ عَسَى اللهُ أَنْ يَأْتِيَنِي بِهِمْ جَمِيعًا ﴾[1] يعنی : بلکه ستاسو زړونو يوه خبره جوړه کړې ده، پس صبر غوره دی، نزدې ده چه الله پاک ماته هغوی ټول راولی.

سیدنا ایوب عليه‌السلام چه بدنی او مالی مصیبتونه په تسلیم او رضا سره برداشت کړل، د هغې مدح خپله الله پاک فرمائیلې ده ﴿ إِنَّا وَجَدْنَاهُ صَابِرًا نِعْمَ الْعَبْدُ إِنَّهُ أَوَّابٌ ﴾[2] يعنی : مونږ بيشکه ایوب عليه‌السلام لره صبر کونکې بیا موندلو، ډیر ښه بنده وو، هغه د الله پاک طرف ته رجوع کونکې وو

سیدنا اسماعیل عليه‌السلام د خپل شفیق او مهربان پلار د چړې لاندې خپل سټ کیخودلو سره فرمائی. ﴿ يَا أَبَتِ افْعَلْ مَا تُؤْمَرُ سَتَجِدُنِي إِنْ شَاءَ اللهُ مِنَ الصَّابِرِينَ ﴾[3]

يعنی : اې پلاره څه چه تاسو ته وئیلې شی هغه اوکړئ، که الله پاک اوغوښتله نو تاسو به ما د صبر کونکو نه بیا مومئ.

**مشکلات په خاطر کښې نه راوستل** : د صبر دریم مفهوم دا دې چه د منزل مقصود په لاره کښې چه کوم مشکلات او خطرې پیښې شی. دشمنان چه کوم تکلیفونه رسوی او مخالفین چه کوم طعن او طنز کوی. د هغې نه یو څیز هم په خاطر کښې راونوستلې شی او په هغې سره د خفه کیدو او همت بائیللو په ځائې نور هم زیات استقلال او کلک والې پیدا شی. د لوئې لوئې کار کونکو په لارو کښې اکثر د خنډان راوچت کړې شوې دی خو هغوی په استقلال او مضبوطیا سره د هغې مقابله اوکړه او کامیاب شو.

د دې قسم مواقع اکثر انبیاء عليهم‌السلام ته راپیښ شو. پس خپله رسول الله ﷺ ته د دې اعلی مثال تابعداری حکم اوکړې شو. ﴿ فَاصْبِرْ كَمَا صَبَرَ أُولُو الْعَزْمِ مِنَ الرُّسُلِ وَلَا تَسْتَعْجِلْ لَهُمْ ﴾[4] يعنی : (اې محمد ﷺ) ته هم دغه شان صبر کوه څنګه چه اولوالعزم رسولانو کړې وو. او د دې (مخالفینو) دپاره تندی مه کوئ.

د سیدنا لقمان عليه‌السلام په ژبه باندې خوئی ته دا نصیحت واورولې شو چه د حق دعوت او تبلیغ، د امر بالمعروف او نهی المنکر فرض پوره طریقې سره ادا کوه او په دې لاره کښې چه کوم مصیبتونه راپیښ شی د هغې په نره مقابله کوه!

﴿ وَأْمُرْ بِالْمَعْرُوفِ وَانْهَ عَنِ الْمُنْكَرِ وَاصْبِرْ عَلَى مَا أَصَابَكَ إِنَّ ذَلِكَ مِنْ عَزْمِ الْأُمُورِ ﴾[5]

يعنی : د نیکئ حکم کوه او د بدئ نه منع کوه او کوم مصیبت چه درته راپیښ شی هغه برداشت کوه، دا د کلکو ارادو والا کار دې.

---

[1]) سورة یوسف : ۸۳

[2]) سورة ص : ٤٤

[3]) سورة صافات : ۱۰۲

[4]) سورة احقاف : ۳۵

[5]) سورة لقمان : ۱۷

كفار د عذاب الهي زر نه راتلو يا د حق ظاهرى بې وسئ او بې اسرې كيدو په سبب سره رسول الله ﷺ ته په خپلو زړه سوزونكو طعنو سره تكليفونه وركړل. حكم اوشو چه د دې پيغور پرواه مه كوه. او مه په دې باندې زړه خفه كوه. بلكه په خپل كار كښې لګيدلې اوسه او اوګوره چه ستاسو نه مخكښې انبياء ﷺ څه اوكړل ﴿ اصْبِرْ عَلَىٰ مَا يَقُولُونَ وَاذْكُرْ عَبْدَنَا دَاوُودَ ﴾[1] يعنى: د هغوى په وينا باندې صبر كوه او زمونږ بنده داؤد ﷺ ياد كړه.
د دې قوت صبر د حصول طريقه دا ده چه د الله پاک سره تعلق جوړ كړې شى او د هغه په طاقت باندې اعتماد اوكړې شى. ﴿ فَاصْبِرْ عَلَىٰ مَا يَقُولُونَ وَسَبِّحْ بِحَمْدِ رَبِّكَ قَبْلَ طُلُوعِ الشَّمْسِ ﴾[2]
يعنى: ته د هغوى په وينا صبر اوكړه او سحر او ماښام د خپل رب د حمد سره پاكى بيانوه نه صرف دا چه د مخالفينو د دې طعن او طنز دې خيال او نه كړې شى بلكه د دې په جواب كښې دې هغوى سره نرمى اوكړې شى. ﴿ وَاصْبِرْ عَلَىٰ مَا يَقُولُونَ وَاهْجُرْهُمْ هَجْرًا جَمِيلًا ﴾[3] يعنى: د هغوى په وينا صبر كوه، او د هغوى نه په ښكلې طريقه بيل شه.
**معافى كول**: د صبر څلورم مفهوم دا دې چه د بدى كونكو بدى نظر انداز او كومه بد خواهى چه راپيښه شى او تكليفونه وركوى. د هغه قصور معاف كړې شى. يعنى تحمل او برداشت كښې اخلاقى مضبوط والې اوښودلې شى. د قرآن كريم په څو آيتونو كښې صبر په دې مفهوم كښې استعمال شوې دې، د الله پاک ارشاد دې:
﴿ وَإِنْ عَاقَبْتُمْ فَعَاقِبُوا بِمِثْلِ مَا عُوقِبْتُمْ بِهِ وَلَئِنْ صَبَرْتُمْ لَهُوَ خَيْرٌ لِلصَّابِرِينَ - وَاصْبِرْ وَمَا صَبْرُكَ إِلَّا بِاللَّهِ وَلَا تَحْزَنْ عَلَيْهِمْ وَلَا تَكُ فِي ضَيْقٍ مِمَّا يَمْكُرُونَ ﴾[4] يعنى او كه ته سزا وركوې نو هم هغه هومره وركوه څومره چه تا ته تكليف دركړې شوې دې، او كه صبر (برداشت) اوكړې نو دا د صبر كونكو دپاره غوره دې او ته صبر كوه. او ستا صبر كول نه دى مګر د الله پاک په مدد باندې. او د دوى غم مه كوه او نه دې د دوى د سازشونو نه زړه تنګ شى.
دا د صبر هغه قسم دې كوم چه اخلاقى حيثيت سره ډير لويه بهادرى ده. مسلمانو ته د دې بهادرئ تعليم بار بار وركړې شوې دې. او وئيلې شوې دى چه دا صبر او برداشت د كمزورئ يا د دشمن د ويرې يا د بل سبب د وجې نه نه وى بلكه صرف د الله پاک د ويرې وى:
﴿ وَالَّذِينَ صَبَرُوا ابْتِغَاءَ وَجْهِ رَبِّهِمْ وَأَقَامُوا الصَّلَاةَ وَأَنْفَقُوا مِمَّا رَزَقْنَاهُمْ سِرًّا وَعَلَانِيَةً وَيَدْرَءُونَ بِالْحَسَنَةِ السَّيِّئَةَ أُولَٰئِكَ لَهُمْ عُقْبَى الدَّارِ ﴾[5] يعنى: او چا چه د خپل رب د ذات دپاره صبر اوكړو او مونځ ئې قائم

---

[1]) سورة ص: ۱۷
[2]) سورة ق: ۳۹
[3]) سورة مزمل: ۱۰
[4]) سورة نحل: ۱۲۶-۱۲۷
[5]) سورة رعد: ۲۲

کړو. او کومه چه مونږ هغوی ته روزی ورکړه د هغې نه پټ او ښکاره (د الله پاک په لاره) خرچ کوی او بدی په نیکئ سره دفع کوی. د هغوی دپاره د آخرت انجام دې.

فرشتې به هغوی ته مبارکی ورکوی او وائی به ﴿ سَلَامٌ عَلَيْكُم بِمَا صَبَرْتُمْ فَنِعْمَ عُقْبَى الدَّارِ ﴾ [۱]
یعنی: په تاسو باندې دې سلامتی وی ځکه چه تاسو صبر اوکړو ،نو د آخرت انجام څه ښه شو یو خاص خبره په دې آیت کریمه کښې د خیال ساتلو لائق ده، چه د دې په شروع کښې د څو نیکو ذکر دې، صبر، مونځ، خیرات، د بدئ په ځائې نیکی خو فرشتو هغه مومن چه د هغه په خاص وصف باندې هغه ته د سلامتئ دعا اوکړه. هغه صرف صبر یعنی د برداشت صفت دې ځکه چه هم دا اصل دې ځکه چه هم دا صل دې چه په چا کښې دا جوهر وی هغه به د عبادت تکلیف هم اوچتوی. مصیبتونه به هم هیروی او د دشمنانو د بدئ جواب به په نیکئ سره ورکوی. پس په یو بل روایت کښې د دې تشریح هم کړې شوې ده چه د معافئ او بدئ په بدله کښې د نیکئ صفت په هغه کښې وی، چه په هغې کښې به صبر وی.

﴿ وَلَا تَسْتَوِي الْحَسَنَةُ وَلَا السَّيِّئَةُ ادْفَعْ بِالَّتِي هِيَ أَحْسَنُ فَإِذَا الَّذِي بَيْنَكَ وَبَيْنَهُ عَدَاوَةٌ كَأَنَّهُ وَلِيٌّ حَمِيمٌ وَمَا يُلَقَّاهَا إِلَّا الَّذِينَ صَبَرُوا وَمَا يُلَقَّاهَا إِلَّا ذُو حَظٍّ عَظِيمٍ ﴾ [۲]

یعنی: نیکی او بدی برابر نه دی، د بدئ جواب په نیکئ سره ورکوئ. نو ناڅاپه چه د چا او ستا ترمینځه دشمنی ده. هغه به د نزدې ملګری په شان شی او دا خصلت هم هغه چا ته ملاویږی چه صبر کوی، او دا هم هغه چاته ملاویږی چه ډیر د قسمت والا دې.
څوک چه په خلقو باندې ظلم کوی او په ملک کښې ناحقه فساد کوی په هغوی باندې به د الله پاک عذاب وی. په دې وجه د یو صاحب عزم مسلمان دا فرض دی چه نور په هغه باندې ظلم اوکړی نو په بهادرئ سره هغه برداشت کړی او معاف کړی، فرمائی:

﴿ إِنَّمَا السَّبِيلُ عَلَى الَّذِينَ يَظْلِمُونَ النَّاسَ وَيَبْغُونَ فِي الْأَرْضِ بِغَيْرِ الْحَقِّ أُولَٰئِكَ لَهُمْ عَذَابٌ أَلِيمٌ وَلَمَن صَبَرَ وَغَفَرَ إِنَّ ذَٰلِكَ لَمِنْ عَزْمِ الْأُمُورِ ﴾ [۳] یعنی: لاره په هم هغه چا ده چه په خلقو باندې ظلم کوی، او په ملک کښې ناحق فساد کوی. هم دا هغه خلق دی چه د هغه دپاره دردونکې عذاب دې، او یقینا چا چه برداشت اوکړو. او معافی ئې اوکړه. بیشکه دا ډیر د همت کارونه دی.

**ثابت قدمی**: د صبر ینځم اهم مفهوم د جنګ پیښیدو په صورت کښې په میدان جنګ کښې بهادرانه استقامت او ثابت قدمی ده. قرآن پاک دا لفظ په دې مفهوم کښې ډیر کرته استعمال کړې دې او داسې خلق کوم چه په دې وصف سره متصف شوې دی، صادق القول او رشتینی وئیلې دی، چه هغوی چه د الله پاک سره کومه وعده کړې وه، هغه ئې پوره کړه، فرمائی: ﴿ وَالصَّابِرِينَ فِي الْبَأْسَاءِ وَالضَّرَّاءِ وَحِينَ الْبَأْسِ أُولَٰئِكَ الَّذِينَ صَدَقُوا وَأُولَٰئِكَ هُمُ الْمُتَّقُونَ ﴾ [۴]

---

[۱]) سورة رعد : ۲۳
[۲]) سورة حم سجده : ۳۴-۳۵
[۳]) سورة شوری : ٤
[۴]) سورة بقرة : ۲۲

يعني او صبر كونكي (ثابت قدمي ښودونكي)، په مصيبت كښې او نقصان كښې او د جنګ په وخت. هم دا دي چه رشتيا وائي او هم دوى پرهيزګار دي.

كه جنګ راشي نو د دې كاميابئ خلور شرطونه دي. د الله پاک ياد، د وخت د امام اطاعت، خپل مينځ كښې اتحاد او موافقت او په ميدان جنګ كښې بهادرانه صبر او استقامت

﴿يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا إِذَا لَقِيتُمْ فِئَةً فَاثْبُتُوا وَاذْكُرُوا اللَّهَ كَثِيرًا لَعَلَّكُمْ تُفْلِحُونَ - وَأَطِيعُوا اللَّهَ وَرَسُولَهُ وَلَا تَنَازَعُوا فَتَفْشَلُوا وَتَذْهَبَ رِيحُكُمْ وَاصْبِرُوا إِنَّ اللَّهَ مَعَ الصَّابِرِينَ﴾ (۱)

يعني اې ايمان والو! چه كله تاسو د يوې دستې سره مقابل شئ. نو ثابت قدم اوسيږئ. او الله پاک ډير يادوئ. چه كاميابى بيا مومئ. او د الله پاک او د هغه د رسول ﷺ اطاعت كوئ او خپل مينځ كښې جهګړې مه كوئ ګينې تاسو به سست شئ او ستاسو هوا به اوځي. او صبر كوئ. بيشكه الله پاک د صبر كونكو سره دې.

د حق د مدد كونكو د ظاهرا كم تعداد كمې د هغوى د صبر او ثبات په روحاني طاقت سره كيږي. د تاريخ په نظر سره دا مشاهدې اكثر تيرې شوې دى چه څو مستقل مزاج او ثابت قدم بهادرانو لويو فوجونو ته شكست وركړې دې. اسلام دا نكته هم هغه وخت خپلو جانثارانو ته ښودلې وه، چه كله د هغوى تعداد لږ او د دشمنانو زيات وو.

﴿يَا أَيُّهَا النَّبِيُّ حَرِّضِ الْمُؤْمِنِينَ عَلَى الْقِتَالِ إِنْ يَكُنْ مِنْكُمْ عِشْرُونَ صَابِرُونَ يَغْلِبُوا مِائَتَيْنِ وَإِنْ يَكُنْ مِنْكُمْ مِائَةٌ يَغْلِبُوا أَلْفًا مِنَ الَّذِينَ كَفَرُوا بِأَنَّهُمْ قَوْمٌ لَا يَفْقَهُونَ - الْآنَ خَفَّفَ اللَّهُ عَنْكُمْ وَعَلِمَ أَنَّ فِيكُمْ ضَعْفًا فَإِنْ يَكُنْ مِنْكُمْ مِائَةٌ صَابِرَةٌ يَغْلِبُوا مِائَتَيْنِ وَإِنْ يَكُنْ مِنْكُمْ أَلْفٌ يَغْلِبُوا أَلْفَيْنِ بِإِذْنِ اللَّهِ وَاللَّهُ مَعَ الصَّابِرِينَ﴾ (۲)

يعني : اې پيغمبره ! ايمان والا د (دشمنانو) جنګ ته تيار كړه، كه دوى شل صبر كونكى (ثابت قدم) وى نو په دوه سوه كسانو باندې به غالب وى، ځكه هغه خلق پوهيږى نه. اوس الله پاک ستاسو نه تخفيف اوكړو او هغه ته معلومه ده چه په تاسو كښې كمزورى ده. پس كه سل كسان صبر كونكى (ثابت قدم) وى نو په دوه سوه كسانو باندې به غالب وى او كه زر كسان (صبر) كونكى وى نو په دوه زره كسانو باندې به د الله پاک په حكم باندې غالب وى، او الله پاک د صبر كونكو (ثابت قدمو) سره دې.

په ميدان جنګ كښې مسلمانانو ته حكم كړې شوې دې چه هغوى دې د خپل عددى قلت پرواه نه كوى. او په صبر او ثبات سره دې د ځان نه د دوچند كسانو مقابله كوى، او تسلى وركړې شوې ده چه د الله پاک مدد هم د هغه خلقو سره وى كوم چه د صبر او ثبات نه كار اخلى. د سيدنا طالوت او د جالوت په قصه كښې هم دا نكته هم په دې الفاظو سره ادا كړې شوې ده.

---

(۱) سورة انفال : ۴۵، ۴۶

(۲) سورة انفال : ۶۵، ۶۶

﴿ قَالُوا لَا طَاقَةَ لَنَا الْيَوْمَ بِجَالُوتَ وَجُنُودِهِ قَالَ الَّذِينَ يَظُنُّونَ أَنَّهُمْ مُلَاقُو اللَّهِ كَمْ مِنْ فِئَةٍ قَلِيلَةٍ غَلَبَتْ فِئَةً كَثِيرَةً بِإِذْنِ اللَّهِ وَاللَّهُ مَعَ الصَّابِرِينَ وَلَمَّا بَرَزُوا لِجَالُوتَ وَجُنُودِهِ قَالُوا رَبَّنَا أَفْرِغْ عَلَيْنَا صَبْرًا وَثَبِّتْ أَقْدَامَنَا وَانْصُرْنَا عَلَى الْقَوْمِ الْكَافِرِينَ ﴾[1]

يعنى : د طالوت ملګرو اووې چه نن په مونږ کښې د جالوت او د هغه د فوج سره د مقابلې طاقت نشته. هغه خلقو اووې چه هغوى يقين کولو چه هغوى الله پاک سره ملاويدونکى دى. دا ئې اووې چه ډير کرته د لږ تعداد خلق د الله پاک په حکم سره د لوئې تعداد خلقو باندې غالب شوې دى. او الله پاک د صبر او ثبات والو سره دې. او کله چه هغوى د جالوت او د هغه د فوج په مقابله کښې راغلل. نو وې وئيل : اې الله : په مونږ د صبر دروازې پرانيزه او مونږ ته ثابت قدمى راکړه. او د دې کافرانو په مقابله کښې مونږ ته نصرت راکړه الله پاک د کمزورو او قليل التعداد مسلمانانو د کاميابئ هم دا شرط کيخودلې دې. او بيان کړې ئې دى چه الله پاک هم د هغوى دې کوم چه د صبر نه کار اخلى. او په الله پاک باندې اعتماد کولو سره د مشکلاتو کلکه مقابله کوى. پس ارشاد دې :

﴿ ثُمَّ إِنَّ رَبَّكَ لِلَّذِينَ هَاجَرُوا مِنْ بَعْدِ مَا فُتِنُوا ثُمَّ جَاهَدُوا وَصَبَرُوا ﴾[2] يعنى : بيا ستا رب د هغوى دپاره دې چا چه د تکليف موندلو نه پس خپل کور پريخودلو. بيا ئې جنګ کولو او په صبر وثبات سره ولاړ وو.

د دنيا د حکومت او بادشاهئ ملاويدو دپاره هم د دې صبر او استقامت د جوهر پيدا کولو ضرورت دې. د بنى اسرائيلو چه کله د فرعون د هلاکت نه پس د ملک په اطرافو کښې د کفارو سره مقابله راغله. نو سيدنا موسى عليه السلام هغوى ته اولنې سبق دا اوښودلو

﴿ قَالَ مُوسَى لِقَوْمِهِ اسْتَعِينُوا بِاللَّهِ وَاصْبِرُوا إِنَّ الْأَرْضَ لِلَّهِ يُورِثُهَا مَنْ يَشَاءُ مِنْ عِبَادِهِ وَالْعَاقِبَةُ لِلْمُتَّقِينَ ﴾[3]

يعنى : موسى عليه السلام خپلو خلقو ته اووې. چه د الله پاک نه اويريږئ او د هغه نه مدد اوغواړئ او د صبر او استقامت نه کار واخلئ. بيشکه زمکه د الله پاک ده. هغه چه چالره اوغواړى په خپلو بندګانو کښې ئې ددې مالک جوړوى او نيک انجام د پرهيزګارو دپاره دې.

پس بنى اسرائيل د مصر او شام او کنعان په خوا کښې د اوسيدونکو بت پرست قومونو نه په تعداد کښې کم وو. خو چه کله هغوى همت اوښودلو. او د بهادرئ په استقامت او صبر او ثابت قدمئ سره ئې مقابلې اوکړې نو د هغوى ټول مشکلات حل شو. او د کثير التعداد دشمنانو په نرغه کښې د ګيريدلو باوجود تر يوې مودې پورې په خود مختار سلطنت باندې قابض او په نورو قومونو باندې ئې حکومت کولو. الله پاک د بنى اسرائيلو د دې کاميابئ راز په دې يو لفظ کښې ظاهر کړو. وې فرمائيل :

---

[1]) سورة ببقرة : ۲۴۹-۲۵۰

[2]) سورة نحل : ۱۱۰

[3]) سورة اعراف : ۱۲۸

﴿وَأَوْرَثْنَا الْقَوْمَ الَّذِينَ كَانُوا يُسْتَضْعَفُونَ مَشَارِقَ الْأَرْضِ وَمَغَارِبَهَا الَّتِي بَارَكْنَا فِيهَا وَتَمَّتْ كَلِمَتُ رَبِّكَ الْحُسْنَىٰ عَلَىٰ بَنِي إِسْرَائِيلَ بِمَا صَبَرُوا وَدَمَّرْنَا مَا كَانَ يَصْنَعُ فِرْعَوْنُ وَقَوْمُهُ وَمَا كَانُوا يَعْرِشُونَ﴾ (١)

يعني: او هغه خلق کوم چه کمزوري ګڼړلې شو. هغوی ته مو د زمکې وراثت ورکړو په کومې کښې چه مونږ برکت نازل کړې دې. او ستا د رب ښکلې وينا (فيصله) د بنی اسرائيلو په حق کښې د هغوی د صبر او ثبات د وجې نه پوره شوه او مونږ د فرعون او د هغه د قوم (منصوبې) تعميرات او چتونه برباد کړل.

د دې نه ظاهره شوه چه د بنی اسرائيل په شان کمزورې قوم د فرعون په شان طاقت مخې ته څکه کامياب شو چه هغوی د صبر او ثابت قدمئ نه کار واخستلو. او هم د دې د نتيجې په طور الله پاک هغوی ته د شام د برکتی زمکې حکومت ورکړو. پس هم د دې تصريح الله پاک په يو بله موقع باندې داسې اوفرمائيله:

﴿وَجَعَلْنَا مِنْهُمْ أَئِمَّةً يَهْدُونَ بِأَمْرِنَا لَمَّا صَبَرُوا وَكَانُوا بِآيَاتِنَا يُوقِنُونَ﴾ (٢)

يعني: او د بنی اسرائيلو نه مونږ داسې امامان جوړ کړل چه زمونږ په حکم سره به ئې لاره ښودله. چه کله هغوی صبر اوکړو او زمونږ په حکمونو باندې به ئې يقين ساتلو.

پورته آيت د بنی اسرائيلو د مخکښې امامت دوه اسباب بيان کړل يو په احکام الهی باندې يقين او دويم په هغه احکامو باندې عمل کولو کښې صبر او ثابت قدمی. هم دا دواړه خبرې د دنيا د هر قوم د ترقئ سنګ بنياد دې. اول د خپلو اصولو د صحيح کيدو يقين او بيا د هغه اصولو په تعميل کښې هر قسم تکليفونه او مصيبتونه په خوشحالئ باندې زغمل

په غزوه احد کښې مسلمانانو ته فتح نه وه شوې بلکه اويا مسلمانان په خاورو او وينو کښې ليت پيت کيدو سره د الله پاک په لاره کښې سرونه ورکړل. بعض مسلمانان په هغې باندې خفه وو. الله پاک د هغوی د غم د زائل کولو دپاره د مخکښې انبياء عليهم السلام د ژوند قصص اوروی:

﴿وَكَأَيِّن مِّن نَّبِيٍّ قَاتَلَ مَعَهُ رِبِّيُّونَ كَثِيرٌ فَمَا وَهَنُوا لِمَا أَصَابَهُمْ فِي سَبِيلِ اللَّهِ وَمَا ضَعُفُوا وَمَا اسْتَكَانُوا وَاللَّهُ يُحِبُّ الصَّابِرِينَ ـ وَمَا كَانَ قَوْلَهُمْ إِلَّا أَن قَالُوا رَبَّنَا اغْفِرْ لَنَا ذُنُوبَنَا وَإِسْرَافَنَا فِي أَمْرِنَا وَثَبِّتْ أَقْدَامَنَا وَانصُرْنَا عَلَى الْقَوْمِ الْكَافِرِينَ﴾

يعني: او څومره انبياء عليهم السلام دی چه د هغوی په ملګرتيا کښې ډير الله والا جنګيدلې دی. بيا د الله پاک په لاره کښې تکليف اوچتولو سره هغوی نه خو همت اوبائيلو. او نه د هغوی زړونه ستړی شو. او الله پاک ثابت قدم اوسيدونکی (صابرين) خوښوی. او هغوی به هم دا وئيل چه اې زمونږ ربه! زمونږ ګناهونه او په کار کښې زمونږ زيادت معاف کړه. او زمونږ قدمونه کلک اوساته او د کفارو په مقابله کښې زمونږ امداد اوکړه.

---

(١) سورة اعراف: ١٣٧

(٢) سورة سجده: ٢٤

دې آیت کریمه د غلط فهمئ هغه د یو بل دپاسه راغلې پردې څیرې کړې، کوم چه د صبر د اصل حقیقت په مخ باندې پرتې وې، او بیان ئې اوکړو چه صبر د زړه کمزورئ، د بې وسئ خاموشۍ او د بې آسرې کېدو د مجبورئ نه دکه معافی نه ده، بلکه د زړه انتهائی طاقت او د همت سربلندی، د عزم برابریدل او مشکلات او مصائب د الله پاک په اسره باندې په خواه خاطر کنبې د نهٔ راوستلو نوم دې.

د یو صبر کونکی کار دا دې چه د مخالف حادثو په پیښیدو باندې هم هغه زړه او نه بائیلی. بلکه ښه په همت په خپل مقصد باندې کلک ولاړ وی او د الله پاک نه غواړی چه د هغه د تیرې ناکامئ قصور کوم چه د هغه د کمی (گناه) یا زیادت (اسراف) سره شوې وو. معاف کړی او هغه ته نوره هم ثابت قدمی ورنصیب کولو سره د حق په دشمنانو باندې کامیابی ورکړی. هم په دې وجه الله پاک د کامیابئ د حصول دپاره مسلمانانو ته د دوه خبرو تاکید اوفرمائیلو. یو خو د الله پاک طرف ته د زړه لګول او دویم په مشکلاتو باندې صبر او استقامت سره قابو موندل.

د دنیا د فتح موندلو سره سره د آخرت عیش هم چه د هغې نوم جنت دې، هم د هغې په حصه کنبې دې. چاته چه دا صبر، د زړه مضبوطوالې او په حق باندې د ثابت قدمئ دولت ملاؤ شوې دې. د حق په لاره کنبې د مشکلاتو د پیښیدو یو مصلحت دا هم دې چه په دې سره د کره او کوټه تمیز پیدا شی. او دواړه بیل بیل معلومیږی. پس فرمائی:

﴿أَمْ حَسِبْتُمْ أَنْ تَدْخُلُوا الْجَنَّةَ وَلَمَّا يَعْلَمِ اللَّهُ الَّذِينَ جَاهَدُوا مِنْكُمْ وَيَعْلَمَ الصَّابِرِينَ﴾ [1]

یعنې: آیا ستاسو دا خیال دې چه تاسو به جنت ته لاړ شئ او حال دا چه لا تر اوسه پورې الله پاک (په ازمیښت کولو سره) هغه خلق بیل کړې نه دی، کوم چه جنګ کونکی دی او ثابت قدم او سیدونکی (صبر کونکی) دی.

**ضبط نفس**: د اشخاص او قومونو په ژوند کنبې د ټولو نه نازکه موقع هغه راځی چه کله هغوی ته څه لویه کامیابی یا ناکامی ملاؤ شی، په دې وخت کنبې په نفس باندې قابو موندل او ضبط نه کار اخستل ګران وی، خوهم دا ضبط نفس اصلی موقع وی. او هم په دې سره په اشخاصو او قومونو کنبې سنجیدګی، متانت، وقار او د کردار مضبوطیا پیدا کیږی.

په دنیا کنبې غم او مسرت او تکلیف او آرام خو عام دی، په دې دواړو موقعو باندې انسان له د ضبط نفس او په خپل ځان باندې د قابو ضرورت دې، یعنی چه په نفس باندې ئې دومره قابو وی چه د خوشحالئ په موقع کنبې په هغې کنبې فخر او غرور پیدا نه شی. او په غم او تکلیف کنبې هغه غمژن او خفه نه شی، په زړه کنبې دننه د دواړو عیبونو علاج صبرو ثبات او ضبط نفس دې، د انسانې فطرت د خالق وینا ده:

﴿وَلَئِنْ أَذَقْنَا الْإِنْسَانَ مِنَّا رَحْمَةً ثُمَّ نَزَعْنَاهَا مِنْهُ إِنَّهُ لَيَئُوسٌ كَفُورٌ - وَلَئِنْ أَذَقْنَاهُ نَعْمَاءَ بَعْدَ ضَرَّاءَ مَسَّتْهُ لَيَقُولَنَّ ذَهَبَ السَّيِّئَاتُ عَنِّي إِنَّهُ لَفَرِحٌ فَخُورٌ - إِلَّا الَّذِينَ صَبَرُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ أُولَئِكَ لَهُمْ مَغْفِرَةٌ وَأَجْرٌ كَبِيرٌ﴾ [2]

---

[1]) سورة آل عمران: ۱٤

[2]) سورة هود: ۱۰-۱۱

يعنى : او كه مونږ انسان ته د خپل طرف نه څه رحمت ورکړو او بيا ئې ترې لرې کړو نو هغه نااميده او ناشکره شى، او که مونږ انسان ته د خپل طرف نه د څه تکليف نه کوم چه هغه ته رسيدلې وو پس نعمت ورکړو نو وائى چه ټولې پريشانئ زمانه ختمې شوې. بيشکه هغه خوشحاليدونکې او فخر کونکې دې، مګر هغه خلق چه هغوى صبر اوکړو (يعنى په خپل نفس باندې ئې قابو بيا موندلو) او ښه کارونه ئې اوکړل هم دا خلق دى چه د هغوى دپاره معافى او لوئې انعام دې.

**هر قسم تکليف اوچتولو سره فرض هميشه ادا کول** : په هنګامى واقعاتو او وقتى مشکلاتو باندې صبر او ثبات نه په يو معنى کښې زيات هغه صبر دې. څوک چه يو فرض ټول عمر پوره په استقلال او مضبوطوالى سره په ادا کولو کښې ظاهريږى. هم په دې وجه مذهبى فرائض او احکامات بهر حال په نفس باندې سخت تيريږى. ټول عمر په مضبوطيا سره ادا کول هم صبر دې، په هر حال او هر کار کښې د الله پاک د حکم فرمانبردارى او په عبوديت باندې ثبات د نفس انسانى د ټولو نه لوئې امتحان دې، هم په دې وجه حکم اوشو.

﴿ رَبُّ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ وَمَا بَيْنَهُمَا فَاعْبُدْهُ وَاصْطَبِرْ لِعِبَادَتِهٖ ﴾ [1]

يعنى : د اسمانونو او د زمکې او څه چه د دې ترمينځه دى د ټولو، پس د هغه بندګى کوه او د هغه په بندګئ باندې ولاړ اوسه او (صبر کوه).

په يو بل آيت کريمه کښې د مونځ کولو او په خپل اهل و عيال باندې هم د دې د تاکيد کولو په سلسله کښې دې :

﴿ وَاْمُرْ اَهْلَكَ بِالصَّلٰوةِ وَاصْطَبِرْ عَلَيْهَا ﴾ [2] يعنى : د خپل کور خلقو ته د مانځه حکم کوه او خپله هم په دې باندې قائم اوسيږه. يعنى ټول عمر دې دا فريضه په پابندئ سره ادا کړې شى

په دې لاندې آيتونو کښې غالبا صبر هم په دې مفهوم کښې دې هغه خلق چه د الله پاک مخې ته د حاضريدو نه به ويريدل الله پاک هغوى ته زيرې ورکوى :

﴿ فَوَقٰهُمُ اللّٰهُ شَرَّ ذٰلِكَ الْيَوْمِ وَلَقّٰهُمْ نَضْرَةً وَّسُرُوْرًا - وَجَزٰهُمْ بِمَا صَبَرُوْا جَنَّةً وَّحَرِيْرًا ﴾ [3] يعنى : نو الله پاک هغوى لره د هغه ورځې د بدئ نه محفوظ کړل او هغوى ئې د تازګئ او خوشحالئ سره يوځائې کړل او د هغوى په صبر کولو (يعنى په احکام الهى باندې د کلکيدو) په سبب باغ او ريښمې جامه په بدله کښې ورکړه

کوم خلق چه د الله پاک په دربار کښې توبه کوى، ايمان راوړى. نيک کارونه کوى. د دهوکې په کارونو کښې نه شريکيږى، بې ځايه او لغو کارونو باندې چه ورتير شى نو هغوى پرې ورتيريږى نو د بزرګئ په خيال ساتلو سره تيريږى او د الله پاک خبرو اوريدلو سره هغه په اطاعت سره قبولې کړى. او د خپل ځان او د خپل اولاد دپاره د بهترئ او د امامت (فى الدين)

---

[1]) سورة مريم : ۶۵

[2]) سورة طه : ۱۳۲

[3]) سورة دهر : ۱۱-۱۲

دعاګانې غواړي. د هغوی دپاره الله پاک د خپل فضل او کرم دا زيرې اوروی.
﴿أُولَٰئِكَ يُجْزَوْنَ الْغُرْفَةَ بِمَا صَبَرُوا﴾[1] يعنی : هغوی ته به د جنت بالا خانه په بدل کښې ملاويږی د هغوی د صبر کولو د وجې نه.
په دې دوه آيتونو کښې د صبر مفهوم هم دا دې چه نيک کارونه د بار خاطر او د تکليف ورکونکی مشقت باوجود په خوشحالئ سره ټول عمر کوی او د بدو خبرو نه سره د دې چه په هغې کښې ظاهری خوشحالی او آرام دې، ځان بچ کوی. د شپې د نرمو بسترو نه پاسيدو سره د الله پاک مخکښې سجدې کول. سحر د سحر د خوب د خوند نه پاسيدلو سره دوه رکعته کولو. د مختلفو نعمتونو نه محروم کيدلو سره روژې نيول. د تکليف او مشقت باوجود په خطرناکو موقعو باندې هم رشتيا نه پريخودل. د قبول حق په لاره کښې سختې د آرام او راحت په شان زغمل. د سود د دولت نه لاس اوچتول. د حسن او جمال د بې قيده لذت نه نهٔ متمتع کيدل. غرض د شريعت د احکاماتو پوره کول او بيا په هغې باندې ټول عمر برابر پاتې کيدل د صبر ډير سخت منزل دې، او هم په دې وجه د داسې صبر کونکو جزا هم د الله پاک په نزد درنه ده. د دې ايات پاک په دې تشريح کښې هغه حديث راياديږی. چه په هغې کښې رسول الله ﷺ اوفرمائيل :
﴿حُجِبَتِ النَّارُ بِالشَّهَوَاتِ وَحُجِبَتِ الْجَنَّةُ بِالْمَكَارِهِ﴾[2] يعنی : دوزخ په شهواتو پټ کړې شوې دې او جنت (د نفس) په ناخوښه کارونو باندې پټ کړې شوې دې.
يعنی د نيکئ هغه کارونه کول چه د هغې معاوضه جنت دې. هغه په دنيا کښې په نفس باندې سخت تيريږی او د ګناهونو هغه کارونه چه د هغې سزا دوزخ دې وخت کښې په دنيا کښې ډير پر لطف او خوندور معلوميږی. د دې عارضی او هنګامی خوشحالئ يا خفګان د پرواه کولو نه بغير د احکام الهی تابعداری کول ډير د صبر او برداشت کار دې. د چا قارون خزانه د مال او دولت ډير والې او د اسباب عيش ډيريدلو ته کتلو سره که د چا په خوله کښې اوبه رانشی هغه وخت هم د حرام مال د کثرت د لالچ کولو په ځائې. د مال حلال قلت دې صبر کولو سره په خوشحالئ باندې برداشت کړی، نو دا ډير د طاقت کار دې. کوم چه صرف صبر کونکو ته ملاؤ شوې دې.
د سيدنا موسی عليه السلام په زمانه کښې چه کوم قارون وو. د هغه مال او دولت ته کتلو سره ډير ظاهر پرست په لالچ کښې پريوتل، چه په چا کښې د صبرو ثبات او برداشت جوهر وو. د هغوی سترګې هغه وخت غړيدلې وې. او هغوی ته په نظر راتلل چه دا فانی او د تلو راتلو والا څيز د څومره ورځو دې. د الله پاک هغه دولت کوم چه به نيکی کونکو ته په جنت کښې ملاويږی. هغه لا زوال. غير فانی او هميشه دې.

[1] سورة الفرقان : ۷۵
[2] صحيح البخاری، کتاب الرقاق، باب حجبت النار بالشهوات، رقم الحديث : ۶۴۸۷. وصحيح مسلم. کتاب الجنة. وصفة نعيمها واهلها ۴/۲۱۷۴. رقم الحديث : ۲۸۲۲

﴿ قَالَ الَّذِينَ يُرِيدُونَ الْحَيَاةَ الدُّنْيَا يَا لَيْتَ لَنَا مِثْلَ مَا أُوتِيَ قَارُونُ إِنَّهُ لَذُو حَظٍّ عَظِيمٍ - وَقَالَ الَّذِينَ أُوتُوا الْعِلْمَ وَيْلَكُمْ ثَوَابُ اللَّهِ خَيْرٌ لِمَنْ آمَنَ وَعَمِلَ صَالِحًا وَلَا يُلَقَّاهَا إِلَّا الصَّابِرُونَ ﴾ (۱)

يعنى : كوم خلق چه د دنياوى ژوند د ډول غوښتونكى وو، هغوى اووې : اې كاش: چه مونږ سره هم هغه څيز وې كوم چه قارون ته وركړې شوې دې، هغه ډير خوش قسمته دې او چاته چه علم ملاؤ شوې وو هغوى اووې هلاک شئ: د الله پاک جزاء، د هغه چا دپاره چه ايمان راوړى او عمل صالح اوكړى د ټولو نه غوره څيز دې او د هغې حقيقت ته صرف هغه څوک رسيدلې شى چه صبر كونكى دى.

دا اجر او جزاء به د غورو نه غوره وى، څكه چه دا به د هغه خزانې نه ملاويږى، كومه لازوال او باقى ده :

﴿ مَا عِنْدَكُمْ يَنْفَدُ وَمَا عِنْدَ اللَّهِ بَاقٍ وَلَنَجْزِيَنَّ الَّذِينَ صَبَرُوا أَجْرَهُمْ بِأَحْسَنِ مَا كَانُوا يَعْمَلُونَ ﴾ (۲) يعنى : څه چه تاسو سره دى هغه به ختم شى. او څه چه الله پاک سره دى هغه باقى پاتې كيدونكى دى. او يقينا مونږ هغوى ته چا چه صبر اوكړو د هغوى اجر په ښكلې طريقه وركونكى يو.

په يو پل ځائې كښې فرمائى چه مونځ ادا كوئ نيكئ ګناهونو لره ختموى. په دې پيغام كښې د نصيحت قبلونكو دپاره ياد داشت دې. د دې نه پس دى :

﴿ وَاصْبِرْ فَإِنَّ اللَّهَ لَا يُضِيعُ أَجْرَ الْمُحْسِنِينَ ﴾ (۳)

يعنى . او صبر كوه بيشكه الله پاک د نيک عمل كونكو اجر نه ضائع كوى.

**د صبر فضائل او انعامات** : دا اجر به څه وى. دا به د حد او شمير نه بهر وى په هغې كښې د صبر او برداشت هم شمير دې :

﴿ إِنَّ الْمُسْلِمِينَ وَالْمُسْلِمَاتِ وَالْمُؤْمِنِينَ وَالْمُؤْمِنَاتِ وَالْقَانِتِينَ وَالْقَانِتَاتِ وَالصَّادِقِينَ وَالصَّادِقَاتِ وَالصَّابِرِينَ وَالصَّابِرَاتِ وَالْخَاشِعِينَ وَالْخَاشِعَاتِ وَالْمُتَصَدِّقِينَ وَالْمُتَصَدِّقَاتِ وَالصَّائِمِينَ وَالصَّائِمَاتِ وَالْحَافِظِينَ فُرُوجَهُمْ وَالْحَافِظَاتِ وَالذَّاكِرِينَ اللَّهَ كَثِيرًا وَالذَّاكِرَاتِ أَعَدَّ اللَّهُ لَهُمْ مَغْفِرَةً وَأَجْرًا عَظِيمًا ﴾ (۴)

يعنى : بيشكه مسلمانان سړى او مسلمانانې ښځې او ايمان دار سړى او ايمان دارې ښځې، اوبندګى كونكى سړى اوبندګى كونكې زنانه. او رشتينى سړى او رشتينې ښځې. او مشقت برداشت كونكى سړى (صابرين) او مشقت برداشت كونكې زنانه (صابرات) او (د الله پاک مخكښې) عاجزى كونكى سړى او عاجزى كونكې زنانه او خيرات كونكى سړى او خيرات كونكې زنانه او روژه نيونكى سړى او روژه نيونكې ښځې او د خپلو عورتونو حفاظت كونكى سړى او حفاظت كونكې زنانه. او الله پاک لره ډير يادونكى سړى او يادونكى ښځې.

۱) سورة قصص : ۷۹-۸۰
۲) سورة النحل : ۹۶
۳) سورة هود : ۱۱۵
۴) سورة الاحزاب : ۳۵

الله پاک د هغوی دپاره بخښنه او لوئې اجر تیار کړې دې
د دې آیت کریمه نه معلومه شوه چه د صبر مرتبه د لوئې لوئې نیکو برابر ده. په دې سره د انسان مخکښې گناهونو د حرف غط په شان ختمیږی او د دین د لوئې نه لوئې اجر د هغې په معاوضه کښې ملاویږی. هم دا زیرې په یو بل آیت کریمه کښې هم دې :
﴿ الَّذِينَ يَقُولُونَ رَبَّنَا إِنَّنَا آمَنَّا فَاغْفِرْ لَنَا ذُنُوبَنَا وَقِنَا عَذَابَ النَّارِ - الصَّابِرِينَ وَالصَّادِقِينَ وَالْقَانِتِينَ وَالْمُنْفِقِينَ وَالْمُسْتَغْفِرِينَ بِالْأَسْحَارِ ﴾ (۱)
یعنی : (جنت او د الله پاک رضا به هغوی ته حاصلیږی) چه وائی اې زمونږ ربه ! مونږ ایمان راوړې دې. زمونږ گناهونه معاف کړه او مونږ د دوزخ د عذاب نه بچ کړه، او صبر کونکی (یعنی د مشکلاتو تکلیف اوچتونکی دی) او رشتیا ویونکی او په بندګئ کښې لګیدونکی او (د الله پاک لاره کښې مال) خرچ کونکی او د شپې په آخری حصه کښې (د الله پاک نه) بخښنه غوښتونکی
په دې آیت کریمه کښې یو عجیب نکته ده. د دې خوش قسمته جماعت د اوصافو شروع ئې هم په دعا سره او خاتمه هم په دعا ده، او د دې دواړو په مینځ کښې د هغوی څلور اوصاف شمیرلې شوې دی. چه په هغې کښې اوله درجه صبر، یعنی مشقت برداشت کول. تکلیف زغمل او د صبر کولو ده، دویمه د په عمل او قول کښې د صدق ښکاره کولو، دریم مرتبه د الله پاک د عبودیت. څلورمه د الله پاک لاره کښې د خرچ کولو.
**د مشکلاتو د پرانستلو کنجی صبر او دعا ده** : په بعض آیتونو کښې دا ټول اوصاف صرف په دوه الفاظو کښې راجمع کړې شوې دی، دعا او صبر، او فرمائیلې شوې دی چه هم دا دوه څیزونه د مشکلاتو د جادو کنجی ده، یهود چه د رسول الله ﷺ پیغام حق به ئې نه قبلولو. د هغې دوه اسباب وو. یو دا چه د هغوی په زړونو کښې نرمی او تاثر نه وو. او دویم دا چه د پیغام حق قبلولو سره چه هغوی ته کوم جانی او مالی مشکلات راپیښ شو. دا د عیش و عشرت عادت هغوی نه شو برداشت کولې، هم په دې وجه د محمد رسول الله ﷺ طب روحانی د هغوی د بیمارئ دپاره دا نسخه تجویز کړه :
﴿ وَاسْتَعِينُوا بِالصَّبْرِ وَالصَّلَاةِ ﴾ (۲) یعنی : او صبر او دعا سره مدد حاصل کړه.
په دعا سره به د هغوی په زړه کښې اثر او په طبیعت کښې به ئې نرمی پیدا کیږی او د صبر په عادت سره د قبول حق د لارې مشکلاتو نه به لرې وی. د هجرت نه پس چه کله قریشو د مسلمانانو خلاف توري اوچتې کړې او د مسلمانانو د ایمان دپاره د اخلاص په تله کښې د تللو وخت راغلو نو دا آیتونه نازل شو
﴿ يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا اسْتَعِينُوا بِالصَّبْرِ وَالصَّلَاةِ إِنَّ اللَّهَ مَعَ الصَّابِرِينَ - وَلَا تَقُولُوا لِمَنْ يُقْتَلُ فِي سَبِيلِ اللَّهِ أَمْوَاتٌ

(۱) سورة آل عمران : ۱۶-۱۷
(۲) سورة البقرة : ۱۵۳



بَلْ أَحْيَاءٌ وَلَكِنْ لَا تَشْعُرُونَ وَلَنَبْلُوَنَّكُمْ بِشَيْءٍ مِنَ الْخَوْفِ وَالْجُوعِ وَنَقْصٍ مِنَ الْأَمْوَالِ وَالْأَنْفُسِ وَالثَّمَرَاتِ وَبَشِّرِ الصَّابِرِينَ الَّذِينَ إِذَا أَصَابَتْهُمْ مُصِيبَةٌ قَالُوا إِنَّا لِلَّهِ وَإِنَّا إِلَيْهِ رَاجِعُونَ أُولَئِكَ عَلَيْهِمْ صَلَوَاتٌ مِنْ رَبِّهِمْ وَرَحْمَةٌ وَأُولَئِكَ هُمُ الْمُهْتَدُونَ ﴾

یعنی اې ایمان والو! صبر (ثابت قدمی) او دعا سره مدد حاصل کړئ بیشکه الله پاک د صبر کونکو (ثابت قدم اوسیدونکو) سره دې. او څوک چه د الله پاک په لاره کښې وژلې شی هغوی ته مړی مه وایئ. بلکه هغوی ژوندی دی. خو تاسو ته خبر نشته. او مونږ به تاسو د ویرې او لوږې او مال او نفس او پیدوار په څه نه څه نقصان سره ازمیښت کوو. او صبر کونکو (یعنی ثابت قدم اوسیدونکو) ته زیرې ورکړه چه په هغوی باندې کله هم څه مصیبت راشی نو اوائی چه مونږ د الله پاک یو. او مونږ به الله پاک ته واپس کیږو. دا خلق دی. په دوی باندې د هغوی د رب د طرف نه رحمتونه دی او هم دوی هدایت یافته دی.

دې آیتونو بیان اوکړو چه مسلمانانو له څنګه ژوند تیرول پکار دی، چه په نفس او مال باندې څه مصیبت راشی هغه په صبر، ضبط نفس او ثابت قدمئ سره برداشت کړی، او دا اوګڼړی چه مونږ د الله پاک محکوم یو، آخری آواز به هم د هغه د طرف نه وی، په دې وجه د حق په لاره کښې مړه کیدل او د مال او دولت په لګولو کښې هیڅ قسم دریغ نه دی کول پکار. که په دې لاره کښې مرګ هم راشی نو هغه د همیش والی د ژوند زیرې دې.[1]

## ۲۱: باب (وَمَنْ يَتَوَكَّلْ عَلَى اللَّهِ فَهُوَ حَسْبُهُ)

قَالَ الرَّبِيعُ بْنُ خُثَيْمٍ: مِنْ كُلِّ مَا ضَاقَ عَلَى النَّاسِ.

**د توکل او لغوی او اصطلاحی معنی**: د توکل لغوی معنی د اعتماد کولو راځی، د شریعت په اصطلاح کښې د توکل معنی ده: اسباب اختیارولو سره د نتیجې په سلسله کښې په الله پاک باندې اعتماد کول. حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی:

﴿ وأصل التوکل الوکول یقال وکلت أمری إلی فلان أی الجأته إلیه واعتمدت فیه علیه ووکل فلان فلانا استکفاه امره ثقة بکفایته والمراد بالتوکل اعتقاد ما دلت علیه هذه الآیة وما من دابة فی الأرض الا علی الله رزقها ﴾[2]

یعنی: ﴿ توکل ﴾، وکول نه دې. پس وئیلې شی: ﴿ وکلت امری الی فلان ﴾ یعنی ما خپله معامله فلانی سړی ته اوسپارله او په دې معامله کښې ما په هغه باندې اعتماد اوکړو، د توکل نه مراد د دې آیت کریمه مدلول اعتقاد ساتل دی. ﴿ وَمَا مِنْ دَابَّةٍ فِي الْأَرْضِ إِلَّا عَلَى اللَّهِ رِزْقُهَا ﴾

یاد ساتئ چه توکل د اسبابو د ترک کولو او جدوجهد او د کوشش پریخودلو نوم نه دې.

مولانا سید سلیمان ندوی رحمه الله لیکی: د توکل لفظی معنی اعتماد کول دی او په اصطلاح کښې په الله پاک باندې اعتماد کولو ته وائی خو په یو خبره کښې اعتماد کول. د چا په کار

[1] سیرت النبی: ۲۴۶/۵
[2] فتح الباری: ۲۷۰/۱۱

کولو یا نه کولو کېږي؟ دروغژن صوفیانو ترک عمل، د اسباب او تدابیر نه بې پروائی او خپله نه کار نه کولو د نورو په اسره باندې ژوند تیرولو نوم توکل کیخودلې دې. حال دا چه توکل خونوم دې یو کار پوره کول اراده او عزم په تدبیر او کوشش سره ادا کول او دې یقین ساتلو چهکه په دې کار کښې خیر.دې نو الله پاک به مو ضرورت په دې کامیاب کړي

که تدبیر او جدوجهد او کوشش لره ترک کول توکل وې، نو په دنیا کښې به د خلقو د پوهه کولو دپاره الله پاک پیغمبران نه رالیږل او نه به ئې هغوی ته د خپل تبلیغ. رسالت دپاره د کوشش او جدوجهد تاکید فرمائیلو او نه به په دې لاره کښې د نفس او مال د قربانۍ حکم ورکولو. نه به بدر او احد او خندق او حنین کښې د سورو. غشو ویشتونکو. او زغرې اغوستونکی او نیزې ویشتونکو ته ضرورت راتلو او نه به رسول ﷺ یوې یوې قبیلې ته د حق د دعوت پیش کولو حاجت راتلو.

توکل د مسلمانانو د کامیابۍ اهم راز دې. چه حکم اوشی چه کله هم جنګ یا ګران کار راپیښ شی. نو د ټولو نه مخکښې د هغې متعلق د خلقو نه مشوره واخلئ. د مشورې نه پس چه مو رائې په یو نقطه باندې اودریږی نو د هغې د پوره کولو عزم اوکړئ او د دې عزم نه پس کار ښه په بیدارۍ او طریقې سره شروع کړئ، او په الله پاک باندې توکل او اعتماد ساتئ چه هغه به ستاسو په کار کښې د خواهش مطابق نتیجة پیدا کړي، که داسې نتیجه رانشی نو هغه د الله پاک حکمت مصلحت او خوښه اوګڼئ. او په هغې کښې مایوس او خفه کیږئ مه. او چه کله نتیجه ښکلې راوځی نو دا غرور دې نه وی چه دا ستاسو د تدبیر او جدوجهد نتیجه او اثر دې، بلکه دا اوګڼئ چه د الله پاک په تاسو باندې فضل او کرم دې او هم هغه تاسو کامیاب او بامراد کړئ. په آل عمران کښې دی:

﴿وَشَاوِرْهُمْ فِي الْأَمْرِ فَإِذَا عَزَمْتَ فَتَوَكَّلْ عَلَى اللَّهِ إِنَّ اللَّهَ يُحِبُّ الْمُتَوَكِّلِينَ - إِنْ يَنْصُرْكُمُ اللَّهُ فَلَا غَالِبَ لَكُمْ وَإِنْ يَخْذُلْكُمْ فَمَنْ ذَا الَّذِي يَنْصُرُكُمْ مِنْ بَعْدِهِ وَعَلَى اللَّهِ فَلْيَتَوَكَّلِ الْمُؤْمِنُونَ﴾

او کار (یا جنګ)، کښې د هغوی نه مشوره اخله. بیا چه کله کلکه اراده اوکړې نو په الله پاک باندې اعتماد ساته. بیشکه الله پاک (الله باندې)، اعتماد کونکی خوښوی. که الله پاک ستاسو مددګار وی نو په تاسو به څوک هم غالب نه شی، او که تاسو پریږدی نو بیا څوک دې چه د هغه نه روستو ستاسو امداد اوکړی، او خاص په الله پاک باندې ایمان والو له اعتماد کول پکار دی.

دې آیتونو د توکل پوره اهمیت او حقیقت ظاهر کړو. چه توکل د دوه لاسه او دوه خپې کیناستلو او ترک عمل نوم نه دې. بلکه د دې نوم دې چه پوره په عزم او ارادې او مستعد کیدو سره کار لره انجام ته رسولو سره اثر او نتیجه په الله پاک باندې پریخودلې شی. او دا اوګنړلې شی چه الله پاک مدد ګار دې نو څوک هم مونږ نه شی ناکام کولې. او که هم هغه نه غواړی نو د چا کوشش او مدد په کار نه شی راتلې. په دې وجه د هر مومن فرض دې چه هغه په خپل کار کښې په الله پاک باندې اعتماد اوکړی. [1]

[1] سیرة النبی صلی الله علیه وسلم ۲۲۷/۵، ۲۲۸

قوله: ﴿قَالَ الرَّبِيعُ بْنُ خُثَيْمٍ مِنْ كُلِّ مَا ضَاقَ عَلَى النَّاسِ﴾: ربیع بن خثیم جلیل القدر تابعی او مشهور بزرګ دې، د سیدنا عبدالله بن مسعود رضی الله عنه په صحبت کښې پاتې شوي دي او ابن مسعود رضی الله عنه به هغوی ته فرمائیل: ﴿لوراك رسول الله ﷺ لاحبك﴾ یعنی که رسول الله ﷺ ته لیدلې وې نو تا سره به ئې محبت کولې (۱)

دوی فرمائی چه د قرآن کریم آیت ﴿وَمَن يَتَّقِ اللَّهَ يَجْعَل لَّهُ مَخْرَجًا﴾ او څوک چه د الله پاک نه اویریږی. الله پاک به د هغه دپاره د وتلو لاره جوړه کړی، کښې د مخرج نه مراد د وتلو لاره ده. یعنی دخلقو د تنګوالی نه به دهغه دپاره لاره پیداشی او د هرتنګ والی نه به هغه اوځی.

علامه عینی رحمه الله د ربیع بن خثیم دا تعلیق ﴿ومن يتق الله﴾ سره نه دې متعلق کړې. بلکه د ﴿وَمَن يَتَوَكَّلْ عَلَى اللَّهِ فَهُوَ حَسْبُهُ﴾ متعلق منلې دې. هغوی لیکی:

﴿من كل ما ضاق أراد من يتوكل على الله فهوحسبه من كل ما ضاق على الناس وقال الكرماني من كل ما ضاق يعني التوكل على الله عام من كل أمر مضيق على الناس يعني لا خصوصية في التوكل في أمر بل هو جار في جميع الأمور التي تضيق على الناس﴾ (۲)

یعنی: ﴿من كل ما ضاق﴾ نه د هغوی مراد دا دي چه کوم سړې په الله پاک باندې کامل اعتماد اوکړی. نو الله پاک به د هغه د هرې تنګئ نه د هغه دپاره کافی شی. علامه کرمانی فرمائی چه د ﴿من كل ما ضاق﴾ نه مراد دا دې چه په الله پاک باندې توکل په څه خاص امر کښې مقصود نه دې. بلکه په ټولو امورو کښې په الله پاک باندې توکل کیدې شی. کوم چه په خلقو باندې د تنګسیا باعث جوړیږی.

[۶۱۰۷] حَدَّثَنِي إِسْحَاقُ حَدَّثَنَا رَوْحُ بْنُ عُبَادَةَ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ قَالَ سَمِعْتُ حُصَيْنَ بْنَ عَبْدِ الرَّحْمَنِ قَالَ كُنْتُ قَاعِدًا عِنْدَ سَعِيدِ بْنِ جُبَيْرٍ فَقَالَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - قَالَ «يَدْخُلُ الْجَنَّةَ مِنْ أُمَّتِي سَبْعُونَ أَلْفًا بِغَيْرِ حِسَابٍ، هُمُ الَّذِينَ لَا يَسْتَرْقُونَ، وَلَا يَتَطَيَّرُونَ، وَعَلَى رَبِّهِمْ يَتَوَكَّلُونَ». [ر ۳۲۲۹]

د سیدنا ابن عباس رضی الله عنهما نه روایت دې چه رسول الله ﷺ اوفرمائیل: زما د امت اویا زره کسان به بې حساب جنت ته ځی، دا هغه خلق دی چه دم نه طلب کوی. بدفالی نه کوی او په خپل رب باندې توکل کوی

د حدیث مناسبت د ترجمة الباب سره واضح دې.

(۱) فتح الباری: ۳۷۰/۱۱، وعمدة القاری ۱۰۵/۲۳
(۲) عمدة القاری: ۱۰۵/۲۳

## ۲۲: باب ما يُكرَهُ مِنْ قِيلَ وَقَالَ

په قيل او قال كښې دوه احتمالات دى
① دا دواړه افعال دى، قيل ماضى مجهول او قال ماضى معروف ده، د دواړو آخرى حرف چه لام دې د مبنى بر فتحه كيدو د وجې نه به مفتوح لوستلې شى. مقصد دا دې چه په كثرت سره د خلقو خبرې رانقل كول. ﴿قال كذا وكذا، قيل كذا وكذا﴾ فلانى دا خبره اوكړه. هغه خبره ئې اوكړه. دا أووئيلې شو. هغه اووئيلې شو، دا يو مكروه او ناخوښه شغل دې ډيرې داسې خبرې غلطې نقل شى. څو خبرې بذات خود غلطې وى
② دويم احتمال دا دې چه دا دواړه اسماء دى. قيل او قال دواړه په طور د مصدر استعماليږى. ﴿قال يقول قولا وقيلا وقالا﴾... په دې صورت كښې به ﴿من قيل وقال﴾ معرب او مجرور وى او په آخرى حرف لام باندې به تنوين لوستلې شى او مقصد ئې په دې صورت كښې هم واضح دې چه زياتې خبرې كول او بې فائدې بحثونه كول غوره نه دى (١)

[٦١٠٨] حَدَّثَنَا عَلِي بْنُ مُسْلِمٍ حَدَّثَنَا هُشَيْمٌ أَخْبَرَنَا غَيْرُ وَاحِدٍ مِنْهُمْ مُغِيرَةُ وَفُلَانٌ وَرَجُلٌ ثَالِثٌ أَيْضًا عَنِ الشَّعْبِي عَنْ وَرَّادٍ كَاتِبِ الْمُغِيرَةِ بْنِ شُعْبَةَ أَنَّ مُعَاوِيَةَ كَتَبَ إِلَى الْمُغِيرَةِ أَنِ اكْتُبْ إِلَى بِحَدِيثٍ سَمِعْتَهُ مِنْ رَسُولِ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - قَالَ فَكَتَبَ إِلَيْهِ الْمُغِيرَةُ أَنِّي سَمِعْتُهُ يَقُولُ عِنْدَ انْصِرَافِهِ مِنَ الصَّلَاةِ «لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ، وَحْدَهُ لَا شَرِيكَ لَهُ، لَهُ الْمُلْكُ، وَلَهُ الْحَمْدُ، وَهُوَ عَلَى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ» . ثَلَاثَ مَرَّاتٍ قَالَ وَكَانَ يَنْهَى عَنْ قِيلَ وَقَالَ وَكَثْرَةِ السُّؤَالِ، وَإِضَاعَةِ الْمَالِ، وَمَنْعٍ وَهَاتِ، وَعُقُوقِ الْأُمَّهَاتِ، وَوَأْدِ الْبَنَاتِ.
وَعَنْ هُشَيْمٍ أَخْبَرَنَا عَبْدُ الْمَلِكِ بْنُ عُمَيْرٍ قَالَ سَمِعْتُ وَرَّادًا يُحَدِّثُ هَذَا الْحَدِيثَ عَنِ الْمُغِيرَةِ عَنِ النَّبِي - صلى الله عليه وسلم -. [ر: ٨٠٨]

سيدنا معاويه رضي الله عنه سيدنا مغيره بن شعبه رضي الله عنه ته خط اوليكلو چه ماته يو داسې حديث راوليږئ كوم چه تاسو خپله د رسول الله ﷺ نه اوريدلې وى. سيدنا مغيره رضي الله عنه هغوى ته اوليكل چه ما د رسول الله ﷺ نه اوريدلې دى. رسول الله ﷺ به چه د مانځه نه فارغ شو نو دا به ئې لوستل: ﴿لا اله الا الله﴾... د الله پاک نه سوا هيڅوك معبود نشته. يواځې دې. د هغه څوک هم شريک نشته. بادشاهى هم د هغه ده او ټول تعريفونه هم د هغه دپاره دى او هغه په هر څيز باندې قادر دې. رسول الله ﷺ دا كلمات درې كرته اولوستل.
سيدنا مغيره رضي الله عنه فرمائى چه رسول الله ﷺ به قيل وقال (حجت بازى. او زيات سوالونه كول، د مال ضائع كولو، د خپل څيز محفوظ ساتلو او د بل چانه څيز په سوال غوښتلو. د ميندو نافرمانى كولو او د جينكو ژوندو ښخولو نه منع كوله.

(١) فتح البارى: ٣٧١/١١، عمدة القارى: ١٠٦/٢٣، ارشاد السارى ٤٧٣/١٣

**قوله:** أَخْبَرَنَا غَيْرُ وَاحِدٍ مِنْهُمْ مُغِيرَةُ وَفُلَانٌ وَرَجُلٌ ثَالِثٌ أَيْضًا: هشيم فرمائى چه ماته د يو نه زياتو شيوخو حديث اورولې دې، په هغې كښې يو مغير بن مقسم او يو فلانې. د فلانى نه مجالد بن سعيد مراد دې، لكه چه په صحيح ابن خزيمة كښې دى. (۱)
او يو دريم سړى هم ..... د رجل ثالث نه مراد داؤد بن ابى هند دې، لكه چه په صحيح ابن حبان كښې دى، يا زكريا بن ابى زائدة يا اسماعيل بن ابى خالد مراد دې لكه چه د طبرانى په روايت كښې دى (۲)

﴿وَعَنْ هُشَيْمٍ، أَخْبَرَنَا عَبْدُ الْمَلِكِ﴾ ..... دا د ماقبل سند سره متصل دې.

## ۲۳: باب حِفْظِ اللِّسَانِ

وقول النبى صلى الله عليه وسلم «وَمَنْ كَانَ يُؤْمِنُ بِاللَّهِ وَالْيَوْمِ الآخِرِ فَلْيَقُلْ خَيْرًا، أَوْ لِيَصْمُتْ». وَقَوْلِهِ تَعَالَى (مَا يَلْفِظُ مِنْ قَوْلٍ إِلَّا لَدَيْهِ رَقِيبٌ عَتِيدٌ/ ق: ۱۸/

امام بخارى رحمه الله په دې باب كښې د ژبې د حفاظت اهميت بيان فرمائيلې دې. امام بيهقى رحمه الله په شعب الايمان كښې د سيدنا ابوجحيفه رضى الله عنه يو مرفوع حديث نقل فرمائيلې دې. د هغې الفاظ دا دى:

﴿قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "أَيُّ الْأَعْمَالِ أَحَبُّ إِلَى اللهِ؟" قَالَ: فَسَكَتُوا، فَلَمْ يُجِبْهُ أَحَدٌ، قَالَ: "هُوَ حِفْظُ اللِّسَانِ"﴾ يعنى د ژبې حفاظت كول د الله پاک په نزد محبوب عمل دې. (۳)

**قوله:** ﴿مَا يَلْفِظُ مِنْ قَوْلٍ إِلَّا لَدَيْهِ رَقِيبٌ عَتِيدٌ﴾: انسان چه هره خبره كوى. يو نګهبان تيار فرشته هغه سره موجود وى، هغه هغې لره ضبط كوى. د رقيب معنى نګهبان او حافظ دہ، او د عتيد معنى تيار او حاضر دہ.
امام حسن بصرى او د قتادة په نزد دافرشته دانسان دخولې نه وتلې هره كلمه ضبط كوى. (۴)
او د سيدنا ابن عباس رضى الله عنهما نه يو روايت دې چه صرف هغه كلمات ضبط او محفوظ كولې شى كوم چه باعث ثواب يا باعث عتاب وى.
په يو بل روايت كښې د دې تفصيل دې چه ضبط او محفوظ خو ټول كلمات كولې شى، د ژبې نه وتونكې هره كلمه ليكلې شى. خو د خير او شر متعلق كلمات باقى ساتلې شې او باقى ختمولې شى. د سورة رعد آيت كريمه ﴿يَمْحُو اللهُ مَا يَشَاءُ وَيُثْبِتُ وَعِنْدَهُ أُمُّ الْكِتَابِ﴾ كښې هم دې طرف ته اشاره دہ. (۵)

---

۱) فتح البارى: ۳۷۳/۱۱، ارشاد السارى ۴۷۲/۱۳
۲) فتح البارى: ۳۷۲/۱۱، ارشاد السارى ۴۷۲/۱۳
۳) شعب الايمان للبيهقى، باب الرابع والثلاثون، باب فى حفظ اللسان، ۲۴۵/۴، رقم الحديث: ۴۹۵
۴) فتح البارى: ۳۷۴/۱۱، ارشاد السارى ۴۷۳/۱۳، عمدة القارى ۱۰۸/۲۳
۵) فتح البارى: ۳۷۴/۱۱، ارشاد السارى ۴۷۴/۱۳، عمدة القارى ۱۰۸/۲۳

[۶۱۰۹] حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ أَبِي بَكْرٍ الْمُقَدَّمِيُّ حَدَّثَنَا عُمَرُ بْنُ عَلِيٍّ سَمِعَ أَبَا حَازِمٍ عَنْ سَهْلِ بْنِ سَعْدٍ عَنْ رَسُولِ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - قَالَ «مَنْ يَضْمَنْ لِي مَا بَيْنَ لَحْيَيْهِ وَمَا بَيْنَ رِجْلَيْهِ أَضْمَنْ لَهُ الْجَنَّةَ». [۶۴۲۲]

د سيدنا سهل به سعد ﷺ نه روايت دي چه رسول الله ﷺ اوفرمائيل : ماته چه څوک د دوه جامو ترمينځه څيز (ژبې او غابنونو) او د دواړو خپو ترمينځه د څيز (شرمگاه) (د حفاظت) ذمه داري راکړي. زه به د هغه دپاره د جنت ذمه داري ورکوم.

**قوله: ﴿مَا بَيْنَ لَحْيَيْهِ﴾**:د دوه جامو ترمينځه دوه څيزونه دي. يو ژبه او دويم غابنونه. مقصد دا دې چه څوک ماته د دې خبرې ضمانت راکړي چه هغه به خپله ژبه د حرامو خبرو نه بچ کوي او خپله خوله او غابنونه به د حرامو څکلو نه بچ کوي. نو زه هغه ته د جنت ضمانت ورکوم.

**قوله: ﴿وَمَا بَيْنَ رِجْلَيْهِ﴾**:د دې نه شرمگاه مراد ده يعنى څوک چه د خپلې شرمگاه حفاظت کوي. په شهوت باندې قابو بيا مومي. او هغه د حرامو نه بچ کوي نو د هغه دپاره د جنت ضمانت رسول الله ﷺ اخستلې دې.

[۶۱۱۰] حَدَّثَنِي عَبْدُ الْعَزِيزِ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ سَعْدٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ أَبِي سَلَمَةَ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ - رضى الله عنه - قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - «مَنْ كَانَ يُؤْمِنُ بِاللَّهِ وَالْيَوْمِ الآخِرِ فَلْيَقُلْ خَيْرًا، أَوْ لِيَصْمُتْ، وَمَنْ كَانَ يُؤْمِنُ بِاللَّهِ وَالْيَوْمِ الآخِرِ فَلاَ يُؤْذِ جَارَهُ، وَمَنْ كَانَ يُؤْمِنُ بِاللَّهِ وَالْيَوْمِ الآخِرِ فَلْيُكْرِمْ ضَيْفَهُ». [ر ۳۱۵۳]

د سيدنا ابوهريره ﷺ نه روايت دي چه رسول الله ﷺ اوفرمائيل : څوک چه په الله پاک او آخرت باندې ايمان لري. هغه له پکار دی چه ښه خبره کوی گينې خاموش دې اوسيږی او څوک چه په الله پاک او آخرت باندې ايمان لری هغه دې خپل گاونډی د تکليف نه بچ کوی او څوک چه الله پاک او آخرت باندې ايمان لری نو د خپل ميلمه اکرام دې کوی.

[۶۱۱۱] حَدَّثَنَا أَبُو الْوَلِيدِ حَدَّثَنَا لَيْثٌ حَدَّثَنَا سَعِيدٌ الْمَقْبُرِيُّ عَنْ أَبِي شُرَيْحٍ الْخُزَاعِيِّ قَالَ سَمِعَ أُذُنَايَ وَوَعَاهُ قَلْبِي النَّبِيَّ - صلى الله عليه وسلم - يَقُولُ «الضِّيَافَةُ ثَلاَثَةُ أَيَّامٍ جَائِزَتُهُ». قِيلَ مَا جَائِزَتُهُ قَالَ «يَوْمٌ وَلَيْلَةٌ، وَمَنْ كَانَ يُؤْمِنُ بِاللَّهِ وَالْيَوْمِ الآخِرِ فَلْيُكْرِمْ ضَيْفَهُ، وَمَنْ كَانَ يُؤْمِنُ بِاللَّهِ وَالْيَوْمِ الآخِرِ فَلْيَقُلْ خَيْرًا، أَوْ لِيَسْكُتْ». [ر ۵۶۷۳]

سيدنا ابو شريح خزاعى ﷺ فرمائی چه زما دواړو غوږونو واوريدله او زما زړه محفوظ کړه چه رسول الله ﷺ فرمائيلې وو. ميلمستيا تر درې ورځو پورې ده او هم په دې کښې د ميلمه جائزه (انعام) هم دې. تپوس اوکړې شو، چه د هغه جائزه څه ده؟ وې فرمائيل : يوه ورځ او يوه شپه (خاص ميلمستيا) او څوک چه په الله پاک او آخرت باندې ايمان لرى نو هغه له د خپل ميلمه عزت کول پکار دى او څوک چه په الله او آخرت باندې ايمان لرى. هغه له پکار

دي چه ښه خبره كوي ګني خاموش اوسيږي د ابوالوليد نوم هشام بن عبدالملک دې. د ابو شريح نوم خويلد دې

**قوله:** ﴿الضِّيَافَةُ ثَلَاثَةُ أَيَّامٍ جَائِزَتُه﴾: جائزته: مرفوع دې. مبتدا دې. خبر محذوف دې. ﴿اى منها جائزته﴾ او دا منصوب هم لوستلې شي. په دې صورت كښې به د هغه فعل ناصب محذوف وي. ﴿اى اعطوا جائزته﴾ [1]

[۶۱۱۲، ۶۱۱۳] [2] حَدَّثَنِي إِبْرَاهِيمُ بْنُ حَمْزَةَ حَدَّثَنِي ابْنُ أَبِي حَازِمٍ عَنْ يَزِيدَ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ إِبْرَاهِيمَ عَنْ عِيسَى بْنِ طَلْحَةَ التَّيْمِيِّ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ سَمِعَ رَسُولَ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - يَقُولُ «إِنَّ الْعَبْدَ لَيَتَكَلَّمُ بِالْكَلِمَةِ مَا يَتَبَيَّنُ فِيهَا، يَزِلُّ بِهَا فِي النَّارِ أَبْعَدَ مِمَّا بَيْنَ الْمَشْرِقِ».

د سيدنا ابوهريره رضي الله عنه نه روايت دې چه هغوى د رسول الله ﷺ نه واوريدل. رسول الله ﷺ اوفرمائيل: بنده يو خبره كوي او د هغې متعلق سوچ نه كوي (چه څومره ورانه خبره ده) چه د هغې د وجې نه هغه خوئيدو سره په دوزخ كښې د مشرق او مغرب د فاصلې نه هم زيات لرې لاړ شي

د ابن ابى حازم نوم عبدالعزيز بن سلمه بن دينار دې. د يزيد د پلار نوم عبدالله دې او هغه په ابن الهاد سره مشهور دې. د سند ټول راويان مدنى دى او په دې كښې يزيد. محمد بن ابراهيم او عيسى بن طلحه درې واړه تابعين دى. [3]

**قوله:** ﴿أَبْعَدَ مِمَّا بَيْنَ الْمَشْرِقِ﴾: د صحيح بخارى په نسخو كښې هم دغه شان واقع دې لفظ ﴿بين﴾ په ډيرو څيزونو باندې د دخول تقاضه كوي او دلته صرف د مشرق ذكر دې كوم چه يو دې متعدد نه دى.

د دې جواب دا دې چه مشرق معنوى لحاظ سره متعدد كيدې شى. مثلا د ګرمۍ په زمانه كښې مشرق. د يخنۍ په زمانه كښې د مشرق نه مختلف وي.

او دا هم وئيلې كيدې شى چه دلته په دوه متقابلين كښې د يو په ذكر كولو باندې اكتفاء اوكړې شوه.

---

[1] ) فتح البارى : ۳۷۷/۱۱، عمدة القارى ۱۰۹/۲۳، وقال: لو صحت الرواية بالرفع كان تقديره : المتوجه عليكم جائزته.

[2] ) اخرجه مسلم فى الزهد والرقاق، باب : التكلم بالكلمة يهوى بها فى النار (حفظ اللسان)، رقم : ۲۹۸۸، (ما يتبين فيها) لا يتدبرها ولا يتفكر فى قبحها وما يترتب عليها. (يزل بها) ينزلق بسببها ويقرب من دخول النار. (ابعد مما ..) وفى بعض النسخ (ابعد ما) كناية عن عظمها ووسعها، كذا فى جميع نسخ البخارى (ابعد مما بين المشرق) وفى مسلم (ابعد ما بين المشرق والمغرب).

[3] ) فتح البارى : ۳۸۶/۱۱، ارشاد السارى ۴۷۷/۱۳، عمدة القارى ۱۰۹/۲۳

د صحیح مسلم په روایت کښې د ﴿ ابعد ما بین المشرق والمغرب ﴾ مشرق او مغرب دواړو ذکر دې پس حافظ ابن حجر عسقلانی رحمه الله لیکی:

﴿ کذا فی جمیع النسخ التی وقعت لنا فی البخاری وکذا فی روایة إسماعیل القاضی عن إبراهیم بن حمزة شیخ البخاری فیه عند أبی نعیم وأخرجه مسلم والإسماعیلی من روایة بکر بن مضر عن یزید بن الهاد بلفظ أبعد ما بین المشرق والمغرب وکذا وقع عند ابن بطال وشرحه الکرمانی علی ما وقع عند البخاری فقال قوله ما بین المشرق لفظ بین یقتضی دخوله علی المتعدد والمشرق متعدد معنی إذ مشرق الصیف غیر مشرق الشتاء وبینهما بعد کبیر ویحتمل أن یکون اکتفی بأحد المتقابلین عن الآخر مثل سرابیل تقیکم الحر قال وقد ثبت فی بعضها بلفظ بین المشرق والمغرب ﴾ [1]

[۶۱۱۳] حَدَّثَنِي عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مُنِيرٍ سَمِعَ أَبَا النَّضْرِ حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ - يَعْنِي ابْنَ دِينَارٍ - عَنْ أَبِيهِ عَنْ أَبِي صَالِحٍ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ - صلى الله عليه وسلم - قَالَ « إِنَّ الْعَبْدَ لَيَتَكَلَّمُ بِالْكَلِمَةِ مِنْ رِضْوَانِ اللَّهِ لاَ يُلْقِي لَهَا بَالاً، يَرْفَعُ اللَّهُ بِهَا دَرَجَاتٍ، وَإِنَّ الْعَبْدَ لَيَتَكَلَّمُ بِالْكَلِمَةِ مِنْ سَخَطِ اللَّهِ لاَ يُلْقِي لَهَا بَالاً يَهْوِي بِهَا فِي جَهَنَّمَ ».

د سیدنا ابوهریره رضی الله عنه نه روایت دې چه رسول الله صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل بنده د الله پاک د رضا دپاره یو خبره د ژبې نه راوباسی. هغې ته هیڅ اهمیت نه ورکوی. خو هم د هغې د وجې نه الله پاک د هغه درجې اوچتوی او بل بنده یو داسې کلمه د ژبې نه راوباسی کومه چه د الله پاک د ناراضتیا سبب وی، هغه هغې ته څه اهمیت نه ورکوی خو د هغې د وجې نه هغه سړې جهنم ته لاړ شی.

د ابو النضر نوم هاشم بن ابی القاسم دې. او ابو صالح. د ذکوان بن سمان کنیت دې.

**قوله: ﴿ يَهْوِي بِهَا فِي جَهَنَّمَ ﴾** یعنی د هغې کلمې په ذریعه هغه جهنم ته اوغورځیږی.

﴿ هوی، یهوی ﴾ معنی ده: دپورته نه لاندې راغورځیدل. په قرآن کریم کښې دی ﴿ وَالنَّجْمِ إِذَا هَوَىٰ ﴾ قاضی عیاض رحمه الله د دې ترجمه کړې ده ﴿ ینزل فیها ساقطا ﴾ یعنی هغه جهنم ته اوغورزیږی او په یو روایت کښې دی ﴿ ینزل بها فی النار ﴾ ځکه چه د جهنم لاندې پورې مختلف طبقات او مقامات دی بعض خلقو په ﴿ اهوی ﴾ او ﴿ طوی ﴾ کښې فرق کړې دې او وئیلې ئې دی چه د ﴿ اهوی ﴾ معنی ده: نزدې نه راغورځیدل، او د هوی معنی ده د لرې نه راغورځیدل.

امام ترمذی رحمه الله دا حدیث نقل کړې دې، د دې الفاظ دا دی: ﴿ لایری به باسا یهوی فی النار سبعین خریفا ﴾ [2]

---

[1]) فتح الباری: ۳۷۶/۱۰

[2]) الحدیث اخرجه الترمذی فی کتاب الزهد. باب فیمن یتکلم بکلمة یضحک بها الناس: ۵۵۷/٤، رقم الحدیث: ۲۳۱۳، د تفصیل دپاره اوګورئ: فتح الباری: ۳۷۷/۱۱، وعمدة القاری ۱۱۰/۲۳

ابن عبد البر رحمه الله فرمائى : (هى كلمة السوء عند السلطان الجائر) يعنى د ظالم بادشاه د خوشحالولو د خاطره د ګناه خبره کول مراد دى.

او عزالدين ابن عبد السلام فرمائى : (هى الكلمة التى يعرف حسنها من قبحها، فيحرم على الانسان ان يتكلم بما لا يعرف حسنه من قبحه)[1].

يعنى : د دې نه هغه كلمه مراد ده چه د هغې د ښه او بد كيدو تميز نه شى كيدې، لهذا د انسان دپاره داسې خبره كول حرام دى چه د هغې د خوبئ او تميز نه شى كيدې.

**د حديث الباب مطلب** : د حديث شريف مقصد دا دې چه ډير كرته انسان د ژبې نه يو جمله اوباسى او هغه د الله پاک د رضا او خوشحالولو جمله وى، د دې جملې اهميت او د هغې د عظمت ويونكى ته احساس هم نه وى، خو الله پاک د هغې په وجه باندې درجات اوچتوى.

د دې برعكس، ډير كرته انسان د ژبې نه يو كلمه اوائى، د هغې د شناعت او قباحت انسان ته احساس نه كيږى خو هغه د الله پاک په ناراضتيا باندې مشتمل يو سخته جمله وى، انسان ته پته هم نه لګى، او د هغې د وجې نه جهنم ته لاړ شى.

په دې وجه ضرورت د دې خبرې دې چه د ژبې نه وتونكې هره كلمه، د هرې جملې د ادا كولو نه مخكښې غور اوكړې شى او د سوچ كولو نه پس ژبه پرانستلې شى چه د ژبې د دې وړې شان د غوښې د ټكړې معامله ډيره حساس وى. (جرمه صغير وجرمه كبير) د دې وجود وركوټې خو جوثه ئې لويه وى.

سيدنا سفيان بن عبد الله الثقفى رضي الله عنه د رسول الله ﷺ نه تپوس اوكړو : يا رسول الله ﷺ! زما په حق كښې د ټولو نه خطرناک څيز څه دې؟ رسول الله ﷺ خپله ژبه مباركه اونيوله او وې فرمائيل : دا ! هم دغه شان د سيدنا عقبه بن عامر رضي الله عنه نه روايت دې چه هغوى د رسول الله ﷺ نه تپوس اوكړو : يا رسول الله! د خلاصى څه صورت دې؟ رسول الله ﷺ اوفرمائيل : خپله ژبه په قابو كښې ساتئ.[2]

---

[1]) فتح البارى : ۳۷۷،۳۷۶/۱۱، ارشاد السارى ۴۷۷/۱۳

قال ابن بطال : قال أهل العلم : هى الكلمة عند السلطان بالبغى والسعى على المسلم، فربما كانت سببًا لهلاكه، وإن لم يرد ذلك الباغى، لكنها آلت إلى هلاكه، فكتب عليه إثم ذلك. والكلمة التى يكتب الله له بها رضوانه الكلمة يريد بها وجه الله بين أهل الباطل، أو الكلمة يدفع بها مظلمة عن أخيه المسلم، ويفرج عنه بها كربةً من كرب الدنيا، فإن الله تعالى يفرج عنه كربةً من كرب الآخرة، ويرفعه بها درجات يوم القيامة. (شرح ابن بطال : ۱۸۹/۱۱)

[2]) قال الحافظ ابن حجر رحمه الله :

وورد فى فضل الصمت عدة أحاديث منها حديث سفيان بن عبد الله الثقفى قلت يا رسول الله ما أخوف ما تخاف على قال هذا وأخذ بلسانه أخرجه الترمذى وقال حسن صحيح.

وتقدم فى الإيمان حديث المسلم من سلم المسلمون من لسانه ويده.

ولأحمد وصححه بن حبان من حديث البراء وكف لسانك الا من خير. ...[بقيه برصفحه آئنده...

## ۲۴: باب البُکاء من خشیة اللّٰه

[۶۱۱۴] حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ حَدَّثَنَا يَحْيَى عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ قَالَ حَدَّثَنِي خُبَيْبُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ عَنْ حَفْصِ بْنِ عَاصِمٍ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ - رضی الله عنه - عَنِ النَّبِيِّ - صلی الله علیه وسلم - قَالَ «سَبْعَةٌ يُظِلُّهُمُ اللَّهُ، رَجُلٌ ذَكَرَ اللَّهَ فَفَاضَتْ عَيْنَاهُ». [ر ۶۲۹]

د سیدنا ابوهریره رضی الله عنه نه روایت دې چه رسول الله ﷺ اوفرمائیل. اووهٔ قسم خلق دی چاته چه به الله پاک په خپل سوری کښې ځائې ورکوی. (په هغوی کښې یو) هغه سړې چا چه الله پاک یاد کړو او د هغه د سترګو نه اوښکلې اوبهیدلې.

**د الله پاک په یاد کښې د ژړا فضیلت** : امام بخاری رحمه الله په دې باب کښې د الله پاک د ویرې او خشیت د وجې نه د ژړلو فضیلت بیان فرمائیلې دې. حدیث الباب واضح دې.

امام احمد رحمه الله د سیدنا ابوریحانة رضی الله عنه نه یو مرفوع روایت نقل فرمائیلې دې. په هغې کښې دی: ﴿حُرِّمَتِ النَّارُ عَلَى عَيْنٍ دَمَعَتْ أَوْ بَكَتْ مِنْ خَشْيَةِ اللهِ﴾ (۱)

یعنی: په هغه سترګه باندې د جهنم اور حرام دې کوم چه د الله پاک د ویرې نه لوندہ شی

د سیدنا ابوهریره رضی الله عنه نه روایت دې چه رسول الله ﷺ اوفرمائیل: ﴿لَا يَلِجُ النَّارَ أَحَدٌ بَكَى مِنْ خَشْيَةِ اللهِ عَزَّوَجَلَّ حَتَّى يَعُودَ اللَّبَنُ فِي الضَّرْعِ﴾ یعنی: کوم سړې چه د الله پاک د ویرې نه ژړلې وی هغه به جهنم ته نه داخلیږی (ترڅو چه پئ غلانزې ته واپس نه شی). (۲)

**الله پاک لره د یادولو صورتونه** : ابن ابی جمرة الازدی اندلسی رحمه الله د بخاری اختصار لیکلې دې او د هغه مختصر ئې بیا شرح لیکلې ده. چه د هغې نوم هغوی بهجة النفوس کیخودلې دې. په دې کتاب کښې هغوی د احادیثو نه د تصوف د مسائلو استنباط فرمائیلې دې.

---

...بقیه ازحاشیه گذشته] وعن عقبة بن عامر قلت یا رسول الله ما النجاة قال أمسک علیک لسانک الحدیث أخرجه الترمذی وحسنه.

وفی حدیث معاذ مرفوعا ألا أخبرک بملاک الأمر کله کف هذا وأشار إلی لسانه قلت یا رسول الله وانا لمؤاخذون بما نتکلم به قال وهل یکب الناس فی النار علی وجوههم الا حصائد ألسنتهم أخرجه أحمد والترمذی وصححه والنسائی وبن ماجة کلهم من طریق أبی وائل عن معاذ مطولا وأخرجه احمد أیضا من وجه أخر عن معاذ.

وزاد الطبرانی فی روایة مختصرة ثم انک لن تزال سالما ما سکت فإذا تکلمت کتب علیک أو لک وفی حدیث أبی ذر مرفوعا علیک بطول الصمت فإنه مطردة للشیطان أخرجه احمد والطبرانی وبن حبان والحاکم وصححاه.

وعن بن عمر رفعه من صمت نجا أخرجه الترمذی ورواته ثقات. وعن أبی هریرة رفعه من حسن إسلام المرء ترکه ما لا یعنیه أخرجه الترمذی وحسنه.(فتح الباری: ۳۷۴/۱۰)

۱) مسند الامام احمد بن حنبل: ۸۶۱/۵ رقم الحدیث: ۱۷۳۴۵ (حسن لغیره)

۲) مستدرک الامام الحاکم، کتاب التوبة والانابة: ۲۸۹/۴، رقم الحدیث: ۷۶۶۷

مولانا ظفر احمد عثمانی صاحب رحمه الله د بهجة النفوس ترجمه د رحمة القدوس په نوم باندې کړې ده. د دې حدیث د لاندې لیکی:

دلته یو سوال بل دې چه الله پاک لره د یادولو نه مراد ظاهری یواځې والې دې یا که باطنی یا که د دواړو مجموعه؟ د ظاهری یواځې والی مطلب خو دا دې چه په یو ځائې کښې یواځې شی. هغه سره بل هیڅ څوک نه وی او د باطنی یواځې والی معنی دا ده چه د هغه د زړا سبب صرف د الله پاک ویره وی بل ئې هیڅ سبب نه وی او د مجموعه صورت دا دې چه هغه سره بل څوک هم نه وی او د ژړا سبب ئې هم د الله پاک نه سوا هیڅ نه وی.

که دا دواړه خبرې یوځائې ته راجمع شی نو په دې کښې شک نشته چه دا حالت زیات کامل دې او که یواځې والې پوره وی. ورسره څوک هم نه وی خو (الله پاک لره یادولو سره) په بل څه خیال باندې په ژړا شو. د الله پاک (د ویرې) د وجې نه ئې نه وی ژړلې. نه ئې د الله پاک د یاد د وجې نه (په محبت کښې) ژړلی دی نو بالاتفاق دا حالت هغه نه دې چه د هغې طرف ته اشاره کړې شوې ده. بلکه دا حالت مذموم دې. ځکه چه دا دهوکه (باندې مشتمل) ده. ظاهروی خو دا چه د الله پاک د ویرې د وجې نه ئې ژړلی دی (ځکه په یاد الهی سره پرې ژړا راغلې ده) خو په حقیقت کښې داسې نه ده بلکه اوښکې ئې الله پاک لره یادولو سره په ظاهر کښې راوځی. (خو چه هر کله په یواځې والی کښې ژړیدل فرض کړې شوې دی نو د دهوکې څه معنی؟ د دهوکې صورت خو هغه دې چه کله په مجمع کښې ذکر وی او د الله پاک د یاد د وجې نه ئې ژړلې وی او کوم صورت چه شارح بیان کړې دې په هغې کښې نه دهوکه ده او نه ثواب.

پاتې شو دریم صورت چه په جمع کښې الله پاک لره یادوی. او زړه ئې د الله پاک نه علاوه د نورو څیزونو نه خالی وی. د ذکر الله په اثر سره ئې اوښکې وتلې وی نو امید دې چه دا سړې هم په هغه بابرکت خلقو کښې داخل دې (د چا چه په حدیث کښې ذکر دې، ځکه چه په هغه باندې هم باطنا دا خبره صادق ده چه هغه په خلوت کښې الله پاک یاد کړې دې (ځکه چه د هغه باطن د ما سوا الله نه خالی وو اګر چه ظاهرا په مجمع کښې وو) او کوم صورت چه په طور د احتمال د حدیث د لاندې وی هلته امید خو (ضرور) وی اګر چه یقینی صورت هم هغه دې کوم ځائې کښې چه د حدیث مضمون پوره موندلې شی او هغه هم هغه صورت دې چرته چه دواړه خبرې جمع وی (یعنی خلوت ظاهر هم. خلوت باطن هم).

**د ذکر الله نه څه مراد دې؟:** دلته یو بل سوال دې. هغه دا چه د ذکر الله نه مراد هغه ذکر دې کوم چه په ژبه او شونډو سره وی یا هغه چه په زړه سره وی. اګر چه ژبې له حرکت نه ورکوی یا چه په هر صورت کښې وی (ایا هغې ته به په هر حال کښې) ذکر وئیلې شی؟

جواب دا دې چه په دې صورتونو کښې په هر یو باندې ذکر الله صادقیږی چه د هغې دلیل د رسول الله ﷺ ارشاد دې. کوم چه په صحیح حدیث قدسی کښې راغلې دې:

**((من ذکرنی فی نفسه ذکرته فی نفسی ومن ذکرنی فی ملاء من الناس ذکرته فی ملاء اکثر منهم واطیب))** [1]

---

[1] مسند الامام احمد بن حنبل: ۳۳۳/۲، رقم الحدیث: ۸۶۳۵

يعنى : چا چه زه په خپل زړه كښې ياد كړم. زه به هغه په خپل نفس كښې ياد كړم او څوک چه ما په جماعت كښې يادوى. زه به هغه د هغې نه په غوره جماعت كښې ياد كړم نو رسول الله ﷺ دواړو ته د ذاكر لقب وركړې دې او طفيلي خو د دې نه هم په كمه بهانه باندې اميد ترى. بيا د صوفياء كرامو په مذهب خو ذكر قلبى افضل دې

**فائده : د ذكر افضل صورت** : مولانا ظفر احمد تهانوى صاحب رحمه الله ليكى د حكيم الامت رحمه الله هم دا تحقيق دې چه د ټولو نه افضل ذكر هغه ذكر دې چه په هغې كښې د ذكر لسانى سره ذكر قلبى راجمع وى، يواځې ذكر قلبى اګر چه افضل دې خو مختلف فيه دې. دويمه تجربه دا ده چه صرف ذكر قلبى د ډير وخته پورې نه وى. لږ ساعت پس زړه يوخوا بل خوا متوجه شى او دا سړې په دهوكه كښې وى چه زه ذكر قلبى كوم. خو كه د هغه زړه په ذكر قلبى كښې د غير حق طرف ته نه متوجه كيږى نو هغه ته د ذكر لسانى ضرورت نشته. كه په دې سره ئې ويره پيدا كيږى، بنه ځان پوهه كړه. (١)

## ٢٥: باب الخوف من الله

[٦١١٥] حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ حَدَّثَنَا جَرِيرٌ عَنْ مَنْصُورٍ عَنْ رِبْعِيٍّ عَنْ حُذَيْفَةَ عَنِ النَّبِيِّ - صلى الله عليه وسلم - قَالَ «كَانَ رَجُلٌ مِمَّنْ كَانَ قَبْلَكُمْ يُسِيءُ الظَّنَّ بِعَمَلِهِ، فَقَالَ لأَهْلِهِ إِذَا أَنَا مُتُّ فَخُذُونِي فَذَرُّونِي، فِي الْبَحْرِ فِي يَوْمٍ صَائِفٍ، فَفَعَلُوا بِهِ، فَجَمَعَهُ اللَّهُ ثُمَّ قَالَ مَا حَمَلَكَ عَلَى الَّذِي صَنَعْتَ قَالَ مَا حَمَلَنِي إِلاَّ مَخَافَتُكَ. فَغَفَرَ لَهُ». [ر ٣٢٩٢]

د سيدنا حذيفه رضي الله عنه نه روايت دې چه رسول الله ﷺ اوفرمائيل : د مخكښې امتونو د يو سړى ګمان د خپلو اعمالو متعلق خراب وو. هغه د خپل كور خلقو ته اووې چه كله زه مړ شم نو ما په ګرمه ورځ كښې اوچتولو سره په درياب كښې اوشيندئ، د هغه د كور خلقو هغه سره هم دغه شان اوكړل. بيا الله پاک هغه راجمع كړو او د هغه نه ئې تپوس اوكړو چه تا داسې ولې اوكړل د دې څه وجه ده؟ هغه سړى اووې چه زه په دې باندې صرف ستا ويرې تيار كړې اوم. پس الله پاک د هغه مغفرت اوكړو

﴿رِبْعِيٍّ﴾ د راء په كسرې او د باء په سكون سره او د عين په كسرې سره، د هغوى د پلار نوم خراش دې (بكسر الخاء).

**قوله** ﴿يُسِيءُ الظَّنَّ بِعَمَلِهِ﴾ : د خپل عمل په باره كښې هغه سړې بدګمانه وو. په صحيح ابن حبان كښې دى چه دا سړې كفن پټونكې وو. (٢)

﴿ذَرُّونِي﴾ : دا د باب تفعيل نه د امر حاضر معروف جمع مذكر صيغه ده. ﴿ تذرية ﴾ په هوا كښې الوځول، متفرق كول، ﴿يوم صائف﴾ ګرمه ورځ.

---

١) رحمة القدوس ترجمة بهجة النفوس. ص : ٣٠

٢) ارشاد السارى ٤٧٩/١٣، وفتح البارى : ٣٨٠/١١

د هغه په خيال كښې دا وو چه كله د هغه د بدن ذرات په سمندر كښې خوارهٔ شى نو هغه به د عذاب نه بچ شى.
په وړاندې روايت كښې د دې نور هم تفصيل دې:

[۶۱۱۶] حَدَّثَنَا مُوسَى حَدَّثَنَا مُعْتَمِرٌ سَمِعْتُ أَبِي حَدَّثَنَا قَتَادَةُ عَنْ عُقْبَةَ بْنِ عَبْدِ الْغَافِرِ عَنْ أَبِي سَعِيدٍ-رضي الله عنه-عَنِ النَّبِيِّ -صلى الله عليه وسلم- ذَكَرَ رَجُلاً فِيمَنْ كَانَ سَلَفَ أَوْ قَبْلَكُمْ آتَاهُ اللَّهُ مَالاً وَوَلَدًا - يَعْنِي أَعْطَاهُ قَالَ - فَلَمَّا حُضِرَ قَالَ لِبَنِيهِ أَيَّ أَبٍ كُنْتُ قَالُوا خَيْرَ أَبٍ. قَالَ فَإِنَّهُ لَمْ يَبْتَئِرْ عِنْدَ اللَّهِ خَيْرًا - فَسَّرَهَا قَتَادَةُ لَمْ يَدَّخِرْ - وَإِنْ يَقْدَمْ عَلَى اللَّهِ يُعَذِّبْهُ فَانْظُرُوا، فَإِذَا مُتُّ فَأَحْرِقُونِي، حَتَّى إِذَا صِرْتُ فَحْمًا فَاسْحَقُونِي - أَوْ قَالَ فَاسْهَكُونِي - ثُمَّ إِذَا كَانَ رِيحٌ عَاصِفٌ فَأَذْرُونِي فِيهَا. فَأَخَذَ مَوَاثِيقَهُمْ عَلَى ذَلِكَ وَرَبِّي فَفَعَلُوا فَقَالَ اللَّهُ كُنْ. فَإِذَا رَجُلٌ قَائِمٌ، ثُمَّ قَالَ أَيْ عَبْدِي مَا حَمَلَكَ عَلَى مَا فَعَلْتَ قَالَ مَخَافَتُكَ - أَوْ فَرَقٌ مِنْكَ - فَمَا تَلاَفَاهُ أَنْ رَحِمَهُ اللَّهُ». فَحَدَّثْتُ أَبَا عُثْمَانَ فَقَالَ سَمِعْتُ سَلْمَانَ غَيْرَ أَنَّهُ زَادَ فَأَذْرُونِي فِي الْبَحْرِ. أَوْ كَمَا حَدَّثَ. وَقَالَ مُعَاذٌ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ قَتَادَةَ سَمِعْتُ عُقْبَةَ سَمِعْتُ أَبَا سَعِيدٍ عَنِ النَّبِيِّ - صلى الله عليه وسلم-. [ر: ۳۲۹۱]

د سيدنا ابوسعيد خدرى رضي الله عنه نه روايت دې چه رسول الله ﷺ (د تيرو امتونو) د يو سړى ذكر اوفرمائيلو چه الله پاک هغه ته مال او اولاد وركړې وو. وې فرمائيل چه كله د هغه د مرګ وخت رانزدې شو نو هغه د خپلو ځامنو نه تپوس اوكړو : د پلار په حيثيت سره زه ستاسو دپاره څنګه اوم؟ ځامنو ئې اووې : ته ډير غوره پلار ئې، بيا هغه سړى اووې چه هغه الله پاک سره هيڅ نيكى نه ده جمع كړې (قتاده د ﴿لم يبتئر﴾ تفسير ﴿لم يدخر﴾ سره كړې دې)، چه كه هغه الله پاک ته پيش كړې شو نو الله پاک به هغه ته عذاب وركوى. (هغه خپلو ځامنو ته اووې چه) ګورئ! چه كله زه مړ شم نو زما بدن اوسيزئ او چه كله زه سكارهٔ شم نو ما اوړهٔ كړئ او د يوې تيزئ هوا په ورځ باندې ما په هغې كښې والوځوئ. هغه د خپلو ځامنو نه په دې لوظ واخستلو، پس ځامنو هغه سره هم دغه شان معامله اوكړه. بيا الله پاک اوفرمائيل : چه اوشه! پس سړې ولاړ په نظر راغلو. الله پاک ترې تپوس اوكړو اې زما بنده! تا چه دا كوم حركت كړې دې دې ته كوم څيز تيار كړې؟ هغه اووې : ستا ويرې! الله پاک رحم كولو سره د (هغه ګناهونه معاف كولو سره هغه) كمې پوره كړو.

**قوله:** ﴿فَاسْحَقُونِي ، أَوْ قَالَ فَاسْهَكُونِي﴾: د ﴿سحق﴾ او ﴿سهق﴾ دواړو معنى د ميده كولو ده.

﴿فَأَذْرُونِي﴾ د باب نصر نه ذرا- ذروا، او د باب ضرب نه ذرى- ذريا او د باب افعال نه اذرى- اذراء او د تفعيل نه ذرى-تذرية. د ټولو يوه معنى ده. ذره ذره كول. ذره ذره كولو سره د هوا

په رخ پريخودل (۱)

**قوله:** ﴿فَمَا تَلَافَاهُ أَنْ رَحِمَهُ اللّٰهُ﴾: علامه عيني رحمه الله ليکي:

﴿ كلمة ما موصولة وكلمة أن مصدرية أى الذى تلافاه أى تداركه بأن رحمه أى بالرحمة والضمير المنصوب فى تلافاه يرجع إلى عمل الرجل ويجوز أن يكون ما نافية وكلمة الاستثناء محذوفة على مذهب من يجوز حذفها أى ماتلافاه إلا أن رحمه ﴾(۲)

يعنى: دلته ما موصوله او ان مصدريه دي. معنى داسې شوه ﴿ الذى تلافاه وتداركه بالرحمة ﴾ او ﴿ تلافاه ﴾ضمير منصوب مرجع عمل رجل دې. مطلب دا شو چه الله پاک په خپل رحمت سره د هغه سړي کمې پوره کړو، دا هم کيدې شى چه ﴿ ما ﴾نافيه وى او حرف استثناء محذوف وى، دا د هغه حضراتو په مسلک باندې دې کوم چه د حرف استثناء حذف جائز ګڼړى، په دې صورت کښې به ئې معنى دا وى: ﴿ ماتلافاه الا ان رحمه ﴾يعنى: الله پاک د هغه د بدعملۍ کمې پوره کړو، په هغې باندې رحم فرمائيلو سره.

**قوله:** ﴿فَأَخَذَ مَوَاثِيقَهُمْ عَلَى ذٰلِكَ وَرَبِّي﴾: ﴿ مواثيق ﴾د ميثاق جمع ده. عهد ته وائى. يعنى هغه سړي د ټولو نه عهد واخستلو او هغوى ته ئې اووې چه په تاسو کښې دې هر يو ﴿ وربى لافعلن كذا ﴾اوائى.

او دا هم احتمال دې چه دا خبر ورکونکى قسم خوړلې دې چه قسم په الله! هغه د ټولو نه عهد واخستلو. خبر ورکونکې قسم خوړلو سره دا بيانول غواړى چه هغه په خپله خبره کښې رشتينې دې. (۳)

**قوله:** ﴿وَقَالَ مُعَاذٌ﴾: د معاذ بن معاذ دا تعليق امام مسلم رحمه الله موصولا نقل کړې دې. (۴) په حديث الباب کښې عقبه بن عبدالغافر، د سيدنا ابوسعيد خدرى رضي الله عنه نه په ﴿ عن ﴾سره نقل کوى. په دې دې تعليق کښې د سماع حديث تصريح ده.

**قوله:** ﴿قَالُوا خَيْرَ أَبٍ﴾: ﴿ خيراب ﴾منصوب هم لوستلې شى، په دې صورت کښې به د دې عامل ناصب ﴿ كنت ﴾مقدر وى. ﴿ اى كنت خيراب ﴾ او مرفوع ئې هم لوستلې شى، په دې صورت کښې به دا د مبتدا محذوف ﴿ انت خير ﴾وى، ﴿ اى انت: خيراب ﴾(۵)

---

(۱) ارشاد السارى ۱۳/٤۷۹، وفتح البارى: ۱۱/۳۸۰، وعمدة القارى: ۲۲/۱۱۱. ۱۱۲

(۲) عمدة القارى: ۲۳/۱۱٤

(۳) ارشاد السارى ۱۳/٤۸۰، وعمدة القارى: ۲۳/۱۱٤

(٤) ارشاد السارى ۱۳/٤۸۰، وعمدة القارى: ۲۳/۱۱٤

(۵) ارشاد السارى ۱۳/٤۸۰، وعمدة القارى: ۲۳/۱۱٤

قوله: ﴿ مَخَافَتُكَ، أَوْ فَرَقٌ مِنْكَ ﴾: د راوى شک دې چه ﴿ مَخَافَتُكَ ﴾ يا ﴿ فَرَقٌ مِنْكَ ﴾ ئې اووې. ﴿ فرق ﴾ د فاء او راء په فتحې سره، په معنى د خوف راځي.

**يو اشكال او د هغې جوابات**: دې سړي خپل اولاد ته وصيت اوکړو چه د مرګ نه پس دې د هغه بدن د سيزلو نه پس ذره ذره کولو سره په سمندر کښې ګزار کړې شي چه د آخرت حساب د هغه سره او نه شي. ګويا د الله پاک مخکښې د حساب نه د بچ کيدلو هغه سړي دا تدبير سوچ کړو. په بعض روايتونو کښې د هغه دا قول هم دې چه ﴿ فوالله لئن قدر الله على ليعذبنى ﴾ يعنى كه الله پاک په ما باندې د مرګ نه پس قدرت حاصل کړو نو ماته به زما د ګناهونو د وجې نه عذاب راکړي. د دې نه معلوميږي چه دا سړې د الله پاک د قدرت نه جاهل وو. هغه ته دا معلومه نه وه چه الله پاک د انسان په دوباره ژوندى کولو باندې قادر دې، اګر که د هغه بدن ذره ذره کولو سره د هواګانو په رخ اوشيندلې شي نو د الله پاک د قدرت کامله نه د ناخبره انسان ته څنګه بخښنه اوکړې شوه.

① د دې يو جواب خو دا ورکړې شوې دې چه دا سړې د مرګ نه مخکښې په خپلو کړو ګناهونو باندې پښيمانه شوې وو ﴿ والندمة التوبة ﴾ او پښيمانه کيدل توبه ده. د دې ندامت او توبې د وجې نه هغه ته بخښنه اوکړې شوه. هر چه د ﴿ فوالله، لئن قدر الله على ليعذبنى ﴾ والا روايت تعلق دې، په هغې کښې د قدر معنى د تنګولو ده، د قدر معنى د قادر کيدو هم راځي او د تنګولو هم راځي. په سورة طلاق آيت ٧ کښې دى ﴿ ومن قدر عليه رزقه ﴾ او د سورة فجر په آيت ١٦ کښې دى ﴿ وَأَمَّا إِذَا مَا ابْتَلَاهُ فَقَدَرَ عَلَيْهِ رِزْقَهُ فَيَقُولُ رَبِّي أَهَانَنِ ﴾ په دې کښې د قدر معنى د تنګولو ده، نو د دې روايت مطلب دا دې چه که د مرګ نه پس الله پاک په ما باندې تنګسيا راوستله او د فراخۍ معامله ئې او نه فرمائيله نو ماته به عذاب راکړي. د دې تفسير مطابق د الله پاک د قدرت نه د جهالت سوال نه پيدا کيږي.

② او که ﴿ فوالله، لئن قدر الله على ﴾ د قدرت په معنى کښې هم واخستلې شي نو زيات نه زيات به دا وئيلې شي چه هغه دا جمله د خپل جهالت په بناء په غلطۍ سره وئيلې ده او د جهالت په بناء داسې غلطى د معاف کيدو قابل کيدې شي.

③ او دا هم وئيلې شو چه د زياتې ويرې د وجې نه، د هغه د ژبې نه دا جمله اُزوتله. او پوهه پرې نه شو. د زياتې ويرې د وجې نه هغه په ناپوهۍ کښې دا جمله اووې، کومه چه د معافۍ قابله ده. په حديث کښې راځي د جهنم نه وتلو سره چه کوم سړې د ټولو نه آخر کښې جنت ته داخليږي او الله پاک هغه ته اوائى: ﴿ إِنَّ لَكَ مِثْلَ الدُّنْيَا وَعَشَرَةَ أَمْثَالِهَا ﴾ ستا دپاره د دنيا او د هغې لس چنده جنت دې نو هغه به د زياتې خوشحالۍ نه دوه کرته اوائى ﴿ رب انت عبدى وانا ربك ﴾ يعنى اې زما ربه! ته زما بنده ئې او زه دې رب يم، دا کلمه د کفر ده خو د خوشحالۍ نه مغلوب کيدو سره د هغه د ژبې نه دا جمله په ناپوهۍ کښې اووتله. په دې وجه به دې ته کفر

نه شي ونيلې، او هغه به د مواخذې قابل نه وي.

هم دغه شان د هغه سړي ﴿ لئن قدر الله علي ليعذبني ﴾ ونيل هم د زياتې ويرې په حالت كښې وو. او په ناپوهئ سره د هغه د ژبې نه اووتل نو په عام حالاتو كښې اګر چه دا د كفر كلمه ده خو د الله پاک د ويرې نه مغلوب كيدو سره چونكه د هغه د ژبې نه دا خبره وتلې ده، په دې وجه به دې خبرې ته ذ هغه سړي په حق كښې كفر نه شي ونيلې. (١)

## ۲۶: باب الاِنْتِهَاءِ عَنِ الْمَعَاصِي

امام بخاري رحمه الله په دې باب كښې د ګناهونو او معاصي نه د بنديدلو وجوب بيان فرمائيلي دي

[۶۱۱۷] (۲) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْعَلَاءِ حَدَّثَنَا أَبُو أُسَامَةَ عَنْ بُرَيْدِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ أَبِي بُرْدَةَ عَنْ أَبِي بُرْدَةَ عَنْ أَبِي مُوسَى قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - «مَثَلِي وَمَثَلُ مَا بَعَثَنِي اللَّهُ كَمَثَلِ رَجُلٍ أَتَى قَوْمًا فَقَالَ رَأَيْتُ الْجَيْشَ بِعَيْنَيَّ، وَإِنِّي أَنَا النَّذِيرُ الْعُرْيَانُ فَالنَّجَاءَ النَّجَاءَ. فَأَطَاعَتْهُ طَائِفَةٌ فَأَدْلَجُوا عَلَى مَهْلِهِمْ فَنَجَوْا، وَكَذَّبَتْهُ طَائِفَةٌ فَصَبَّحَهُمُ الْجَيْشُ فَاجْتَاحَهُمْ». [۶۸۵۴]

د سيدنا ابو موسى اشعري رضي الله عنه نه روايت دې چه رسول الله صلى الله عليه وسلم اوفرمائيل: زما او څه چه ما سره الله پاک راليږلي دی د هغې مثال د يو داسې سړي دې چه يو قوم ته راشي او اوائي چه ما (ستاسو د دشمنانو) لښكر په خپلو سترګو باندې ليدلې دې او زه ښكاره ويرونكي يم. پس په تيزئ سره اوځئ، په دې باندې يو جماعت خبره اومنله او هغوى په اطمينان سره يو محفوظ ځائې ته اووتل او خلاصې ئې اوموندلو او دويم جماعت تكذيب اوكړو او لښكر په هغوى باندې د صبا په وخت ناڅاپه راغلو او هغوى ئې ختم كړل.

ابو اسامة د حماد بن سلمة كنيت دې.

**قوله:** ﴿ إِنِّي أَنَا النَّذِيرُ الْعُرْيَانُ ﴾: (عريان) د دې لغوى معنى ده: بربنړ، بې جامو، دلته خو هم دا معنى مراد ده، يو سړې د دشمنانو نيولو سره بربنړ كړې وو، هغه خپل قوم ته هم په دې حالت كښې راتلو سره خبر وركولو او په ثبوت كښې ئې خپل بې جامې كيدل په طور د قرينې او علامت پيش كړل، خلق هغه په خرق عادت او خلاف معمول حالت كښې ليدلو سره د هغه په خبره باندې يقين اوكړو

---

(١) اوګورئ: شرح ابن بطال: ۱۹۲/۱۰، ۱۹۳

(٢) اخرجه مسلم في الفضائل، باب شفقته على امته، رقم: ۲۲۸۳

(الجيش) عسكر العدو مغيرا. (العريان) الذى تجرد من ثوبه ورفعه بيده اعلاما لقومه بالغبارة عليهم ضرب به النبي صلى الله عليه وسلم المثل لامته لانه تجرد لانذارهم. (فالنجاة النجاة) انجوا بانفسكم واسرعوا بالهرب. (فادلجوا) من الادلاج، وهو السير فى الليل او اوله. (مهلهم) تانيهم وسكينتهم. (فصبحهم) اتاهم صباحا، اى بغتة. (فاجتاحهم) استاصلهم واهلكهم.

رسول الله ﷺ خپل مثال د هغه سړی سره ورکړو . رسول الله ﷺ ته د ورکړې شوې معجزات او خرق عادات نخښو تقاضه هم دا ده چه په هغوی باندې ایمان راوړلې شی.[1]

بعضو وئیلې دي چه د ﴿ عریان ﴾ معنی فصیح راځی. ﴿ نذیرعریان ﴾ په وضاحت او فصاحت سره ویرونکې.[2]

﴿النَّجَاءَ النَّجَاءَ﴾ نجاء په معنی د سرعت او تندئ سره د تلو ده. دا منصوب علی الاغراء دې او فعل محذوف ﴿ اطلبوا ﴾ یا ﴿ الزموا ﴾ دې: ای الزموا النجاء النجاء.[3]

﴿ فَأَدْلَجُوا ﴾ : دا د باب افعال ﴿ ادلاج ﴾ نه دې. چه د هغې معنی د شپې په ابتدائی حصه یا د شپې د تلو راځی.[4]

﴿ عَلَى مَهْلِهِمْ ﴾ مهل : وقار او اطمینان ته وائی، یعنی هغه خلق په اطمینان او وقار سره د شپې اوتل.

﴿ فَصَبَّحَهُمُ الْجَيْشُ ﴾ : ﴿ صبح ﴾ معنی په سحر کښې د راتلو ده. ﴿ ای اتاهم صباحا ﴾، خو دا بیا د ناڅاپه راتلو دپاره استعمالیدل شروع شو.

﴿اجْتَاحَهُمْ﴾ : اجتاح: د جرړې نه ویستل او ختمول.

[۶۱۱۸] حَدَّثَنَا أَبُو الْيَمَانِ أَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ حَدَّثَنَا أَبُو الزِّنَادِ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ أَنَّهُ حَدَّثَهُ أَنَّهُ سَمِعَ أَبَا هُرَيْرَةَ - رضي الله عنه - أَنَّهُ سَمِعَ رَسُولَ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - يَقُولُ «إِنَّمَا مَثَلِي وَمَثَلُ النَّاسِ كَمَثَلِ رَجُلٍ اسْتَوْقَدَ نَارًا، فَلَمَّا أَضَاءَتْ مَا حَوْلَهُ جَعَلَ الْفَرَاشُ وَهَذِهِ الدَّوَابُّ الَّتِي تَقَعُ فِي النَّارِ يَقَعْنَ فِيهَا، فَجَعَلَ يَنْزِعُهُنَّ وَيَغْلِبْنَهُ فَيَقْتَحِمْنَ فِيهَا، فَأَنَا آخُذُ بِحُجَزِكُمْ عَنِ النَّارِ، وَأَنْتُمْ تَقْتَحِمُونَ فِيهَا». [ر: ۳۲۴۴]

د سیدنا ابوهریره رضی الله عنه نه روایت دې چه رسول الله ﷺ اوفرمائیل : زما او د خلقو مثال د داسې سړی دې چا چه اور بل کړو، چه کله دهغې نه چاپیره رڼا شوه نو پتنګان او حشرات کوم چه په اور باندې راغورځیږی په هغې باندې راغورځیدل شروع شو او اور بلونکی هغوی د دې نه ویستل، خو هغه د هغه په قابو کښې نه راتلل او په اور کښې بر ـ تل. هم دغه شان زه تاسو د لنګ نه نیولو سره د اورنه راوباسم او تاسو یئ چه په هغې کښې ځان غورځوئ.

د ابو الیمان نوم حکم بن نافع دې او د ابو الزناد نوم عبدالله بن ذکوان دې

﴿ جَعَلَ الْفَرَاشُ ﴾ دا د ﴿ فراشة ﴾ جمع ده، پتنګ ته وائی.

---

[1] ارشاد الساری ۳۸۱/۱۳. وفتح الباری : ۴۸۴/۱۱، عمدة القاری : ۲۳/۱۱۵

[2] وفتح الباری : ۴۸۴/۱۱، وعمدة القاری : ۲۳/۱۱۶

[3] ارشاد الساری ۳۸۱/۱۳. وفتح الباری : ۴۸۴/۱۱، وعمدة القاری : ۱۱۶/۲۳

[4] ارشاد الساری ۳۸۱/۱۳. وفتح الباری : ۴۸۵/۱۱، وعمدة القاری : ۱۱۶/۲۳

﴿فَيَقْتَحِمْنَ﴾ دا د باب افتعال نه دې، د اقتحام معنی د داخلیدو راځی.

﴿بِحُجَزِكُمْ﴾ ﴿حجز﴾ د حاء په ضمې او د جیم په فتحې سره، دا د ﴿حجزة﴾ جمع ده. معقد ازار يعنی د ازار ترلو ځائی ته وائی. په ﴿حجزكم﴾ کښې د غائب نه د خطاب طرف ته التفات دې [1].

علامه طیبی رحمه الله په شرح مشکاة کښې لیکی:

﴿تحقيق التشبيه الواقع فى هذا الحديث يتوقف على معرفة معنى قوله {ومن يتعد حدود الله فأولئك هم الظالمون} [البقرة: ٢٢٩] وذلك أن حدود الله هى محارمه ونواهيه كما فى الصحيح ‏إلا أن حمى الله محارمه ورأس المحارم حب الدنيا وزينتها واستيفاء لذتها وشهواتها فشبه - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - إظهار تلك الحدود من الكتاب والسنة باستنقاذ الرجال من النار وشبه فشو ذلك فى مشارق الأرض ومغاربها بإضاءة تلك النار ما حول المستوقد وشبه الناس وعدم مبالاتهم بذلك البيان وتعديهم حدود الله وحرصهم على استيفاء تلك اللذات والشهوات ومنعه إياهم عن ذلك بأخذ حجزهم بالفراش التى يقتحمن فى النار ويغلبن المستوقد على دفعهن عن الاقتحام كما أن المستوقد كان غرضه من فعله انتفاع الخلق به من الاستضاءة والاستدفاء وغير ذلك والفراش لجهلها جعلته سببا لهلاكها، فكذلك القصد بتلك البيانات اهتداء الأمة واجتنابها ما هو سبب هلاكهم وهم مع ذلك لجهلهم جعلوها مقتضية لترديهم وفى قوله: آخذ بحجزكم استعارة مثل حالة منعه الأمة عن الهلاك بحالة رجل أخذ بحجرة صاحبه الذى كان يهوى فى مهواة مهلكة اهـ﴾ [2].

یعنی: په حدیث مبارک کښې د مذکوره تشبیه تحقیق د دې آیت کریمه په معنی باندې پوهیدو باندې موقوف دې: ﴿ومن يتعد حدود الله فأولئك هم الظالمون﴾ د دې تفصیل دا دې چه د حدود الله نه مراد د الله پاک حرام کړې شوې کارونه دی او څیزونه دی. ﴿حمى الله﴾ نه هم ﴿محارم الله﴾ مراد دی. د ناجائز او حرام کارونو جرړې، دنیا او د هغې ډول سره محبت او د دنیا د لذتونو حصول دې، نو رسول الله ﷺ د کتاب او سنت نه د حدود او محارم اظهار او بیان ته خلقو لره د جهنم نه د بچ کولو سره تشبیه ورکړه.

بیا ئې په مشرق او مغرب کښې د هغې خوریدو ته د اور د وجې نه د ګیرچاپیره څیزونو روښانه کیدو سره تشبیه ورکړه او د خلقو د دې بیاناتو پرواه نه کول او د دنیا د لذتونو په حصول کښې لګیدل. د الله پاک حدود د خپو لاندې کول او د حرام کارونو ارتکاب کول او د رسول الله ﷺ د هغه محارم نه منع کول. د دې تشبیه رسول الله ﷺ د پتنګانو د اور طرف ته راتلو او د انسان هغوی لره د هغه اور نه د منع کولو سره ورکړه.

پس څنګه چه د اور د روښانه کونکی غرض صرف دا وی چه خلق د دې د رڼا او حرارت

---

[1] ارشاد الساری ۳۸۲/۱۳، هم دغه شان اوګورئ: النهاية: ۳۳۷/۱

[2] شرح الطيبی: کتاب الايمان، باب الاعتصام بالکتاب والسنة، ۳۰۷/۱، ۳۰۸، وارشاد الساری: ۴۸۳/۱۳

فائده حاصل كړى، خو پتنګان هغې لره د خپلې ناپوهئ د وجې نه هم هغه اور د خپل هلاكت سبب جوړ كړى.

هم دغه شان د قرآن او سنت نه د محارم الله او حدود الله بياناتو مقصد د امت رهنمائى، د هغوى خير خواهى او د جهنم د دخول او هلاكت اسباب نه هغه بچ كول دى، خو خلق د خپلې ناپوهئ په وجه باندې هم په هغه څيزونو كښې اخته دى كوم چه د هغوى د هلاكت او دخول فى النار سبب دې.

د حديث په دې جمله ﴿ اخذ بحجزكم ﴾ كښې استعاره تمثيليه ده، رسول الله ﷺ امت لره د هلاكت او د جهنم په كنده كښې د غورځيدو نه د بچ كولو حالت ته د هغه سړى د حالت سره تشبيه وركړې ده، كوم چه ژورې كندې ته غورځيدونكې خپل دوست د هغه د لنګ د تړلو ځائې نه نيولو سره منع كوى.

**د علامه طيبى رحمه الله د كلام حاصل:** د علامه طيبى رحمه الله ددې كلام حاصل دا دې چه په حديث كښې د درې امورو تشبيه د درې څيزونو سره وركړې شوې ده.

① د قرآن او سنت د حدودو بيان ته، د اور نه د بچ كولو او راويستلو سره تشبه وركړې شوه، يعنى څنګه چه اور بلونكې سړې هغه پتنګانو لره د اور نه د بچ كولو كوشش كوى، هم دغه شان په قرآن او سنت كښې د حدود الله بيان هم خلقو لره د هلاكت نه د بچ كولو او د نجاة په لاره باندې د راوستلو كوشش كوى.

② د قرآن او نبوى حدود عام كيدو ته ئې د اور په رونړانه كيدو سره تشبيه وركړه، يعنى څنګه هغه سړى اور بل كړو، په هغې سره رنړا خوره شوه، د حدود الله عام كيدل، د اور د هغه رنړا په شان دې كومه چه په اور بلولو سره د هغه سړى نه چاپيره خور شوې دې.

③ د خلقو د الله پاك حدود لره د خپو لاندې كولو سره په خوند اخستلو كښې اخته كيدل او د رسول الله ﷺ د هغوى منع كولو ته تشبيه وركړې شوې ده د پتنګانو سره كوم چه اور لره رونړانه ليدلو سره په هغې كښې غورځيږى، او اور بلونكې هغه سړې هغوى لره د اور نه د منع كولو كوشش كوى.

[۶۱۱۹] حَدَّثَنَا أَبُو نُعَيْمٍ حَدَّثَنَا زَكَرِيَّاءُ عَنْ عَامِرٍ قَالَ سَمِعْتُ عَبْدَ اللَّهِ بْنَ عَمْرٍو يَقُولُ قَالَ النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - «الْمُسْلِمُ مَنْ سَلِمَ الْمُسْلِمُونَ مِنْ لِسَانِهِ وَيَدِهِ، وَالْمُهَاجِرُ مَنْ هَجَرَ مَا نَهَى اللَّهُ عَنْهُ». [ر: ۱۰]

د سيدنا عبدالله بن عمر رضى الله عنهما نه روايت دې چه رسول الله ﷺ اوفرمائيل : صحيح مسلمان هغه دې چه د هغه د لاس او ژبې (د شر) نه نور مسلمانان محفوظ وى او حقيقة هجرت كونكې سړې هغه دې، كوم چه هغه څيزونو نه هجرت اوكړى (او هغه پريږدى) د كومو نه چه الله پاك منع كړې ده (يعنى ګناهونو لره ترک كونكې اصلى مهاجر دې او د هجرت اصل ثواب او فائده به هم هغه ته ملاويږى).

**قوله:** ﴿الْمُسْلِمُ مَنْ سَلِمَ الْمُسْلِمُونَ مِنْ لِسَانِهِ وَيَدِهِ﴾: مسلمان هغه دې چه د هغه د

ژبې او د لاس نه نور مسلمانان محفوظ وي.

﴿ المسلم ﴾ كښې الف لام عهد خارجی دې او د دې نه كامل مسلمان مراد دې يعنی كامل مسلمان هغه دې چه بل مسلمان د هغه د ژبې او د لاس د شر نه محفوظ وي. (١)

علامه انور شاه كشميري رحمه الله فرمائی چه د علمی تحقيق د حده پورې خو صحيح ده چه ته وئيلې شې چه الف لام د عهد دپاره دې او ﴿ المسلم الكامل ﴾ يا ﴿ المسلم الممدوح ﴾ په معنې كښې دې. خو په دې صورت كښې په كلام كښې زور باقی نه پاتې كيږی، كه الف لام د جنس دپاره واخستلې شی نو مطلب به دا وی چه د مسلم د لقب هغه سړې حقدار او مستحق دې چه د هغه د لاس او ژبې د شر نه نور محفوظ وی كه څوك نورو ته تكليف او ضرر وركوی نو هغه ته به موذی او ضار وئيلې شی، مسلم به ورته نه شی وئيلې، په دې صورت كښې تنبيه او زجر زيات دې.

دا بالكل هم داسې ده لكه چه اهل عرب په ﴿ ابل ﴾ باندې د ﴿ مال ﴾ او په ﴿ عرب ﴾ باندې د ﴿ ناس ﴾ اطلاق كوی، ﴿ المال الابل ﴾، ﴿ الناس العرب ﴾، حال دا چه د ابل نه علاوه د مال او عرب نه علاوه انسانان نور هم دی. خو د ابل د اهميت بيانولو دپاره د جنس مال او د عرب د اهميت بيانولو دپاره د جنس ناس اطلاق په ابل او عرب باندې كړې شوې دې

هم دغه شان قاعده ده چه په خانه كعبه باندې د بيت اظهار د هغې د عظمت د اظهار كولو دپاره كړې شوې دې. هم دغه شان د سيبويه په كتاب باندې د ﴿ الكتاب ﴾ اطلاق دا هم د عظمت د اظهار دپاره دې، دلته دې هم الف لام د جنس دپاره واخستلې شی او مطلب دې دا وی چه د كوم سړی د لاس او ژبې نه نور خلق محفوظ نه وی هغه د مسلمان بللو مستحق نه دې. ګويا دا د تنزيل الناقص بمنزلة المعدوم د قبيل نه دې، چه مسلمان صرف هغه چاته وئيلې كيدې شی چه نور خلق د هغه د شر نه محفوظ وی، دا عنوان كه اختيار كړې شی نو په دې سره به خلقو ته تنبيه وی او هغوی به د تكليف نه د بچ كيدو اهتمام كوی چه مونږ نور ته تكليف يا ضرر اورسولو نو مونږ به د مسلمان بللو هم حقدار نه يو، لهذا مونږ له د دې نه بچ كيدل پكار دی. (٢)

خلاف د اول صورت چه كه هلته تاسو د ﴿ المسلم الكامل ﴾ ترجمه اوكړئ نو انسان دا سوچ كولې شی چه په ما كښې نور هم نقصانات دی كه دا يو كوتاهی بله هم اوشوه نو څه چل به اوشی، په دې كښې دومره زجر او تنبيه نه وی، څومره تنبيه چه د الف لام جنسی په اخستلو كښې كيږی.

بعض حضراتو فرمائيلې دی چه په اصل كښې دلته دا بيانول مقصود دی چه مسلم د اسلام نه ماخوذ دې لهذا دلته د مسلم علامت دا كيدل پكار دی، چه هغه نه نورو ته ضرر او نه

---

(١) عمدة القاري: ١٣٢/١

(٢) فيض الباري، ٨٠/١ وايضاح البخاري: ١٧٩/٢

رسيږي. دلته هغه علامت لره بيانول مقصود دي، چه د هغې نه د انسان په اسلام باندې استدلال کيدلې شي او د کوم علامت نه چه هغه مسلمان گڼلې کيدې شي او هغه دا دې چه نور د هغه د شر نه محفوظ وي، چاته د هغه نه تکليف او نه رسيږي. (۱)

**يوه شبه او د هغې جواب:** دلته د حديث الفاظ ﴿ اَلْمُسْلِمُ مَنْ سَلِمَ الْمُسْلِمُوْنَ مِنْ لِسَانِهٖ وَيَدِهٖ ﴾ نه معلوميږي چه که يو سړې نورو ته تکليف نه رسوي نو هغه مسلمان دې که مونځ کوي او که نه کوي، که روژه نيسي او که نهٔ نيسي، هم دغه شان که نور فرائض ادا کوي او که نه ادا کوي، ځکه چه د هغې نه د يو څيز تذکره نشته.

د دې جواب دا دې چه دلته د ﴿ اَلْمُسْلِمُ مَنْ سَلِمَ الْمُسْلِمُوْنَ مِنْ لِسَانِهٖ وَيَدِهٖ ﴾ سره د ﴿ مع مراعاة باقى الاركان ﴾ قيد هم ملحوظ دې. (۲) يعنى دا نه ده چه دومره خبره د مسلمانيدو دپاره کافى ده بلکه د نور ارکان اسلام د ادا کولو سره د دې اهتمام ضرورى دې.

دويم جواب دا ورکړې شوې دې چه دلته صرف دومره خبره بيان کړې شوې ده چه په مسلمان کښې دا د سلامتئ وصف کيدل پکار دى، د يو څيز د اهميت د وجې نه د دې تذکره شوې ده، د دې نه په دا ځنګه معلوميږي چه د نورو ارکان اسلام او ايمان څه اهميت نشته او مسلمان د هغې د ادا کولو مکلف نه دې، د هغې خو دلته هيڅ ذکر نشته. (۳)

**غير مسلمو ته د تکليف رسولو حکم:** بيا دلته ﴿ اَلْمُسْلِمُ مَنْ سَلِمَ الْمُسْلِمُوْنَ مِنْ لِسَانِهٖ وَيَدِهٖ ﴾ کښې د مسلمون په قيد سره اشکال پيدا کيږي چه د شر نه حفاظت د اهل اسلام دپاره خاص نه دې، نورو انسانانو لره هم د خپل شر نه بچ کول پکار دى، بلکه د تکليف نه خو د حيواناتو حفاظت هم ضرورى دې، پس په بخارى کښې روايت دې:

﴿ عُذِّبَتِ امْرَأَةٌ فِيْ هِرَّةٍ حَبَسَتْهَا حَتّٰى مَاتَتْ جُوْعًا فَدَخَلَتْ فِيْهَا النَّارَ- قَالَ فَقَالَ وَاللّٰهُ أَعْلَمُ- لَا أَنْتِ أَطْعَمْتِهَا، وَلَا سَقَيْتِهَا حِيْنَ حَبَسْتِيْهَا، وَلَا أَنْتِ أَرْسَلْتِيْهَا فَأَكَلَتْ مِنْ خَشَاشِ الْأَرْضِ ﴾ (۴)

يعنى يوې زنانه ته صرف په دې وجه باندې عذاب ورکړې شو چه هغې يوه پيشو په قيد کښې اوساتله تردې چه هغه د لوږې نه مړه شوه، چه د هغې د وجې نه هغه زنانه جهنم ته لاړه. هغې ته اوونيلې شو: تا د قيد دوران کښې په هغې نه خوراک اوکړو او نه څکاک او نه دې هغه پريخودله چه د زمکې د حشراتو نه ئې خوراک کړې وې.

ددې نه معلومه شوه چه د ځناورو ته د تکليف رسولو نه منع کړې شوې ده، بيا د ﴿المسلمون﴾

---

(۱) فضل البارى: ۳۲۵/۱

(۲) فتح البارى: ۵۳/۱

(۳) امداد البارى: ۳۲۴/۵۴۰

(۴) صحيح البخارى، کتاب المساقاة، باب فضل سقى الماء، رقم ۲۳۶۵، وکتاب بدء الخلق، باب اذا وقع الذباب فى شراب احدکم فليغمسه، الخ رقم ۳۳۱۸، وکتاب احاديث الانبياء، باب (بلا ترجمة، بعد باب حديث الغار) رقم: ۳۴۸۲

قيد ولې دې؟
د دې جواب دا دې چه د مسلمان واسطه زيات تر د مسلمانانو سره وی، شپه او ورځ د هغه اختلاط اوملاويدل دمسلمانانوسره وی،په دې وجه باندې د «المسلمون» قيد ذكر كړې شو.[1]
حاصل دا دې چه قيد، قيد احترازی نه دې، بلكه قيد واقعی دې، چونكه د يو مسلمان استوګنه، د هغه اوسيدل او د هغه معاشرت د مسلمانانو سره دې، په دې وجه د هغه ذكر اوكړې شو؛ كفارو ته د تكليف رسولو او نه رسولو متعلق په دې حديث كښې هيڅ حكم نشته او دا حديث د دې نه خاموش دې، د هغې ځائنله تفصيل دې چه د كفارو دوه قسمونه دی ذمی او حربی، كه هغه ذمی وی نو «دماؤهم كدمائنا واموالهم كاموالنا واعراضهم كاعراضنا» د اصول په وجه باندې هغوی په «المسلمون» كښې داخل دی.، اګر كه هغه حقيقتا مسلمان نه وی، خو هغه حكما په اهل اسلام كښې داخل كړې شو، ځكه چه د هغوی د دماء، اموال او اعراض د حرمت هم هغه حكم دې، كوم چه د مسلمانانو د دماء اموال او اعراض حكم دې.
د كفار اهل حرب دوه قسمونه دی: يو مصالحين د چا سره چه صلح شوې ده، دويم محاربين د چا سره چه صلح نه ده شوې، د چا سره چه صلح شوې ده هغوی سره د تعرض اجازت نشته، او د صلح مطابق به د هغوی د مالونو، دماء او د اعراضو حفاظت ذمه داری وی، لهذا هغوی به هم حكما د «المسلمون» په قيد كښې داخل وی.
پاتې شو كفار محاربين كوم چه اهل حرب دی او د هغوی سره صلح نشته نو بيشكه هغوی داسې دی چه هغوی ته به ضرر رسولې شی او هغه هم په دې وجه چه هغوی د اسلام مقابله كول او د اسلام لاره بندول پريږدی، پس هم دا به مستثنی وی او باقی نور مستثنی نه دی، هغوی به حكما په «المسلمون» كښې شامل وی.[2] پس په بل روايت كښې راځی «والمؤمن من امنه الناس على دمائهم واموالهم»[3]، دلته د «الناس» لفظ عام دې، او په دې كښې مسلمان، ذمی او حربی مصالح ټول داخل دی.
بهر حال د حديث شريف مقصد دا دې چه يو مسلمان په خپل ژوند كښې، د خپل يو قول، خپل يو عمل، په خپل څه بل څه حركت سره، په معاشره كښې دننه د نورو خلقو دپاره د تكليف باعث نه دی كيدل پكار چه هم دا ده د هغه د اسلام تعليم او د هغه د امن او سلامتۍ والا پغمبر د تربيت حكم دې.

**قوله:** «مِنْ لِسَانِهِ وَيَدِهِ»: د لسان د شر نه كنځلې، بدې ردې، لعن طعن، بهتان او غيبت وغيره مراد دی، د هر يو نه بچ كيدل واجب او ضروری دی. «من لسانه» ئې فرمائيلې

---
[1]) فتح البارى ۵۳/۱
[2]) راجع للاستزادة: فضل البارى ۳۲۵/۱، عمدة القارى ۱۳۳/۱
[3]) سنن النسائى ۲۶۶/۲، كتاب الايمان وشرائعه، باب صفة المؤمن، وجامع الترمذى، كتاب الايمان، باب ما جاء ان المسلمون من سلم المسلمون من لسانه ويده، رقم: ۲۶۲۷

دي، ﴿ من قوله ﴾ ئې نه دي فرمائيلې، ځکه چه د لسان نه تکليف رسول بغير د تلفظ او تکلم نه هم کيږي، لکه چه انسان خپله ژبه راويستلو سره خولهٔ ورانه کړه په دې سره هم تکليف رسيږي، نو د لسان لفظ ئې په دې وجه استعمال اوفرمائيلو چه په دې کښې تلفظ او قول ته هم شامل شي او د ژبې د تکليف او اذيت رسولو نور صورتونه هم پکښې داخل شي.

﴿ ويده ﴾ئې ذکر اوفرمائيلو، د لاس په شر کښې ضرب او قتل هم داخل دي، دفع او هدم هم، هم دغه شان په دې کښې کتابة بالباطل هم داخل دي.

بعض حضراتو وئيلي دي چه تکليف خو په نورو اندامونو سره هم رسولې شي، بيا د يد تخصيص ولې اوکړې شو؟

د دې وجه دا ده چه د افعالو سلطنت په لاسونو سره ظاهريږي، اخذ و بطش، وصل، قطع، منع، اعطاء دا ټول په لاس سره کيږي، يعنې اکثر او ډير افعال چونکه په لاس سره کولې شي په دې وجه ئې د هغه ذکر اوفرمائيلو، د نورو اندامونو نه احتراز مقصود نه دې.

يا داسې اووايئ چه د قبض علی مال الغير نه چونکه په يد سره تعبير کولې شي نو د قتل او ضرب وغيره سره دا نقصان کوم چه د قبض علی المال په صورت کښې کيږي. د شاملولو دپاره دلته د ﴿يد﴾ عنوان اختيار کړې شوې دې. (1)

**د تقديم لسان وجه:** دلته دا سوال کړې شوې دې چه لسان په يد باندې ولې مقدم کړې شو، پس د دې وجه دا ده چه په ژبه باندې کوم تکليف رسولې شي هغه عام هم دې او تام هم دې.
ځکه چه په لاس سره خو هغه چاته نقصان رسولې شي، کوم چه ستا مخې ته وي او عموما هم داسې کيږي، او په ژبې سره هغه انسان ته هم نقصان رسولې شي، کوم چه غير حاضر وي، دلته موجود نه وي، يا غريب فوت شوې وي، يا بالکل پيدا شوې هم نه وي چونکه د ژبې شر عام او تام دې په دې وجه وئيلي شي!

جراحات السنان لها التيام ولا يلتام ما جرح اللسان

په ژبې سره چه کوم زخم لګولې شي هغه کله هم نه جوړيږي بلکه تازه وي، او د لاسونو زخمونه د څه مودې نه پس صحيح کيږي، باقی نه پاتې کيږي. (2)

**قوله:** ﴿وَالْمُهَاجِرُ مَنْ هَجَرَ مَا نَهَى اللَّهُ عَنْهُ﴾ :دلته هم هغه صورت دې چه يا خو به الف لام د عهد دپاره اخلو او د مهاجر نه به مهاجر کامل مراد اخلو.

يا تاسو الف لام د جنس دپاره اومنئ او مطلب به دا وي چه هجرت هم هغه معتبر دې چه په هغې کښې ګناه نه وي اود مهاجر بللو مستحق هم هغه دې چه ګناه پريږدي، ځکه چه د وطن پريخودل پخپله څه مطلوب څيز نه دې، د يو وطن نه د بل وطن طرف ته هجرت کول خو هم په دې وجه باندې وې چه په مخکښې وطن کښې دننه د الله پاک په احکاماتو باندې عمل

(1) د تفصيل دپاره اوګورئ: فتح الباری: ۵٤/۱، عمدة القاری: ۱۳۲/۱، ۱۳۳
(2) عمدة القاری ۱۳۲/۱

كول ګران شوې وو، په دې وجه هغې لره پريخودلو سره بل وطن طرف ته هجرت کولې شي نو د هجرت اصل مقصد ګناه لره ترک کول دی، پس که يو سړې وطن ترک کولو سره د دار الاسلام طرف ته راغلې وی خو د ګناهونو ارتکاب هم کوی نو هغه د مهاجر بللو لائق نه دې.

بيا د ﴿ وَالْمُهَاجِرُ مَنْ هَجَرَ مَا نَهَى اللّٰهُ عَنْهُ ﴾ يو وجه دا هم بيان کړې شوې ده چه په اصل کښې مهاجرين د مکې مکرمې نه هجرت کولو سره مدينې منورې ته اورسيدل نو د انصارو د طرف نه د هغوی دپاره به د ايثار مظاهره کيدله، هغوی به خپل مالونه هم هغوی ته پيش کول او که بعض وخت به د يو انصاری څو کونډې ښځې وې نو هغه به ئې هم ورته پيش کولې او ورته به ئې وئيل چه کومه ته خوښوې، زه به ورته طلاق ورکړم. ته ورسره نکاح اوکړه. نو په دې وجه رسول الله ﷺ د خبرداری کولو دپاره چه په هجرت کښې دا څيزونه مطلوب او مقصود نه جوړول، ګينې د هجرت عمل به ضائع شی، وې فرمائيل د ګناهونو نه بچ کيدو اهتمام کوئ. په دې سره به د هجرت مقصد به هم پوره کيږی او هجرت حقيقيه به هم شامل وی.

يو خبره دا هم وه چه کله رسول الله ﷺ مکه مکرمه فتح کړه نو د مکې د فتح کولو نه پس مسلمانيدونکو ارمان او افسوس کولو چه که مونږ مخکښې اسلام قبول کړې وې نو مونږ ته به هم د هجرت فضيلت حاصل وې، کوم چه ډير اهم فضيلت وو. رسول الله ﷺ اوفرمائيل:

﴿ لولا الهجرة لكنت امراء من الانصار ﴾ [1]

که د هجرت فضيلت نه وې نو زما خواهش او ارمان به دا وو چه زه هم يو انصاری اوم خو د هجرت د فضيلت د وجې نه زه دا ارمان نه کوم. نو هغه حضرات کوم چه د فتح مکه نه پس مسلمانان شو اود هجرت شرف هغوی ته حاصل نه شو، هغوی افسوس کولو. د هغوی د تسلئ او اطمينان دپاره ئې اوفرمائيل چه حقيقی هجرت خو دا دې چه د ګناهونو نه هجرت اختيار کړې شی او د کومو څيزونو نه چه الله پاک منع کړې ده د هغې نه ځان بچ کړې شی او دا فضيلت تاسو هم حاصلولې شئ، د دې حضراتو د تسلئ او اطمينان دپاره ګويا رسول الله ﷺ دا حديث ارشاد اوفرمائيلو. [2]

**د هجرت حکم**: د هجرت يو قسم ظاهری دی او يو باطنی [3]

د ظاهری هجرت حکم دا دې چه انسان په يو دارالکفر کښې اوسيږی او هلته د اسلام حکم ادا کولو د هغه دپاره ګنجائش نشته نو د هغې دپاره هجرت کول فرض دی او که هلته د احکام اسلام په ادا کولو کښې څه خلل اندازی نه راځی نو د هغه دپاره هجرت کول فرض

---

[1]) راجع صحيح البخاری، كتاب مناقب الانصار، باب قول النبی صلی الله عليه وسلم : لولا الهجرة لكنت امراء من الانصار، رقم ۳۷۷۹، وكتاب التمنی، باب ما يجوز من اللوّ، رقم ۷۲۴۴، ۷۲۴۵، وجامع الترمذی، كتاب المناقب، باب فضل الانصار وقريش، رقم : ۳۷۹۹

[2]) فتح الباری : ۵۴/۱، وارشاد السارى ۹۴/۱

[3]) فتح الباری : ۵۴/۱

خونه دی خو غوره او مستحب بیا هم دی، ځکه چه د مسلمانانو چه په یو ځائې باندې ځومره لویه اجتماع وی، هم هغه هومره به د اسلام او اهل اسلام په حق کښې زیات مفید وی
د هجرت دویم قسم کوم چه هجرت باطنه دې، هغې ته هجرت حقیقیه هم وائی یعنی د ګناهونو نه هجرت کول، ځکه چه د دار الکفر نه چه دار الاسلام ته کوم هجرت کولې شی. دا بذات خود مقصود نه دې، دا خو د دې دپاره دې چه د ګناهونو او د احکام اسلام د ترک نه انسان بچ وی. په دې وجه هجرت من الذنوب والمعاصی، هجرت حقیقیه او هجرت باطنه دې. ظاهره ده چه دا هجرت په ټولو باندې لازم او ضروری دې. (١)

## ٢٧: باب قَوْلِ النَّبِي صلى الله عليه وسلم «لَوْتَعْلَمُونَ مَا أَعْلَمُ لَضَحِكْتُمْ قَلِيلاً، وَلَبَكَيْتُمْ كَثِيرًا»

[٦١٢٠] حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ بُكَيْرٍ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ عُقَيْلٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ سَعِيدِ بْنِ الْمُسَيَّبِ أَنَّ أَبَا هُرَيْرَةَ -رضى الله عنه- كَانَ يَقُولُ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- «لَوْتَعْلَمُونَ مَا أَعْلَمُ لَضَحِكْتُمْ قَلِيلاً، وَلَبَكَيْتُمْ كَثِيرًا». [٦٢٦١]

د سیدنا ابوهریره ﷺ نه روایت دې چه رسول الله ﷺ اوفرمائیل: که تاسو ته معلوم شی هغه څیز کوم چه ماته معلوم دې نو تاسو به ژړل ډیر او خندل به مو کم: (یعنی د الله پاک د عذابونو کوم سخت والې چه زما په مشاهده او علم کښې دی که هغه تاسو ته معلوم شی نو تاسو له به خندا نه درتلې او په کثرت سره به مو ژړل)
عُقَیل (د عین په ضمې او د قاف په فتحې سره) د هغوی د پلار نوم خالد دې.

[٦١٢١] حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ حَرْبٍ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ مُوسَى بْنِ أَنَسٍ عَنْ أَنَسٍ رضى الله عنه قَالَ قَالَ النَّبِي -صلى الله عليه وسلم- «لَوْتَعْلَمُونَ مَا أَعْلَمُ لَضَحِكْتُمْ قَلِيلاً وَلَبَكَيْتُمْ كَثِيرًا». [ر: ٤٣٤٥]

د سیدنا انس ﷺ نه روایت دې چه رسول الله ﷺ اوفرمائیل: که تاسو ته هغه څیز معلوم شی کوم چه ماته معلوم دې نو تاسو به خندل کم او ژړل به مو زیات. (٢)

---

١) د نور تفصیل دپاره اوګورئ: کشف الباری: کتاب الایمان ٦٧٧/٢
٢) قال ابن بطال: روى سنيد، عن هشيم، عن كوثر بن حكيم، عن نافع، عن ابن عمر قال: (خرج رسول الله (صلى الله عليه وسلم) إلى المسجد، فإذا قوم يتحدثون ويضحكون، قال: أكثروا ذكر الموت، أما والذى نفسى بيده لو تعلمون ما أعلم لضحكتم قليلاً ولبكيتم كثيراً). وخشية الله إنما تكون على مقدار العلم به، كما قال تعالى: (إِنَّمَا يَخْشَى اللَّهَ مِنْ عِبَادِهِ الْعُلَمَاءُ) [فاطر: ٢٨]. ولما لم يعلم أحد كعلم النبى (صلى الله عليه وسلم) لم يخش كخشيته، فمن نور الله قلبه وكشف الغطاء عن بصيرته، وعلم ما حباه الله من النعم وما يجب عليه من الطاعة والشكر، وأفكر فيما يستقبل من أهوال يوم القيامة وما يلقى العباد فى تلك المواقف من الشدائد، وما يعاينوه من مساءلة الله عباده عن مثاقيل الذر، ... [بقيه برصفحه آئنده...

ددې حديث شان ورود دا دې چه رسول الله ﷺ يوه ورځ د مسجد نبوى طرف ته او وتلو نو وې کتل چه څه خلق ناست دى او خبرې کوى او خاندى، رسول الله ﷺ اوفرمائيل مرګ په کثرت سره يادوئ قسم دې په هغه ذات چه د هغه په لاس کښې زما نفس دې! که تاسو ته هغه تکليفونه معلوم شى کوم چه ماته معلوم دى نو تاسو به خاندئ کم او ژاړئ به ډير.

## ۲۸: باب حُجِبَتِ النَّارُ بِالشَّهَوَاتِ

[۶۱۲۲] حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ قَالَ حَدَّثَنِي مَالِكٌ عَنْ أَبِي الزِّنَادِ عَنِ الْأَعْرَجِ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- قَالَ «حُجِبَتِ النَّارُ بِالشَّهَوَاتِ، وَحُجِبَتِ الْجَنَّةُ بِالْمَكَارِهِ».

د سيدنا ابوهريره رضی الله عنه نه روايت دې چه رسول الله ﷺ اوفرمائيل: دوزخ په نفسانى خواهشاتو سره پټ کړې شوې دې او جنت په مشکلاتو سره پټ کړې شوې دې.

**جهنم او خواهشات نفسانى**: جهنم په خواهشاتو او لذتونو سره پټ کړې شوې دې، شراب، زنا او نور ناجائز لذت پرستئ جهنم ته رسونکى دى، د هغې په مقابله کښې چه جنت په کومو کارونو سره حاصليږى په هغې کښې د نفس مجاهده او مشقت وى، د سيدنا ابوهريره رضی الله عنه په يو روايت کښې تفصيل راغلې دې، کوم چه امام ابوداؤد او امام ترمذى مرفوعا نقل کړې دې!

«لَمَّا خَلَقَ اللَّهُ الْجَنَّةَ وَالنَّارَ أَرْسَلَ جِبْرِيلَ إِلَى الْجَنَّةِ فَقَالَ انْظُرْ إِلَيْهَا وَإِلَى مَا أَعْدَدْتُ لِأَهْلِهَا فِيهَا قَالَ فَجَاءَهَا وَنَظَرَ إِلَيْهَا وَإِلَى مَا أَعَدَّ اللَّهُ لِأَهْلِهَا فِيهَا قَالَ فَرَجَعَ إِلَيْهِ قَالَ فَوَعِزَّتِكَ لَا يَسْمَعُ بِهَا أَحَدٌ إِلَّا دَخَلَهَا. فَأَمَرَ بِهَا فَحُفَّتْ بِالْمَكَارِهِ فَقَالَ ارْجِعْ إِلَيْهَا فَانْظُرْ إِلَى مَا أَعْدَدْتُ لِأَهْلِهَا فِيهَا قَالَ فَرَجَعَ إِلَيْهَا فَإِذَا هِيَ قَدْ حُفَّتْ بِالْمَكَارِهِ فَرَجَعَ إِلَيْهِ فَقَالَ وَعِزَّتِكَ لَقَدْ خِفْتُ أَنْ لَا يَدْخُلَهَا أَحَدٌ. قَالَ اذْهَبْ إِلَى النَّارِ فَانْظُرْ إِلَيْهَا وَإِلَى مَا أَعْدَدْتُ لِأَهْلِهَا فِيهَا. فَإِذَا هِيَ يَرْكَبُ بَعْضُهَا بَعْضًا فَرَجَعَ إِلَيْهِ فَقَالَ وَعِزَّتِكَ لَا يَسْمَعُ بِهَا أَحَدٌ فَيَدْخُلُهَا. فَأَمَرَ بِهَا فَحُفَّتْ بِالشَّهَوَاتِ فَقَالَ ارْجِعْ إِلَيْهَا. فَرَجَعَ إِلَيْهَا فَقَالَ وَعِزَّتِكَ لَقَدْ خَشِيتُ أَنْ لَا يَنْجُوَ مِنْهَا أَحَدٌ إِلَّا دَخَلَهَا»[۱]

يعنى: الله پاک چه کله جنت او جهنم پيدا اوفرمائيل نو سيدنا جبرائيل عليه السلام ئې د جنت طرف ته اوليږلو او وې فرمائيل چه هغه اووينه! هغه کتلو سره واپس راغلو او عرض ئې اوکړو:

...بقيه ازحاشيه گذشته] وعن الفتيل والقطمير كان حقيقًا بكثرة الحزن وطول البكاء، ولهذا قال أبو ذر: لو تعلمون العلم ما ساغ لكم طعام ولا شراب، ولا نمتم على الفرش، ولاجتنبتم النساء، ولخرجتم إلى الصعدات تجأرون وتبكون.

وقال عبد الله بن عمرو: ابكوا، فإن لم تجدوا بكاءً فتباكوا، فلو تعلمون العلم لصلى أحدكم حتى ينكسر ظهره، ولبكى حتى ينقطع صوته. وقال الفضيل: بلغنى عن طلحة أنه ضحک يومًا فوثب على نفسه، وقال: فيم تضحک، إنما يضحک من قطع الصراط. ثم قال: آليت على نفسى ألا أكون ضاحكًا حتى أعلم متى تقع الواقعة، فلم ير ضاحكًا حتى صار إلى الله. (وانظر شرح ابن بطال: ۱۹۵/۱۰)

[۱]) فتح البارى: ۳۷۹/۱۱، سنن الترمذى ۶۹۳/۴ (اسناده صحيح)

ستا په عزت مې دې قسم وى چه د دې متعلق څو چه څوک هم اورى هغه به دې ته داخليږى، د دې نه پس الله پاک اوفرمائيل چه دا په مجاهدات او د مشقت په کارونو باندې پټ کړې شى، الله پاک هغه ته دوباره د هغې د کتلو حکم اوفرمائيلو، دې کرت چه کله هغه کتلو سره راواپس شو نو عرض ئې اوکړو ستا په عزت مې دې قسم وى زما ويره دې چه دې ته به څوک هم داخل نه شى، د دې نه پس ورته الله پاک د جهنم د کتلو حکم اوکړو. جهنم کتلو سره چه کله هغوى واپس راغلل نو عرض ئې اوکړو: ستا په عزت مې دې قسم وى! د دې متعلق چه څوک هم اورى دې ته به نه داخليږى، الله پاک جهنم لره په شهواتو او خوندونو سره د پټولو حکم اوکړو، بيا ئې هغوى ته دوباره د هغې د کتلو حکم اوفرمائيلو، اوس چه کله هغه کتلو سره راغلو نو عرض ئې اوکړو، ستا په عزت مې دې قسم وى چه ما سره ويره ده چه څوک به هم د دې نه بچ نه شى.

## ۲۹: باب «الْجَنَّةُ أَقْرَبُ إِلَى أَحَدِكُمْ مِنْ شِرَاكِ نَعْلِهِ، وَالنَّارُ مِثْلُ ذَلِكَ»

[۶۱۲۳] حَدَّثَنِي مُوسَى بْنُ مَسْعُودٍ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ مَنْصُورٍ وَالأَعْمَشِ عَنْ أَبِي وَائِلٍ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ - رضى الله عنه - قَالَ قَالَ النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - «الْجَنَّةُ أَقْرَبُ إِلَى أَحَدِكُمْ مِنْ شِرَاكِ نَعْلِهِ، وَالنَّارُ مِثْلُ ذَلِكَ».

د سيدنا عبدالله بن عمر رضي الله عنهما نه روايت دې چه رسول الله ﷺ اوفرمائيل : جنت ستاسو د پيزار د تسمې نه هم زيات نزدې دې او هم دغه شان دوزخ هم.

**جنت د يو قدم په فاصله باندې** : مقصد دا دې چه د الله پاک اطاعت اوکړې شى نو جنت نزدې دې او که د هغه نافرمانى اوکړې شى نو جهنم نزدې دې، علامه ابن الجوزى رحمه الله فرمائى چه د حديث معنى دا ده چه د نيت تصحيح کولو سره که طاعت اختيار کړې نو د جنت ملاويدل اسان دى، او د نفسانى خواهش موافقت کولو سره که نافرمانى اختيار کړې شى نو په جهنم کښې غورځيدل اسان دى. (۱)

[۶۱۲۴] حَدَّثَنِي مُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنَّى حَدَّثَنَا غُنْدَرٌ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ عَبْدِ الْمَلِكِ بْنِ عُمَيْرٍ عَنْ أَبِي سَلَمَةَ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ - صلى الله عليه وسلم - قَالَ «أَصْدَقُ بَيْتٍ قَالَهُ الشَّاعِرُ أَلاَ كُلُّ شَىْءٍ مَا خَلاَ اللَّهَ بَاطِلُ». [ر: ۳۶۲۸]

د سيدنا ابوهريره رضي الله عنه نه روايت دې چه رسول الله ﷺ اوفرمائيل : د ټولو نه رشتينې شعر کوم چه شاعر وئيلې دې دا دې : ﴿الا كل شئ ما خلا الله باطل﴾ خبردار! د الله پاک نه سوا ټول څيزونه بې بنياد دى.

د غندر نوم محمد بن جعفر دې.

**د ترجمة الباب سره د حديث مناسبت** : په روايت کښې وئيلې شوې دى چه د الله پاک نه سوا

(۱) فتح البارى ۱۱/۳۹۰

هر یو څیز باطل دې، علامه عینی رحمه الله فرمائی چه د دنیا هر هغه کار کوم چه د الله پاک د طاعت او قرب ذریعه جوړه نه شی هغه باطل دې او په هغې کښې مشغول اوسیدل. خپل ځان لره د جنت نه لرې کول دی، حال دا چه جنت د پیزار د تسمې نه هم زیات نزدې دې او د الله پاک د طاعت په کارونو باندې مشغولیدل، د جهنم نه د لرې والی ذریعه ده. هغه جهنم چه د پیزار د تسمې نه هم انسان ته زیات نزدې دې ..... علامه عینی رحمه الله د دې مناسبت بیانولو نه پس لیکلې دی: ﴿ انه من الفیض الالهی وقع فی خاطری ﴾ یعنې دا مناسبت الهامی دې. کوم چه د الله پاک په فضل او عنایت سره زما په زړه کښې راغلو. (۱)

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی چه د دې دویم حدیث مناسبت ښکاره نه دې. بیا ئې مناسبت بیانولو سره فرمائیلې دی چه په ترجمة الباب او اول حدیث کښې د دې خبرې ترغیب ورکړې شوې دې چه طاعت اختیار کړې شی او د معصیت نه ځان بچ کړې شی. په دې کښې دا خبره په فهم کښې راځی چه کوم سړې طاعت نه اختیاروی هغه به د څه دنیاوی کار د وجې نه وی او د دنیا هر کار فانی او باطل دې لکه چه په دې حدیث کښې دی. لهٰذا د عقل تقاضا دا ده چه فانی ته په باقی باندې ترجیح ورکړې شی، پس حافظ ابن حجر رحمه الله لیکی:

﴿ مناسبة هذا الحديث الثاني للترجمة خفية وكأن الترجمة لما تضمنت ما في الحديث الأول من التحريض على الطاعة ولو قلت والزجر عن المعصية ولو قلت فيفهم أن من خالف ذلك انما يخالفه لرغبة في أمر من أمور الدنيا وكل ما في الدنيا باطل كما صرح به الحديث الثاني فلا ينبغي للعاقل أن يؤثر الفاني على الباق ﴾ (۲)

## ۳۰: باب لِيَنْظُرْ إِلَى مَنْ هُوَ أَسْفَلَ مِنْهُ وَلاَ يَنْظُرْ إِلَى مَنْ هُوَ فَوْقَهُ.

[۶۱۲۵] حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ قَالَ حَدَّثَنِي مَالِكٌ عَنْ أَبِي الزِّنَادِ عَنِ الأَعْرَجِ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ عَنْ رَسُولِ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - قَالَ: «إِذَا نَظَرَ أَحَدُكُمْ إِلَى مَنْ فُضِّلَ عَلَيْهِ فِي الْمَالِ وَالْخَلْقِ، فَلْيَنْظُرْ إِلَى مَنْ هُوَ أَسْفَلَ مِنْهُ».

د سیدنا ابوهریره رضی الله عنه نه روایت دې چه رسول الله صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل: چه کله په تاسو کښې څوک یو داسې سړې اووینی کوم چه په مال او شکل او صورت کښې د هغه نه زیات دې نو هغه ورله دیو داسې انسان په خیال کښې راوستل پکاردی کوم چه دهغه نه دکمې درجې وی. د اعرج نوم عبد الرحمن بن هرمز دې، او د ابو الزناد نوم عبد الله بن ذکوان دې.

**یو ایمان روښانه کونکې اصول**: په دې باب کښې امام بخاری رحمه الله د ژوند یو مومنانه اصول بیان کړې دې چه د مال او دولت په سلسله کښې انسان لره د خپل ځان نه کم تر ته کتل پکار دی. د خپل ځان نه اوچت ته نظر نه دی کول پکار ځکه چه دنیوی اعتبار سره د خپل ځان نه کم تر ته ګوری نو په خپل حال باندې به ئې د شکر جذبه پیدا کیږی او که د برتر طرف ته

---

(۱) عمدة القاری ۱۲۰/۲۳، وارشاد الساری ۴۸۶/۱۲، ۴۸۷

(۲) فتح الباری ۳۹۱/۱۱، هم دغه شان اوګورئ: ارشاد الساری ۴۸۷/۱۳

ګوري نو په دنياوي حرص او هوس کښې به ئې اضافه کيږي او د شکر طرف ته به ئې توجه نه وي، دا دنيا د بې وسئ او غريبئ د واقعاتو نه ډکه ده او ډير غريبانان به هم د ځان نه زيات غريبانان لټوي، نو هغه ته به ملاؤ شي.
خو دين او د الله پاک د اطاعت په سلسله کښې معامله د دې برعکس کيدل پکار دي چه انسان د خپل ځان نه د برتر طرف ته نظر اوکړي نو د هغه په ورع او تقوی او شوق عبادت کښې به د اضافې ذريعه جوړيږي، او خپل ديني حالت ئې که غوره دې نو په هغې باندې به ئې عجب نه پيدا کيږي.
پس د عمرو بن شعيب نه يو مرفوع حديث منقول دې، په هغې کښې دي!
﴿خَصْلَتَانِ مَنْ كَانَتَا فِيهِ كَتَبَهُ اللهُ شَاكِرًا صَابِرًا مَنْ نَظَرَ فِي دُنْيَاهُ إِلَى مَنْ هُوَ دُونَهُ فَحَمِدَ اللهَ عَلَى مَا فَضَّلَهُ بِهِ عَلَيْهِ، وَمَنْ نَظَرَ فِي دِينِهِ إِلَى مَنْ هُوَ فَوْقَهُ فَاقْتَدَى بِهِ﴾ (۱)
يعني: دوه خصلتونه چه په کوم سړي کښې وي، هغه به الله پاک شاکر او صابر اوليکي، يو دا چه سړې په دنيا کښې د ځان نه کم تر ته ګوري او د الله پاک شکر کوي چه الله پاک هغه ته په هغه کم تر باندې فوقيت ورکړو، دويم دا چه انسان په خپل دين کښې د خپل ځان نه اوچت ته اوګوري نو د هغه اتباع به کوي.
علامه ابن بطال رحمه الله د بخاري شريف د حديث الباب په شرح کښې ليکي:
﴿وهذا حديث جامع لمعاني الخير، وذلك أن العبد لا يكون بحال من عبادة ربه مجتهدًا فيها؛ إلا وجد من هو فوقه في ذلك، فمتى طلب نفسه باللحاق بمن هو فوقه استقصر حاله التي هو عليها، فهو أبدًا في زيادة تقربه من ربه، ولا يكون على حالة خسيسة من دنياه إلا وجد من أهلها من هو أخس منه حالا، فإذا تأمل ذلك وتفكره وتبين نعم الله عليه؛ علم أنها وصلت إليه ولم تصل إلى كثير من خلقه، فضله الله بها من غير أمر أوجب ذلك له على خالقه، ألزم نفسه من الشكر عليها أن وفق لها ما يعظم به اغتباطه في معاده﴾ (۲)

## ۳۱: بَابُ مَنْ هَمَّ بِحَسَنَةٍ أَوْ بِسَيِّئَةٍ

[۶۱۲۶] حَدَّثَنَا أَبُو مَعْمَرٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَارِثِ حَدَّثَنَا جَعْدٌ أَبُو عُثْمَانَ حَدَّثَنَا أَبُو رَجَاءٍ الْعُطَارِدِيُّ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ -رضي الله عنهما- عَنِ النَّبِيِّ -صلى الله عليه وسلم- فِيمَا يَرْوِي عَنْ رَبِّهِ عَزَّ وَجَلَّ قَالَ قَالَ «إِنَّ اللَّهَ كَتَبَ الْحَسَنَاتِ وَالسَّيِّئَاتِ، ثُمَّ بَيَّنَ ذَلِكَ فَمَنْ هَمَّ بِحَسَنَةٍ فَلَمْ يَعْمَلْهَا كَتَبَهَا اللَّهُ لَهُ عِنْدَهُ حَسَنَةً كَامِلَةً، فَإِنْ هُوَ هَمَّ بِهَا فَعَمِلَهَا كَتَبَهَا اللَّهُ لَهُ عِنْدَهُ عَشْرَ

---

(۱) ارشاد الساري ۴۸۷/۱۳، سنن الترمذي، كتاب صفة القيامة، باب: ۶۶۵/۴، رقم الحديث ۲۵۱۲، ولفظه: خصلتان من كانتا فيه كتبه الله شاكرا صابرا ومن لم تكونا فيه لم يكتبه الله شاكرا ولا صابرا من نظر في دينه إلى من هو فوقه فاقتدى به ونظر في دنياه إلى من هو دونه فحمدالله على ما فضله به عليه كتبه الله شاكرا صابرا
(۲) شرح ابن بطال: ۱۹۹/۱۰

حَسَنَاتٍ إِلَى سَبْعِمِائَةِ ضِعْفٍ إِلَى أَضْعَافٍ كَثِيرَةٍ، وَمَنْ هَمَّ بِسَيِّئَةٍ فَلَمْ يَعْمَلْهَا كَتَبَهَا اللّٰهُ لَهُ عِنْدَهُ حَسَنَةً كَامِلَةً، فَإِنْ هُوَ هَمَّ بِهَا فَعَمِلَهَا كَتَبَهَا اللّٰهُ لَهُ سَيِّئَةً وَاحِدَةً». [ر: ٧٠٦٢]

د سيدنا ابن عباس رضي الله عنهما نه روايت دې چه رسول الله ﷺ په يو حديث قدسي کښې اوفرمائيل الله پاک نيکئ او ګناهونه مقدر کړې دی او بيا ئې هغه واضح کړې دی، پس چا چه د نيکئ اراده اوکړه خو په هغې باندې ئې عمل اونکړې شو نو الله پاک د هغه دپاره د يو مکمل نيکئ بدله اوليکله، او که هغه د ارادې نه پس په هغې باندې عمل هم اوکړی نو الله پاک خان سره د هغه دپاره د لس چندو نه تر اووه سوه چندو پورې نيکئ ليکی او د دې نه هم زياتولو سره او چا چه د بدئ اراده اوکړه بيا ئې په هغې باندې عمل اونکړو نو الله پاک د هغه دپاره د خان سره يو نيکی ليکلې ده او که هغه د ارادې نه پس په هغې باندې عمل هم اوکړو نو د هغه دپاره ئې خان سره يو بدی اوليکله.

**د قصد او ارادې پنځه مراحل :** په دې باب کښې امام بخاری رحمه الله د نيکئ او د ګناه قصه او د ارادې حکم بيان فرمائيلې دې، حضرات علماء کرامو د قصد او ارادې پنځه مراتب بيان کړې دی، د هغې نه صرف آخری مرتبه د جمهور علماء کرامو په نزد قابل مواخذه ده، په باقی صورتونو باندې مواخذه نشته.

① هاجس : دا د قصد او ارادې اوله درجه ده، چه د يوې ګناه او د الله پاک د معصيت خيال ئې بې اختياره په زړه او دماغ کښې راشی، دې ته هاجس وائی، او د هوا د چپې په شان د راتلونکو داسې خيالاتو باندې مواخذه نشته.

② خاطر : چه د يوې بدئ خيال ئې په زړه کښې ځائې اونيسی او قرار حاصل کړی چه د هغې د وجې نه ئې خلجانی کيفيت پيدا شی، خو په دې خيال باندې عمل کولو، او د نه کولو متعلق څۀ اراده پيدا نه شی، په دې باندې هم څه مواخذه نشته.

③ حديث النفس : دا د قصد او ارادې دريمه درجه ده، چه په زړه کښې خيال ځائې اونيسی او د عمل کولو او نه کولو طرف ته هم توجه پيدا شی خو د تردد د وجې نه د عمل يا ترک طرف ته ميلان پيدا نه شو او هغه خيال ختم شو.

④ هم : دا د قصد او ارادې څلورمه درجه ده چه په زړه کښې خيال راتلو سره قرار اونيسی او په هغې باندې د عمل دپاره ميلان هم پيدا شی، خو په دې ميلان کښې لا کلک والې نه وی. دا مرحله هم قابل مواخذه نه ده.

⑤ عزم : دا پنځمه مرحله ده، په دې کښې په زړه کښې راتلونکې خيال صرف قرار نه نيسی بلکه په هغې باندې د عمل کولو کلک عزم او اراده موندلې شی. دا صورت د جمهور علماء کرامو په نزد قابل مواخذه دې. (1)

چا دا پنځه مراتب په دې شعر کښې بيان کړې دی.

---

[1]) فتح البارى : ٣٩٨/١١، وفتح الملهم، كتاب الايمان، باب اذا هم العبد بحسنه كتبت واذا هم بسيئة لم تكتب : ٩٤/٢، والتعليق الصبيح، كتاب الايمان : ٥٩/١

مراتب القصد خمس : هاجس ذکر فخاطر، فحدیث النفس فاستمعا
یلیه هم ، فعزم ، کلها رفعت سوی الأخیر ففیه الاخذ قد وقعا [1]

د قصد او ارادې چه کوم صورت قابل مواخذه دی، هغه د عزم والا صورت دی، چه په هغې کښې په څه بد خیال او معصیت باندې د تیاریدلو دومره کلکه اراده اوکړې شی چه که څه خارجی مانع نه وی او اسباب او ذرائع برابر شی نو هغه یقینی طور عملی صورت اختیار کړی او په هغې باندې عمل اوکړی.
دا صورت قابل مواخذه دې، خو د دې مواخذې نوعیت به عملی طور د کیدونکې گناه نه کم وی، دا گناه د ارادې ده د عمل نه ده. دا د جمهور علماء کرامو مسلک دې، قاضی عیاض رحمه الله دې ته د فقهاء، محدثین او جمهور سلف مسلک وئیلې دی. [2]
په دې د صحیح بخاری د یو حدیث نه اشکال کیدې شی چه د هغې الفاظ دا دی:
«إِنَّ اللَّهَ تَجَاوَزَ عَنْ أُمَّتِي مَا حَدَّثَتْ بِهِ أَنْفُسَهَا مَا لَمْ تَعْمَلْ، أَوْ تَتَكَلَّمْ بِهِ» [3]
یعنی : الله پاک زما د امت په زړونو کښې پیدا کیدونکې وسوسې معاف کړې دی مگر دا چه هغوی په دې باندې عمل اوکړی یا هغه په ژبه باندې راولی.
هم دغه شان په صحیح مسلم کښې د سیدنا ابوهریره رضی الله عنه روایت دې چه رسول الله صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل: «إِنَّ اللَّهَ تَجَاوَزَ لِأُمَّتِي مَا حَدَّثَتْ بِهِ أَنْفُسَهَا مَا لَمْ يَتَكَلَّمُوا أَوْ يَعْمَلُوا بِهِ» [4]
یعنی : الله پاک په زړونو کښې پیدا کیدونکی خیالات او وساوس معاف کړی دی، مگر دا چه هغه په ژبه باندې راوستلې شی یا په هغې باندې عمل اوکړې شی.
په صحیح مسلم کښې یو بل روایت دې، په هغې کښې دی:
«إِذَا هَمَّ عَبْدِي بِسَيِّئَةٍ فَلَا تَكْتُبُوهَا عَلَيْهِ فَإِنْ عَمِلَهَا فَاكْتُبُوهَا سَيِّئَةً» [5]
یعنی : صرف د گناه په اراده باندې زما د بنده گناه مه لیکئ، که هغه اراده ئې په عمل کښې راغله نو بیا یو گناه لیکئ.
د دې احادیثو د ظاهر نه استدلال کولو سره ډیر زیات علماء کرام فرمائی چه ترڅو پورې فعل صادر نه شی نو صرف د خیال او عزم د وجې نه مواخذه نه وی، امام مارزی رحمه الله دې ته د اکثر فقهاء کرامو رحمهم الله مسلک وئیلې دی. [6]
کوم حضرات چه په عزم سیئة باندې د مواخذې قائل دی هغوی دا احادیث په هغه صورتونو

[1] وفتح الملهم، کتاب الایمان، باب اذا هم العبد بحسنه کتبت، واذ هم بسیئة لم تکتب، ۹۵/۲
[2] شرح مسلم للنووی، کتاب الایمان ۳۳۰/۱
[3] صحیح البخاری، کتاب العتق، باب الخطاء والنسیان فی العتاقة والطلاق ۳٤۳/۱
[4] صحیح مسلم، کتاب الایمان، باب تجاوز الله من حدیث النفس، ۳۲۷/۱، رقم ۳۲۷
[5] صحیح مسلم، کتاب الایمان، باب اذا هم العبد بحسنه ... ۳۲۹/۱، رقم ۲۳۰
[6] اوگورئ شرح صحیح مسلم للنووی، کتاب الایمان ۳۳۰/۱

باندې محمول کوی چه کله عزم نه وی، صرف په زړه کښې خیال راشی. امام ابوبکر باقلانی هم دا مسلک اختیار کړې دې
امام نووی رحمه الله هم دې مسلک ته حسن وئیلې دې. هغوی فرمائی چه د زړه په عزم باندې د مواخذې کیدل د نصوص شرعیه نه ثابت دی مثلا په آیت کریمه کښې دی ﴿إِنَّ الَّذِينَ يُحِبُّونَ أَنْ تَشِيعَ الْفَاحِشَةُ فِي الَّذِينَ آمَنُوا لَهُمْ عَذَابٌ أَلِيمٌ﴾ [1]، هم دغه شان په یو بل آیت کریمه کښې دی ﴿اجْتَنِبُوا كَثِيرًا مِنَ الظَّنِّ إِنَّ بَعْضَ الظَّنِّ إِثْمٌ﴾ [2]، بدګمانی، حسد، تکبر، د یو مومن د زړه نه سپکاوې. هغه ټولې روحانی بیمارئ دې چه د هغې تعلق د زړه سره دې او د هغې په مواخذې باندې د علماء کرامو اجماع دہ [3]
د بعض احادیثو نه هم صراحتا معلومیږی چه د ګناه که چا عزم اوکړو نو په هغې باندې مواخذه دہ.

**تعارض روایات او د هغې حل**: امام احمد رحمه الله د ابوکبشه انماری رضی الله عنه نه یو مرفوع روایت نقل کړې دې چه په هغې کښې دی، دنیا د څلورو کسانو دپاره دہ. په هغې کښې دی:

﴿وَعَبْدٌ رَزَقَهُ اللهُ مَالًا وَلَمْ يَرْزُقْهُ عِلْمًا، فَهُوَ يَخْبِطُ فِي مَالِهِ بِغَيْرِ عِلْمٍ، لَا يَتَّقِي فِيهِ رَبَّهُ، وَلَا يَصِلُ فِيهِ رَحِمَهُ، وَلَا يَعْلَمُ لِلَّهِ فِيهِ حَقَّهُ، فَهَذَا بِأَخْبَثِ الْمَنَازِلِ قَالَ: وَعَبْدٌ لَمْ يَرْزُقْهُ اللهُ مَالًا، وَلَا عِلْمًا فَهُوَ يَقُولُ: لَوْ كَانَ لِي مَالٌ لَعَمِلْتُ بِعَمَلِ فُلَانٍ، قَالَ: هِيَ نِيَّتُهُ، فَوِزْرُهُمَا فِيهِ سَوَاءٌ﴾ [4]

یعنی: کوم بنده ته چه الله پاک مال ورکړو، خو علم ئې ورنکړو. او هغه په خپل مال کښې بغیر د علم نه داسې تصرف کوی چه د هغې په باره کښې د الله پاک نه نۀ ویریږی. نه هغه په صله رحمئ کښې خرچ کوی او نه په هغې کښې د الله پاک څه حق ګڼړی نو دې په بدترین درجه کښې دې او هغه سړې چه هغه ته الله پاک نه مال ورکړو او نه علم. خو د هغه خواهش وی چه که د هغه سره مال وې نو هغه به هم د هغه نه مخکښې سړی په شان په هغه مال کښې تصرف کولې نو د دواړو ګناهونه برابر دی.

په دې حدیث او حدیث الباب کښې په ظاهره تعارض دې، حافظ ابن حجر رحمه الله د دې حل هم دا راویستلې دې چه د مسند احمد دا حدیث دې په عزم باندې محمول کړې شی. پس هغه لیکی: ﴿الجمع بين الحديثين بالتنزيل على حالتين فتحمل الحالة الأولى على من هم بالمعصية هما مجردا من غير تصميم والحالة الثانية على من صمم على ذلك وأصر عليه وهو موافق لما ذهب إليه الباقلاني﴾ [5]

یعنی: په دې دواړو احادیثو کښې د تطبیق صورت دا دې چه دا دې په دوه حالتونو باندې

[1] سورة النور: ۱۹
[2] سورة الحجرات: ۱۲
[3] د ذکر شوي تفصیل دپاره اوګورئ: شرح مسلم للنووی، کتاب الایمان ۱/ ۳٤۰
[4] مسند الامام احمد: ٤/ ۲۳۱
[5] فتح الباری: ۱۱/ ۳۲۵

محمول کړې شي، اول حالت دې په هغه چا باندې محمول کړې شي کوم چه د ګناه اراده کوي خو هغه اراده مصمم او کلکه نه وي او دويم حالت دې په هغه سړي باندې محمول کړې شي چه د ګناه عزم مصمم اوکړي، لکه چه د باقلاني رحمه الله مذهب دې.

هم دغه شان يو مشهور حديث دې: ﴿إِذَا الْتَقَى الْمُسْلِمَانِ بِسَيْفَيْهِمَا فَالْقَاتِلُ وَالْمَقْتُولُ فِي النَّارِ، فَقُلْتُ: يَا رَسُولَ اللّٰهِ هٰذَا الْقَاتِلُ فَمَا بَالُ الْمَقْتُولِ قَالَ إِنَّهُ كَانَ حَرِيصًا عَلَى قَتْلِ صَاحِبِهِ﴾ (١)

يعني: چه کله دوه مسلمانان توريې اخستلو سره د يو بل مخې ته راشي (او يو قتل شي) نو قاتل او مقتول به دواړه جهنميان وي. چا عرض اوکړو: دا خو قاتل دې، خو د مقتول څه قصور؟ رسول الله ﷺ اوفرمائيل: هغه هم د دې قاتل د قتل کولو سخت خواهش مند وو.

د دې حديث نه هم د ګناه په عزم کولو باندې د مواخذې صراحت معلوميږي.

**د علامه شبير احمد عثماني رحمه الله تحقيق**: خو علامه شبير احمد عثماني رحمه الله د ابو کبشه انماري رضي الله عنه او د نورو نصوصو په باره کښې فرمائي چه په دې کښې د عزم او مراتب قصد ذکر نشته، بلکه دا په حقيقت کښې اخلاقي بيمارئ دی او دا بيل څيز دې. حضرت ليکي:

﴿قلت: حديث ابي كبشة الانماري ليس من باب العزم في شئ حتى يستدل به من يقول بالمواخذة بالعزم، فان مدلول حديث ابي كبشة، انما هو التحسر على فوات معصية الله، وفقدان اسبابها، وهذا من الكيفيات النفسانية التي تلحق بالملكات، كالحسد، والعجب، والنفاق، والكبر، وغيرها وكذلك حب شيوع الفاحشة، واساءة الظن بالله، وبالمؤمنين ليس من مراتب القصد، بل هما من جنس الاخلاق الذميمة والملكات الرديئة التي يؤاخذ بها العبد بالاتفاق، فيظهر على هذا ركاكة الاحتجاج بقوله عزوجل: إِنَّ الَّذِينَ يُحِبُّونَ أَنْ تَشِيعَ الْفَاحِشَةُ وقوله: اجْتَنِبُوا كَثِيرًا مِنَ الظَّنِّ ... على المواخذة بالعزم﴾ (٢)

يعني: زما خيال دې چه د ابو کبشه انماري رضي الله عنه د حديث تعلق د عزم سره نه دې چه په هغې سره په عزم باندې په مواخذه کولو باندې استدلال اوکړې شي، بلکه د دې حديث مدلول او مفهوم دا دې چه هغه سړې کوم چه د الله پاک په نافرمانئ نه کيدو او د معصيت په وسائلو او اسباب نه موجود کيدو باندې افسوس او حسرت کوي او دا د کيفيات نفسانيه سره تعلق ساتي، کوم چه بد اخلاق مثلاً: حسد، عجب، نفاق او تکبر وغيره په حکم کښې دې، هم دغه شان د بې حيايئ د خورولو خواهش او د الله پاک او د مومنانو متعلق بدګماني هم د قصد د مراتبو نهٔ دی، بلکه دا د اخلاق ذميمه او د بدو ملکاتو د جنس نه دی، چه په هغې باندې بالاتفاق د انسان مواخذه کولې شي، ددې تفصيل نه دا خبره واضح او ظاهر شوه چه په عزم باندې د مواخذې په سلسله کښې په آيت کريمه ﴿إِنَّ الَّذِينَ يُحِبُّونَ أَنْ تَشِيعَ الْفَاحِشَةُ﴾ او آيت کريمه ﴿اجْتَنِبُوا كَثِيرًا مِنَ الظَّنِّ﴾ باندې استدلال کول څومره ضعيف او بې ځايه دې.

---

(١) فتح الملهم: ٩٤/٢

(٢) فتح الملهم: كتاب الايمان: ٩٤/٢

**د عزم دوه قسمونه : فائده** : بعض حضراتو د عزم دوه قسمونه بيان کړی دی :

① يو هغه چه د هغې تعلق صرف د زړه سره دې او د اندامونو او جوارح نه د هغې ظهور نه کيږي، لکه شک، حسد او بغض وغيره.

② دويم هغه چه د هغې تعلق د جوارح سره دې، مثلا زنا، غلا وغيره..... د علماء کرامو ذکر شوې اختلاف په دې دويم قسم کښې دې، يعنی يو سړی د داسې بدئ د زړه نه اراده اوکړه چه د هغې تعلق د اندامونو سره دې مثلاً غلا، زنا وغيره نو د هغه به مواخذه کولې شی يا نه؟ د بعض علماء کرامو په نزد چه ترڅو پورې عملی شکل اختيار نه کړی، مواخذه به نه وی. اګر چه هغه د هغه بدئ د ارتکاب عزم او کلکه اراده ولې نه وی کړې. او اکثر علماء کرام فرمائی چه د کلکې ارادې کولو په صورت کښې به مواخذه وی. (۱)

## ۳۲: بَاب مَا يُتَّقَى مِنْ مُحَقَّرَاتِ الذُّنُوبِ

**ګناه معمولی نه دی ګنړل پکار**: ګناهونه واړهٔ او معمولی نه دی ګنړل پکار، امام بخاری رحمه الله په دې باب کښې د دې خبرې طرف ته توجه پيدا کړې ده چه ګناهونه واړهٔ نه دی ګنړل پکار، دغه شان د انسان په زړه کښې د ګناهونو سخت والې او بدی ختمه شی او انسان د لوئې لوئې ګناهونو سره عادت شی، رسول الله ﷺ سيده عائشه رضی الله عنها ته فرمائيلې وو ﴿ يَا عَائِشَةُ، إِيَّاكِ وَمُحَقَّرَاتِ الذُّنُوبِ، فَإِنَّ لَهَا مِنَ اللهِ عَزَّ وَجَلَّ طَالِبًا ﴾ (۲) يعنی اې عائشه! کوم ګناهونه چه واړهٔ ګنړلې شی د هغې نه هم ځان بچ کوه، ځکه چه د الله پاک د طرف نه به د دې تپوس کيږی.

[۶۱۲۷] حَدَّثَنَا أَبُو الْوَلِيدِ حَدَّثَنَا مَهْدِيٌّ عَنْ غَيْلَانَ عَنْ أَنَسٍ -رضي الله عنه- قَالَ إِنَّكُمْ لَتَعْمَلُونَ أَعْمَالًا هِيَ أَدَقُّ فِي أَعْيُنِكُمْ مِنَ الشَّعَرِ، إِنْ كُنَّا نَعُدُّهَا عَلَى عَهْدِ النَّبِيِّ -صلى الله عليه وسلم- الْمُوبِقَاتِ، قَالَ أَبُو عَبْدِ اللهِ يَعْنِي بِذَلِكَ الْمُهْلِكَاتِ.

د سيدنا انس رضی الله عنه نه روايت دې چه تاسو ډير اعمال کوئ او هغه ستاسو په نظر کښې د ويښتهٔ نه هم زيات معمولی وی، حال دا چه مونږ به هغه د رسول الله ﷺ په زمانه کښې موبقات ګنړل.

ابو عبد الله يعنی امام بخاری رحمه الله فرمائی چه د موبقات نه مراد دې : هلاکونکې ګناهونه.

د مهدی نه مهدی بن ميمون مراد دې، د غيلان نه غيلان بن جرير مراد دې، علامه قسطلانی رحمه الله فرمائی چه حافظ ابن حجر په هدی الساری مقدمة د فتح الباری کښې د دې وضاحت کړې دې (۳) اګر چه په فتح الباری کښې هغوی غيلان بن جامع ليکلې دې خو د مقدمې والا قول صحيح دې. (۴)

---

(۱) فتح الملهم کتاب الايمان : ۹۵/۲
(۲) فتح الباری : ۴۰۰/۱۱
(۳) هدی الساری، الفصل السابع : ۴۹۰
(۴) ارشاد الساری ۴۹۰/۱۳



خو حافظ ابن جرير رحمه الله په فتح البارى کښې غيلان بن جرير ليکلې دې [1] ممکنه ده چه قسطلاني سره کومه نسخه وى په هغې کښې ابن جامع ليکلې شوې وى!

علامه عينى رحمه الله ليکى : ﴿ وكانت الصحابة يعدون الصغائر من الموبقات لشدة خشيتهم لله ولم تكن لهم كبائر والمحقرات إذا كثرت صارت كبائر للإصرار عليها ﴾ [2]

يعنى : حضرات صحابه رضی الله عنهم به د الله پاک د ويرې د وجې نه وارۀ ګناهونه هم مهلک ګڼل، لوئې ګناهونه خو د هغوى وو هم نه، د وړو ګناهونو هم چه کله کثرت شى نو هغه لوئې ګناهونه جوړيږى.

## ۳۳: باب الأعمال بالخواتيم وما يخاف منها

**د اعمال دارومدار په خاتمه باندې دې** : د اعمال دارو مدار په خاتمه باندې دې، د انسان د خاتمې په وخت د هغه عمل څنګه وو؟ د هغې مطابق به فيصله کولې شى يو سړې ټول عمر په ګناهونو او د الله پاک په نافرمانئ کښې اخته وو، خو په آخر عمر کښې ورته الله پاک د توبې او د خير توفيق ورکړو او د هغه خاتمه بالخير اوشوه، نو هغه يو کامياب او بامراده انسان دې، د هغې برعکس يو بل سړې ټول عمر د الله پاک په اطاعت کښې مصروف پاتې شو، خو په آخر کښې هغه د څه وجې نه په ګناهونو کښې اخته شو او د هغه خاتمه په خير سره اونشوه نو دا ناکام او نامراد شو، په دې وجه انسان له د خپلې خاتمې په باره کښې ډير فکرمند اوسيدل پکار دى او د بدې خاتمې نه ويريدل پکار دى ځکه چه اصل اعتبار د خاتمې دې، امام بخارى رحمه الله په دې باب سره، د دې حقيقت طرف ته توجه پيدا کړې ده.

کوم سړى سره چه د خپلې خاتمې او عاقبت فکر وى، هغه به د خپلو اعمالو په باره کښې په عجب او خود پسندئ کښې نه اخته کيږى.

[٦١٢٨] حَدَّثَنَا عَلِي بْنُ عَيَّاشٍ حَدَّثَنَا أَبُو غَسَّانَ قَالَ حَدَّثَنِي أَبُو حَازِمٍ عَنْ سَهْلِ بْنِ سَعْدٍ السَّاعِدِيِّ قَالَ نَظَرَ النَّبِيُّ صلى الله عليه وسلم - إِلَى رَجُلٍ يُقَاتِلُ الْمُشْرِكِينَ، وَكَانَ مِنْ أَعْظَمِ الْمُسْلِمِينَ غَنَاءً عَنْهُمْ فَقَالَ «مَنْ أَحَبَّ أَنْ يَنْظُرَ إِلَى رَجُلٍ مِنْ أَهْلِ النَّارِ فَلْيَنْظُرْ إِلَى هَذَا». فَتَبِعَهُ رَجُلٌ فَلَمْ يَزَلْ عَلَى ذَلِكَ حَتَّى جُرِحَ، فَاسْتَعْجَلَ الْمَوْتَ. فَقَالَ بِذُبَابَةِ سَيْفِهِ، فَوَضَعَهُ بَيْنَ ثَدْيَيْهِ، فَتَحَامَلَ عَلَيْهِ، حَتَّى خَرَجَ مِنْ بَيْنِ كَتِفَيْهِ. فَقَالَ النَّبِيُّ صلى الله عليه وسلم «إِنَّ الْعَبْدَ لَيَعْمَلُ فِيمَا يَرَى النَّاسُ عَمَلَ أَهْلِ الْجَنَّةِ، وَإِنَّهُ لَمِنْ أَهْلِ النَّارِ وَيَعْمَلُ فِيمَا يَرَى النَّاسُ عَمَلَ أَهْلِ النَّارِ وَهُوَ مِنْ أَهْلِ الْجَنَّةِ ، وَإِنَّمَا الأَعْمَالُ بِخَوَاتِيمِهَا» [ر: ٢٧٤٢]

د سيدنا سهل بن سعد الساعدى رضی الله عنه نه روايت دې چه رسول الله صلی الله علیه وسلم يو سړې اوليدو کوم

[1] ) اوګورئ : فتح البارى ۱۱/۴۰۰

[2] ) عمدة القارى : ۲۳/۱۲۳

چه د مشرکانو سره په جنګ کښې مصروف وو. دا سړې د مسلمانانو په صاحب مال و دولت خلقو کښې وو. رسول الله ﷺ اوفرمائیل چه که څوک غواړی چه یو جهنمي ویني نو دا سړې دې ویني. په دې باندې یو سړې شاته شو هغه سړې مسلسل جنګیدلو او آخر زخمي شو. بیا هغه اوغوښتل چه زر مړ شی پس د خپلې تورې په سوکه باندې ئې خپله سینه کیخودله او په هغې باندې ئې خان ور واچولو او توره د هغه اوګو لره شلولو سره بهر اوتله.
رسول الله ﷺ اوفرمائیل: ډیر کرته بنده د خلقو په نظر کښې د اهل جنت کار کوی حال دا چه هغه د اهل جهنم نه وی. یو بل بنده د خلقو په نظر کښې د اهل جهنم کار کوی حال دا چه هغه جنتی وی (ځکه چه د ژوند په آخری حصه کښې صالح شی). او د اعمالو اعتبار خو په خاتمه باندې دې
د ابوغستان نوم محمد بن مطرف دې.

﴿ دبابة ﴾: د تورې سوکه. دا حدیث په کتاب الجهاد ﴿ باب لا يقال فلان شهيد ﴾ د لاندې تیر شوې دې په حدیث شریف کښې چه د کوم سړی ذکر دې د هغه نوم قزمان (بضم القاف) وو.

## ۳۴: بَابُ الْعُزْلَةُ رَاحَةٌ مِنْ خُلَّاطِ السُّوءِ

﴿ عزلة ﴾ (بضم العين وسکون الزاء) خلوت او یواځې والی ته وائی.

﴿ خلاط ﴾: د خلیط جمع ده. د خلیط جمع خلطاء هم راځی. علامه عینی رحمه الله فرمائی چه دا مصدر هم کیدې شی. د خلیط نه مراد دوست او ملګرې دې. ﴿ سوُ ﴾ (د سین په فتحې سره) بد.[1]

د امام بخاری رحمه الله مقصد دا دې چه په خلوت او یواځې والی کښې د بدو ملګرو او غلط قسم خلقو د صحبت نه محفوظ وی

امام حاکم رحمه الله د ابوذر رضی الله عنه نه روایت نقل کړې دې ﴿ الْوَحْدَةُ خَيْرٌ مِنْ جَلِيسِ السُّوْءِ ﴾[2] یعنی یواځې والی د بد ملګری نه غوره دې.
د ترجمة الباب چه کوم الفاظ دی: دا د سیدنا عمر رضی الله عنه نه منقول دی، کوم چه ابن ابی شیبة موصولا ذکر کړې دی.[3]

**د خلوت فوائد**: د خلوت اختیارولو ډیر فائدې دی، انسان د بد صحبت نه او د خلقو د غیبت نه محفوظ وی. خلوت اختیارونکې د خلقو د شر نه او خلق د هغه د تکلیف نه محفوظ وی. د عبادت دپاره په اطمینان سره وخت ملاؤ شی او د لغو او فضول خبرو نه بچ وی. د جنید بغدادی رحمه الله قول مشهور دې:

---

[1]) فتح الباري: ۴۰۲/۱۱، وعمدة القاري: ۱۲۵/۲۲
[2]) فتح الباري: ۴۰۲/۱۱، مستدرک الامام الحاکم، کتاب معرفة الصحابة: ۳۸۷/۳، رقم الحدیث: ۵۴۶۶
[3]) فتح الباري: ۴۰۲/۱۱

﴿ مكابدة العزلة ايسر من مدارة الخلطة ﴾[1] يعنى د خلوت اختيارولو مشقت. د خلقو د اختلاط د مدارات په مقابله كښې آسان دې
پس په حديث الباب كښې د مجاهد نه پس د ټولو نه افضل هغه سړې ته ونيلې شوې دې كوم چه د خلقو نه بيل اوسيدو سره د الله پاك په عبادت او بندګئ كښې مشغول وى
**خلوت افضل دې كه اختلاط؟** خلوت اختيارول غوره دى كه د خلقو سره اختلاط او يوځائې اوسيدل... په دې سلسله كښې تفصيل دا دې چه كه خلقو سره اوسيدو باندې د هغوى په تكليفونو باندې صبر نه شى كولې او د خپل تكليف نه نور مسلمانان نه شى بچ كولې نو د هغه دپاره عزلت او خلوت اختيارول غوره دى.
خو كه يو سړې په خلقو كښې اوسيدو سره د خپل دين حفاظت كولې شى. نو په داسې صورت كښې اختلاط افضل دې، ځكه چه د رسول الله ﷺ او اكثر صحابه كرامو رضی الله عنهم ژوند د خلوت اختيارولو نه وو بلكه په خلقو كښې اوسيدلو سره به ئې د خپل او هغوى د دين حفاظت فرمائيلو. دعوت او تبليغ او درس تدريس او د دين د ځو شعبو خدمت خانله اوسيدو سره نه شى كيدې.
اصل كښې د انسانانو د مزاج فرق وى بعض خلق زر خفه كيدونكى وى. د بعض خلقو په مزاج كښې انفعاليت ډير زيات وى او هغوى دهرې واقعې او معمولي خبرې نه د حد نه زيات متاثر كيږى. د دې برعكس د څه خلقو په مزاج كښې صبر او تحمل ډير زيات وى. او د واقعاتو او حوادثو نه د حد نه زيات اثر نه قبلوى. خلوت اختيارول او د اختلاط افضليت به هم د هرسړى د مزاج په اعتبارسره وى. بنيادى څيزد خپل دين حفاظت دې. د كوم سړى دين چه په كوم حالت كښې محفوظ كيدې شى، د هغه دپاره هم هغه حالت افضل او غوره دې
په حديث باب كښې چه د خلوت اختيارولو كوم فضيلت دې دا على الاطلاق نه دې. بلكه د هغه سړى دپاره دې چه د هغه د دين حفاظت په خلوت اختيارولو سره ممكن وى [2] په عام حالاتو كښې اختلاط افضل دې، په يو روايت كښې دى!
﴿ الْمُسْلِمُ إِذَا كَانَ يُخَالِطُ النَّاسَ وَيَصْبِرُ عَلَى أَذَاهُمْ خَيْرٌ مِنَ الْمُسْلِمِ الَّذِى لَا يُخَالِطُ النَّاسَ وَلَا يَصْبِرُ عَلَى أَذَاهُمْ ﴾[3]
يعنى : هغه مسلمان كوم چه د خلقو سره يوځائې اوسيږى او د هغوى په تكليف باندې صبر كوى هغه غوره دې. د هغه مسلمان په مقابله كښې چه د خلقو سره نه اوسيږى او نه د خلقو په تكليف وركولو باندې صبر كوى.
[٦١٢٩] حَدَّثَنَا أَبُو الْيَمَانِ أَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِىِّ قَالَ حَدَّثَنِى عَطَاءُ بْنُ يَزِيدَ أَنَّ أَبَا سَعِيدٍ حَدَّثَهُ قَالَ قِيلَ يَا رَسُولَ اللَّهِ. وَقَالَ مُحَمَّدُ بْنُ يُوسُفَ حَدَّثَنَا الأَوْزَاعِىُّ حَدَّثَنَا الزُّهْرِىُّ عَنْ عَطَاءِ بْنِ يَزِيدَ اللَّيْثِىِّ عَنْ أَبِى سَعِيدٍ الْخُدْرِىِّ قَالَ جَاءَ أَعْرَابِىٌّ إِلَى النَّبِىِّ - صلى الله

[1] ) فتح البارى ۴۰۲/۱۱. ارشاد السارى : ۴۹۴/۱۳
[2] ) راجع للتفصيل : فتح البارى : ۴۰۴/۱۱
[3] ) عمدة القارى : ۱۲۵/۲۳

عليه وسلم - فَقَالَ يَا رَسُولَ اللهِ أَيُّ النَّاسِ خَيْرٌ قَالَ «رَجُلٌ جَاهَدَ بِنَفْسِهِ وَمَالِهِ، وَرَجُلٌ فِي شِعْبٍ مِنَ الشِّعَابِ يَعْبُدُ رَبَّهُ، وَيَدَعُ النَّاسَ مِنْ شَرِّهِ».

تَابَعَهُ الزُّبَيْدِيُّ وَسُلَيْمَانُ بْنُ كَثِيرٍ وَالنُّعْمَانُ عَنِ الزُّهْرِيِّ.

وَقَالَ مَعْمَرٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ عَطَاءٍ أَوْ عُبَيْدِ اللَّهِ عَنْ أَبِي سَعِيدٍ عَنِ النَّبِيِّ - صلى الله عليه وسلم - . وَقَالَ يُونُسُ وَابْنُ مُسَافِرٍ وَيَحْيَى بْنُ سَعِيدٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ عَطَاءٍ عَنْ بَعْضِ أَصْحَابِ النَّبِيِّ - صلى الله عليه وسلم - عَنِ النَّبِيِّ - صلى الله عليه وسلم - . [ر: ٢٦٣٤]

د سيدنا ابوسعيد خدری رضي الله عنه نه روايت دې چه يو بانډچی د رسول الله ﷺ په خدمت کښې حاضر شو، او تپوس ئې اوکړو يا رسول الله ﷺ! کوم سړې د ټولو نه غوره دې؟ وې فرمائيل : هغه سړې چا چه د خپل نفس او مال په ذريعه جهاد اوکړو او هغه سړې کوم چه په يوه دره کښې د خپل رب بندګی کوی او خلق د خپل شر نه محفوظ ساتی.

**د سند وضاحت:** په سند کښې تحويل دې، د تحويل نه په وړاندې روايت کښې د ﴿ قيل يا رسول الله ﴾ الفاظ دی، د سوال کونکی ذکر نشته او د تحويل نه پس د محمد بن يوسف فريابی په روايت کښې ﴿ قَالَ جَاءَ أَعْرَابِيٌّ إِلَى النَّبِيِّ صلى الله عليه وسلم فَقَالَ يَا رَسُولَ الله ﴾ الفاظ دی. په دې کښې د سوال کونکی ذکر نشته، چه يو بانډچی د رسول الله ﷺ په خدمت کښې حاضر شو. حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی چه د هغه نوم معلوم نه شو. (١)

**قوله:** ﴿ وَرَجُلٌ فِي شِعْبٍ مِنَ الشِّعَابِ ﴾: ﴿ شعب ﴾ (د شين په کسرې سره او د عين په سکون سره) درې او کندې ته وائی، شعب د هغې جمع ده.

**قوله:** ﴿ وَيَدَعُ النَّاسَ مِنْ شَرِّهِ ﴾: خلق د خپل شر د وجې نه پرېږدی، يعنی د خپل اذيت د وجې نه د خلقو نه بيل اوسيږی، او هغوی د خپل شر نه محفوظ کړی، د ﴿ ودع يدع ﴾ معنی د پرېخودلو راځی. علامه ابن اثير رحمه الله ليکلې دی چه د دې ماضی او مصدر نه استعماليږی. (٢)

**قوله:** ﴿ تَابَعَهُ الزُّبَيْدِيُّ وَسُلَيْمَانُ بْنُ كَثِيرٍ وَالنُّعْمَانُ، عَنِ الزُّهْرِيِّ ﴾: يعنی د شعيب بن ابی جمرة متابعت دې درې واړو راويانو کړې دې، د محمد بن الوليد زبيدی متابعت امام مسلم، د سليمان بن کثير روايت امام ابوداؤد، د نعمان بن راشد متابعت امام احمد موصولا نقل کړې دی. (٣)

---

(١) فتح الباري : ٤٠٣/١١

(٢) النهاية : ٨٣٤/٢

(٣) ارشاد الساری ٤٩٣/١٣

قوله: ﴿وَقَالَ مَعْمَرٌ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ عَطَاءٍ، أَوْ عُبَيْدِ اللهِ، عَنْ أَبِي سَعِيدٍ، عَنِ النَّبِيِّ صلى الله عليه وسلم﴾: د معمر بن راشد هغه تعليق امام احمد رحمه الله موصولا نقل كړي دي، په دې كښې د امام احمد رحمه الله شک پيدا شو چه زهري د عطاء بن يزيد نه نقل كړې دې كه د عبيد الله بن عبد الله بن عقبة نه. [1]

قوله: ﴿وَقَالَ يُونُسُ، وَابْنُ مُسَافِرٍ وَيَحْيَى بْنُ سَعِيدٍ، عَنِ ابْنِ شِهَابٍ، عَنْ عَطَاءٍ عَنْ بَعْضِ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صلى الله عليه وسلم، عَنِ النَّبِيِّ صلى الله عليه وسلم﴾: د يونس بن يزيد تعليق امام ذهلي رحمه الله په زهريات كښې د ابو عبد الرحمن بن خالد بن مسافر تعليق هم امام ذهلي په زهريات كښې او د يحيى بن سعيد تعليق هم امام ذهلي رحمه الله موصولا نقل كړې دې. [2]

خو دې درې واړو د صحابي نوم نه دې اخستلې بلكه ﴿من بعض اصحاب النبي صلى الله عليه وسلم﴾ ئې وئيلي دي.

علامه كرماني رحمه الله فرمائي چه كيدې شي د بعض اصحاب نه مراد هم دا سيدنا ابو سعيد خدري رضي الله عنه مراد دې. [3]

[۶۱۳۰] حَدَّثَنَا أَبُو نُعَيْمٍ حَدَّثَنَا الْمَاجِشُونُ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ أَبِي صَعْصَعَةَ عَنْ أَبِيهِ عَنْ أَبِي سَعِيدٍ أَنَّهُ سَمِعَهُ يَقُولُ سَمِعْتُ النَّبِيَّ - صلى الله عليه وسلم - يَقُولُ «يَأْتِي عَلَى النَّاسِ زَمَانٌ خَيْرُ مَالِ الرَّجُلِ الْمُسْلِمِ الْغَنَمُ، يَتْبَعُ بِهَا شَعَفَ الْجِبَالِ وَمَوَاقِعَ الْقَطْرِ، يَفِرُّ بِدِينِهِ مِنَ الْفِتَنِ». [ر: ۱۹]

سيدنا ابو سعيد خدري رضي الله عنه فرمايي چه ما د رسول الله صلى الله عليه وسلم نه واوريدل چه په خلقو باندې به يو داسې دور راشي چه د يو مسلمان به غوره مال ګډې بيزې وي، هغه به هغې سره د غرونو څوكو او د بارانونو وريدو ځايونو ته لاړ شي، هغه به د خپل دين د حفاظت دپاره د فتنو نه تيخته اختيار وي.

قوله: ﴿يَأْتِي عَلَى النَّاسِ زَمَانٌ﴾: په دې كښې ئې اشاره اوكړه چه خلوت اختيارول او د خلقو نه د بيلتون دا فضيلت به په آخري زمانه كښې وي، ځكه چه د رسول الله صلى الله عليه وسلم په زمانه كښې خو جهاد مطلوب وو او جهاد د خلوت اختيارولو سره نه شي كيدې. [4]

---

[1] ارشاد الساري ۱۳/۴۹۳

[2] ارشاد الساري ۱۳/۴۹۳

[3] راجع: شرح الكرماني للبخاري: ۲۳/۱۶

[4] ارشاد الساري ۱۳/۴۹۳

قوله: ﴿شَعَفُ الْجِبَالِ﴾: د غرونو سوكې، دا د شعفة جمع ده
قوله: ﴿مواقع القطر﴾: د باران مواقع. مراد د دې نه ميداني علاقې دي. ﴿يَفِرُّ بِدِينِهِ مِنَ الْفِتَنِ﴾ يعني هغه به د خپل دين د حفاظت دپاره د خلقو نه د تيختې لاره اختياروی علامه عيني رحمه الله ليكي

﴿ وفيه أن اعتزال الناس عند ظهور الفتن والهرب عنهم أسلم للدين من مخالطتهم ﴾ [1]
يعني د فتنو د ظاهريدلو په زمانه كښې د خلقو نه بيل اوسيدل د دين دپاره ډير د سلامتۍ باعث دي. هغوی سره د يو ځائې اوسيدو په مقابله كښې.
ابن بطال د سيدنا حسن رضي الله عنه يو مرفوع روايت نقل كړې دې هغوی ليكی

﴿ وذكر علي بن معبد عن عبد الله بن المبارك عن مبارك بن فضالة، عن الحسن يرفعه إلى رسول الله (صلى الله عليه وسلم) قال: (يأتي على الناس زمان لا يسلم لذي دين دينه، إلا من فر بدينه من شاهق إلى شاهق وحجر إلى حجر، فإذا كان كذلك لم تنل المعيشة إلا بمعصية الله، فإذا كان كذلك حلت العزلة، قالوا: يا رسول الله، كيف تحل العزلة وأنت تأمرنا بالتزويج؟ قال: إذا كان كذلك كان هلاك الرجل على يدي أبويه، فإن لم يكن له أبوان كان هلاكه على يدي زوجته، فإن لم تكن له زوجة كان هلاكه على يدي ولده، فإن لم يكن له ولد كان هلاكه على يدي القرابات والجيران. قالوا: وكيف ذلك يا رسول الله؟ قال: يعيرونه بضيق المعيشة ويكلفونه ما لا يطيق، فعند ذلك يورد نفسه الموارد التي يهلك فيها ﴾ [2]
يعني: رسول الله ﷺ اوفرمائيل چه په خلقو باندې به يو داسې زمانه راشي چه دين دار به د غرونو څوكو ته تختيدلو سره د خپل دين حفاظت كوی. په داسې صورت كښې به خلوت اختيارول جائز وی. خلقو تپوس اوكړو يا رسول الله ﷺ! خلوت اختيارول څنګه جائز دی، تاسو خو مونږ ته د ودونو حكم راكوئ؟ رسول الله ﷺ اوفرمائيل چه كله داسې صورت حال وی نو انسان به د خپل مور پلار د لاسه هلاكيږی. كه د هغه مور او پلار نه وی نو د خپلې ښځې د لاسه به تباه كيږی. كه ښځه ئې نه وی نو د خپل ځوئی په لاس به هلاكيږی. او كه ځوئې ئې نه وی نو د خپلو رشته دارو او ګاونډيانو د لاسه به بربادیږی.
خلقو تپوس اوكړو. هغه څنګه؟ رسول الله ﷺ اوفرمائيل چه خلق به هغه ته پيغور وركوی. په غريبئ او بې وسئ باندې به ئې شرموی او هغه به د داسې څيزونو مكلف كوی كوم چه به د هغه د طاقت نه بهر وی نو هغه به د هغوی مطالبات او خواهشات پوره كولو دپاره خپل ځان په هلاكت كښې واچوی
مطلب دا دې چه د هغه دا رشته دار به هغه ته د غريبئ او بې وسئ پيغور وركوی او هغه به مجبوروی چه هغه مال او دولت او سامان د عيش او عشرت په هره طريقې سره برابر كړی او

[1] عمدة القاري: ٢٣/١٢٧، ٢٠/٢٠٤
[2] شرح ابن بطال: ١٠/٢٠٤

هغه به د هغوی د مطالباتو پوره کولو دپاره په ناجائز طریقو سره د مال او دولت په گټلو کښې اولگی او دغه شان به د خپل دین د بربادئ ذریعه جوړه شی.

## ۳۵: باب رَفْعِ الأَمَانَةِ

**د ترجمة الباب مقصد** څنگه څنگه قیامت رانزدې شی او د خیر القرون نه لرې والې پیدا شی، ډیر فتنې به پیدا شی او دیانت او امانت به د خلقو نه ختم شی. امام بخاری رحمه الله په دې باب کښې د رفع امانت یعنی د امانت د اوچتیدلو تذکره کړې ده

[۶۱۳۱] حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ سِنَانٍ حَدَّثَنَا فُلَيْحُ بْنُ سُلَيْمَانَ حَدَّثَنَا هِلَالُ بْنُ عَلِيٍّ عَنْ عَطَاءِ بْنِ يَسَارٍ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ - رضى الله عنه - قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - «إِذَا ضُيِّعَتِ الأَمَانَةُ فَانْتَظِرِ السَّاعَةَ». قَالَ كَيْفَ إِضَاعَتُهَا يَا رَسُولَ اللَّهِ قَالَ «إِذَا أُسْنِدَ الأَمْرُ إِلَى غَيْرِ أَهْلِهِ، فَانْتَظِرِ السَّاعَةَ». [ر: ۵۹]

د سیدنا ابوهریره رضی الله عنه نه روایت دې چه رسول الله ﷺ اوفرمائیل: چه کله (د خلقو نه) امانت ضائع شی نو د قیامت انتظار کوه. تپوس اوشو: یارسول الله ﷺ! امانت به څنگه ضائع کېږی؟ وې فرمائیل: چه کله معامله نااهل خلقو ته اوسپارلې شی نو بیا د قیامت انتظار کوئ.

دا حدیث د کتاب العلم په شروع کښې تیر شوې دې، په دې حدیث کښې د ذکر کړې شوې امانت نه یا خو د امانت عام مفهوم مراد دې کوم چه د خیانت ضد دې او یا د دې نه د امانت هغه مفهوم مراد دې چه د هغې ذکر د قرآن کریم په آیت کریمه ﴿إِنَّا عَرَضْنَا الْأَمَانَةَ عَلَى السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ﴾(۱) کښې دی، د دې تفصیل د وړاندې حدیث نه لاندې راروان دې

**قوله:** ﴿إِذَا وُسِّدَ الْأَمْرُ إِلَى غَيْرِ أَهْلِهِ﴾: په دې کښې د امر نه مراد خلافت، امارة، قضاء وغیره دی، کوم چه د دین متعلق امور دی (۲) مقصد دا دې چه معاملات به نااهله خلقو ته حواله کړې شی او منصبونه به هغوی ته راشی نو هغوی به د خپلې نااهلئ د وجې نه په هغې کښې خیانت کوی، ایمانی تقاضې به د خپو لاندې کوی. نو دا به د قرب قیامت علامت وی. پس د بخاری شارح، ابن بطال رحمه الله یو روایت نقل فرمائی چه رسول الله ﷺ اوفرمائیل:

﴿سيأتي على الناس سنوات خداعات يصدق فيها الكاذب، ويكذب فيها الصادق، ويؤتمن فيها الخائن، ويخون فيها الأمين، وينطق الرويبضة. قيل: وما الرويبضة؟ قال: الرجل التافه في أمر العامة﴾

یعنی په خلقو باندې به یو داسې زمانه راشی چه په هغې کښې به دهوکه ورکول ډیر عام شی، په هغې کښې به د دروغژن تصدیق کولې شی او د رشتینې انسان به تکذیب کولې شی، خیانت کونکی سره به امانت کیخودلې شی او چا سره چه امانت کیخودلې شی هغه به خیانت کوی او رویبضه به خبرې کوی. تپوس اوکړې شو: رویبضه څوک دې؟ رسول الله ﷺ

---

(۱) الاحزاب: ۷۲

(۲) ارشاد السارى ۱۳/۴۹۴

اوفرمائيل سپک انسان يعنى د عام خلقو په معاملاتو کښې به يو معمولى سړې هم د خپلې رائې اظهار کوى
علامه ابن بطال رحمه الله فرمائى چه په دې کښې اکثر علامات مونږ اوليدل او کوم چه ښکاره شوې نه دى هغه هم زيات لرې نه دى. (۱)

[۶۱۳۲] (۲)حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ كَثِيرٍ أَخْبَرَنَا سُفْيَانُ حَدَّثَنَا الأَعْمَشُ عَنْ زَيْدِ بْنِ وَهْبٍ حَدَّثَنَا حُذَيْفَةُ قَالَ حَدَّثَنَا رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- حَدِيثَيْنِ رَأَيْتُ أَحَدَهُمَا وَأَنَا أَنْتَظِرُ الآخَرَ، حَدَّثَنَا «أَنَّ الأَمَانَةَ نَزَلَتْ فِي جَذْرِ قُلُوبِ الرِّجَالِ، ثُمَّ عَلِمُوا مِنَ الْقُرْآنِ، ثُمَّ عَلِمُوا مِنَ السُّنَّةِ» . وَحَدَّثَنَا عَنْ رَفْعِهَا قَالَ «يَنَامُ الرَّجُلُ النَّوْمَةَ فَتُقْبَضُ الأَمَانَةُ مِنْ قَلْبِهِ، فَيَظَلُّ أَثَرُهَا مِثْلَ أَثَرِ الْوَكْتِ، ثُمَّ يَنَامُ النَّوْمَةَ فَتُقْبَضُ فَيَبْقَى أَثَرُهَا مِثْلَ الْمَجْلِ، كَجَمْرٍ دَحْرَجْتَهُ عَلَى رِجْلِكَ فَنَفِطَ، فَتَرَاهُ مُنْتَبِرًا، وَلَيْسَ فِيهِ شَيْءٌ، فَيُصْبِحُ النَّاسُ يَتَبَايَعُونَ فَلاَ يَكَادُ أَحَدٌ يُؤَدِّي الأَمَانَةَ، فَيُقَالُ إِنَّ فِي بَنِي فُلاَنٍ رَجُلاً أَمِينًا. وَيُقَالُ لِلرَّجُلِ مَا أَعْقَلَهُ وَمَا أَظْرَفَهُ وَمَا أَجْلَدَهُ. وَمَا فِي قَلْبِهِ مِثْقَالُ حَبَّةِ خَرْدَلٍ مِنْ إِيمَانٍ،
وَلَقَدْ أَتَى عَلَىَّ زَمَانٌ وَمَا أُبَالِي أَيَّكُمْ بَايَعْتُ لَئِنْ كَانَ مُسْلِمًا رَدَّهُ الإِسْلاَمُ، وَإِنْ كَانَ نَصْرَانِيًّا رَدَّهُ عَلَىَّ سَاعِيهِ، فَأَمَّا الْيَوْمَ فَمَا كُنْتُ أُبَايِعُ إِلاَّ فُلاَنًا وَفُلاَنًا».
قَالَ الْفِرَبْرِيُّ قَالَ أَبُو جَعْفَرٍ حَدَّثْتُ أَبَا عَبْدِ اللَّهِ فَقَالَ سَمِعْتُ أَحْمَدَ بْنَ عَاصِمٍ يَقُولُ سَمِعْتُ أَبَا عُبَيْدٍ يَقُولُ قَالَ الأَصْمَعِيُّ وَأَبُو عَمْرٍو وَغَيْرُهُمَا جَذْرُ قُلُوبِ الرِّجَالِ الْجَذْرُ الأَصْلُ مِنْ كُلِّ شَيْءٍ، وَالْوَكْتُ أَثَرُ الشَّيْءِ الْيَسِيرِ مِنْهُ، وَالْمَجْلُ أَثَرُ الْعَمَلِ فِي الْكَفِّ إِذَا غَلُظَ. [۶۶۷۵، ۶۸۴۸]

د سيدنا حذيفه بن اليمان رضى الله عنه نه روايت دې چه مونږ ته رسول الله صلى الله عليه وسلم دوه احاديث بيان اوفرمائيل يو خو مې ليدلې دې او د دويم منتظر يم. رسول الله صلى الله عليه وسلم مونږ ته اوفرمائيل: امانت د خلقو د زړونو ژور والى ته كوز كړې شو، بيا هغوى هغې لره د قرآن كريم نه اوپيژندلو. بيا ئې د سنت نه اوپيژندلو او رسول الله صلى الله عليه وسلم د هغې د اوچتيدلو متعلق ارشاد اوفرمائيلو. چه انسان به يو كرت اوده شى او (هم په دې كښې به) امانت به د هغه د زړه نه ختم شى، او د هغې اثر به د پولۍ په شان باقى پاتې شى، لكه چه د اور سكروټه ستاسو په خپه راشى او د هغې د وجې نه خپه پولۍ شى. تاسو به هغه پړسيدلې وينۍ حال دا چه دننه

---

(۱) شرح ابن بطال: ۲۰۵/۱۰

(۲) اخرجه البخارى فى كتاب الرقاق، باب رفع الامانة (الحديث ۶۴۹۷)، واخرجه ايضا فى كتاب الفتن، باب: اذا بقى فى حثالة من الناس (الحديث: ۷۰۸۶)، واخرجه ايضا فى كتاب الاعتصام بالكتاب والسنة، باب الاقتداء بسنن رسول الله صلى الله عليه وسلم (الحديث ۷۰۸۶) مختصرا، واخرجه الترمذى فى كتاب الفتن، باب ما جاء فى رفع الامانة (الحديث: ۲۱۷۹) وقال: هذا حديث حسن صحيح، واخرجه ابن ماجة فى كتاب الفتن، باب ذهاب الامانة، (الحديث: ۴۰۵۳)

هیڅ څیز نه وی، حال به دا شی چه سحر به خلق پاسیدو سره اخستل خرڅول کوی او یو سړی به هم امانت دار نه وی، او به وئیلې شی چه په فلانی خیلو کښې یو امانت دار سړې دې، د یو سړی متعلق به اووئیلې شی چه څومره عقل مند دې، څومره اوچتې حوصلې والا دې او څومره بهادر دې!!... حال دا چه د هغه په زړه کښې به د اوری د دانې برابر هم ایمان (امانت) نه وی. ما یو داسې وخت هم تیر کړې دې چه د هغې پرواه نه کوم چه د چا سره اخستل خرڅول کوم، که هغه به مسلمان وو نو هغه به اسلام (د بې انصافئ نه) منع کولو، او که هغه به نصرانی وو، نو د هغه مددګار به هغه منع کولو، خو اوس زه د فلانی او فلانی نه سوا چا سره هم اخستل او خرڅول نه کوم.

**قوله: ﴿حَدَّثَنَا رَسُولُ اللهِ صلى الله عليه وسلم حَدِيثَيْنِ رَأَيْتُ أَحَدَهُمَا وَأَنَا أَنْتَظِرُ الْآخَرَ﴾**: سیدنا حذیفه رضی الله عنه فرمائې چه رسول الله ﷺ ماته دوه احادیث بیان کړل، یو خو ما اولیدو او د دویم انتظار کوم، اول حدیث دې ﴿أَنَّ الْأَمَانَةَ نَزَلَتْ فِي جَذْرِ قُلُوبِ الرِّجَالِ﴾ او دویم حدیث دې ﴿ثُمَّ يَنَامُ النَّوْمَةَ فَتُقْبَضُ﴾

**قوله: ﴿أَنَّ الْأَمَانَةَ نَزَلَتْ فِي جَذْرِ قُلُوبِ الرِّجَالِ ثُمَّ عَلِمُوا مِنَ الْقُرْآنِ ثُمَّ عَلِمُوا مِنَ السُّنَّةِ﴾**: امانت د خلقو د زړونو تل ته کوز شو، بیا خلقو هغه د قرآن کریم نه زده کړو، بیا ئې د سنت نه زده کړو، د جذر معنی د جرړې ده.

**د امانت نه څه مراد دې؟**: په دې کښې د امانت نه یا خو د هغې مشهور معنی مراد ده، یعنی د چا په حق او ملکیت کښې خیانت نه کول او یا د دې نه مراد هغه امانت دې کوم چه د سورة احزاب په آیت کریمه ﴿إِنَّا عَرَضْنَا الْأَمَانَةَ﴾ کښې راغلې دې، یعنی هغه ټولې شرعی ذمه دارئ کومې چه په هر مکلف باندې عائد کړې شوې دی، او کوم عهد او میثاق چه د هغه نه اخستلې شوې دې.[1]

علامه شبیر احمد عثمانی رحمه الله د دې آیت کریمه د لاندې لیکی!

اصل دا ده چه الله پاک خپل یو خاص امانت د مخلوق په یونوع کښې د کیخودلو اراده چه څوک دې امانت له که غواړی نو په خپل سعی او کسب او طاقت سره دې محفوظ کړی او ترقی دې ورکړی. چه په دې سلسله کښې د الله پاک د هر قسم شئون او صفاتو ظهور اوشی. مثلا د دې نوع کوم افراد چه امانت پوره طریقې سره محفوظ کړی او د دین په ترقئ کښې په هغوی باندې انعام او اکرام اوکړې شی. کوم چه په غفلت او شرارت سره ضائع کړی، هغوی ته دې سزا ورکړې شی او کوم خلق چه دې باره کښې لږه کوتاهی کوی، هغوی سره دې د عفو او بخښنې کولو معامله اوکړې شی.

زما د خیال مطابق دا د ایمان او امانت یو تخم دې کوم چه د بنی ادم په زړونو کښې شیندلې

[1] ) فتح الملهم، کتاب الایمان، باب رفع الامانة من بعض القلوب، ۱۰۹/۲، ومرقاة المفاتیح، کتاب الفتن. ۶/۱۰

شوي دي. کوم ته چه ﴿ مابه التكليف ﴾ وئيلي شي. ﴿لا ايمان لمن لا امانة له﴾ يعني (په کوم سړي کښې چه د امانت صفت نه وی، د هغه ايمان کامل نه دی) هم د هغې په خيال ساتلو سره د ايمان اونه راخيژی. ګويا د بنی ادم زړونه د الله پاک زمکې دی، تخم ئې هم په هغې کښې اچولي دي، د باران کولو دپاره د رحمت اوريځې هم هغه راليږلي دی چه د هوی د سينو نه د الله پاک د وحی باران اوشو. [۱]

په انسان فرض دی چه د ايمان دا تخم کوم چه د الله پاک امانت دې ضائع نه کړی. بلکه پوره په سعی او کوشش سره دې د هغې ساتنه کوی. چرته داسې اونشی چه چرته د غلطئ يا غفلت په څائې د اونې راختلو تخم هم ختم شی هم د دې طرف ته اشاره ده. د سيدنا حذيفه رضي الله عنه په دې حديث کښې ﴿ أَنَّ الْأَمَانَةَ نَزَلَتْ فِي جَذْرِ قُلُوبِ الرِّجَالِ ثُمَّ عَلِمُوا مِنَ الْقُرْآنِ ﴾ دا امانت هم د هدايت تخم دې کوم چه د الله پاک د طرف نه د خلقو په زړونو کښې اچولي شوي دې. بيا د قرآن او سنت د علومو باران اوشو چه د هغې نه که صحيح طريقې سره انتفاع اوکړې شی نو د ايمان بوټې رالوئې شی، او انسان ته د هغې د خوږې ميوې نه د خوند اخستلو موقع ملاؤ شی. که په انتفاع کښې کوتاهی اوکړې شی نو هم د دې اونې په رالوئيدو کښې به نقصان راشی يا بالکل غفلت اوکړې شی نو د سره به ټول تخم برباد شی. دا امانت وو کوم چه الله پاک زمکې اسمان او غرونو ته اوښودلو. خو په چا کښې استعداد وو چه د دې عظيم امانت د اوچتولو حوصله ئې کړې وې، هر يو په خپل حال يا خپل قول سره د ناقابل برداشت ذمه داريانو نه ويريدلو سره انکار اوکړو چه مونږ دا بار نه شو اوچتولې. خپله سوچ اوکړه چه سوا د انسان نه کوم مخلوق دې کوم چه په خپل کسب او محنت سره د دې ايمان د تخم حفاظت او پالنه کولو سره د ايمان ميوه داره اونه حاصله کړې شی. په حقيقت کښې د عظيم الشان امانت حق ادا کول او يو افت وهلې زمکه چه په هغې کښې مالک تخم کرلې وو. سخت محنت کولو سره باغ او بهار جوړول هم د دې ظلوم او جهول انسان حصه کيدې شی، چاسره چه قابله زمکه موجود ده او محنت کولو سره د يو څيز د لويولو قدرت الله پاک هغه ته ورکړې دې.

ظلوم او جهول د ظالم او جاهل مبالغه ده. ظالم او جاهل هغه چاته وائی چه بالفعل د عدل او علم نه خالي وی خو د دې صفاتو د حصول استعداد او صلاحيت لری. پس کوم مخلوق چه د فطرت د ابتداء نه په عدل او انصاف سره متصف دی او د يوې لمحې دپاره هم د دې اوصافو نه نهٔ دی جدا شوي، مثلا ملائكة الله يا هغه مخلوق کوم چه د دې څيزونو د حصول بالکل صلاحيت نه لری (لکه زمکه، آسمان، غرونه وغيره) ظاهره ده چه دواړه د امانت الهيه حمل کونکی نه شی جوړيدې.

بيشکه د انسان نه سوا پيريان يو نوع ده چه په هغې کښې في الجمله استعداد د دې تحمل موندلې شی هم په دې وجه ﴿ وَمَا خَلَقْتُ الْجِنَّ وَالْإِنْسَ إِلَّا لِيَعْبُدُونِ ﴾ کښې دواړه جمع کړې شوې

---

[۱] فتح الملهم، کتاب الايمان، باب رفع الامانة من بعض القلوب، ۱۰۹/۲

دى. خو د انصاف خبره دا ده چه د امانت د حق ادا كولو استعداد په هغوى كښې دومره ضعيف وو چه د امانت د حمل كولو په مقام باندې بالكل قابل ذكر او د التفات قابل او نه ګڼړلې شو. ګويا هغوى په دې معامله كښې د انسان تابع اوګڼړلې شو د جن (پيريانو) نوم مستقل طور اخستلو ته ضرورت نشته. والله تعالیٰ اعلم بالصواب.[1]

بعضو وئيلې دى چه د دې نه ايمان مراد دې.[2] ځكه چه د حديث په آخر كښې دا الفاظ دى ﴿وَمَا فِي قَلْبِهِ مِثْقَالُ حَبَّةٍ خَرْدَلٍ مِنْ إِيمَانٍ﴾

د امانت د زړه جرړو ته د كوزيدو مطلب دا دې چه الله پاک د هر سړى زړۀ كښې د ايمان د قبلولو صلاحيت پيدا فرمائيلې دې. او يو نور ايمان و هدايت ئې هغه ته وركړې دې. چه د هغې ذكر د قرآن كريم په آيت ﴿فِطْرَتَ اللَّهِ الَّتِي فَطَرَ النَّاسَ عَلَيْهَا﴾[3] كښې دى او په حديث كښې دى ﴿كُلُّ مَوْلُودٍ يُولَدُ عَلَى الْفِطْرَةِ﴾[4]

مطلب دا دې چه الله پاک د مومنانو په زړونو كښې اولا د هدايت نور او د حق د قبلولو او پيژندلو صلاحيت پيدا فرمائيلې دې، بيا د قرآن او حديث په ذريعه هغوى هغه احكامات اوپيژندل او اوئې منل.

**قوله: ﴿يَنَامُ الرَّجُلُ النَّوْمَةَ فَتُقْبَضُ الْأَمَانَةُ مِنْ قَلْبِهِ﴾**: دا دويم حديث دې. چه د هغې په باره كښې سيدنا حذيفه رضی الله عنه فرمائى چه د هغې ماته انتظار دې. په اول حديث كښې هغوى په عهد نبوى كښې د صحابه كرامو رضی الله عنهم په صورت كښې مشاهده كړې وه... يو سړې به اوده شى. نو امانت به د هغه د زړه نه اوچت كړې شى. د دې نه يا خو حقيقى اوده كيدل مراد دى يا د غفلت نه كناية ده چه د قرآن او حديث او د الله پاک د احكاماتو نه به لا پرواه شى. چه د هغې په نتيجه كښې به ترې امانت اوچت كړې شى

كه حقيقتا اوده كيدل مراد وى نو مطلب به دا وى چه انسان به اوده كيدو سره راپاسى نو خپله به هغه ته د زړه نه د امانت او د ايمان دارئ كيفيت ختم شوې وى او په زړه باندې به ئې تور والې او خړه راغلې وى، ګويا چه د دين يو اضطرارى كيفيت به د هغه په زړه باندې طارى شوې وى.

او كه د اوده كيدو نه مراد حقيقة اوده كيدل نه وى، بلكه د دين نه غفلت مراد دې نو مطلب به دا وى چه د قرآن او سنت نه به بې رخى اختيار كړى. په ګناهونو كښې به اخته شى، چه د هغې نتيجه به دا وى چه امانت او ايمان به اوچت كړې شى.[5]

---

[1]) تفسير عثمانى ص: ٥٦٩، ٥٧٠

[2]) مرقاة المفاتيح، كتاب الفتن، ٦/١٠

[3]) سورة الروم: ٣٠

[4]) سنن ابى داؤد، كتاب السنة، باب فى ذرارى المشركين: ٣٢٩/٤، رقم الحديث: ٤٧١٤

[5]) مرقاة المفاتيح شرح مشكاة المصابيح: ٦/١٠

دا دويمه معنى زياته مناسب معلوميږي

**قوله:** ﴿فَيَظَلُّ أَثَرُهَا مِثْلَ أَثَرِ الْوَكْتِ﴾: ﴿وكت﴾ يعنى د نقطې د نخښې په شان به د هغه نخښه باقى پاتې شى. ﴿وكت﴾ په واؤ باندې فتحه او د كاف په سكون سره، هغه نقطې ته وائى كومه چه په يو څيز كښې د مختلف رنګ وى. مثلاً په تور كښې دننه سپينه يا په سپين څيز كښې توره نقطه. علامه قسطلانى رحمه الله ليكى :

﴿ الوكت: النقطة في الشيء من غير لونه أوهو السواد اليسير أو اللون المحدث المخالف للون الذى كان قبله ﴾[1]

**قوله:** ﴿ثُمَّ يَنَامُ النَّوْمَةَ فَتُقْبَضُ فَيَبْقَى فِيهَا أَثَرُهَا مِثْلَ أَثَرِ الْمَجْلِ﴾: بيا به دوباره اوده شى نو امانت به اوچت كړې شى او دهغې نخښه به د پولئ په شان باقى پاتې شى

﴿ المجل ﴾ د ميم په فتحې سره او د جيم په سكون سره، معنى ئې ده : پولئ. د كار كولو دوران كښې چه د لاس كومه څرمن سخته شى چه هغې ته پولئ وائى او په هغې باندې د مجل اطلاق كيږى.

مطلب دا دې چه كله د دين نور هم غفلت زيات شى نو د امانت هغه لږه ډيره حصه كومه چه پاتې شوې وه، هغه به هم اوچته كړې شى او صرف د رابرسيره شوې پولئ په شان نخښه به پكښې پاتې شى. كومه چه رابرسيره ښكاره كيږى خو د دننه نه خالى وى.

**قوله:** ﴿كَجَمْرٍ دَحْرَجْتَهُ عَلَى رِجْلِكَ فَنَفِطَ فَتَرَاهُ مُنْتَبِرًا وَلَيْسَ فِيهِ شَيْءٌ﴾: يعنى لكه چه تاسو د اور سكروټه په خپله باندې راكاږئ او په هغې سره پولئ راوخى نو هغه تاسو ته ډكه ښكارى او په هغې كښې هيڅ هم نه وى.

﴿ نَفِطَ ﴾ د باب سمع نه دې او د دې معنى ده : پولئ راختل، د كار د وجې نه په لاس كښې پولئ راوتل.

﴿ منتبرا ﴾ : اى مرتفعا : دا د باب افتعال نه د اسم فاعل صيغه ده، د انتبار معنى ارتفاع او اوچت والى راځى.[2]

په ﴿ نفط ﴾ او ﴿ فتراه ﴾ ضمير د رجل طرف ته راجع دې او رجل مونث سماعى دې. او ضمير د مذكر دې. په ضمير او مرجع كښې د تذكر او تانيث په لحاظ سره مطابقت نشته.

د دې جواب دا دې چه د ضمير مرجع عضو. يا موضع رجل دې په كوم چه سكروټه اچولې شوې ده. په دې اعتبار سره دا مذكر ذكر كړې شوې دې.[3]

**د حديث د تمثيل وضاحت:** په دې حديث كښې چه كوم مثال پيش كړې شوې دې، حضرات

---

[1]) ارشاد السارى : ۴۹۶/۱۳

[2]) عمدة القارى : ۱۲۹/۲۳، وارشاد السارى : ۴۹۶/۱۳

[3]) عمدة القارى : ۱۲۹/۲۳، وارشاد السارى : ۴۹۶/۱۳، ومرعاة المفاتيح شرح مشكاة المصابيح، كتاب الفتن : ۷/۱۰

محدثينو د هغې مختلف وضاحتى مطلب بيان كړى دى
① چه كله انسان د شريعت نه غافل شى او په ګناهونو كښې اخته شى نو په زړه كښې دننه به ئې د ايمان نور كم شى او كله چه هغه خپله جائزه واخلى نو په خپل زړه كښې دننه به ﴿وكت﴾ يعنى د يوې نقطې د مقدار نه سوا د ايمان او امانت د نور نه هيڅ او نه وينى. بيا چه كله دوباره اوده شى يعنى د دين د احكاماتو نه نور هم غافل شى او په معاصى او ګناهونو كښې اخته شى نو د نور امانت باقى پاتې حصه به هم غائبه شى او صرف د يوې ماتې پولئ په شان نخښه به پاتې شى كوم چه برسيره ښكاره كيږى خو د دننه نه د صالح مواد نه خالى او سوا د ګنده اوبو نه پكښې هيڅ هم نه وى، هم دغه شان به دا سړې اګر چه په ظاهره كښې صالح او نيک ولې نه ښكارى خو د دننه به د ايمان او امانت د آخرت د مفيد اعمالو نه به پكښې هيڅ هم نه وى.
خلاصه دا چه د ايمان نور به تدريجا او په مزه مزه ختم شى. د غفلت په اوله مرحله كښې به د امانت نور ختم شى او صرف د يوې نقطې په اندازه به هغه نور باقى پاتې شى او د غفلت په دويمه مرحله كښې به هغه هم ختم شى او صرف د هغې د محل په شان يوه نخښه به پاتې شى.... په دې كښې دې خبرې طرف ته هم اشاره ده چه د ايمان او امانت حقيقى اګر چه ختم شى خو بهر حال د هغې يو نخښه، يو علامت او يو اثر به باقى وى، اګر چه هغه د ﴿وكت﴾ د يوې نقطې په اندازه يا د محل د نخښې په شان ولې نه وى!
پس علامه عينى رحمه الله ليكى : ﴿وحاصله أن القلب يخلوعن الأمانة بأن تزول عنه شيئا فشيئا فإذا زال جزء منها زال نورها وخلفته ظلمة كالوكت وإذا زال شيء آخر منه صار كالمجل وهو أثرحكم لايكاد يزول إلا بعد مدة ثم شبه زوال ذلك النور بعد ثبوته فى القلب وخروجه منه واعتقابه إياه بجمر تدحرجه على رجلك حتى يؤثر فيها ثم يزول الجمر ويبقى التنفط﴾[1]
مطلب دا چه : د كوم اهل ايمان د فكر او عمل په قوة باندې غفلت او بې حسى خوره شى او د ګناهونو د ارتكاب په صورت كښې د دين او شريعت سره د هغوى تعلق انتهائى كمزورې شى، د هغوى د زړونو نه امانت لاړ شى، پس چه كله د هغې يو حصه زائل شى نو د هغوى د زړونو نه به نور هم زائل شى او د هغې په ځائې به د ﴿وكت﴾ په شان ظلمت او تيارۀ پيدا شى او د هغې مثال داسې دې لكه په يو څيز كښې د هغه مخالف رنګ ښكاره شى (مثلا تور څيز كښې د سپين رنګ ښكاره كيدل) او چه كله د دين او شريعت متعلق غفلت او كوتاهى نوره هم زياته شى او د ګناهونو ارتكاب د مخكښې نه هم زيات شى نو د نور امانت چه كومه حصه باقى پاتې شوې وه، د هغې نه به څه زائله شى او د هغې مثال داسې دې لكه د بدن په يوه حصه باندې پولئ كومه چه دومره ژوره او سخته وى چه زر نه ختميږى، پس په دويم كرت چه كومه تيارۀ پيدا شى هغه به د اول كرت پيدا كيدونكې تيرې نه زياته خوره او

[1]) عمدة القارى : ٢٣/١٢٩، ١٣٠

ژوره وی ذکر شوې صورت حال لره د دې مثال د بیان فرمائیلو نه پس ئې اوفرمائیل چه د انسان په زړه کښې به د ایمان او امانت نور پیدا کیدل او بیا وتل یا په زړونو کښې د دې نور ځائې نیول او بیا د هغې د زائل کیدو نه پس د تیرې راتلل داسې تشبیه لرې لکه د اور سکروټه اخستلو سره هغه په خپله خپه باندې واچوی او هغه سکروټه د خپې نه زائل شی او بیا په سوزیدلی ځائې باندې پولئ راوخیژی.

② دویم مطلب دا بیان کړې شوې دې چه انسان د کوم دین نه غافل او په ګناهونو او معاصی کښې اخته وی نو د هغې په وجه باندې به ایمان د هغه د زړه نه تدریجا اوچت کړې شی. چه کله د ایمان پاک جزء زائل شی نو د هغې نور به هم ختم شی او د هغې ځائې به تیارۀ اونیسی. کوم چه به په اوله مرحله کښې د ﴿ وکت ﴾ په اندازه وی. بیا چه کله د ایمان باقی حصه ختمه شی نو هغه به د ظلمت مجل (پولئ په شان) وی. پس ملا علی قاری رحمه الله لیکی:

﴿ وقال شارح من علمائنا: یرد ان الامانة ترفع عن القلوب عقوبة لاصحابها علی ما اجترحوا من الذنوب، حتی اذا استیقظوا من منامهم، لم یجدوا قلوبهم علی ما کانت علیه، ویبقی فیه اثر تارة مثال الوکت وتارة مثل المجل ﴾[1]

صاحب د مظاهر حق د دې مطلب وضاحت داسې کړې دې!

د دې ارشاد نه مراد دا دې چه الله پاک د خلقو په زړونو کښې د امانت نور پیدا کړو. چه هغوی د هغې په رڼا کښې د کامیابئ په لاره باندې روان شی او د دین او شریعت تابعدار جوړ شی. خو چه کله هغوی د دې نعمت نه بې پرواه شی. د دین او شریعت په باره کښې غفلت او کوتاهی کوی او د ګناهونو ارتکاب کوی نو الله پاک به د سزا په طور د هغوی نه دا نعمت واخلی. په داسې طریقه چه د هغوی د زړونو نه به امانت اوځی. تردې چه کله هغوی د غفلت د خوب نه رابیدار شی نو محسوس به کړی چه د هغوی د زړه هغه حالت نه دې کوم چه د امانت په موجودګئ کښې وو. خو د هغوی په زړونو کښې به د دې امانت نخښه باقی وی کومه چه به کله د ﴿ وکت ﴾ په شان وی او کله د مجل په شان. پس ﴿ مجل ﴾ اګر چه مصدر دې خو دلته د دې نه مراد پولئ ده او دا (یعنی مجل) اول کرت (یعنی وکت) نه کمتر درجه ده. ځکه چه د ﴿ وکت ﴾ په ذریعه دې طرف ته اشاره مقصود ده چه اګر چه امانت به د زړه نه اوځی خو د نخښې په صورت کښې به د هغې څه نه څه حصه باقی وی.[2]

**قوله: ﴿وَيُقَالُ لِلرَّجُلِ مَا أَعْقَلَهُ وَمَا أَظْرَفَهُ وَمَا أَجْلَدَهُ وَمَا فِي قَلْبِهِ مِثْقَالُ حَبَّةِ خَرْدَلٍ مِنْ إِيمَانٍ﴾**: د یو سړی په باره کښې به وئیلې شی چه څومره عقل مند، ظریف (خوش طبع) او چالاک او اوښیار دې. خو د هغه په زړه کښې به د اوری د دانې برابر

[1] مرقاة المفاتیح شرح مشکاة المصابیح. کتاب الفتن ۸/۱۰

[2] مظاهر حق جدید: ۸۲۸/٤

ايمان هم نه وى

يعنى داسې زمانه به راشى چه په خلقو كښې به د مدح او تعريف پيمانې بدلې شى. د چا تعريف به په عمل صالح. ايمان او نيكئ باندې نه شى كولې بلكه عقل ظرافت او چالاكى به د خلقو د مدح تعريف ذريعه جوړيږى. پس ملا على قارى رحمه الله ليكى :

﴿ وحاصله انهم يمدحونه بكثرة العقل والظرافة، والجلادة، ويتعجبون منه، ولا يمدحون احدا بكثرة العلم النافع، وصلاح العمل الصالح ﴾ [۱]

**قوله:** ﴿ ما اعقله، ما اظرفه ﴾ : تعجب صيغې دى. ﴿ اجلد ﴾ د جلادة نه دې چه د هغې معنى چستى او چالاكى ده.

**قوله:** ﴿ وما فى قلبه ﴾ : يعنى د هغه په زړه كښې به د رتئ برابر ايمان هم نه وى، په دې كښې يا خو د اصل ايمان نفى ده يا د كمال ايمان نفى كړې شوې ده. [۲] په اول صورت كښې به كافر وى او په دويم صورت كښې به فاسق وى.

**قوله:** ﴿ وَلَقَدْ أَتَى عَلَىَّ زَمَانٌ وَمَا أُبَالِى أَيَّكُمْ بَايَعْتُ ﴾ : يعنى يوه داسې زمانه هم تيره شوه چه په هغې كښې به زما دا پرواه نه وه چه د كوم سړى سره معامله او اختلاط خرخول كول دى ځكه چه په خلقو كښې امانت او ديانت دارى عام وه، نو دا فكر به نه وو چه يو سړې به څه معامله كولو سره منكر شى او زما حق به نه راكوى.

﴿ بايعت ﴾ د بيع شراء يعنى اختلو او خرخولو معاملات مراد دى. [۳]

**قوله:** لَئِنْ كَانَ مُسْلِمًا رَدَّهُ الإِسْلَامُ وَإِنْ كَانَ نَصْرَانِيًّا رَدَّهُ عَلَىَّ سَاعِيهِ: يعنى كه هغه مسلمان وى د چا سره چه ما معامله اوكړه، نو د هغه اسلام به ماته زما حق واپس كړى يعنى د هغه اسلام به هغه مجبوره كوى چه هغه ماته زما حق واپس كړى. د سيدنا ابوذر رضى الله عنه په نسخه كښې ﴿ بالاسلام ﴾ دې. [۴] يعنى هغه به د اسلام د وجې نه ماته زما حق واپس كړى او كه نصرانى وى نو د اسلام ساعى او عامل به په ما باندې زما حق واپس كړى. حافظ ابن حجر رحمه الله ليكى :

﴿ رده على ساعيه أى واليه الذى أقيم عليه لينصف منه وأكثر ما يستعمل الساعى فى ولاة الصدقة ويحتمل أن يراد به هنا الذى يتولى قبض الجزية ﴾ [۵]

يعنى د ساعى نه مراد هغه والى او حاكم دې كوم چه د حصول انصاف دپاره مقرر كړې شوې

---

[۱] مرقاة المفاتيح شرح مشكاة المصابيح. كتاب الفتن : ۸/۱۰

[۲] مرقاة المفاتيح شرح مشكاة المصابيح، كتاب الفتن : ۸/۱۰

[۳] فتح البارى ۴۰۶/۱۱. عمدة القارى ۱۳۰/۲۳. ارشاد السارى ۴۹۶/۱۳

[۴] فتح البارى ۴۰۶/۱۱. عمدة القارى ۱۳۰/۲۳. ارشاد السارى ۴۹۶/۱۳

[۵] فتح البارى ۵۰۶/۱۱

دي، د ساعي لفظ اكثر د صدقه وصول كونكو او عاملانو دپاره استعماليږي، دلته د دې نه هغه سړي مراد كيدې شي كوم چه په جزيه وصول كولو باندې مقرر كيدې شي.

**قوله:** ﴿فَأَمَّا الْيَوْمَ فَمَا كُنْتُ أُبَايِعُ إِلَّا فُلَانًا وَفُلَانًا﴾: خو نن زه د فلاني فلاني سړي سره معامله كوم (چه د هغه په ما باندې اعتماد دې او هغه ديانت دار دې، كيدې شي چه د دوه سړو نوم ئې اخستلې وي خو راوي هغه نوم نه دې ذكر كړې، بلكه فلانې فلانې ئې اووې).

**قوله:** ﴿قَالَ الْفَرَبْرِيُّ قَالَ أَبُو جَعْفَرٍ حَدَّثْتُ أَبَا عَبْدِ اللهِ﴾: د فربرى نوم محمد بن يوسف دې او د ابوجعفر نوم محمد بن حاتم دې، دا د امام بخارى رحمه الله وراق او كاتب وو. ابو عبدالله، د امام بخارى رحمه الله كنيت دې.

امام بخارى رحمه الله فرمائى چه ما د ابو احمد بن عاصم بلخى نه او هغوى د ابوعبيده بن سلام نه واوريدل چه امام اصمعى او ابو عمر د لفظ ﴿جذر﴾ تشريح اوكړه چه د هر يو څيز اصل ته جذر وائى، د امام اصمعى نوم عبدالملك بن قريب دې او ابو عمرو مشهور قارى دې.

﴿وغيرهما﴾ نه سفيان ثورى مراد دې، خو د ابو عمرو په نزد ﴿جِذر﴾ د جيم په كسرې سره دې او د امام اصمعى په نزد ﴿جَذر﴾ د جيم په فتحې سره دې.

او ﴿وكت﴾ د يو څيز معمولى شان نخښې ته وائى او ﴿مجل﴾ په تلى باندې د كار كولو د وجې نه راختلې پولئ ته وائى.

﴿قال الفربرى﴾ دا عبارت د ابوذر عن مستملى په نسخه كښې دې، په باقى نسخو كښې نشته.[1]

[۶۱۳۳] (۲) حَدَّثَنَا أَبُو الْيَمَانِ أَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ أَخْبَرَنِي سَالِمُ بْنُ عَبْدِ اللهِ أَنَّ عَبْدَ اللهِ بْنَ عُمَرَ - رضى الله عنهما - قَالَ سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ - صلى الله عليه وسلم - يَقُولُ « إِنَّمَا النَّاسُ كَالإِبِلِ الْمِائَةُ لاَ تَكَادُ تَجِدُ فِيهَا رَاحِلَةً ».

سيدنا عبدالله بن عمر رضى الله عنهما فرمائى چه ما د رسول الله صلى الله عليه وسلم نه واوريدل چه هغوى اوفرمائيل: د خلقو مثال د اوښ په شان دې، په سلو كښې هم يو په مشكله د سورلئ قابل ملاويږي.

[1]) د ذكر شوې تفصيل دپاره اوګورئ: فتح البارى ۴۰۶/۱۱، عمدة القارى ۱۳۰/۲۳، ارشاد السارى ۴۹۶/۱۳.

[2]) اخرجه الترمذى فى كتاب الامثال، باب ما جاء فى مثل ادم واجله وامله (رقم الحديث: ۲۸۷۲). واخرجه مسلم فى فضائل الصحابة، باب قوله صلى الله عليه وسلم الناس كابل مائة، رقم ۲۵۴۷.

(راحلة) الجمل النجيب الذى يصلح لسير الاسفار ولحمل الاثقال. معنى الحديث: ياتى زمان يكون الناس فيه كثيرين، ولكن المرضى منهم والذى يلتزم شرع الله عزوجل قليل. شان الابل الكثيرة التى تبلغ المائة، ولا تكاد يوجدمنها واحدة تصلح للركوب والانتفاع بها، او المراد ان الناس ... هكذا، الصالح فيهم قليل.

**قوله: ﴿كَالإِبِلِ الْمِائَةُ﴾:** ﴿ابل﴾ د ابل لفظ په عربو د سلو اوښانو دپاره استعمالولو.
وئیل په ئې ﴿لفلان ابل﴾ یعنی د فلانی سل اوښان دی. ولفلان ابلان: یعنی د هغه دوه سوه اوښان دی. خو چونکه لفظ د ابل د سلو په معنی کښې زیات مشهور نه دې. په دې وجه ئې په حدیث کښې د ﴿الابل﴾ نه پس د ﴿المائة﴾ اضافه اوفرمائیله ﴿المائة﴾ د ﴿الابل﴾ د تفسیر او توضیح په طور دې.[1]
﴿راحلة﴾ کښې تا د تانیث نه ده بلکه دا تا د مبالغې ده هغه اوښې ته وئیلې شی چه په هغې باندې سورلی کیدې شی. ﴿راحلة﴾ د اسم فاعل صیغه ده او د اسم مفعول په معنی کښې ده.[2]
**د حدیث شریف دوه مطلبونه:** علامه خطابی رحمه الله فرمائی چه د دې حدیث دوه مطلبونه حضرات محدثینو بیان فرمائیلې دی:
① یو دا چه ټول خلق، د دین د احکاماتو په سلسله کښې برابر دی او په هغې کښې یو ته هم په بل باندې فضیلت یا ترجیح نه ده حاصل. لکه چه سل اوښان برابر وی او ټول تقریبا د بار اوړولو قابل وی. خو د سورلئ قابل نه وی. حاصل دا چه په دین کښې د خلقو برابری او مساوات په دې حدیث کښې بیان کړې شوې دې.[3]
② دویم مطلب دا دې چه په خلقو کښې قابل، با صلاحیت او صاحب فضل او تقوی ډیر کم وی. د ناکاره خلقو کثرت وی څنګه چه په اوښانو کښې، د سورلئ او د کار قابل په مشکله یو ه اوښه ملاویږی، هم دغه شان د کار خلق ډیر کم وی.[4]
علامه قرطبی رحمه الله دا دویم مطلب په دې انداز سره بیان کړې دې چه داسې سړی کوم چه د خلقو بار اوچتوی. دهغوی تکلیفونه برداشت کوی اودهغوی خدمت کوی، ډیر کم ملاویږی.[5]

---

[1]) فتح الباری ۴۰۷/۱۱، عمدة القاری ۱۳۱/۲۳، ارشاد الساری ۴۹۷/۱۳
[2]) فتح الباری ۴۰۷/۱۱، عمدة القاری ۱۳۱/۲۳، ارشاد الساری ۴۹۷/۱۳
[3]) وفی شرح مسلم للنووی، کتاب فضائل الصحابة : ۳۱۷/۱۶:
قال بن قتیبة الراحلة النجیبة المختارة من الابل للرکوب وغیره فهی کاملة الاوصاف فاذا کانت فی ابل عرفت قال ومعنی الحدیث أن الناس متساوون لیس لاحد منهم فضل فی النسب بل هم أشباه کالابل المائة وقال الازهری الراحلة عند العرب الجمل النجیب والناقة النجیبة قال والهاء فیها للمبالغة کما یقال رجل فهامة ونسابة قال والمعنی الذی ذکره بن قتیبة غلط بل معنی الحدیث أن الزاهد فی الدنیا الکامل فی الزهد فیها والرغبة فی الآخرة قلیل جدا کقلة الراحلة فی الابل هذا کلام الازهری وهو أجود من کلام بن قتیبة وأجود منهما قول آخرین أن معناه المرضی الاحوال من الناس الکامل الاوصاف الحسن المنظر القوی علی الاحمال والاسفار سمیت راحلة لانها ترحل ای یجعل علیها الرحل فهی فاعلة بمعنی مفعولة کعیشة راضیة أی مرضیة ونظائره.
[4]) فتح الباری ۴۰۷/۱۱، عمدة القاری ۱۳۰/۲۳، ۱۳۱، ارشاد الساری ۴۹۷/۱۳
[5]) فتح الباری ۴۰۷/۱۱

علامه ابن بطال رحمه الله فرمائي چه خلق خو ډير دی خو ښه خلق کم دی. هغوی فرمائی چه د خلقو نه مراد د خير القرون خلق نه دی مراد ځکه چه د هغوی د افضليت خو رسول الله ﷺ په خپله ګواهي ورکړې ده. بلکه روستو راتلونکی خلق مراد دی. چه کله قحط الرجال راشي. هغوی ليکی

﴿ وهذا الحديث إنما يراد به القرون المذمومة فى آخر الزمان، ولذلك ذكره البخارى فى رفع الأمانة، ولم يرد به (صلى الله عليه وسلم) زمن أصحابه وتابعيهم؛ لأنه قد شهد لهم بالفضل ﴾ [1]

**د ترجمة الباب سره د حديث مناسبت:** ترجمة الباب سره د حديث مناسبت بيانولو سره علامه قسطلانی رحمه الله ليکی.

﴿ ومناسبة الحديث للترجمة من حيث إن الناس كثيرون والمرضى منهم قليل كالراحلة فى المائة من الإبل وغير المرضى هو من ضيع الفرائض وقد فسر ابن عباس الأمانة بالفرائض ﴾ [2]

يعنی: د ترجمة الباب سره د حديث مناسبت داسې دې چه د خلقو کثرت دې خو د ښه خلقو کمې دې لکه چه په حديث کښې دی او چه ډير دی هغوی فرائض او واجبات ضائع کړل. سيدنا عبدالله بن عباس رضي الله عنهما د امانت تفسير په فرائض سره کړې دې

حاصل دا دې چه په دې حديث کښې وئيلې شوې دی چه د بدو خلقو به کثرت وی او ظاهره ده چه د بدو خلقو امانت او ديانت نه وی او په ترجمة الباب کښې د رفع امانت ذکر دې.

## ۳۶: باب الرِّيَاءِ وَالسُّمْعَةِ

په دې باب کښې امام بخاری رحمه الله د رياء او شهرت مذمت بيان کړې دې.

**د ريا تعريف** د ريا تعريف دا دې: ﴿ اظهار العبودية للناس ليحمدوه ﴾ يعنی د خلقو مخکښې د خپل عبادت او بندګی اظهار کول چه خلق د هغه تعريف اوکړی. دې ته رياء وائی.

او ﴿ سمعة ﴾ (د سين په ضمې او د ميم په سکون سره) خلقو ته د اورولو او وينا په غرض سره يو کار کول. د رياء تعلق د حاسه بصر سره او د سمعة تعلق د حاسه سمع سره ده. [3]

---

[1] شرح ابن بطال: ۱۰/ ۲۰۶

[2] ارشاد الساری: ۱۳/ ۴۹۷

[3] فتح الباری ۱۱/ ۴۰۸. عمدة القاری ۲۳/ ۱۳۱. قال الامام الغزالی رحمه الله: اعلم أن الرياء مشتق من الرؤية والسمعة مشتقة من السماع وإنما الرياء أصله طلب المنزلة فى قلوب الناس بإيرائهم خصال الخير إلا أن الجاه والمنزلة تطلب فى القلب بأعمال سوى العبادات وتطلب بالعبادات. واسم الرياء مخصوص بحكم العادة بطلب المنزلة فى القلوب بالعبادة وإظهارها فحد الرياء هو إرادة العباد بطاعة الله فالمرائى هو العابد والمراءى هو الناس المطلوب رؤيتهم بطلب المنزلة فى قلوبهم والمراءى به هو الخصال التى قصد المرائى إظهارها والرياء هو قصده إظهار ذلک والمراءى به كثير وتجمعه خمسة أقسام وهى مجامع ما يتزين به العبد للناس وهو البدن والزى والقول والعمل والأتباع والأشياء الخارجة. وكذلک أهل الدنيا يراءون بهذه الأسباب الخمسة إلا أن طلب الجاه وقصد الرياء بأعمال ليست من جملة الطاعات.... [باقی په صفحه آئنده...]

بهر حال رياء د رؤيت نه مشتق ده چه د هغې معنى ده خپل خان د خلقو په نظر كښې نيک او ښه كولو سره پيش كول. د خپل عبادت او نيكئ په ذريعه د خلقو په نظر كښې خپل قدر او منزلت غوښتل د دې نه معلومه شوه چه د رياء تعلق د عباداتو سره دې او كوم څيزونه چه د عبادت سره متعلق نه وى لكه د مال و متاع كثرت. د علم او ذهانت ډير والې. د اشعارو وغيره يادول او د نخښې ويشتلو مهارت وغيره نو په دې كښې د ښودنې دپاره كړې شوې كارونو ته رياء نه شى وئيلې كيدې بلكه هغې ته د فخر تكبر او غرور يو قسم وئيلې شى.
هم دغه شان د نيكئ او عبادت، ظاهرى اعمالو كښې هم كه څو كارونه په دې صورت كښې د خلقو د ښودنې دپاره اوكړې شى چه د هغې مقصد د عزت او جاه طلب نه وى. لكه چه بعض مشائخ خپلو مريدانو ته تلقين او تعليم. د خلقو زړونو لره د نيک اعمالو طرف ته مائلو كولو او د هغوى د اتباع او د تابعدارئ طرف ته راغب كولو دپاره بعض اعمال داسې كوى چه خلق هغوى لره وينى نو دې ته هم د حقيقت په اعتبار سره رياء نه شى وئيلې كيدې اګر چه په ظاهر كښې د هغوى دا عمل رياكارى معلوم شى هم په دې وجه وئيلې شوې دى چه ﴿ رياء الصديقين خير من اخلاص المريدين ﴾ يعنى د اوچتې درجې والا مشائخو بزرگانو رياء د مريدانو د اخلاص (يعنى عدم رياكارئ) نه غوره ده
د دې خبرې دې لحاظ اوساتلې شى چه رياء په اصل كښې د دې نوم دې چه د يو سړى په ذات كښې واقعة يو صفت او كمال وى او هغه دا خپل واقعى وصف او كمال د خلقو مخكښې ښكاره كړى او دا خواهش ساتى چه خلق د هغه وصف او كمال اوپيژنى چه د هغوى په نظر كښې ئې قدر و منزلت او عزت او وقعت حاصل شى خو كوم سړې چه يو داسې وصف او كمال خپل طرف ته منسوب كولو سره په خلقو باندې دا ظاهره كړى چه هغه واقعة د هغه په ذات كښې نشته نو دې ته رياء نه بلكه خالص كذب او منافقت وئيلې شى.

**د رياء د مختلفو صورتونو حكم** : د رياء مختلف اقسام او صورتونه دى!

① د رياء اول قسم دا دې چه د الله پاک د بندګئ په قصد او د حصول ثواب اراده قطعا نه وى. بلكه مقصد خلقو ته ښودل او د هغوى په نظر كښې قدر او منزلت حاصلول وى. لكه چه د خالص رياكارو خلقو عادت وى چه كله هغوى د خلقو ترمينځه وى نو مونځ كوى او په مختلف قسم اوراد او وظائفو كښې مشغول وى. خو چه كله يواځې شى نو نه د مانځه سره كار ساتى او نه د اوراد او وظائف سره. د رياكارئ دا قسم د ټولو نه خطرناک دې او د الله پاک د سخت غضب او قبر عذاب د نازليدلو باعث دې په دې صورت كښې كړې شوې عمل قطعا باطل وى

② دويم صورت دا دې چه د يو نيک عمل په كولو كښې دواړه څيزونه وى يعنى د ثواب اراده هم وى او رياكارى او ښودنه هم. خو د رياء طرف غالب او د ثواب د ارادې اړخ كمزورې او ضعيف وى. چه عمل كونكې يواځې وى نو هغه دې عمل د سره كوى نه او كه

---

......بقيه از حاشيه گذشته] أهون من الرياء بالطاعات. (احياء علوم الدين ٣ : ٢٩٠)

بالفرض په دې عمل باندې د څه قسم ثواب او اجر ذکر نه وي نو هم صرف د رياکارئ جذبه به د دې عمل د اختيارولو باعث جوړه شوې وه، په دې صورت کښې هم هغه حکم دې کوم چه د اول صورت دې.

③ دريم قسم دا دې چه د نيک عمل جذبه يعنی د ثواب ازاده او خلقو ته ښودنه دواړه وي، هغه داسې چه دې ټولو څيزونو يوځائې کيدو سره هغه عبادت او نيکئ ته تيار کړو خو که د هغې نه يو څيز هم نه وی نو د هغه عمل ته تياريدل به ختم شی، حاصل دا دې چه که د نيک عمل په اختيارولو کښې که په دواړو کښې يو هم وې نو د هغه به د اختيارولو داعيه نه پيدا کيده بلکه د دې عمل طرف ته به رغبت په دې صورت کښې وې چه کله دواړه څيزونه يوځائې موندلې شوې وې.

د دې صورت په باره کښې په ظاهره کښې خو دا معلوميږی چه په دې کښې نفع او نقصان دواړه برابر دی، خو د احاديث او آثارو نه معلوميږی چه دا قسم هم مذموم او په دې صورت کښې کړې شوې عم لهم ناقابل قبول وی؛ ځکه چه په قرآن کريم کښې د سورة کهف په آخری آيت کريمه ﴿وَلَا يُشْرِكْ بِعِبَادَةِ رَبِّهِ أَحَدًا﴾ يعنی په دې کښې د شرک نه مراد د مفسرينو په نزد ريا ده ځکه چه په حديث کښې رياء ته شرک خفی وئيلې شوې دې. (1)

④ څلورم قسم دا دې چه د نيک عمل جذبه، د ثواب اراده او رياء دواړه راجمع شی خو د ثواب نيت او د الله پاک د رضا حاصلولو اراده راجح او غالب وی.

دې صورت ته بالکليه باطل نه شی وئيلې کيدې، زيات نه زيات داسې وئيلې کيدې شی چه په دې صورت کښې اختيارونکې عمل د نيت او ارادې په اعتبار سره د ثواب او عتاب دواړو يو شان باعث کيدلې شی چه په ارادې او نيت کښې چه څومره اخلاص او يا عدم اخلاص وی، هم د هغې مطابق به ثواب او عتاب وی، په دې صورت کښې دا هم کتلې کيدې شی چه په قصد او عمل کښې چه د رياکارئ کوم ګډون دې کوم چه اګر که د ثواب ارادې او نيت په اعتبار سره کمتر او ضعيف دې هغه کله پيدا شوې دې؟ که د رياکارئ ګډون د عمل په ابتداء کښې شوې دې نو دې صورت ته به زيات بد وئيلې شی او که د عمل ترمينځه پيدا شوې وی نو دا صورت به د اول صورت نه کم د بدئ حامل وی او که دا د عمل کولو نه پس راغلې دې نو دا صورت به د دويم صورت نه هم کم بد منلې شی او د دې په وجه باندې به اختيار کړې شوی عمل ته باطل نه شی وئيلې کيدې.

هم دغه شان د دې فرق هم لحاظ اوساتلې شی چه د رياکارئ جذبه که د کلک قصد او عزم په صورت کښې ده نو په هغې کښې به زياته بدی وی او که صرف د يو خيال په صورت کښې وی او هم د هغه خيال د حده پورې محدود وو، وړاندې هيڅ نه وی نو دا صورت حال به نقصان ورکونکې نه شی ګڼړلې.

بهر حال حقيقت دا دې چه رياء يو داسې جذبه ده چه د هغې نه پوره طريقې سره خلاصيدل

---

(1) روح المعانی، سورة الكهف: ۴۹۷/۱۶

ډیر ګران دی او په هر حالت کښې د حقیقي اخلاص موندلې کیدل ډیر ګران، په دې وجه علماء کرامو تردې پورې لیکلي دی چه دچا دخولې نه خپل تعریف اوریدلو سره خوشحالیدل د ریا د موندلې کیدو نخښه ده، هم دغه شان په یواځې والی کښې د څه عمل کولو په وخت هم په زړه کښې د ریاء خیال راشی نو هغې ته به هم ریاء وائی. الله پاک دې ترې موتړ په خپله پناه کښې اوساتی او په هر صورت دې راته اخلاص رانصیب کړی چه د هغه د مدد او توفیق نه بغیر د دې دولت ملاویدل ممکن هم نه دی.

**دا صورت د ریاکارئ نه دې:** علماء کرامو یو خاص صورت او حالت بل بیان کړې دې او هغه دا چه که یو سړې نیک کار کوی او په څه عبادت او طاعت کښې مصروف وی او خلق هغه لره په هغه نیک کار او عبادت او طاعت کولو باندې وینی نو هغه له پکار دی چه په دې وخت کښې په دې خبرې باندې د خوشحالئ او مسرت جذبات پیدا کړی چه الله پاک په خپل فضل او کرم او لطف او عنایت سره د نیک عمل توفیق ورکړو او د خلقو په نظر کښې د باعزته کیدو ئې دا سبب پیدا اوفرمائیلو چه د ګناهونو او عیبونو خو ئې پرده اوفرمائیله او نیک اعمال او اخلاق ئې رانبکاره کړل او د خوشحالئ د دې جذباتو سره دا نیت او قصد ساتی چه زما د نیک عمل په اظهار سره د دین او طاعاتو چرچه کیږی نو خلق به د دین طرف ته راغب کیږی او په هغوی کښې به هم د نیکو اعمالو اختیارولو داعیه پیدا کیږی، دا څیز به نه صرف دا چه د ریاء په حکم کښې داخل نه وی، بلکه دې ته به محمود او مستحسن هم وئیلې شی. پس علامه قسطلانی رحمه الله لیکی:

﴿وحكم الرياء بغير العبادات حكم طالب المال والجاه، وحكم محض الرياء بالعبادة إبطالها وإن اجتمع قصد الرياء وقصد العبادة أعطى الحكم للأقوى، فيحتمل الوجهين في إسقاط الفرض به والمصر على إطلاع الغير على عبادته إن كان لغرض دنيوى كإفضائه إلى الاحترام أو شبهه فهو مذموم وإن كان لغرض أخروى كالفرح بإظهار الله جميله وستره قبيحه أو لرجاء الاقتداء به فمحمود وعليه يحمل ما يحدث به الأكابر من الطاعات، وليس من الرياء ستر المعصية بل ممدوح وإن عرض له الرياء في أثناء العبادة ثم زال قبل فراغها لم يضر، ومتى علم من نفسه القوة أظهر القربة، وقد قيل: العمل ولو خفت عجبا مستغفرا منه﴾ (۱)

**د امام غزالی رحمه الله په نزد د ریاء قسمونه:** امام غزالی رحمه الله د ریاء حقیقت اودهغې اقسام ډیر په تفصیل سره بیان فرمائیلې دی چه ریاکار په پنځه قسمه څیزونو کښې اظهار او ښودنه کوی.

① اول قسم: په بدن کښې ریاکاری، په بدن کښې ریاکاری د دین په باره خو داسې ده چه په بدن باندې کمزوری او زیړوالې ظاهر کړی چه خلقو ته دا خیال پیدا شی چه داسړې د دین په باره کښې ډیر محنت کوی، د دین ویره په هغه باندې غالب دې او هغه سره د آخرت ډیره ویره ده یا دا چه د نری کیدو نه معلوم شی چه خوراک ډیر کم کوی. (یعنی روژې نیسی) او د زیړ رنګ نه ئې وهم پیدا شی چه شپې رونړوی.

---

(۱) ارشاد الساری: ۳۹۹/۱۱

④ دويم قسم په هيئت او جامه كښې رياكاري. په هيئت او جامه كښې رياكاري دا ده چه مثلا د سر ويښته ني ببر پريخودلې وى. د بريتو خرئيل. په لاره كښې سټ زوړندولو سره تلل. په مزه مزه حركت كول. د سجدې نخښه په تندى باندې باقى پريخودل. پيړې جامې اغوستل. د كمبل څادر اغوستل. د هغې لمنې د پنډو پورې پورته ساتل. د جامو شليدلې كيدل. دا ټولې خبرې رياكارى ده چه معلومه شى چه دا سړې تابع سنت او د الله پاك نيك بنده دې

كوم خلق چه په جامو سره نمود كوى د هغوى څو طبقات دى. بعض خلق داسې دى چه كپړې شليدلې. خيرنې او پيړې اچوى چه دا معلومه شى چه هغوى سره د دنيا هيڅ پرواه نشته. او بعض خلق داسې دى چه هغوى په اهل اصلاح او دنيادارو دواړو ډلو كښې مقبول كيدل غواړى په دې وجه ډير نرې كن او څادرې او رنگين پيوند كاره غيره لټوى چه نه ني درويش اوگڼرى او نه ئې دنيادار

③ دريم قسم : په قول كښې رياكارى : په دې كښې د اهل دين رياكارى داسې ده چه د ريا دپاره د وعظ او نصيحت او د حكمت او پوهې خبره يا د اخبار او آثارو د هغې دپاره يادول چه په روزانه محاورو كښې په كار راشى. د ټولو خلقو مخكښې په رياكارئ سره شونډې خوزول

④ څلورم قسم : په عمل كښې رياكارى. مثلا په مانځه كښې د رياء دپاره تر ډير وخته پورې قيام. اوږده ركوع او سجده كول. سټ ښكته كول.

⑤ پنځم قسم : په ملاويدونكو كښې رياكارى : مثلا يو سړې د دې خبرې په تكلف سره غوښتونكې وى چه فلانې عالم يا عابد زما د ملاقات دپاره راشى چه خلقو ته معلومه شى چه دا سړې ډير دين دار او صاحب حيثيت دې چه ډير علماء او بزرگان هغه سره تر راتر ساتى او بركت حاصلوى يا د رياكارئ دپاره په كثرت سره د شيوخ او مرشدينو تذكره كوى چه معلومه شى چه د ډيرو اكابرينو نه ئې استفاده كړې ده. [1]

[۶۱۳۴] حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا يَحْيَى عَنْ سُفْيَانَ حَدَّثَنِي سَلَمَةُ بْنُ كُهَيْلٍ . وَحَدَّثَنَا أَبُو نُعَيْمٍ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ سَلَمَةَ قَالَ سَمِعْتُ جُنْدَبًا يَقُولُ قَالَ النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - وَلَمْ أَسْمَعْ أَحَدًا يَقُولُ قَالَ النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - غَيْرَهُ فَدَنَوْتُ مِنْهُ فَسَمِعْتُهُ يَقُولُ قَالَ النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - «مَنْ سَمَّعَ سَمَّعَ اللَّهُ بِهِ، وَمَنْ يُرَائِي يُرَائِي اللَّهُ بِهِ». [۶۷۳۳]

سلمه بن كهيل رحمه الله فرمائى چه ما د سيدنا جندب رضي الله عنه نه واوريدل چه رسول الله ﷺ اوفرمائيل : او ما د سيدنا جندب رضي الله عنه نه غلاوه د چا نه هم دا نه دى اوريدلى چه هغه ﴿قال النبى صلى الله عليه وسلم﴾ وئيلې وى، پس زه سيدنا جندب رضي الله عنه ته نزدې شوم نو ما د هغوى نه واوريدل چه رسول الله ﷺ اوفرمائيل : څوك چه د شهرت خواهش مند وى، الله پاك به هغه

[1] د ذكر شوې قسمونو د نور تفصيل دپاره اوگورئ: احياء علوم الدين ۲۹۰/۳

مشهور کړي او څوک چه د ښودنې دپاره کار کوی الله پاک به هم د هغه ښودنه اوکړي.

**د حدیث مختلف مطلبونه** : د دې حدیث مختلف مطلبونه بیان کړې شوې دی:

① یو مطلب خو دا دې چه کوم سړې د شهرت د حاصلولو دپاره. د عزت او مرتبې د حصول دپاره او د خلقو د ښودنې دپاره څه نیک عمل کوی نو الله پاک به په دنیا کښې دننه د هغه بد نیت د خلقو مخکښې ښکاره کړي کوم چه هغه د خلقو نه پټوی او دغه شان به د هغه د رسوایئ او ذلت سبب شي یا د داسې سړی بد نیت او غرض به الله پاک په دنیا او آخرت کښې د خلقو مخکښې ښکاره کړي او دغه شان به خلقو ته معلومه شي چه دا سړې په دې خپل نیک عمل کښې مخلص نه دې. ګویا چه د کوم مقصد او غرض دپاره هغه دا نیک عمل اختیار کړې وو. هغه ورته حاصل نه شو بلکه د هغې برعکس به د هغه فاسد نیت د خلقو مخکښې ښکاره شي.[1]

خو په دې مطلب باندې دا شبه کیدې شي چه ډیر خلق د ریاکارئ د وجې نه ډیر نیک کارونه کوی او دنیوی لحاظ سره هغوی په هغې کښې کامیاب وی او د هغوی ریاکاری او بد نیت د خلقو مخکښې نه راځي.

② یو مطلب دا بیان کړې شوې دې چه کوم سړې خپل یو نیک عمل د خلقو مخکښې د اورولو یا ښودنې دپاره اوکړي. الله پاک به د قیامت په ورځ باندې د هغه نیک عمل ثواب هغه ته واوروی او اوښائی. خو ورکوی به ئې نه.[2]

③ یو مطلب دا بیان کړې شوې دې چه کوم سړې یو نیک عمل په خلقو کښې د مشهور کیدو او ښودنې دپاره کوی. الله پاک به د هغه د مقصد مطابق د هغې بدله هغه ته ورکړي او په خلقو کښې به د هغه د عمل شهرت پیدا شي. خو د هغه عمل به په آخرت کښې د حقیقي او لافاني اجر نه محروم وی.[3] په قرآن کریم کښې په سورة هود کښې دی ﴿ مَنْ كَانَ يُرِيدُ الْحَيَاةَ الدُّنْيَا وَزِينَتَهَا نُوَفِّ إِلَيْهِمْ أَعْمَالَهُمْ فِيهَا وَهُمْ فِيهَا لَا يُبْخَسُونَ ﴾ یعنی کوم انسان چه صرف د دنیوی ژوند او د هغې ډول غوارې نو مونږ به هغوی ته د هغوی د نیکو اعمالو بدله په دنیا کښې پوره پوره ورکړو او په دنیا کښې به د هغوی په بدله کښې هیڅ کمې نه کوو (خو په آخرت کښې به د هغوی هیڅ حصه نه وی).

④ او یو معنی دا بیان کړې شوې ده چه کوم سړې په دنیا کښې دننه د خلقو د ښودنې دپاره او د خپل شهرت دپاره څه نیک عمل کوی الله پاک به په آخرت کښې، د هغه فاسد نیت په ټولو خلقو باندې ښکاره کړي، پس حافظ منذری رحمه الله فرمائی:

﴿ أی: من أظهر عمله للناس رياء أظهر الله نيته الفاسدة فی عمله يوم القيامة وفضحه علی رؤوس الأشهاد ﴾[4]

---

[1] ) فتح الباری ۴۰۹/۱۱. عمدة القاری ۲۳/ ۱۳۳. ارشاد الساری ۴۹۸/۱۳

[2] ) فتح الباری ۴۰۹/۱۱. عمدة القاری ۲۳/ ۱۳۳. ارشاد الساری ۴۹۸/۱۳

[3] ) فتح الباری ۴۰۹/۱۱. عمدة القاری ۲۳/ ۱۳۳. ارشاد الساری ۴۹۸/۱۳

[4] ) ارشاد الساری ۴۹۸/۱۳

حافظ ابن حجر رحمه الله دې مطلب ته معتمد وئيلې دې. [1] ځکه چه د آخرت تصريح په بعض احاديثو کښې راغلې ده، پس په مسند احمد او مسند دارمی کښې د سيدنا ابو هند داری رضي الله عنه مرفوع حديث دې ، د هغې الفاظ دا دی:

﴿ مَنْ قَامَ مَقَامَ رِيَاءٍ وَسُمْعَةٍ رَاءَى اللهُ بِهِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ وَسَمَّعَ ﴾ [2]

يعنی : څوک چه د ښودنې او خلقو ته د اورولو دپاره څه کار کوی. الله پاک به هم د قيامت په ورځ، هغه ته اوښائی او مشهور به ئې کړی (چه هغه د ښودنې دپاره دا عمل کړې وو)

او په طبرانی کښې د سيدنا معاذ رضي الله عنه مرفوع حديث دې، د هغې الفاظ دی:

﴿ مَا مِنْ عَبْدٍ يَقُومُ فِي الدُّنْيَا مَقَامَ سُمْعَةٍ وَرِيَاءٍ إِلَّا سَمَّعَ اللهُ بِهِ عَلَى رُءُوسِ الْخَلَائِقِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ ﴾ [3]

يعنی : په دنيا کښې چه څوک هم د رياکارئ او د شهرت خوښولو په مقام باندې وی. د قيامت په ورځ باندې به الله پاک د ټولو مخلوق مخکښې د هغه د بدئ شهرت اوکړی.

**قوله: ﴿عَنْ سَلَمَةَ قَالَ : سَمِعْتُ جُنْدَبًا، وَلَمْ أَسْمَعْ أَحَدًا يَقُولُ : قَالَ النَّبِيُّ صلى الله عليه وسلم غَيْرَهُ ﴾:** دا د سلمة بن کهيل قول دې، هغوی فرمائی چه ما دا حديث د جندب رضي الله عنه نه اوريدلې دې او د هغوی نه علاوه د بل چا نه ما ﴿ قال النبی صلی الله عليه وسلم ﴾ وئيلو سره نه دې اوريدلې، د هغوی مطلب دا دې چه هغوی د سيدنا جندب رضي الله عنه نه علاوه د بل صحابی نه دا حديث نه دې اوريدلې، د جندب نه سيدنا جندب بن عبد الله بجلی رضي الله عنه مراد دې. کوم چه په صغار صحابه کرامو رضي الله عنهم کښې وو.

**د شارحين بخاری مباحثه :** علامه کرمانی فرمائی چه د هغوی مطلب دا دې چه هغه وخت هلته د سيدنا جندب رضي الله عنه نه علاوه بل صحابی موجود نه وو، پس هغوی ليکی:

﴿ مراده لم يبق من أصحاب النبی صلی الله عليه وسلم حينئذ غيره فی ذلك المكان ﴾ [4]

حافظ ابن حجر رحمه الله په علامه کرمانی باندې اعتراض کړې دې او وئيلې ئې دی چه سيدنا جندب رضي الله عنه په کوفه کښې وو او د هغوی په ژوند کښې سيدنا ابوجحيفه او سيدنا عبدالله بن ابی اوفی رضي الله عنهما موجود وو، ځکه چه سيدنا ابوجحيفه د سيدنا جندب رضي الله عنهما نه شپږ کاله روستو وفات موندلې دې او د سيدنا عبدالله بن ابی اوفی وفات د هغوی نه لس کاله پس شوې دې او امام سلمه بن کهيل د دې دواړو نه احاديث نقل کړی دی، په دې وجه د دې مطلب دا نه دې چه هغه وخت هلته څوک صحابی موجود نه وو، لکه چه علامه کرمانی رحمه الله داسې ګنړلې ده، بلکه مطلب دا دې چه د سيدنا جندب رضي الله عنه نه د دې حديث د اوريدلو نه

---

[1] ) فتح البارى ۴۰۹/۱۱

[2] ) فتح البارى ۴۰۹/۱۱ (قلت : اسناده صحيح)

[3] ) فتح البارى ۴۰۹/۱۱ (قلت : اسناده حسن)

[4] ) شرح البخارى للكرمانى : ۲۰/۲۳

پس، هغوی د بل یو صحابی نه هم دا حدیث نه وو اوریدلې. (۱)
علامه عینی رحمه الله د حافظ ابن حجر رحمه الله اعتراض رد کړې دې او وئیلې ئې دی چه د کرمانی په کلام کښې د ﴿ذلك المكان﴾ نه د کوفې مراد کولو په ځائې دا هم احتمال دې چه کوم ځائې کښې هغوی د سیدنا جندب رضي الله عنه نه حدیث اوریدلې وو، هغه ځائې مراد وی او مطلب دا وی چه د سماع حدیث په موقع باندې بل څوک صحابی موجود نه وو، علامه عینی رحمه الله فرمائی:
﴿والعجب من هذا القائل يفسر كلام الكرماني بحسب مايفهمه ثم يرد عليه﴾ (۲) یعنی تعجب دې په دې قائل باندې چه د خپل فهم مطابق د کرمانی د کلام تفسیر کوی او بیا پرې رد کوی.
**فائده : د جندب په نامه پنځه صحابه کرام رضي الله عنهم** : د جندب د نوم پنځه صحابه کرام رضي الله عنهم دی، جندب بن جنادة یعنی ابوذر غفاری رضي الله عنه دا جلیل القدر او مشهور صحابی دې. جندب بن مکین جهنی، جندب بن ضمره جندعی، جندب بن کعب او جندب بن عبد الله البجلی، هم د دوی نه سلمة بن کهیل رحمه الله روایت کړې دې. (۳)
علامه عینی رحمه الله د حافظ دا قول هم رد کړې دې چه د سیدنا ابوجحیفه رضي الله عنه وفات د هغوی نه شپږ کاله پس او د سیدنا عبد الله بن ابی اوفی رضي الله عنهما وفات د هغوی نه لس کاله پس شوې دې، ځکه چه د سیدنا جندب بن عبد الله سن وفات په مورخین او ائمه جرح و تعدیل کښې چا هم نه دې لیکلې، د هغوی د وفات سن نه دې معلوم نو دا د شپږو او لسو کالو تعین د چرته نه اوکړې شو. (۴)
علامه مزی رحمه الله په تهذیب الکمال کښې د هغوی تذکره لیکلې ده او د هغوی سن وفات ئې نه دې لیکلې. (۵) علامه ذهبی رحمه الله په سیر اعلام النبلاء کښې لیکلې دی چه د هغوی وفات د ۷۰ هجری په حدود کښې شوې دې. (۶) والله اعلم.

## ۳۷: بَابُ مَنْ جَاهَدَ نَفْسَهُ فِي طَاعَةِ اللَّهِ

د الله پاک په طاعت او عبادت کښې د مشقت اوچتولو او مجاهده کولو فضیلت په دې باب کښې بیان کړې شوې دې، د اخلاق ذمیمه نه خپله تزکیة او اخلاق حسنة خپلول، د ګناهونو نه بچ کیدل او خواهشات د خپلو لاندې کول دا ټول په مجاهده فی الطاعات کښې داخله ده.(۷) د ابو علی دقاق قول دې:

(۱) فتح الباری : ۴۰۸/۱۱
(۲) عمدة القاری : ۱۳۲/۲۳
(۳) عمدة القاری : ۱۳۲/۲۳
(۴) عمدة القاری : ۱۳۲/۲۳
(۵) تهذیب الکمال: ۱۳۷/۵، رقم الترجمة : ۹۷۳
(۶) سیر اعلام النبلاء ۱۷۵/۳
(۷) ارشاد الساری ۵۰۰/۱۳

﴿من زين ظاهره بالمجاهدة، حسن الله سرائره بالمشاهدة﴾ [1]

يعنى كوم سړي چه خپل ظاهر په مجاهده ، والا وصفونو، ډولی کړی. الله پاک به د هغه باطن د حق په مشاهده باندې ډولی کړی.

په آيت کريمه کښې دی : ﴿وَأَمَّا مَنْ خَافَ مَقَامَ رَبِّهِ وَنَهَى النَّفْسَ عَنِ الْهَوَى﴾ (النازعات : ۴۰) يعنى څوک چه د خپل رب مخکښې د اودريدو نه اويريږی او خپل نفسانی خواهشات منع کړی نو د هغه ځائې جنت دې او په يو بل آيت کريمه کښې دی :

﴿وَالَّذِينَ جَاهَدُوا فِينَا لَنَهْدِيَنَّهُمْ سُبُلَنَا﴾ (العنكبوت : ۶۹) او کوم خلق چه زمونږ په لاره کښې مجاهده کوی مونږ هغوی ته خپلې لارې ښايو.

**د اهل مجاهده لس خصلتونه** : امام عبدالقادر جيلانی رحمه الله په غنية الطالبين کښې د اهل مجاهده لس خصلتونه بيان فرمائيلي دی :

① قسم نه خوړل (که په دروغه وی او که رشتينې وی. که قصدا وی او که په هيره)

② دروغ نه وئيل.

③ وعده پوره کول.

④ د الله پاک په مخلوق کښې چا سره د بدئ کولو او د تکليف رسولو نه ځان ساتل.

⑤ چاته بد دعا نه کول. اګر که څوک ظالم ولې نه وی.

⑥ د چا په حق کښې د شرک او کفر او منافقت ګواهی نه ورکول.

⑦ د ګناه د څيزونو طرف ته نه په ظاهر کښې نظر کول او نه په باطن کښې.

⑧ په چا باندې خپل بوج نه اچول او د مخلوق بار په خپل سر اوړل.

⑨ د چا طرف ته د طمع لاس نه اوږدول.

⑩ تواضع اختيارول. [2]

[۶۱۳۵] حَدَّثَنَا هُدْبَةُ بْنُ خَالِدٍ حَدَّثَنَا هَمَّامٌ حَدَّثَنَا قَتَادَةُ حَدَّثَنَا أَنَسُ بْنُ مَالِكٍ عَنْ مُعَاذِ بْنِ جَبَلٍ - رضى الله عنه - قَالَ بَيْنَمَا أَنَا رَدِيفُ النَّبِىِّ - صلى الله عليه وسلم - لَيْسَ بَيْنِى وَبَيْنَهُ إِلاَّ آخِرَةُ الرَّحْلِ فَقَالَ « يَا مُعَاذُ ». قُلْتُ لَبَّيْكَ يَا رَسُولَ اللَّهِ وَسَعْدَيْكَ، ثُمَّ سَارَ سَاعَةً ثُمَّ قَالَ « يَا مُعَاذُ ». قُلْتُ لَبَّيْكَ رَسُولَ اللَّهِ وَسَعْدَيْكَ، ثُمَّ سَارَ سَاعَةً ثُمَّ قَالَ « يَا مُعَاذُ بْنَ جَبَلٍ ». قُلْتُ « لَبَّيْكَ رَسُولَ اللَّهِ وَسَعْدَيْكَ. قَالَ « هَلْ تَدْرِى مَا حَقُّ اللَّهِ عَلَى عِبَادِهِ ». قُلْتُ اللَّهُ

---

[1] ارشاد السارى ۱۳/۵۰۰

[2] قال الشيخ عبدالقادر الجيلانى رحمه الله احد ائمة الصوفية والاعلام : والاصل فى المجاهدة مخالفة الهوى فيفطم نفسه عن المالوفات والشهوات واللذات، ويحملها على خلاف ما تهوى فى عموم الاوقات. فان انهمك فى الشهوات الجمها بلجام التقوى والخوف من الله. فاذاحرنت ووقفت عند القيام بالطاعات والموافقات ساقها بسياط الخوف وخلاف الهوى ومنع الحظوظ. (وانظر غنية الطالبين (المترجم) مع فتوح الغيبب، ص ۱۰۲٤)

وَرَسُولُهُ أَعْلَمُ. قَالَ «حَقُّ اللهِ عَلَى عِبَادِهِ أَنْ يَعْبُدُوهُ، وَلَا يُشْرِكُوا بِهِ شَيْئًا». ثُمَّ سَارَ سَاعَةً ثُمَّ قَالَ «يَا مُعَاذُ بْنَ جَبَلٍ». قُلْتُ لَبَّيْكَ رَسُولَ اللهِ وَسَعْدَيْكَ. قَالَ «هَلْ تَدْرِي مَا حَقُّ الْعِبَادِ عَلَى اللهِ إِذَا فَعَلُوهُ». قُلْتُ اللهُ وَرَسُولُهُ أَعْلَمُ. قَالَ «حَقُّ الْعِبَادِ عَلَى اللهِ أَنْ لَا يُعَذِّبَهُمْ». [ر ۲۷۰۱]

د سيدنا معاذ بن جبل رضي الله عنه نه روايت دي چه زه په سورلئ باندي په رسول الله ﷺ پسي شاته ناست اوم. سوا د كيجاوې د لرګي نه زما او د رسول الله ﷺ ترمينځه بل يو څيز هم حائل نه وو. رسول الله ﷺ اوفرمائيل : اې معاذ: ما عرض اوكړو لبيك وسعديك يا رسول الله ﷺ! يا رسول الله ﷺ زه حاضر يم او تيار يم، بيا لږ ساعت پورې رسول الله ﷺ روان وو. د هغې نه روستو ئې اوفرمائيل : اې معاذ: ما عرض اوكړو لبيك وسعديك يا رسول الله! وې فرمائيل تاته معلومه ده چه د الله پاک په خپلو بندګانو باندې څه حق دې؟ ما اووې الله پاک او هغه رسول ﷺ ښه پوهيږي، وې فرمائيل : د الله پاک په بندګانو باندې دا حق دې چه هغوی د الله پاک عبادت اوكړي او د هغه سره څوک هم شريک نه كړي. بيا رسول الله ﷺ لږ ساعت روان وو، او وې فرمائيل : اې معاذ: ما عرض اوكړو. لبيك وسعديك يا رسول الله! وې فرمائيل. تاته معلومه ده چه كله بندګان دا كار اوكړي نو د هغوی په الله پاک څه حق دې؟ ما عرض اوكړو. الله پاک او د هغه رسول ﷺ ښه پوهيږي، وې فرمائيل : د الله پاک په بندګانو باندې دا حق دې چه هغوی ته عذاب ورنكړي.

**د حديث الباب خصوصيت: تنبيه :** حافظ ابن حجر رحمه الله د دې حديث په باره كښې ليكي :

﴿ هذا من الأحاديث التى أخرجها البخارى فى ثلاثة مواضع عن شيخ واحد بسند واحد وهى قليلة فى كتابه جدا ولكنه أضاف إليه فى الاستئذان موسى بن إسماعيل وقد تتبع بعض من لقيناه ما أخرجه فى موضعين بسند فبلغ عدتها زيادة على العشرين وفى بعضها يتصرف فى المتن بالاختصار منه ﴾ [۱]

يعنى دا د هغه احاديثو نه دې چه د هغې تخريج. په يو سند او متن سره امام بخارى رحمه الله په درې مقاماتو باندې كړې دې او داسې احاديث په صحيح بخارى كښې ډير كم دی. په يو سند او يو متن سره په دوه مقاماتو باندې تخريج كړې شوې احاديثو بعض علماء كرامو تحقيق اوكړو نو د هغې تعداد د شلو نه پورته وو. بيا د هغې نه په متن كښې لږ شان اختصار هم دې.

**د ترجمة الباب سره د حديث مناسبت:** د ترجمة الباب سره حديث مناسبت ظاهر دې چه په دې كښې د الله پاک د بندګانو په ذمه حق بيان كړې دې چه هغوی د الله پاک سره څوک نه شريكوی او د هغه د عبادت او طاعت مجاهده اوكړي. كوم ته چه جهاد اكبر وئيلې شي. [۲]

[۱]) فتح البارى : ۴۱۳/۱۱
[۲]) عمدة القارى ۱۳۳/۲۳، ارشاد السارى : ۵۰۰/۱۳

قوله: ﴿لَيْسَ بَيْنِي وَبَيْنَهُ إِلاَّ آخِرَةُ الرَّحْلِ﴾: ﴿اخرة الرحل﴾ د كيجاوې پالان ته وائى او ﴿آخرة﴾ د خاء په كسرې او الف سره. هغه لرګى ته وائى چه په هغې باندې سور انسان تكيه لګوى. يعنى زما او د رسول الله ﷺ ترمينځه يو لرګې حائل وو او زه په رسول الله ﷺ پسې بالكل متصل نزدې ناست اوم، مقصد ترې نه مبالغه ده چه ما د هغوى نه څه واوريدل. هغه مې ډير د نزدې نه واوريدل. حافظ ابن حجر رحمه الله ليكى:

﴿وفائدة ذكره المبالغة فى شدة قربه ليكون اوقع فى نفس سامعه أنه ضبط ما رواه﴾ [1]

قوله: ﴿لَبَّيْكَ وَسَعْدَيْكَ﴾: ﴿لبيك﴾ مفعول مطلق دې. د دې فعل وجوبا محذوف دې. تقديرى عبارت داسې دې، ﴿الب لك الباين﴾ فعل لره حذف كولو سره مصدر د هغې قائم مقام كړې شو، بيا مصدر مزيد فيه لره د زائد د حذف كولو نه پس د ثلاثى مجرد طرف ته واپس كړې شو، پس د دې نه لام جاره لره حذف كولو سره مصدر ثلاثى د كاف ضمير طرف ته مضاف كړې شو نو ﴿لبيك﴾ شو. په دې صورت كښې به دا د ﴿الب بالمكان الهابا﴾ نه ماخوذ وى، چه د هغې معنى ده په يو ځائې كښې مقيم كيدل نو د ﴿لبيك﴾ مطلب شو: زه ستاسو په فرمانبردارئ باندې مقيم او ثابت يم.

د امام خليل نحوى رحمه الله په نزد دا د ﴿لب يلب﴾ نه ماخوذ دې. وئيلې شى چه ﴿دار فلان تلب دارى﴾ يعنى د فلانى كور زما كور ته بالكل بالمقابل دې. لهذا د ﴿لبيكَ﴾ مطلب دا دې:

﴿انا مواجهكَ بما تحب اجابة لكَ﴾ يعنى تاسو چه د كوم څيز زما نه مطالبه كوئ زه ستاسو د مرضئ مطابق هغې ته د مخامخ كيدو دپاره تيار يم.

﴿سعديكَ﴾، د سعد متعدى دې، دا د اسعاد معنى كښې دې يعنى د چا مدد كول، دا هم مفعول مطلق دې، د دې فعل هم وجوبا محذوف دې، تقديرى عبارت داسې دې: ﴿اسعدكَ اسعادا بعد اسعاد﴾ يعنى زه ستاسو د مدد دپاره تيار يم، ﴿لبيكَ﴾ او ﴿سعديكَ﴾ اګر چه د تثنيه صيغې دى خو په تثنيه باندې د دلالت كولو دپاره نه دى بلكه په كثرت او تكرار باندې د دلالت كولو دپاره دى. [2]

---

[1]) فتح البارى: ۱۱/۱۱ ٤

[2]) د تفصيل دپاره اوګورئ: شرح الجامى ۸۷-۸۸، مخار الصحاح ص: ۵۸۹، والمعجم المفصل فى الاعراب: ۳۸۲/۳

# ۳۸: بَاب التَّوَاضُعِ

د تواضع څو معنې بیان کړې شوې دی: ﴿اظهار التنزل من المرتبة لمن يراد تعظيمه﴾ یعنی د چا د تعظیم چه اراده وی د هغه مخکښې د خپلې مرتبې نه ښکته والې او نزول ښکاره کول. [۱]

بعضو وئیلې دی: ﴿هو تعظيم من فوقه لفضله﴾ [۲] یعنی: د خپل ځان نه د اوچت ذات احترام کول د هغه د فضل او فوقیت د وجې نه.

جنید بغدادی رحمه الله فرمائی: ﴿التواضع: خفض الجناح ولين الجانب﴾ یعنی د نرم خوئی نوم دې.
فضیل بن عیاض رحمه الله فرمائی: د حق مخکښې ښکته کیدل، حق اوریدل او د هغې قبلول تواضع ده. [۳]

د سیدنا ابو سعید خدری رضی الله عنه مرفوع حدیث په مسند احمد کښې دې ﴿مَنْ تَوَاضَعَ لِلّٰهِ دَرَجَةً رَفَعَهُ اللّٰهُ دَرَجَةً، حَتّٰى يَجْعَلَهُ فِي عِلِّيِّينَ﴾ [۴] یعنی څوک چه د الله پاک دپاره یو درجه تواضع اختیار کړی، الله پاک به هغه ته یو درجه رفعت ورکړی او هغه ته به په اعلی علیین کښې ځائې ورکړی.
امام ترمذی رحمه الله د سیدنا ابوسعید خدری رضی الله عنه مرفوع حدیث نقل کړې دې:

﴿وَمَا تَوَاضَعَ أَحَدٌ لِلّٰهِ إِلَّا رَفَعَهُ اللّٰهُ﴾ [۵] یعنی د الله پاک دپاره چه څوک هم تواضع اختیاروی الله پاک هغه ته رفعت او اوچت والې ورکوی.
امام ابوداؤد رحمه الله د عیاض بن حمار نه یو بل روایت نقل کړې دې، د هغې الفاظ دا دی:

﴿إِنَّ اللّٰهَ أَوْحَىٰ إِلَيَّ أَنْ تَوَاضَعُوا حَتّٰى لَا يَبْغِيَ أَحَدٌ عَلَىٰ أَحَدٍ وَلَا يَفْخَرَ أَحَدٌ عَلَىٰ أَحَدٍ﴾ [۶] یعنی الله پاک ماته وحی کړې ده چه تاسو تواضع او عاجزی اختیار کړئ او څوک دې هم په بل ظلم نه کوی او نه دې څوک په بل چا فخر کوی.

[۶۱۳۶] حَدَّثَنَا مَالِكُ بْنُ إِسْمَاعِيلَ حَدَّثَنَا زُهَيْرٌ حَدَّثَنَا حُمَيْدٌ عَنْ أَنَسٍ - رضى الله عنه - كَانَ لِلنَّبِيِّ - صلى الله عليه وسلم - نَاقَةٌ. قَالَ وَحَدَّثَنِي مُحَمَّدٌ أَخْبَرَنَا الْفَزَارِيُّ وَأَبُو خَالِدٍ الأَحْمَرُ عَنْ حُمَيْدٍ الطَّوِيلِ عَنْ أَنَسٍ قَالَ كَانَتْ نَاقَةٌ لِرَسُولِ اللّٰهِ - صلى الله عليه وسلم -

---

[۱] فتح الباری: ۱۱/۱۴، ارشاد الساری ۱۳/۵۰۰، عمدة القاری ۲۳/۱۳۴
[۲] فتح الباری: ۱۱/۱۴، ارشاد الساری ۱۳/۵۰۰، عمدة القاری ۲۳/۱۳۴
[۳] اوګورئ: عوارف المعارف للسهروردی، الباب الثلاثون فی تفاصیل الاخلاق الصوفیة: ۱/۴۲۱
[۴] الحدیث اخرجه الامام احمد فی مسنده، مسندابی سعید الخدری: ۴/۱۹۱، رقم ۱۱۷۴۷، (اسناده ضعیف)
[۵] اخرجه الامام الترمذی فی سننه، کتاب الزهد، باب التواضع: ۴/۲۸، رقم الحدیث: ۲۰۲۹ (واخرجه مسلم ایضا)
[۶] الحدیث اخرجه ابوداؤد فی کتاب الادب، باب التواضع ۴/۲۷۴، رقم الحدیث: ۴۸۹۵ (اسناده صحیح)

تَسمى العَضبَاءَ، وَكَانَتْ لاَ تُسبَقُ ، فَجَاءَ أعرَابِي عَلَى قَعُودٍ لَهُ فَسَبَقَهَا ، فَاشْتَدَّ ذٰلِكَ عَلَى الْمُسلِمِينَ وَقَالُوا سُبِقَتِ الْعَضبَاءُ، فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - «إِنَّ حَقًّا عَلَى اللَّهِ أَنْ لاَيَرْفَعَ شَيْئًا مِنَ الدُّنْيَا إِلاَّ وَضَعَهُ». [ر: ۲۷۱۶]

د سيدنا انس رضي الله عنه نه روايت دي چه د رسول الله ﷺ يوه اوښه وه. چه د هغې نوم عضباء وه، يو ځاروي به هم په منډه كښې، د هغې نه مخكښې كيدې نه شو. بيا يو بانډچى په خپله سورلئ باندې سور راغلو او د رسول الله ﷺ نه مخكښې لاړو. په مسلمانانو باندې دا خبره بده اولګيده او وې وئيل چه عضباء شاته پاتې شوه. رسول الله ﷺ اوفرمائيل : د الله پاک دا عادت دې چه هغه په دنيا كښې يو څيز نه اوچتوى مګر هغه پست كوى هم

**د حديث الباب دوه طرق** . دا حديث امام بخاري رحمه الله په دوه طرق سره نقل كړې دې .

① يو طريق د هغوى د شيخ مالک بن اسماعيل. د هغوى د شيخ زهير بن معاويه ده او هغوى د حميد طويل نه نقل كوى.

② دويم طريق كښې د امام بخاري رحمه الله شيخ محمد بن سلام دې او د هغوى دوه شيوخ دى. مروان بن معاويه فزارى او ابو خالد احمد. دا دواړه د حميد طويل نه نقل كوى. په حميد باندې دواړه طرق جمع كيږى د ابو خالد نوم سليمان بن حيان دې.

حديث الباب. په كتاب الجهاد كښې د باب ناقة النبى ﷺ د لاندې تير شوې دې.

**د ترجمة الباب سره مناسبت:** د ترجمة الباب سره د حديث مناسبت. د دې روايت په دويم طرق كښې د واقع دې جملې سره دې . «إِنَّ حَقًّا عَلَى اللَّهِ أَنْ لاَيَرْفَعَ شَيْئًا مِنَ الدُّنْيَا إِلاَّ وَضَعَهُ» يعنى: هر يو داسې څيز چه په دنيا كښې ځان اوچت كړى. الله پاک به هغه راښكته كړى.

د دې حديث نه د رفع او تكبر مذمت او د تواضع ترغيب معلوميږى (۱)

[۶۱۳۷] حَدَّثَنِي مُحَمَّدُ بْنُ عُثْمَانَ حَدَّثَنَا خَالِدُ بْنُ مَخْلَدٍ حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ بِلاَلٍ حَدَّثَنِي شَرِيكُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ أَبِي نَمِرٍ عَنْ عَطَاءٍ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - «إِنَّ اللَّهَ قَالَ مَنْ عَادَى لِي وَلِيًّا فَقَدْ آذَنْتُهُ بِالْحَرْبِ، وَمَا تَقَرَّبَ إِلَيَّ عَبْدِي بِشَيْءٍ أَحَبَّ إِلَيَّ مِمَّا افْتَرَضْتُ عَلَيْهِ، وَمَا يَزَالُ عَبْدِي يَتَقَرَّبُ إِلَيَّ بِالنَّوَافِلِ حَتَّى أُحِبَّهُ، فَإِذَا أَحْبَبْتُهُ كُنْتُ سَمْعَهُ الَّذِي يَسْمَعُ بِهِ، وَبَصَرَهُ الَّذِي يُبْصِرُ بِهِ، وَيَدَهُ الَّتِي يَبْطُشُ بِهَا وَرِجْلَهُ الَّتِي يَمْشِي بِهَا، وَإِنْ سَأَلَنِي لأُعْطِيَنَّهُ، وَلَئِنِ اسْتَعَاذَنِي لأُعِيذَنَّهُ، وَمَا تَرَدَّدْتُ عَنْ شَيْءٍ أَنَا فَاعِلُهُ تَرَدُّدِي عَنْ نَفْسِ الْمُؤْمِنِ، يَكْرَهُ الْمَوْتَ وَأَنَا أَكْرَهُ مَسَاءَتَهُ».

د سيدنا ابوهريره رضي الله عنه نه روايت دي چه رسول الله ﷺ اوفرمائيل الله پاک فرمائى چه چا زما ولى سره دشمنى اوكړه زما د طرف نه هغه ته اعلان جنګ دې او زما بنده چه زما د طرف نه په هغه باندې فرض كړې شوې څيزونو باندې عمل كولو سره ماته نزدې كيدې شى. په بل

---

(۱) عمدة القارى ۱۳۵/۲۳. ارشاد السارى : ۵۰۱/۱۳

خیز باندې نه شي کیدې او زما بنده د نوافل په ذریعه ماته قرب حاصلوی. تردې چه زه هغه سره محبت کوم. چه کله زه د هغه سره محبت کوم نو زه د هغه غوږ جوړ شم چه په هغې باندې هغه اوری. او د هغه سترګه جوړه شم چه په هغې باندې هغه ګوری. او د هغه لاس جوړ شم چه په هغې باندې هغه نیول کوی. او د هغه خپه جوړه شم چه په هغې باندې هغه تلل کوی او که هغه زما نه غواړی نو زه هغه ته ورکوم او که هغه زما د پناه طالب وی نو زه هغه ته پناه ورکوم. «کوم کار چه زه کول غواړم، په هغې کښې زه په تردد کښې نه واقع کیږم. لکه چه د هغه مومن د نفس په باره کښې ماته تردد وی کوم چه مرګ نه خوښوی او زه د هغه دا «مرګ لره» ناخوښه ګڼل نه خوښوم.

**قوله:** ﴿مَنْ عَادَى لِي وَلِيًّا فَقَدْ آذَنْتُهُ بِالْحَرْبِ﴾ یعنی څوک چه زما د دوست او ولی سره دشمنی کوی. زه هغه سره د جنګ اعلان کوم

﴿ولی﴾: د فعیل په وزن باندې دې او دا یا خو د اسم مفعول په معنی کښې دې د فعیل وزن د مفعول په معنی کښې استعمالیږی. د ولی نه مراد هغه سړې دې د چا امور او معاملاتو ته چه د الله پاک ولایت او نصرت حاصل وی.

په سورة اعراف آیت ۱۹۶ کښې الله پاک فرمائی ﴿وَهُوَ يَتَوَلَّى الصَّالِحِينَ﴾ یعنی الله پاک د صالحین ولایت او نصرت کوی او د هغوی حفاظت کوی.

او یا دا د اسم فاعل په معنی کښې دې یعنی چاته چه د الله پاک په عبادت او طاعت باندې قدرت او ولایت حاصل وی او د هغه عبادات مسلسل جاری وی. علامه قسطلانی رحمه الله فرمائی ﴿أو هو فعيل مبالغة من الفاعل وهو الذي يتولى عبادة الله وطاعته فعباداته تجرى على التوالي من غير أن يتخللها عصيان﴾[1]

څنګه چه د انبیاء ﷺ دپاره معصوم کیدل ضروری دی هم دغه شان د ولی دپاره هم د الله پاک د نافرمانئ نه محفوظ کیدل ضروری دی [2]

علامه عینی رحمه الله د ولی په تعریف کښې لیکی

﴿هو العالم بالله المواظب على طاعته المخلص في عبادته﴾[3]

﴿من عاد ولیا لی﴾ ئې او نه فرمائیل بلکه ﴿لی﴾ ئې مقدم کړو. اصل کښې ﴿لی﴾ د ﴿ولیا﴾ صفت دې. هغه ئې مقدم کولو سره حال جوړ کړې دې [4] په دې کښې یو لطیف نکتې طرف ته اشاره کولو سره علامه انور شاه کشمیری رحمه الله لیکی

﴿وإنما قال: «من عادى لي»، ولم يقل: «وليا لي»، تفخيماً لشأن العداوة، لأن في الأول إيذاناً بأن عداوة ولي

---

[1] ارشاد الساری: ۵۰۲/۱۳

[2] ارشاد الساری: ۵۰۲/۱۳

[3] عمدة القاری: ۲۳ ۳۷

[4] فتح الباری: ۴۱۶/۱۱، عمدة القاری ۱۳۶/۲۳، ارشاد الساری: ۵۰۲/۱۳

کأنّها عداوةُ الله تعالی، بخلاف الثانی ﴾[1] یعنې ﴿ من عادلي وليا ﴾ ئې اوفرمائیل، او ﴿ من عاد وليا لي ﴾ ئې او نه فرمائیل، د عداوت او دشمنۍ د معاملې د سخت والی د وجې نه. ځکه چه په اول صورت کښې د دې خبرې طرف ته اشاره ده چه د یو الله والا سره دشمنی کول الله پاک سره د دشمنۍ کولو مترادف ده په بل صورت کښې دا نکته نه حاصلیده.

د حدیث شریف مطلب دا دې چه کوم انسان چه زما ولي ته تکلیف رسوی، هغه ته اذیت ورکوی نو زه هغه سره اعلان جنګ کوم، علامه قسطلانی رحمه الله لیکی:

﴿ وذا أثبت هذا فی جانب المعاداة، ثبت ضده فی جانب الموالاة، فمن والی اولیاء الله، اکرمه ﴾[2]

**قوله:** ﴿ وَمَا تَقَرَّبَ إِلَيَّ عَبْدِي بِشَيْءٍ أَحَبَّ إِلَيَّ مِمَّا افْتَرَضْتُ عَلَيْهِ ﴾: یعنې بنده چه زما قربت د کومو څیزونو په ذریعه حاصلوی، په هغې کښې د فرائضو نه زیات محبوب څیز زما په نزد نشته. مطلب دا دې چه په فرائضو باندې عمل کولو سره د الله پاک قرب حاصلیدلې شی، د بل څه څیز په ذریعه، د دې نه زیات قرب نه شی حاصلیدې، د نوافل په ذریعه هم د الله پاک قرب هم هغه وخت حاصلیدې شی، چه کله د فرائضو اهتمام وی، فرائض پریخودلو سره د نوافلو اهتمام کونکې دالله پاک محبوب کله هم نه شی جوړیدې، علامه انور شاه کشمیری رحمه الله په فیض الباری کښې د دې وضاحت فرمائیلې دې.[3]

**قوله:** ﴿ وَمَا يَزَالُ عَبْدِي يَتَقَرَّبُ إِلَيَّ بِالنَّوَافِلِ حَتَّى أُحِبَّهُ ﴾: لکه چه وئیلې شوې دی چه د نوافل نه مراد نوافل مع الفرائض دی، یعنې یو سړې د فرائضو خو اهتمام کوی خو دهغې سره سره هغه د نوافلو کثرت هم اختیاروی، نو د الله پاک د محبوبیت درجه بیا مومی.

[1]) فیض الباری : ٤/٤٢٧

[2]) ارشاد الساری : ١٣/٥٠٢

[3]) قوله: (وما يَزَالُ عَبْدی يَتَقَرَّبُ إلیَّ بالنَّوَافل)... إلخ. وههنا بحثٌ للصوفية فی فضل القُرْب بالنوافل، والقُرْب بالفرائض. فقالوا: إن العبدَ فی القُرْبَ الأوّل يصيرُ جارحةً جلَّ مجده، والله سبحانه نفسه يكون جاريحةً لعبده فی القُرْب الثانی. وذلک لأنَّ الفرائضَ مفروضةٌ من الله تعالی علی عباده، وليس لهم بُدٌّ من الإتيان بها، فكانوا فيها كالجارحة للرجل. وأمَّا النوافلُ، فالعبدُ يأتی بها بطوعها، من دون عزم عليه. فإذا تقرب بها إلی الله تعالی كان اللّهُ له كالجارحة. قلتُ: أمَّا كونُ الله تعالی جارحةً للعبد فی القربِ بالنوافل، فذلک نصُّ الحديث. وأمّا ما ذكروه فی القرب بالفرائض، فلا لفظَ له فی الحديث. إلاّ أنّهم أخذوه بالمقابلة. والذی تبيَّن لی أن القربَ فی الفرائض أزيدُ وأكملُ، فإنه يَجْلبُ المحبوبيةَ له تعالی من أوّل الأمر. بخلاف القُرْب في النوافل، فإنها تَجْلبُ المحبوبيةَ تدريجاً، وإن كانت ثمرتُها فی الانتهاء أيضاً هی المحبوبيةُ. ولكن ما يَحْصُلُ من النوافل آخراً يَحْصُلُ من الفرائض أوّلاً، فأنّی يستويان وإليه تُرْشدُ ألفاظُ الحديث، فإنّه قال فی الفرائض: «ما تقرب إلیَّ عبدی بشیء أحَبَّ إلیَّ ممَّا افترضتُ عليه»، فجعل مفروضَه أحبَّ إليه من أوّل الأمر، وجعل ثمرتَه القربَ. بخلاف النوافل، فإنَّ القُرْبَ منها تدريجیٌّ، يتدرَّجُ العبدُ إليه شيئاً فشيئاً. وبالجملة أنّهما فی النتيجة سواء، وهی المحبوبيةُ، غير أنّها تَحْصُلُ بالفرائض أوّلاً، وبالنوافل ثانياً. (فيض الباری : ٤/٤٣٠)

**قوله: ﴿فَإِذَا أَحْبَبْتُهُ كُنْتُ سَمْعَهُ الَّذِي يَسْمَعُ بِهِ وَبَصَرَهُ الَّذِي يُبْصِرُ بِهِ﴾:** الله پاک فرمائی چه کله زه د هغه بنده سره محبت کوم نو د هغه غوږ جوړ شم، چه په هغې سره هغه اوری. سترگې ئې جوړې شم چه په هغې سره هغه گوری

**د حديث الباب مختلف مطلبونه:** ظاهره ده چه دا الفاظ په خپله حقیقی معنی کښې نه دی. الله پاک د جسم او د جسم د لوازماتو نه پاک او منزه دې. په دې وجه د دې مجازی معنی اخستلې شوې ده او لاندې ذکر شوې مطالب بیان کړې شوې دی:

① په دې سره د الله پاک د نصرت او تائید طرف ته اشاره ده او مقصد دا دې چه کوم بنده د الله پاک محبوب جوړ شی. د هغه دا اندامونه د الله پاک په نصرت او تائید سره چلیږی. حرکت کوی او کار کوی. مشهور صوفی بزرگ ابو عثمان حیری د دې معنی وضاحت کولو سره فرمائی: ﴿معنى الحديث: كنت اسرع الى قضاء حوائجه من سمعه فى الاستماع، وعينه فى النظر، ويده فى اللمس، ورجله فى المشى﴾ یعنی زه د هغه حاجتونه زر پوره کوم، د هغه د حاسه سمع نه په اوریدو کښې، د هغه د سترگو نه په لیدو کښې، د هغه د لاس نه په مس کولو کښې او د هغه د قدم نه په تلو کښې، د دې حاصل هم دا دې چه د الله پاک نصرت او تائید داسې بنده ته حاصل وی. (١)

② دویمه معنی دا بیان کړې شوې ده چه سمع او بصر د اسم مفعول مسموع په معنی کښې دې او مطلب ئې دا دې چه داسې بنده صرف زما ذکر اوری. زما د قدرتونو کرشمې گوری او صرف زما په مرضئ باندې د هغه لاسونه او خپې وراندې ځی. (٢)

③ بعض حضراتو وئیلې دی چه دلته د حافظ لفظ په طور د مضاف محذوف دې. تقدیر د عبارت داسې دې: ﴿كنت حافظ سمعه الذى يسمع به، فلا يسمع الا ما يحل سماعه، وحافظ بصره﴾، یعنی زه د هغه د غوږونو او د هغه د نظر حفاظت کوم او دغه شان هغه د گناه او نافرمانئ نه محفوظ وی. (٣)

④ بعض علماء کرامو وئیلې دی چه دا په طور د مثال دې او مطلب ئې دا دې چه څنگه سترگې، لاسونه او نور جوارح انسان ته محبوب وی زه هم ورته دغه شان محبوب شم او هغه زما نافرمانی نه کوی. (٤)

**قوله: ﴿وَمَا تَرَدَّدْتُ عَنْ شَيْءٍ أَنَا فَاعِلُهُ تَرَدُّدِي عَنْ نَفْسِ الْمُؤْمِنِ﴾:** زه چه یو کارکوم نو په هغې کښې تردد نه کوم. څنگه چه د یومومن په روح اخستلو کښې ماته تردد وی. (١)

---

١) فتح البارى: ٤١٨/١١، ارشاد السارى: ٥٠٣/١٣، عمدة القارى: ١٣٨/٢٣

٢) فتح البارى: ٤١٨/١١، ارشاد السارى: ٥٠٣/١٣، عمدة القارى: ١٣٨/٢٣

٣) عمدة القارى: ١٣٨/٢٣

٤) فتح البارى: ٤١٨/١١

مقصد دا دې چه زه کوم کار هم کوم نو په هغې کښې ماته تذبذب او تردد نه وی چه دا کار کول پکار دی یا نه، سوا د مومن د روح اخستلو نه، چه په هغې کښې راته تردد وی چه روح ئې قبض کړې شی یا نه؟ ځکه چه مومن مرګ نه خوښوی او زه هغه تکلیف نه خوښوم.
ظاهره ده چه د تذبذب نسبت د الله پاک طرف ته حقیقی معنی کښې صحیح نه دې ځکه چه تردد یو انفعالی کیفیت دې کوم چه د کمزورئ علامت وی او الله پاک د هر قسم انفعالیت نه پاک او منزه دې.
په دې وجه باندې دلته د تردد نسبت د الله پاک طرف ته مجازا دې او مراد د دې نه د ملائکو تردد دې کوم چه د یو مومن بنده د روح قبض کولو دپاره ځی. د سیدنا موسی علیه السلام د روح قبض کولو دپاره چه کله فرشته لاړه او اجازت ئې اوغوښتلو نو هغوی د فرشتې نه سپیره ویستلې او چونکه دا فرشتې د الله پاک حکم سره ځی. په دې وجه الله پاک د تردد نسبت خپل ځان ته اوکړو. [1] [2]

**قوله:** ﴿يَكْرَهُ الْمَوْتَ وَأَنَا أَكْرَهُ مَسَاءَتَه﴾: (مساءة) (د میم په فتحې سره) مومن سړې مرګ ناخوښه ګنړی. (چه د روح د وتلو په وخت ئې ډیر تکلیف وی) او زه د هغه تکلیف ناخوښه ګنړم، د دې دوه مطلبونه بیان کړې شوې دی.

---

[1]) علامه انور شاه کشمیری رحمه الله د دې جملې متعلق په فیض الباری کښې ډیره نفیس نکته لیکلې ده. لاندې د هغوی کلام نقل کولې شی:
قوله: (وَمَا تَرَدَّدْتُ عَنْ شَيْءٍ أَنَا فَاعِلُهُ)... إلخ، لا ريبَ أن التردُّدَ فى جَنَابه تعالى مُحَالٌ. ولكنَّه جيء به على شأن خاطر عباده. ليَعْلَمُوا مَا قدْرهم عند ربِّهم. وليس له لفظٌ لمثل هذا الموضع في عالمهم إلاَّ هو. فحادثهم بحسب مجارى عُرْفهم. هذا بحسَب الجليِّ من النظر. وعند تدقيق النظر يَظْهَر أنَّ التفاتَه تعالى إلى أمرين متعارضين هو الذى عَنَى بالتردُّد. وعَبَّر عنه. فإنَّ اللَّهَ تعالى يتوجَّه أوَّلاً إلى توفِّي العبد. ثم إلى مَلاَلة العبد من موته. ولا بدَّ له منه فى الدنيا. فكأنَّه مادةُ التردُّد للعبد. فإنَّ العبدَ إذا تردَّدَ فيما تتعارضُ فيه الجهات. فلا يَسْنَحُ له الترجيح، فيحدث له فيه التردُّد لا مَحَالَةَ. واللَّهُ سبحانه بريءٌ عن التردُّد. ولكنَّه عبَّر عنه فى اللفظ. لكونه مادتَّه عندهم. بعبارة أخرى: إنص العبدَ يكره موتَه، ومَلَكُ الموت يجيء لتوفَّاه. فحدث صورة التصادم والتقابل. وتلك الصورة سُمِّيت بالتردُّد. وإلاَّ فلا تردُّد فى جَنَابه تعالى. فإنَّه فعَّالٌ لمَا يَشَاءُ. وحاكمٌ لمَا يريدُ. ثم إنَّ تلك الصورة أيضاً في المواطن التحتانية، وأمَّا فى الفوَق. فلا شيءَ منه. وهَذا كما فى الحديَث: «إن البلاَ يَنْزِلُ من السماء، وتَصْعَدُ الصدقةُ إليه. فلا يزالان يَتَصَارَعَان إلى يوم القيامة، حتى لا يَنْزِلَ هذا. ولا يَصْعَدَ هذا». أَوْ كما قال. فأمعن النظرَ فيه، هل يُوهِمُ فى الظاهر أن الصدقةَ تَرُدُّ من القَدَر شيئاً. والوَجهُ فيه: أنَّ هذا التصارعَ إنَّما هو فى عالم الأسباب، وأمَّا عندَ ربك فقد جَفَّ القلمُ بما هو كائنٌ. وقَد عُلِمَ من قبل أنَّ هذا البلاَ يُرَدُّ عنه لأجل صدقته. ولمَّا كان ردّه من صدقته، لا بدَّ أن يَظْهَرَ هذا التعليقُ أيضاً فى موطن. وهو كما في الحديث. فهكذا لا تردُّد عند ربِّك أصلاً. ولكن لمَّا كانت مادةُ التردُّدَ ممَّا تتجاذبُ فيها الجهاتُ. وهى متحقِّقةٌ فيما نحن فيه. عبَّر عنه بالتردُّد بحسب هذا الموطن. مع أنَّه لا تردُّد عند ربك. فإنَّه لا صباحَ عنده ولا مساء. فافهم. (فیض الباری: ۴/۴۳۰-۴۳۱)
[2]) فتح الباری: ۱۱/۴۲۰، ارشاد الساری: ۱۳/۵۰۳، عمدة القاری: ۲۳/۱۳۸

① الله پاک فرمائی چه مومن، مرګ لره د دې سختئ او د روح د بدن نه د جدايئ د تکليف په وجه باندې ناخوښه ګڼړي او ماته د هغه دا تکليف خوښ نه دې، دا مطلب نه دې چه الله پاک ته د مومن مرګ نه دې خوښ. ځکه چه مرګ خو هغه لره الله پاک سره يوځائې کونکې دې، بلکه مطلب دا دې چه روح قبض کيدو سره چه هغه ته کوم طبعي تکليف وی، د هغه د وجې نه الله پاک اووې ﴿وَأَنَا أَكْرَهُ مَسَاءَتَهُ﴾ (1)

② دويم مطلب ئې دا دې چه مومن خو مرګ ناخوښه ګڼړي خو زه د هغه دپاره په دنيا کښې د اوږد ژوند مشکلات او تکاليف ناخوښوم. په دې وجه هغه خپل ځان ته راوبلم. يعنی د ﴿مساءة﴾ نه د دنيا د اوږد ژوند تکليفونه دی او مصيبتونه دی، چه کله انسان بوډا او ضعيف عمر ته اورسيږی، په بيمارياںو کښې اخته شي نو د دنياوی ژوند دا اذيت چونکه الله پاک ته د مومن دپاره ناخوښه ده، په دې وجه الله پاک هغه لره خپل ځان ته د رابللو فيصله اوفرمائی او حال دا چه مومن مرګ لره ناخوښه ګڼړي. (2)

په دې حديث کښې الله پاک د اولياء الله مقام او مرتبه بيان فرمائيلې ده چه که د مرګ د روستو کيدو ګنجائش وې نو الله پاک به د هغوی په حق کښې هغه هم روستو کړې وې ځکه چه الله پاک ته خپل داسې بندګان ډير ګران او نزدې دی.

**په حديث الباب باندې اعتراض او د هغې جواب** : په حديث الباب کښې د امام بخاری رحمه الله شيخ الشيخ خالد بن مخلد قطوانی دې، علامه ذهبی رحمه الله په ميزان الاعتدال کښې د مختلف محدثين او ائمه جرح و تعديل رائې د هغوی په باره کښې نقل کړی دی. په هغوی کښې ډيرو حضراتو هغوی ته ضعيف وئيلې دې، پس امام احمد رحمه الله فرمائی ﴿له مناكير﴾، امام ابو حاتم رحمه الله فرمائی ﴿يكتب حديثه ولا يحتج به﴾ (3)

ابن سعد رحمه الله فرمائی ﴿منكر الحديث مفرطا فى التشيع﴾ (4) امام ابن عدی رحمه الله په الكامل فى ضعفاء الرجال کښې د هغوی ذکر کړې دې او د هغوی لس احاديث نقل کولو سره ئې ټولو ته نسبتا منکر وئيلې دی. (5) علامه ذهبی رحمه الله د حديث الباب ذکر کولو سره فرمائی ﴿هذا حديث غريب جدا﴾ که د صحيح بخاری هيبت نه وې نو محدثينو به دا د خالد بن مخلد په منکر احاديثو کښې شمار کړې وې. (6)

علامه ذهبی رحمه الله فرمائی چه د امام بخاری رحمه الله نه علاوه بل چا هم د هغه نه نقل نه دې کړې،

---

1) فتح البارى : ۴۲۰/۱۱، ارشاد السارى : ۵۰۳/۱۳، عمدة القارى : ۱۳۸/۲۳

2) فتح البارى : ۴۲۱/۱۱، ارشاد السارى : ۵۰۳/۱۳، عمدة القارى : ۱۳۸/۲۳

3) اوګورئ : ميزان الاعتدال ۶۴۰/۱، رقم الترجمة : ۲۴۶۳

4) ميزان الاعتدال ۶۴۰/۱، رقم الترجمة : ۲۴۶۳

5) الكامل فى ضعفاء الرجال : ۳۶/۳، رقم : ۵۹۵

6) ميزان الاعتدال ۶۴۲/۱، رقم الترجمة : ۲۴۶۳

شريک بن عبدالله په دې کښې متفرد دې او هغه حافظ نه دې، او د دې سند نه علاوه په بل يو سند سره هم دا حديث نه دې روايت شوې او زما خيال دې چه په مسند احمد کښې دا نشته.[1]

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی چه په مسند احمد کښې خو يقينا دا روايت نشته خو دا وئيل چه په بل څه سند سره نه دې روايت کړې شوې، صحيح خبره نه ده. ځکه چه دا روايت د سيدنا ابو هريره رضي الله عنه نه علاوه د لاندې ذکر شوې صحابه کرامو رضي الله عنهم نه روايت کړې شوې دې:

① د سيده عائشه رضي الله عنها نه ..... د هغوى روايت امام احمد او امام بيهقى په کتاب الزهد کښې او ابو نعيم په حلية الاولياء کښې نقل فرمائيلې دې.

② د سيدنا ابو امامة الباهلى رضي الله عنه نه ..... د هغوى روايت طبرانى او بيهقى په زهد کښې نقل فرمائيلې دې او د هغې سند ضعيف دې.

③ د سيدنا على رضي الله عنه د هغوى روايت سماعى په مسند على کښې نقل کړې دې.

④ د سيدنا ابن عباس رضي الله عنهما نه، د هغوى روايت امام طبرانى په ضعيف سند سره نقل فرمائيلې دې.

⑤ د سيدنا انس رضي الله عنه نه ..... د هغوى روايت ابويعلى، بزار او طبرانى نقل کړې دې، خو د هغې سند هم ضعيف دې.

⑥ سيدنا حذيفه رضي الله عنه نه ..... د هغوى روايت امام طبرانى رحمه الله نقل فرمائيلې دې او د هغې سند حسن غريب دې.

⑦ د سيدنا معاذ بن جبل رضي الله عنه نه ..... د هغوى روايت امام ابن ماجة په سنن کښې او ابو نعيم په حلية الاولياء کښې نقل فرمائيلې دې او د دې سند هم ضعيف دې.

بهر حال اګر چه انفرادى طور دا سندونه ضعيف دى، خو د اووه مختلف صحابه کرامو رضي الله عنهم نه په مختلف طرق سره د دې مفهوم حديث منقول کيدل، په دې باندې دلالت کوى چه د دې حديث اصل ضرور دې.[2]

علامه انور شاه کشميرى رحمه الله په علامه ذهبى رحمه الله باندې رد کولو سره فرمائى:

«ومرّ عليه الذهبيّ في «الميزان»، وقال: لولا هيبةُ الجامع لقلتُ فيه: سبحان الله. وكان الذهبيّ لم يتعلّم علمَ المنطق، قلتُ: إذا صَحّ الحديثُ، فَلْيَضَعْهُ على الرأس والعين، وإذا تعالى شيءٌ منه عن الفهم، فَلْيَكِلْهُ إلى أصحابه، وليس سبيلُه في يُجَرِّح فيه، أمّا علماءُ الشريعة فقالوا: معناه أنّ جوارحَ العبد تصيرُ تابعةً للمرضاة الإلهية، حتّى لا تتحرّك إلا على ما يرضى به ربُّه. فإذا كانت غايةُ سمعِه وبصرِه وجوارحِه كلِّها هو اللهُ سبحانه، فحينئذٍ صَحّ أن يقال: إنه لا يَسْمَعُ إلا له، ولا يتكلّمُ إلا له، فكأنّ اللهَ سبحانه صار سمعَه وبصرَه، قلتُ: وهذا عدولٌ عن حقّ الألفاظ، لأنّ قولَه: «كنتُ سمعَه»، بصيغة المتكلّم، يَدُلُّ على أنّه لم يبق من المتقرّب بالنوافل

---

[1] ميزان الاعتدال ٦٤٢/١

[2] فتح البارى ٤١٥/١١، وارشاد السارى ٥٠٤/١٣

إلا جسدُه وشبحُه، وصار المتصرّفُ فيه الحضرةَ الإلهيةَ فحسب، وهو الذي عناه الصوفية بالفناء في الله، أي الانسلاخ عن داوى نفسه، حتى لا يكونَ المتصرّفُ فيه إلا هو. وفي الحديث لمعةٌ إلى وَحْدَةِ الوجود. وكان مشايخُنا مولعين بتلك المسألة إلى زمن الشاه عبد العزيز. أمّا أنا، فلستُ بمتشدِّدٍ فيها:

ومن عَجَبٍ أنّي أحِنُّ إليهم ... وأسألُ عنهم دائماً، وهم معي

وتبكيهم عيني، وهم في سوادِها ... وتَشْتَاقُهم روحي، وهم بين أضلُعي [1]

یعنی : حافظ ذهبی رحمه الله په میزان الاعتدال کښې په دې حدیث باندې نقد کولو سره فرمائیلې دی چه که د صحیح بخاری رعب مانع نه وې نو د دې حدیث متعلق به ما به (د طنز په طور) سبحان الله ! وئیلې وې...

اصل کښې حافظ ذهبی رحمه الله د علم منطق نه ناخبر وو، زما په خیال کښې د یو حدیث صحت ثابت شی نو هغه په سر سترګو باندې کیخودل پکاردی او که د هغې مفهوم او معنی ډیر اوچت وی نو په داسې صورت کښې د هغې متعلق په تندئ سره فیصله کولو باندې هغه فورا رد کول یا په هغې کښې جرح کول مناسب طریقه نه ده، بلکه په داسې صورت کښې د معانی حدیث ماهرین (فقهاء کرام) طرف ته رجوع کول پکار دی.

پس علماء شریعت د دې حدیث دا معنی بیان کړې ده، د بنده اندامونه د الله پاک د رضا داسې تابع شی چه د الله پاک د رضا نه بغیر هغه حرکت هم نه کوی او چه کله دا کیفیت دې درجې ته اورسیږی چه د هغه غوږونه، سترګې او نور جوارح ، اول او اخر مقصد او غایة د الله پاک ذات مقدسه جوړ شی نو دې وخت کښې دا وئیلې شی چه دا بنده چه اوری نو صرف د الله پاک دپاره او څه چه وائی نو صرف د الله پاک دپاره، ګویا الله پاک د هغه غوږ او سترګه شی. زما په خیال کښې د دې مطلب معنی سره الفاظ حدیث مطابقت نه ساتی بلکه په دې سره د الفاظو حق ضائع کیږی، ځکه چه په حدیث مبارک کښې ﴿کنت سمعه﴾ الفاظ په صیغهٔ د متکلم سره راغلې دی، چه د هغې نه دا خبره معلومیږی چه د نوافلو په ذریعه باندې قرب حاصلونکې بنده ګویا فناء (او بې اختیاره) شی او د هغه خو صرف ظاهری جسم او بدن په نظر راځی، ګینې په حقیقت کښې هغه پوره په پوره د الله پاک د تصرف لاندې شی او د هغه د ټول بدن نه صرف د الله پاک د مرضئ او منشاء مطابق افعال صادریږی، دې کیفیت ته حضرات صوفیاء فناء فی الذات یا فناء فی الله نه تعبیر کوی، په دې حدیث کښې د مسئله وحدة الوجود طرف ته هم اشاره ملاویږی. د شاه عبدالعزیز پورې زمونږ ټول مشائخ په دې مسئله کښې ډیره دلچسپی اخستله، خو زه په دې باره کښې د تشدد نه ځان ساتم.

① تعجب دې چه زه همیشه د هغوی دپاره پریشانه یم او د هغوی په باره کښې تپوس کوم حال دا چه هغه ماسره وی.

② زما سترګې د هغوی دپاره ژړیږی، حال دا چه هغه زما د سترګو په ګاتی کښې اوسیږی

[1] ) فیض الباری : ٤/٤٢٨

او زما روح د هغوی دپاره بې صبره وی حال دا چه هغه زما د پختو ترمينځه اوسيږی. (١)

---

(١) مولانا بدر عالم ميرتهى رحمه الله د فيض البارى په حاشيه او په ترجمان السنة كښې د انور شاه كشميرى رحمه الله د دې كلام نور هم وضاحت كړې دې. هغوی ليكى:
د دوه انسانانو ترمينځه د محبت مراحل سر كولو سره ډير كرته داسې اثرات په نظر راځى چه د هغې ليدلو سره يو پردې سړې هم ليدلو سره دا اندازه كوی چه ضرور په دې دوه كسانو كښې داسې تاثر اود مغلوبيت تعلق دې كوم چه د هغه ظاهر هم مسخر كړې دې او هغه ګوری چه د ناستې ولاړې د مرحلو نه تيريدلو سره د هغه په خط او خال كښې هم د يو شان والى صفت پيدا شوې دې. چه كله د خواهش اتحاد، د ارادې اتحاد، د جذباتو د اتحاد سره د ظاهر اتحاد هم په نظر راځى نو د دې اتحاد د صحيح ترجمانئ دپاره د لفظ اتحاد نه سوا هيڅ دويم لفظ نه ملاويږی:
من توشدم تومن شدی من تن شدم تو جان شدی
تا كس نه گويد بعد ازين من ديگرم تو ديگری
متنبى وائى: ما الخل الا من اود بقلبه :: وارى بطرف لا يرى بسوانه
د فارسئ او عربئ شاعرانو چه د آثار محبت د ادا كولو دپاره چه د كوم مناسب تعبير انتخاب كړې دې هغه لفظ د اتحاد دې خو په دې الفاظو سره چاته دا شبه نه دى كيدل پكار چه د دې اتحاد د وجې نه د هغوی حقيقى اثنينيت باقى نه پاتې كيږی بيا چه د مخلوق په دائره كښې په دې الفاظو سره دا ښكاره غلط فهمى نه پيدا كيږی نو د خالق او مخلوق ترمينځه په څه تعبيری توسع سره د عقيدې غلط فهمى نه پيدا كيږی نو د خالق او مخلوق ترمينځه په يو تعبيری توسع سره د عقيدې غلط فهمى ولې پيدا كيږی، بيشكه چه كله يو بنده د عبديت په لاره باندې روان شى او د فرائضو او نوافلو په سبب د عجز ونياز قدمونه اوچتوی نو دا اندازه كول ګران نه دى چه اوس د هغه ظاهر او باطن لره د الوهيت سلطان پوره پوره مسخر كړې دې، كه هغه اوری نو هم هغه اوری د كومې چه ورته الله پاک د اوريدلو امر كړې دې، كه هغه ګوری او خبرې كوی نو هم هغه ګوری او وائى د كوم چه هغه ته اجازت وركړې شوې دې، كه هغه خپل لاس يا قدم اوچتوی نو هم هلته ئې اوچتوی چرته چه د هغه مولى د هغه دپاره اوچتول خوښ كړې دى. د هغې نه علاوه نه هغه اوری نه ګوری او نه بل څه ادنى حركت كوی نو د دې محبت د ترون د اظهار دپاره ضرور هم هغه الفاظ اختيارول پكار وی كوم چه د دې موقع او محل دپاره مانوس دی بيا چه څنګه هلته د دې الفاظو ښكاره مطلب صرف د دې محبت د رشتې ترجمانى ده هم دغه شان دلته هم د دې الفاظو دلته ښكاره مطلب هم دا دې چه اوس دا بنده د محبت دره باندې تيريدلو سره د خپل مولى په رضا او تسليم كښې فنا شوې دې او د امر شريعت داسې مطيع او منقاد شوې دې لكه يو ښه اس چه د خپل سور د اشاراتو، نه د هغه اس حس او حركت خپل دې او نه د دې بنده نقل او حركت خپل، په كتلو كښې خو دې خپله اودريږی او حركت كوی او په حقيقت كښې د هغه حس او حركت د هغه د مالک دې د هغه جوارح د هغه د ارادې مظاهر جوړ شوې دى چه هر كله د مخلوق قوت ارادى دې درجه فنا كيږی چه د هغه حركت او سكون د بل د ارادې تابع شى نو بيا د هغه حكم د هم هغه صاحب اراده تابع شى. د سپى په شان خبيث ځناور د معلم كيدو سره چه كله خپل قوت ارادى فناء كړی او په تول بدن سره د خپل مالک د رضا تابع شى نو شريعت د هغه د جوارح خپل هيڅ حكم باقى نه دې پريخودلې بلكه كوم چه د هغه د مالک حكم دې د هغه هم هغه حكم دېپه دې وجه كه هغه سپى د مسلمان وی نو د هغه ښكار حلال دې او كه د كافر وی نو د هغه ښكار حرام دې. د دې مطلب دا دې چه د دومره درجې فنائيت نه پس اوس دا ښكار د سپى بالكل نه دې بلكه د هغه د مالک دې كه هغه مسلمان وو نو دا هم حلال دې هم دغه شان چه كله بنده خپله اراده فنا كړی نو بيا دا اطلاق صحيح كيږی چه د هغه سمع او بصر د الله پاک د ارادې مظهر جوړ شوې دې، تاسو اوكتل چه... بقيه برصفحه آئنده...

**د ترجمة الباب سره د حدیث مناسبت:** ① شارحین حدیث د ترجمة الباب سره، د دې حدیث مختلف مناسبتونه بیان فرمائیلي دي:

① علامه کرماني رحمه الله فرمائی چه په دې حدیث کښې د نوافل په ذریعه د الله پاک د قربت د حصول ذکر دې او دا تقرب چونکه په انتهائی تواضع او د الله پاک په دربار کښې د حد درجه عاجزئ اختیارولو نه بغیر نه حاصلیږي، په دې وجه دې مناسبت سره حدیث الباب د باب التواضع د لاندې ذکر کړې شو. (١)

علامه گنگوهی رحمه الله هم دې ته نزدې نزدې خبره ارشاد فرمائیلې ده چه په روایت کښې د عبادت او مانځه ذکر دې او مونځ د انتهائی درجې خضوع او تواضع وی، په روایت کښې په دې تواضع باندې مرتب کیدونکې ثمره یعنی د رب په نزد د قبولیت او اوچتې درجې د حصول درجه ده. (٢)

② حافظ ابن حجر او علامه قسطلانی رحمهما الله فرمائی چه په ترجمة الباب کښې د ﴿ من عادلی ولیا ﴾ نه په فهم کښې راځی ځکه چه د هغې تقاضا دا ده چه د الله پاک د دشمنئ نه انسان ځان بچ کړي او هغوی سره د محبت دوستئ او اکرام والا معامله اختیار کړې شی او د بزرګانو دوستی او اکرام، تواضع نه بغیر نه شی حاصلیدې. (٣)

③ شیخ الحدیث مولانا زکریا صاحب رحمه الله فرمائی چه په ترجمة الباب کښې د ﴿ من عادلی ولیا ﴾ نه ثابتیږي چونکه متواضع انسان د چا سره دشمنی نه کوی، پاتې لا دا چه د الله پاک د دوستانو سره دشمنی اوکړي، پس حضرت لیکی:

﴿ والاوجه عند هذا العبد الضعیف ان الترجمة فی قوله: من عادی لی ولیا .... فان المتواضع لا یعادی احدا، فضلا عن الاولیاء ﴾ (٤)

## ۳۹: باب قول النبي صلی الله علیه وسلم «بُعِثْتُ أَنَا وَالسَّاعَةَ كَهَاتَيْنِ».

(وَمَا أَمْرُ السَّاعَةِ إِلَّا كَلَمْحِ الْبَصَرِ أَوْ هُوَ أَقْرَبُ إِنَّ اللَّهَ عَلَى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ)

امام بخاری رحمه الله په دې باب کښې د قیامت قرب بیان کړې دې، د سورة نحل کوم آیت کریمه

...بقیه ازحاشیه گذشته] د فناء او ارادې دې مرحلې ته رسیدلو سره ځنګه یو سړې د خپل مالک حکم اختیار کړی خو چه کله یو انسان د شریعت د متابعت په ځائې د هغې مقابله کوی نو بیا د هغه حکم د ځناور نه بدتر شی. (ترجمان السنة: ۳۱۴/۱)

١) شرح الکرمانی للبخاری: ۲۰/۲۳

٢) لامع الدراری: ۷۸/۱۰

٣) فتح الباری: ۴۲۱/۱۱، ارشاد الساری ۵۰۴/۱۳

٤) تعلیقات لامع الدراری: ۷۸/۱۰

چه ئې ذكر كړې دي، د هغې ترجمه دا ده : د قيامت معامله به د سترګې د رپ برابر وي يا د دې نه كم وخت. بيشكه الله پاک په هر يو څيز باندې قادر دې.

[٦١٣٨] حَدَّثَنَا سَعِيدُ بْنُ أَبِي مَرْيَمَ حَدَّثَنَا أَبُو غَسَّانَ حَدَّثَنَا أَبُو حَازِمٍ عَنْ سَهْلٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صلى الله عليه وسلم « بُعِثْتُ أَنَا وَالسَّاعَةَ هَكَذَا » وَيُشِيرُ بِإِصْبَعَيْهِ فَيَمُدُّ بِهِمَا. [ر: ٤٦٥٢]

د سيدنا سهل رضي الله عنه نه روايت دې چه رسول الله ﷺ اوفرمائيل : زه او قيامت دومره نزدې نزدې رالېږلې شو او رسول الله ﷺ د خپلو دواړو ګوتو په اشاره باندې د هغه قرب بيان كړو، بيا ئې دا دواړه خوارۀ كړل.

د امام بخارى رحمه الله شيخ سعيد بن محمد بن الحكم بن ابى مريم دې، د هغوى شيخ ابوغسان دې، چه د هغه نوم محمد بن مطرف دې او ابوحازم د سلمة بن دينار كنيت دې.

**قوله: ﴿بُعِثْتُ أَنَا وَالسَّاعَةَ﴾ :** ﴿بُعِثْتُ﴾ : د ماضى مجهول واحد متكلم صيغه ده او ﴿الساعة﴾ مرفوع دې، ځكه چه د هغې عطف د ﴿بُعِثْتُ﴾ په ضمير متكلم باندې دې او په ضمير متصل باندې د ضمير منفصل سره د تاكيد راوړلو نه بغير چونكه د اسم ظاهر عطف صحيح نه دې، په دې وجه ئې د هغې نه پس د ضمير متصل د تاكيد په طور ﴿انا﴾ ضمير منفصل راوړلو، چه د اسم ظاهر عطف پرې صحيح شي. (١)

بعض حضراتو په دې تركيب باندې اعتراض كړې دې چه په ضمير متكلم باندې عطف صحيح نه دې، ځكه چه ﴿بعثت الساعة﴾ (قيامت مبعوث كړې شو) نه شي وئيلې كيدې، ځكه چه دا هغه وخت وئيلې شي چه كله د مخكښې نه څه څيز موجود وي او بيا هغه راولېږلې شي او اوچت كړې شي او حال دا چه قيامت خو راتلونكې دې، د مخكښې نه موجود نه دې.

د دې جواب دا وركړې شوې دې چه چونكه د قيامت راتلل يقينى دى، په دې وجه دا په منزله د موجود منلو سره دا لفظ استعمال كړې شو. (٢)

د ابو البقاء عكبرى په نزد په ﴿بعثت انا والساعة﴾ كښې واؤ د مع په معنى كښې دې او ﴿الساعة﴾ د مفعول معه كيدو په صورت كښې منصوب دې. (٣)

خو قاضى عياض د رفع والا صورت ته احسن وئيلې دې. (٤)

**قوله: ﴿وَيُشِيرُ بِإِصْبَعَيْهِ فَيَمُدُّ بِهِمَا﴾ :** رسول الله ﷺ خپلې دواړه ګوتې خورولو سره اشاره اوفرمائيله، زه او قيامت دواړه يو بل ته دومره نزدې يو، د دوه ګوتو نه مينځنۍ او د

---

(١) فتح البارى : ٤٢٢/١١، ارشاد السارى : ٥٠٥/١٣، عمدة القارى : ١٣٩/٢٣

(٢) فتح البارى : ٤٢٢/١١، ارشاد السارى : ٥٠٥/١٣، عمدة القارى : ١٣٩/٢٣

(٣) فتح البارى : ٤٢٢/١١، ارشاد السارى : ٥٠٥/١٣، عمدة القارى : ١٣٩/٢٣

(٤) فتح البارى : ٤٢٢/١١، ارشاد السارى : ٥٠٥/١٣، عمدة القارى : ١٣٩/٢٣

شهادت گوته مراد ده پس د کتاب التفسير په روايت کښې د دې تصريح ده. (۱)

**د حديث دوه مطلبونه** : د دې حديث شريف دوه مطلبونه بيان کړې شوې دى:

① دا دواړه گوتې چونکه يو بل سره متصل او نزدې دى، په دې وجه د رسول الله ﷺ مطلب دا وو چه زما او د قيامت ترمينځه فاصله ډيره زياته نه ده، او زما نه پس د دې وقوع ډير زيات لرې نه دې، يو بل ته نزدې او متصل دى، په مينځ کښې نه بل څوک نبى راځى او نه به يو امت راشى، څنګه چه د دې دوه گوتو ترمينځه بله گوته نشته. علامه توربشتى رحمه الله دا معنى بيان کړې ده. (۲)

② دويم مطلب دا دې چه په دې دوه گوتو کښې د مينځ والا گوته لږه شان لويه وى او په دې کښې لږه شان اضافه وى، د دې قليل اضافې طرف ته اشاره ده چه زما او د قيامت ترمينځه دومره لږه شان فاصله ده، پس قاضى بيضاوى رحمه الله فرمائى:

**(معنى الحديث ان نسبة تقدم بعثه صلى الله عليه وسلم على قيام الساعة كنسبة فضل احدى الاصبعين على الاخرى)** (۳)

او په دواړو معنو کښې خپل مينځ کښې هيڅ تضاد نشته، د اتصال طرف ته هم اشاره کيدې شى او د قليل فاصلې طرف ته هم اشاره کيدې شى.

[۶۱۳۹] حَدَّثَنِي عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مُحَمَّدٍ -هُوَ الْجُعْفِيُّ- حَدَّثَنَا وَهْبُ بْنُ جَرِيرٍ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ قَتَادَةَ وَأَبِي التَّيَّاحِ عَنْ أَنَسٍ عَنِ النَّبِيِّ صلى الله عليه وسلم قَالَ «بُعِثْتُ أَنَا وَالسَّاعَةَ كَهَاتَيْنِ»

د سيدنا انس رضي الله عنه نه روايت دې چه رسول الله ﷺ اوفرمائيل : زه او د قيامت ورځ د دې «دواړو گوتو» په شان «نزدې نزدې» راليږلې شوې يو.

[۶۱۴۰] حَدَّثَنِي يَحْيَى بْنُ يُوسُفَ أَخْبَرَنَا أَبُو بَكْرٍ عَنْ أَبِي حَصِينٍ عَنْ أَبِي صَالِحٍ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صلى الله عليه وسلم- قَالَ «بُعِثْتُ أَنَا وَالسَّاعَةَ كَهَاتَيْنِ». يَعْنِي إِصْبَعَيْنِ. تَابَعَهُ إِسْرَائِيلُ عَنْ أَبِي حَصِينٍ.

د سيدنا ابوهريره رضي الله عنه نه روايت دې چه رسول الله ﷺ اوفرمائيل : زه او قيامت د دې دواړو په شان راليږلې شوې يو. د هغوى مراد دوه گوتې وې، د دې روايت متابعت اسرائيل د ابو حصين نه کړې دې.

**قوله:** (تَابَعَهُ إِسْرَائِيلُ، عَنْ أَبِي حَصِينٍ): ابو حصين «د حاء په فتحې او د صاد په

---

(۱) اوگورئ : کشف البارى، کتاب التفسير : ۷۲۱

(۲) فتح البارى ۴۲۴/۱۱، ارشاد السارى : ۵۰۶/۱۳

(۳) فتح البارى ۴۲۵/۱۱، ارشاد السارى : ۵۰۶/۱۳. قال الكرماني : قيل هو إشارة إلى قرب المجاورة، وقيل إلى تقارب ما بينهما طولاً وفضل الوسطى على السبابة لأنها أطول منها بشيء يسير. فالوجه الأول بالنظر إلى العرض، والثاني بالنظر إلى الطول، وقيل أي ليس بينه وبين الساعة نبى غيره مع التقريب لحينها اهـ (انظر شرح الكرماني : ۲۴/۲۲)

کسرې سره، د هغوی نوم عثمان بن عاصم دې.
د ابوبکر بن عیاش متابعت اسرائیل بن یونس کړې دې، دا متابعت اسماعیلي موصولا نقل کړې دې. [1]

## ۴۰: باب طُلُوعِ الشَّمسِ مِن مَغرِبِهَا

دا باب بغیر د ترجمې نه دې او د کالفصل من الباب السابق د قبیل نه دې، موږ چه کومه نسخه د متن په طور اختیار کړې ده په هغې کښې د پورته الفاظو سره ترجمة الباب دې. خو په ډیرو نسخو کښې دا باب بغیر د ترجمې نه دې.
پس شیخ الحدیث مولانا محمد زکریا رحمه الله د دې متعلق لیکي:

﴿ والاوجه عند هذا العبد الضعیف: ان المصنف ذکره بغیر ترجمة لمناسبة قوله تعالی فی الباب السابق: ﴿وما امر الساعة الا کلمح البصر﴾ لما ذکر فی حدیث الباب من امور تدل علی فجاءة القیامة، کقوله صلی الله علیه وسلم: لتقومن الساعة، وقد نشر الرجلان ﴾ [2]

یعنې د دې ضعیف بنده په نزد زیاته مناسب دا ده چه امام بخاري رحمه الله دا باب بغیر د ترجمې نه قائم فرمائیلې دې، ځکه چه د دې نه مخکښې باب کښې چه کوم آیت کریمه ذکر دې، ﴿وما امر الساعة الا کلمح البصر﴾ د هغې سره د وړاندې حدیث مناسبت دې، په دې حدیث کښې د داسې امورو تذکره ده چه د هغې نه معلومیږي چه قیامت به ناڅاپه راځي، او د مخکښې باب د آیت کریمه نه هم دا معلومیږي.

[۶۱۴۱] حَدَّثَنَا أَبُو الْيَمَانِ أَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ حَدَّثَنَا أَبُو الزِّنَادِ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رضی الله عنه أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ - صلی الله علیه وسلم - قَالَ «لاَ تَقُومُ السَّاعَةُ حَتَّى تَطْلُعَ الشَّمْسُ مِنْ مَغْرِبِهَا، فَإِذَا طَلَعَتْ فَرَآهَا النَّاسُ آمَنُوا أَجْمَعُونَ، فَذَلِكَ حِينَ لاَ يَنْفَعُ نَفْسًا إِيمَانُهَا، لَمْ تَكُنْ آمَنَتْ مِنْ قَبْلُ، أَوْ كَسَبَتْ فِي إِيمَانِهَا خَيْرًا، وَلَتَقُومَنَّ السَّاعَةُ وَقَدْ نَشَرَ الرَّجُلاَنِ ثَوْبَهُمَا بَيْنَهُمَا فَلاَ يَتَبَايَعَانِهِ وَلاَ يَطْوِيَانِهِ، وَلَتَقُومَنَّ السَّاعَةُ وَقَدِ انْصَرَفَ الرَّجُلُ بِلَبَنِ لِقْحَتِهِ فَلاَ يَطْعَمُهُ، وَلَتَقُومَنَّ السَّاعَةُ وَهْوَ يَلِيطُ حَوْضَهُ فَلاَ يَسْقِي فِيهِ، وَلَتَقُومَنَّ السَّاعَةُ وَقَدْ رَفَعَ أُكْلَتَهُ إِلَى فِيهِ فَلاَ يَطْعَمُهَا». [ر: ۴۳۵۹]

د سیدنا ابوهریره رضي الله عنه نه روایت دې چه رسول الله صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل: قیامت به تر هغه وخته پورې نه قائمیږي ترڅو پورې چه نمر د مغرب نه وی راختلې، چه کله نمر د مغرب نه راوخیژي او خلق اوګوري نو ټول به ایمان راوړي، هم دا به هغه وخت وی چه د چا دپاره به د هغه ایمان فائده مند نه وی، چا چه د دې نه مخکښې ایمان نه وی راوړې یا چا چه د ایمان نه

---

[1] فتح الباري: ۱۱/۴۲۴، ارشاد الساري: ۱۳/۵۰۶، عمدة القاري: ۲۳/۱۴۰.
[2] الابواب والتراجم: ۲/۱۳۲

پس د خير عمل نه وى كړې.
پس قيامت به راشى او دوه سړى به كپړه په مينځ كښې (د اخستلو او خرڅولو دپاره) خوره كړې وى، لا به اخستل او خرڅول پوره شوې هم نه وى او نه به هغوى راټوله كړې وى (چه قيامت به راشى) او قيامت به په داسې حال كښې قائميږى چه يو سړې به خپلد اوښه اولشى او د هغې پئ به راوړى او لا به ئې څكلې نه وى چه قيامت به راشى. قيامت به په داسې حال كښې قائميږى چه يو سړې به خپل حوض تياروى او د هغې اوبه به ئې لا څكلې هم نه وى، قيامت به په داسې حال كښې قائميږى چه يو سړى به نمړئ د خپلې خولې طرف ته اوچته كړې وى او هغه به او نه خوړلې شى.
د حديث شريف مقصد دا دې چه قيامت به ناڅاپه قائميږى او ډير خلق به په خپلو مذكوره كارونو كښې مصروف وى، لا به ئې كار نه وى پوره كړې چه قيامت به قائم شى.
﴿لِقْحَة﴾ (د لام په كسرې سره) د پيو والا اوښه.
**قوله:** ﴿وَهُوَ يَلِيطُ حَوْضَهُ﴾: لاط ـ يليط ـ ليطا: ليو كول، جوړول، خولهٔ جوړول. لاط حوضه اذا مدره اى جمع حجارة فصيرها كالحوض ثم سد ما بينها من الفرج بالمدر ونحوه.[1]
**قوله:** ﴿آمَنُوا أَجْمَعُونَ﴾: د تاكيد كيدو په وجه باندې مرفوع دې، دا د امنوا د ضمير فاعل دپاره تاكيد دې.
په حديث شريف كښې دى چه كله خلق د مغرب د طرف نه د نمر راختل وينى نو دې خرق عادت او خلاف معمول واقعې لره ليدلو سره به ټول ايمان راوړى. علامه گنگوهى رحمه الله فرمائى چه د خرق عادت كارونو صدور خو د سيدنا ادم عليه السلام نه تر نن وخته پورې راروان دې، د حضرات انبياء عليهم السلام په لاسونو باندې د معجزاتو ظهور كيږى او د حضرات اولياء په لاسونو باندې د كراماتو ظهور كيږى خو يو خرق عادت كار ليدلو سره چه ټول خلق مسلمانان شوې وى، داسې كله هم نه دى شوى نو د طلوع الشمس من المعرب په ليدو باندې به ټول څنگه ايمان راوړى؟
فرمائى چه كيدې شى د دې وجه دا وى چه شيطانان په دې موقع باندې د خلقو د گمراه كولو دپاره او بې لارې كولو نه بند شى، څكه چه هغوى ته به معلوم وى چه د دې نه پس به ايمان راوړل د چا دپاره به مفيد نه وى، لهذا خلقو لره د ايمان د راوړلو نه د منع كولو ضرورت نشته.[2]
**فائده : د قرب قيامت د لوئې نخښې ظهور**: حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى چه په قرب قيامت كښې په زمكه كښې د عام حالاتو بدليدل، چه د كومو لوئې نخښو په ذريعه سره واقع كيږى، د هغې شروع به په خروج الدجال سره كيږى او د عيسى عليه السلام په وفات سره به د هغې اختتام وى او په پورته عالم كښې چه به په كومو لويو لويو نخښو سره تغير پيدا شى د

---

[1] ) ارشاد السارى : ۱۳/۵۱۰
[2] ) لامع الدرارى، ۱۰/۷۸ والابواب والتراجم : ۲/۱۳۲

هغې، شروع به د مغرب نه په نمر راختلو سره وی او د قیامت په واقع کیدو سره به د هغې اختتام اوشي. [1]

پس په صحیح مسلم کښې د سیدنا عبدالله بن عمرو بن العاص رضی الله عنهما روایت دې ﴿إِنَّ أَوَّلَ الآيَاتِ خُرُوجًا طُلُوعُ الشَّمْسِ مِنْ مَغْرِبِهَا وَخُرُوجُ الدَّابَّةِ عَلَى النَّاسِ ضُحًى وَأَيُّهُمَا مَا كَانَتْ قَبْلَ صَاحِبَتِهَا فَالأُخْرَى عَلَى إِثْرِهَا قَرِيبًا﴾. [2]

امام حاکم رحمه الله فرمائی چه په ظاهره کښې به د طلوع الشمس نخښه مخکښې ظاهریږی. او د هغې نه روستو به خروج دابة وی. [3]

د دې نخښو د ظهور نه پس به ایمان راوړل معتبر نه وی، د سیده عائشه رضی الله عنها حدیث طبرانی نقل کړې دې:

﴿اذا خرجت الايات، طرحت الاقلام، وطويت الصحف، وخلصت الحفظة، وشهدت الاجسام على الاعمال﴾. [4]

یعنی: چه کله د قیامت د هغه نخښو ظهور اوشی نو قلمونه به اوغورځولې شی. صحیفې به راټولې کړې شی، د نګرانی کونکی ملائک به رخصت شی. او بدنونه به په اعمالو باندې ګواهی ورکوی.

## ٤١: باب «مَنْ أَحَبَّ لِقَاءَ اللَّهِ أَحَبَّ اللَّهُ لِقَاءَهُ»

**د ترجمة الباب وضاحت**: څوک چه الله پاک سره ملاقات کول غواړی نو الله پاک به هم هغه سرا ملاقات خوښوی، علامه خطابی رحمه الله فرمائی چه د الله پاک د ملاقات غوښتلو مطلب دا دې چه انسان اخرت ته په دنیا باندې ترجیح ورکړی او د آخرت دپاره تیار اوسیدو سره اوږد ژوند خوښ نه کړی او د الله پاک د داسې بنده سره د ملاقات غوښتلو مطلب دا دې چه الله پاک هغه سره د خیر اراده فرمائی. [5]

[٦١٤٢] حَدَّثَنَا حَجَّاجٌ حَدَّثَنَا هَمَّامٌ حَدَّثَنَا قَتَادَةُ عَنْ أَنَسٍ عَنْ عُبَادَةَ بْنِ الصَّامِتِ عَنِ النَّبِيِّ -صلى الله عليه وسلم- قَالَ «مَنْ أَحَبَّ لِقَاءَ اللَّهِ أَحَبَّ اللَّهُ لِقَاءَهُ، وَمَنْ كَرِهَ لِقَاءَ اللَّهِ كَرِهَ اللَّهُ لِقَاءَهُ».

قَالَتْ عَائِشَةُ أَوْ بَعْضُ أَزْوَاجِهِ إِنَّا لَنَكْرَهُ الْمَوْتَ. قَالَ «لَيْسَ ذَاكِ، وَلَكِنَّ الْمُؤْمِنَ إِذَا حَضَرَهُ الْمَوْتُ بُشِّرَ بِرِضْوَانِ اللَّهِ وَكَرَامَتِهِ، فَلَيْسَ شَيْءٌ أَحَبَّ إِلَيْهِ مِمَّا أَمَامَهُ، فَأَحَبَّ لِقَاءَ اللَّهِ وَأَحَبَّ اللَّهُ لِقَاءَهُ، وَإِنَّ الْكَافِرَ إِذَا حُضِرَ بُشِّرَ بِعَذَابِ اللَّهِ وَعُقُوبَتِهِ، فَلَيْسَ شَيْءٌ أَكْرَهَ إِلَيْهِ مِمَّا أَمَامَهُ، كَرِهَ

---

[1]) فتح الباری: ٤٢٩/١١

[2]) الحدیث اخرجه الامام مسلم فی کتاب الفتن واشراط الساعة، رقم الحدیث: ٢٩٤١

[3]) ارشاد الساری: ٥٠٩/١٣

[4]) ارشاد الساری: ٥١٠/١٣

[5]) عمدة القاری: ١٢/٢٣

لِقَاءَ اللّٰهِ وَكَرِهَ اللّٰهُ لِقَاءَهُ». اخْتَصَرَهُ أَبُو دَاوُدَ وَعَمْرٌو عَنْ شُعْبَةَ.
وَقَالَ سَعِيدٌ عَنْ قَتَادَةَ عَنْ زُرَارَةَ عَنْ سَعْدٍ عَنْ عَائِشَةَ عَنِ النَّبِيِّ -صلى الله عليه وسلم-.

د سيدنا عبادة بن صامت رضي الله عنه نه روايت دي چه رسول الله ﷺ اوفرمائيل: کوم سړي چه د الله پاک ملاقات لره محبوب ساتي، الله پاک هم د هغه ملاقات محبوب ګڼړي. او څوک چه د الله پاک ملاقات نه خوښوي، الله پاک هم د هغه ملاقات نه خوښوي. او سيده عائشه رضي الله عنها يا په ازواج مطهرات کښې بل چا عرض اوکړو چه مرګ خو مونږ هم ناخوښه ګڼړو، رسول الله ﷺ اوفرمائيل: دا خبره نه ده بلکه چه کله د مومن د مرګ وخت نزدې راشي نو هغه ته د الله پاک د رضا او د الله پاک په نزد د هغه د عزت زيرې ورکړې شي، هغه وخت مومن ته يو څيز هم د دې نه زيات عزيز نه وي کوم چه د هغه وړاندې (د الله پاک سره ملاقات او د هغه د رضا حصول) وي. په دې وجه هغه د الله پاک د ملاقات خواهش مند شي او الله پاک هم د هغه ملاقات خوښوي او کله چه د کافر د مرګ وخت نزدې راشي نو هغه ته د الله پاک د عذاب او د هغه د سزا خبر ورکړې شي، هغه وخت راتلونکې عذاب نه هغه ته زيات يو څيز هم ناخوښه نه وي.

**دوه بيل بيل څيزونه، مرګ او د الله پاک ملاقات:** چونکه په ظاهر کښې معلوميږي چه د ﴿لقاء الله﴾ نه مرګ مراد دې په دې وجه سيده عائشه رضي الله عنها يا په ازواج مطهرات رضی الله تعالیٰ عنهن کښې بل چا د رسول الله ﷺ نه تپوس اوکړو، د راوی شک دې چه سوال چا اوکړو؟ بهر حال تپوس اوکړې شو چه مرګ خو زمونږ خوښ نه دې، ګويا د الله پاک ملاقات د مرګ نه بغير ممکن نه دې او مرګ مونږ ناخوښه ګڼړو نو آيا مونږ د الله پاک ملاقات ناخوښه ګڼړنکو کښې خو داخل نه يو؟ رسول الله ﷺ وضاحت اوفرمائيلو چه مرګ او د الله پاک ملاقات دوه بيل بيل څيزونه دي، چونکه مرګ د الله پاک د ملاقات يوه ذريعه او پل دې، په دې وجه د هغې نه هم په ﴿لقاء الله﴾ سره تعبير کولې شي.

د حسان بن اسود رحمه الله قول دې: ﴿الموت جسر يوصل الحبيب الى الحبيب﴾ [1] يعنى مرګ يو پل دې کوم چه دوست لره د دوست سره يوځائې کوي.

په سورة عنکبوت کښې دی: ﴿مَنْ كَانَ يَرْجُوا لِقَاءَ اللّٰهِ فَإِنَّ أَجَلَ اللّٰهِ لَآتٍ﴾ يعنى څوک چه د الله پاک د ملاقات اميد ساتي نو بيشکه د الله پاک د طرف نه مقرر وخت راتلونکې دې.

**قوله: ﴿اخْتَصَرَهُ أَبُو دَاوُدَ وَعَمْرٌو، عَنْ شُعْبَةَ﴾:** ابوداؤد سليمان طيالسى د دې حديث اختصار کړې دې، امام ترمذى رحمه الله هغه موصولا نقل کړې دې او د عمرو بن مرزوق روايت طبرانى موصولا نقل کړې دې. [2]

---

[1]) ارشاد السارى: ۵۱۱/۱۳

[2]) فتح البارى: ۴۳۷/۱۱، ارشاد السارى: ۵۱۲/۱۳، عمدة القارى: ۱۴۴/۲۳

**قوله:** ﴿ وَقَالَ سَعِيدٌ، عَنْ قَتَادَةَ ...... ﴾: د سعيد بن ابى عروبه دا تعليق امام مسلم رحمه الله موصولا نقل كړې دې.(١)

[٦١٤٣] حَدَّثَنِي مُحَمَّدُ بْنُ الْعَلَاءِ حَدَّثَنَا أَبُو أُسَامَةَ عَنْ بُرَيْدٍ عَنْ أَبِي بُرْدَةَ عَنْ أَبِي مُوسَى عَنِ النَّبِيِّ - صلى الله عليه وسلم - قَالَ «مَنْ أَحَبَّ لِقَاءَ اللَّهِ أَحَبَّ اللَّهُ لِقَاءَهُ، وَمَنْ كَرِهَ لِقَاءَ اللَّهِ كَرِهَ اللَّهُ لِقَاءَهُ». [ر: ٧٠٦٥]

د سيدنا ابوموسى اشعرى رضي الله عنه نه روايت دې چه رسول الله ﷺ اوفرمائيل: كوم سړې چه الله پاک سره ملاقات خوښوى الله پاک هم د هغه ملاقات خوښوى. او څوک چه د الله پاک ملاقات ناخوښه ګڼړى الله پاک هم د هغه ملاقات ناخوښه ګڼړى.

د ابو اسامة نوم حماد بن سلمة دې، د ابوبردة نوم حارث يا عامر دې او د بريد د پلار نوم عبدالله بن ابى بردة دې، سيدنا ابوموسى اشعرى رضي الله عنه مشهور صحابى دې او د هغوى نوم عبدالله بن قيس دې.

**يو اشكال او د هغې جواب:** په يو حديث كښې د مرګ د غوښتلو نه منع كړې شوې ده، او د حديث الباب نه معلوميږى چه د الله پاک د ملاقات دپاره د مرګ غوښتنه پكار ده، په ظاهره دواړو احاديثو كښې تعارض دې، علامه قسطلانى رحمه الله ليكى:

﴿ فيه أن محبة لقاء الله لا تدخل في النهي عن تمني الموت لأنها ممكنة مع عدم تمنيه لأن النهي محمول على حال الحياة المستمرة أما عند الاختصار والمعاينة فلا تدخل تحت النهي بل هي مستحبة ﴾(٢).

يعنى د دې حديث نه معلوميږى چه د الله پاک د ملاقات محبت كيدل پكار دى او هغه د مرګ نه بغير ممكن نه دې او په بل حديث كښې د مرګ د غوښتلو نه منع كړې شوې ده.

د دې جواب دا دې چه دواړه د بيلو بيلو موقعو دى، چه كله ژوند جارى شى نو په دې حالت كښې د مرګ غوښتنه نه دى كول پكار، نهى او ممانعت هم په دې حالت باندې محمول دى خو كه د مرګ وخت نزدې راشى او د عالم برزخ مشاهده شروع شى نو د الله پاک سره د ملاقات خواهش كيدل پكار دى او دا خواهش كول ممنوع نه دى بلكه مستحب دى.

[٦١٤٤] حَدَّثَنِي يَحْيَى بْنُ بُكَيْرٍ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ عُقَيْلٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ أَخْبَرَنِي سَعِيدُ بْنُ الْمُسَيَّبِ وَعُرْوَةُ بْنُ الزُّبَيْرِ فِي رِجَالٍ مِنْ أَهْلِ الْعِلْمِ أَنَّ عَائِشَةَ زَوْجَ النَّبِيِّ - صلى الله عليه وسلم - قَالَتْ كَانَ رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - يَقُولُ وَهُوَ صَحِيحٌ «إِنَّهُ لَمْ يُقْبَضْ نَبِيٌّ قَطُّ حَتَّى يَرَى مَقْعَدَهُ مِنَ الْجَنَّةِ ثُمَّ يُخَيَّرُ». فَلَمَّا نَزَلَ بِهِ، وَرَأْسُهُ عَلَى فَخِذِي، غُشِيَ عَلَيْهِ سَاعَةً، ثُمَّ أَفَاقَ، فَأَشْخَصَ بَصَرَهُ إِلَى السَّقْفِ ثُمَّ قَالَ «اللَّهُمَّ الرَّفِيقَ الأَعْلَى». قُلْتُ إِذًا لَا يَخْتَارُنَا، وَعَرَفْتُ أَنَّهُ الْحَدِيثُ الَّذِي كَانَ يُحَدِّثُنَا بِهِ - قَالَتْ - فَكَانَتْ تِلْكَ آخِرَ كَلِمَةٍ تَكَلَّمَ

(١) فتح البارى: ١١/٤٣٨، عمدة القارى: ٢٣/١٤٤

(٢) ارشاد السارى: ١٣/٥١٢

بِهَا النَّبِي -صلي الله عليه وسلم- قَوْلُهُ «اللَّهُمَّ الرَّفِيقَ الأَعْلَى». [ر ٤١٧١]

د سیده عائشه ﷝ نه روایت دې چه رسول الله ﷺ چه کله هغوی صحت مند وو. به فرمائیل کله هم د یو نبي ترهغه وخته پورې روح نه شي قبض کولې ترڅو پورې چه په جنت کښې د اوسیدو ځائې هغه ته او نه ښودلې شي. نو بیا هغه ته اختیار ورکولې شي پس کله چه رسول الله ﷺ بیمار شو او د هغوی سر مبارک زما په پتون باندې وو. نو په هغوی باندې د لږ وخت دپاره بیهوشي راغله، چه کله بیدار شو نو هغوی د چهت طرف ته یو شان کتل او بیا ئې اوفرمائیل ﴿ اللهم الرفيق الاعلى ﴾ ما اوونیل چه اوس رسول الله ﷺ مونږ ته ترجیح نه شي راکولې. دا هم هغه حدیث دې کوم چه به رسول الله ﷺ مونږ ته بیانولو.

،هغه حدیث دا وو چه رسول الله ﷺ به فرمائیل: چه ترڅو پورې په دنیا او آخرت کښې یو نبي ته اختیار ورنکړې شي، تر هغه وخته پورې د هغه نبي روح نه شي قبض کولې،

سیده عائشه ﷝ فرمائي چه دا رسول الله ﷺ آخري کلمه وه. کومه چه هغوی په خپله ژبه مبارکه باندې ادا اوفرمائیله، یعني دا ارشاد: ﴿ اللهم الرفيق الاعلى ﴾

**قوله: ﴿ فِي رِجَالٍ مِنْ أَهْلِ الْعِلْمِ ﴾**: یعني نور اهل علم هم په مجلس کښې ناست وو. د هغوی ټولو په موجودګئ کښې دا روایت مونږ د سعید بن المسیب او عروة بن الزبیر ﵄ نه واوریدلو.

رسول الله ﷺ ته په ژوند او مرګ کښې اختیار ورکړې شوې وو، رسول الله ﷺ مرګ اختیار اوفرمائیلو کوم چه د الله پاک د ملاقات ذریعه ده، دغه شان د دې حدیث مناسبت د باب سره ظاهریږي. (١)

## ٤٢: باب سَكَرَاتِ الْمَوْتِ

سکرات، د سکرة جمع ده او د سکر معنی ده داسې سختي کوم چه عقل او شعور ختم کړي، امام بخاري ﵀ په دې باب کښې د مرګ شدت او سختي بیان کړې ده.

[٦١٤٥] حَدَّثَنِي مُحَمَّدُ بْنُ عُبَيْدِ بْنِ مَيْمُونٍ حَدَّثَنَا عِيسَى بْنُ يُونُسَ عَنْ عُمَرَ بْنِ سَعِيدٍ قَالَ أَخْبَرَنِي ابْنُ أَبِي مُلَيْكَةَ أَنَّ أَبَا عَمْرٍو ذَكْوَانَ مَوْلَى عَائِشَةَ أَخْبَرَهُ أَنَّ عَائِشَةَ -رضي الله عنها- كَانَتْ تَقُولُ إِنَّ رَسُولَ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- كَانَ بَيْنَ يَدَيْهِ رَكْوَةٌ -أَوْ عُلْبَةٌ فِيهَا مَاءٌ، يَشُكُّ عُمَرُ- فَجَعَلَ يُدْخِلُ يَدَيْهِ فِي الْمَاءِ، فَيَمْسَحُ بِهِمَا وَجْهَهُ وَيَقُولُ «لاَ إِلَهَ إِلاَّ اللَّهُ، إِنَّ لِلْمَوْتِ سَكَرَاتٍ». ثُمَّ نَصَبَ يَدَهُ فَجَعَلَ يَقُولُ «فِي الرَّفِيقِ الأَعْلَى». حَتَّى قُبِضَ وَمَالَتْ يَدُهُ. قَالَ أبوعبدالله: العلبة من الخشب، والركوة من الادم. [ر: ٨٥٠]

د سیده عائشه ﷝ نه روایت دې چه د رسول الله ﷺ (د وفات په وخت د هغوی) مخې ته یو

---

(١) فتح الباری: ٤٣٨/١١، ارشاد الساری: ٥١٣/١٣، عمدة القاري: ١٤٥/٢٣

لوښي کیخودلي شوي وو، چه په هغې کښې اوبه وې، عمر ته شبه وه (چه د لوښي دپاره ئې لفظ د رکوة وئیلي وو یا علبة) رسول الله ﷺ به په هغې کښې خپل لاس مبارک دننه کولو او بیا به ئې هغه په خپل مخ مبارک باندې راښکلو او فرمائیل به ئې : د الله پاک نه سوا بل معبود نشته. بیشکه د مرګ دپاره سختې دی، بیا ئې خپل لاس مبارک اوچتولو سره اوفرمائیل : ﴿ فی الرفیق الاعلی ﴾ تردې چه د هغوی روح مبارک قبض کړې شو او لاس مبارک ئې ښکته شو.

﴿ رکوة ﴾ او ﴿ علبة ﴾ د دواړو یوه معنی ده : پیاله، بعضو د دواړو ترمینځه فرق کړې دې چه رکوة د څرمنې او علبة د لرګی پیالې ته وائی.[1]

**د مرګ سختې.** چه کله د انسان روح اوځی نو د روح د بدن نه د وتلو په وخت ډیر تکلیف وی، د قرآن کریم په څلورو آیتونو کښې د مرګ سختې بیان کړې شوې دی؛

① په سورة ق کښې دی : ﴿ وَجَاءَتْ سَكْرَةُ الْمَوْتِ بِالْحَقِّ ﴾[2]

② په سورة انعام کښې دی : ﴿ وَلَوْ تَرَىٰ إِذِ الظَّالِمُونَ فِي غَمَرَاتِ الْمَوْتِ ﴾[3]

③ په سورة واقعه کښې دی : ﴿ إِذَا بَلَغَتِ الْحُلْقُومَ ﴾[4]

④ سورة القیامة کښې دی : ﴿ إِذَا بَلَغَتِ التَّرَاقِيَ ﴾[5]

د سیدنا جابر بن عبدالله رضی الله عنهما یو حدیث ابن ابی شیبة موصولا نقل فرمائیلې دې چه د بنی اسرائیلو یو جماعت قبرستان ته راغلو نو د دوه رکعتو نفل کولو نه پس ئې دعا اوکړه چه یو مړې دې مونږ ته د مرګ په باره کښې اوائی، د هغوی دعا قبوله شوه، یو سړې د قبر نه سر راویستلو او وې وئیل چه زما د مرګ سل کاله اوشو خو د مرګ تریخ والې تر نن پورې زما په حلق کښې محسوسیږی.[6]

او په حلیة الاولیاء کښې د سیدنا واثلة رضی الله عنه یو مرفوع حدیث نقل کړې شوې دې؛

﴿ والذی نفسی بیده لمعاینة ملك الموت أشد من ألف ضربة بالسیف ﴾[7]

یعنی قسم په هغه ذات چه د هغه په لاس کښې زما نفس دې د مرګ د فرشتې معاینه د تورې د زرو ګزارونو نه زیاته سخته ده.

---

[1] ) عمدة القاری : ۱٤٦/۲۳

[2] ) سورة ق : ۱۹

[3] ) سورة الانعام : ۹۳

[4] ) سورة الواقعة : ۸۳

[5] ) سورة القیامة : ۲٦

[6] ) ارشاد الساری : ٥۱٤/۱۳

[7] ) ارشاد الساری ٥۱٤/۱۳، (حلیة الاولیاء : ۱۸٦/٥) (فیه اسماعیل وروایته عن غیر الشامیین ضعیف وهذه منها)

[٦١٤٦] (١) حَدَّثَنِي صَدَقَةُ أَخْبَرَنَا عَبْدَةُ عَنْ هِشَامٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ كَانَ رِجَالٌ مِنَ الأَعْرَابِ جُفَاةً يَأْتُونَ النَّبِيَّ - صلى الله عليه وسلم - فَيَسْأَلُونَهُ مَتَى السَّاعَةُ، فَكَانَ يَنْظُرُ إِلَى أَصْغَرِهِمْ فَيَقُولُ « إِنْ يَعِشْ هَذَا لاَ يُدْرِكْهُ الْهَرَمُ حَتَّى تَقُومَ عَلَيْكُمْ سَاعَتُكُمْ». قَالَ هِشَامٌ يَعْنِي مَوْتَهُمْ.

د سيده عائشه ﷺ نه روايت دې چه څه باندچيان به رسول الله ﷺ ته راتلل او تپوس به ئې کولو چه قيامت به کله قائميږي؟ رسول الله ﷺ به په هغوى کښې د ټولو نه کم عمر والا ته کتلو سره فرمائيل چه که دې ژوندې پاتې شو نو د هغه د بوډاوالى نه مخکښې به په تاسو باندې قيامت قائم شى. هشام فرمائى چه د رسول الله ﷺ مراد (ستاسو د قيامت نه) د هغوى مرګ وو.

**قوله:** ﴿رِجَالٌ مِنَ الأَعْرَابِ جُفَاةً﴾: ﴿جفاة﴾ د جافى جمع ده. جافى داسې سړى ته وائى، کوم چه د سخت طبيعت وى. ځکه چه عموما باندچيان خلق د سخت طبيعت والا وى، په دې وجه د هغوى دپاره دلته د جفاة لفظ استعمال کړې شو. او په بعض نسخو کښې ﴿حفاة﴾ دې کوم چه د جمع ده. چه د هغې معنى د داسې سړى ده چه خپې ابله وى. (٢)

د رسول الله ﷺ دا جواب د حکيم په اسلوب وو او مطلب دا وو چه په هغوى کښې چه کله د يو کم عمر انسان بوډاتوب راشى نو يو زمانه به تيره شوې وى او د هر انسان د مرګ سره سره کم از کم د هغه قيامت خو راځى، حديث مشهور دې: **من مات فقد قامت (عليه) قيامته** (٣)

په حديث کښې چونکه د مرګ ذکر دې او هر مرګ، د خپلو سختو او سکرات سره راځى، په دې وجه ئې حديث د دې باب د لاندې ذکر کړو.

[٦١٤٧، ٦١٤٨] (٤) حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ قَالَ حَدَّثَنِي مَالِكٌ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ عَمْرِو بْنِ حَلْحَلَةَ عَنْ مَعْبَدِ بْنِ كَعْبِ بْنِ مَالِكٍ عَنْ أَبِي قَتَادَةَ بْنِ رِبْعِيٍّ الأَنْصَارِيِّ أَنَّهُ كَانَ يُحَدِّثُ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - مُرَّ عَلَيْهِ بِجِنَازَةٍ فَقَالَ «مُسْتَرِيحٌ، وَمُسْتَرَاحٌ مِنْهُ». قَالُوا يَا رَسُولَ اللَّهِ مَا الْمُسْتَرِيحُ وَالْمُسْتَرَاحُ مِنْهُ قَالَ « الْعَبْدُ الْمُؤْمِنُ يَسْتَرِيحُ مِنْ نَصَبِ الدُّنْيَا وَأَذَاهَا إِلَى رَحْمَةِ اللَّهِ، وَالْعَبْدُ الْفَاجِرُ يَسْتَرِيحُ مِنْهُ الْعِبَادُ وَالْبِلاَدُ وَالشَّجَرُ وَالدَّوَابُّ».

د سيدنا ربيع انصارى ﷺ نه روايت دې چه د رسول الله ﷺ په خوا کښې خلق د يوې جنازې

---

(١) اخرجه مسلم فى الفتن واشراط الساعة، باب: قرب الساعة، رقم ٢٩٥٢

(جفاة): غافلون فى طبعهم لقلة مخالطة الناس (لا يدركه الهرم) لا يبلغ فى حياته الهرم، وهو الشيخوخة ونهاية العمر، (موتهم) اى فسر ساعتهم بموتهم وانقراض عصرهم، لان من مات فقد قامت (عليه) قيامته.

(٢) ارشاد السارى: ٥١٤/١٣

(٣) اتحاف سادة المتقين: ١١/٩

(٤) اخرجه مسلم فى الجنائز، باب: ما جاء فى مستريح او مستراح منه. رقم: ٩٥٠

سره تیر شو نو رسول الله ﷺ اوفرمائیل چه: ﴿ المستریح او المستراح منه ﴾ آرام موندونکې دې یا د هغه نه آرام اوموندلې شو، صحابه کرامو ﷺ عرض اوکړو یا رسول الله ﷺ! ﴿ المستریح والمستراح منه ﴾ څه څیز دې؟ رسول الله ﷺ اوفرمائیل: چه مومن بنده د دنیا د مشقتونو او تکلیفونو نه د الله پاک په رحمت سره خلاصې بیا مومی او د فاجر بنده نه د الله پاک بندګان، ښارونه، اونې او څاروی خلاصې بیا مومی.

حاصل دا دې چه که مړ شوې د الله پاک نیک بنده دې نو هغه د دنیا د ژوند د تکلیفونو نه په آرام شی او که هغه ګناهګار او نافرمان وی نو د الله پاک مخلوق د هغه د تکلیفونو او اذیتونو نه خلاصې بیا مومی.

د امام بخاری رحمه الله شیخ اسماعیل بن ابی اویس دې او هغه د امام مالک رحمه الله نه نقل کوی، د ابوقتادة نوم حارث دې، او ربعی د راء په کسرې سره دې، دا حدیث امام بخاری رحمه الله دلته په اول کرت ذکر فرمائیلې دې، وړاندې حدیث هم د دې اختصار دې.

[۶۱۴۸] حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا يَحْيَى عَنْ عَبْدِ رَبِّهِ بْنِ سَعِيدٍ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ عَمْرِو بْنِ حَلْحَلَةَ حَدَّثَنِي ابْنُ كَعْبٍ عَنْ أَبِي قَتَادَةَ عَنِ النَّبِيِّ - صلى الله عليه وسلم - قَالَ «مُسْتَرِيحٌ، وَمُسْتَرَاحٌ مِنْهُ، الْمُؤْمِنُ يَسْتَرِيحُ».

د سیدنا ابوقتادة رضی الله عنه نه روایت دې چه رسول الله ﷺ اوفرمائیل: مړې کیدونکې یا آرام موندونکې دې او یا د هغه نه آرام موندلې شی. مومن آرام موندونکې دې.

[۶۱۴۹] (۱) حَدَّثَنَا الْحُمَيْدِيُّ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ أَبِي بَكْرِ بْنِ عَمْرِو بْنِ حَزْمٍ سَمِعَ أَنَسَ بْنَ مَالِكٍ يَقُولُ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - «يَتْبَعُ الْمَيِّتَ ثَلاَثَةٌ، فَيَرْجِعُ اثْنَانِ وَيَبْقَى مَعَهُ وَاحِدٌ، يَتْبَعُهُ أَهْلُهُ وَمَالُهُ وَعَمَلُهُ، فَيَرْجِعُ أَهْلُهُ وَمَالُهُ، وَيَبْقَى عَمَلُهُ».

د سیدنا انس بن مالک رضی الله عنه نه روایت دې چه رسول الله ﷺ اوفرمائیل: د مړی سره درې څیزونه ځی. دوه خو واپس راشی، صرف یو د هغه سره پاتې شی، هغه سره د هغه د کور خلق ځی، د هغه مال او د هغه عمل ځی. د هغه د کور خلق او مال خو راواپس شی او د هغه عمل هغه سره باقی پاتې شی.

د سیدنا براء بن عازب رضی الله عنه روایت امام احمد رحمه الله نقل کړې دې چه بیا د مړی ته په قبر کښې د یو ښکلی شکل والا ښکلې لباس اغوستې سړې راشی او وائی تاته دې زیرې وی، مړې ترې تپوس کوی چه ته څوک یې؟ هغه وائی زه ستا عمل یم او کافر ته یو بد شکله راشی او وائی چه زه ستا بد عمل یم. (۲)

په دې روایت کښې د مړی ذکر دې او هر مړې، د مرګ په سکراتو باندې تیریږی، په دې

---

(۱) اخرجه مسلم فی اوائل الزهد والرقاق، رقم الحدیث: ۲۹۶۰، واخرجه الامام الترمذی فی کتاب الزهد، باب ما جاء مثل ابن ادم واهله وماله وعمله: ۵۸۹/۴، رقم الحدیث: ۲۳۸۹

(۲) ارشاد الساری ۵۱۷/۱۳

وجه ئې د دې باب د لاندې دا روایت ذکر کړو.
حمیدی د امام بخاری رحمه الله شاګرد دې او د هغوی نوم عبدالله بن زبیر دې.

[۶۱۵۰] حَدَّثَنَا أَبُو النُّعْمَانِ حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ عَنْ أَيُّوبَ عَنْ نَافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ - رضي الله عنهما - قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - «إِذَا مَاتَ أَحَدُكُمْ عُرِضَ عَلَيْهِ مَقْعَدُهُ غُدْوَةً وَعَشِيًّا، إِمَّا النَّارُ وَإِمَّا الْجَنَّةُ، فَيُقَالُ هَذَا مَقْعَدُكَ حَتَّى تُبْعَثَ». [ر: ۱۳۱۳]

د سیدنا ابن عمر رضی الله عنهما نه روایت دې چه رسول الله ﷺ اوفرمائیل: چه کله په تاسو کښې څوک مړ شی نو سحر او ماښام د هغه د اوسیدو ځائې هغه ته ښودلې شی، که هغه دوزخ وی او که جنت وی اوورته وئیلې شی چه دغه ستاد اوسیدو ځائې دې تردې چه قیامت راشی.
د ابو النعمان نوم محمد بن الفضل دې، په صحاح ستة کښې د امام بخاری رحمه الله نه علاوه بل چا دا حدیث نه دې ذکر کړې. والحدیث من افراد البخاری[۱]

[۶۱۵۱] حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ الْجَعْدِ أَخْبَرَنَا شُعْبَةُ عَنِ الأَعْمَشِ عَنْ مُجَاهِدٍ عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ قَالَ النَّبِيُّ صلى الله عليه وسلم «لاَ تَسُبُّوا الأَمْوَاتَ، فَإِنَّهُمْ قَدْ أَفْضَوْا إِلَى مَا قَدَّمُوا». [ر: ۱۳۲۹]

د سیده عائشه رضی الله عنها نه روایت دې چه رسول الله ﷺ اوفرمائیل: مړو ته بدې ردې مه وایئ ځکه چه کوم عملونه هغوی مخکښې لیږلې دی هغوی خپله هغې ته رسیدلې دی.
په دې باب کښې ذکر شوې ټولو احادیثو کښې د مرګ یا میت ذکر دې، په دې سره په سکرات الموت باندې په خپله دلالت کیږی.

## ۴۳: بَابُ نَفْخِ الصُّورِ

قَالَ مُجَاهِدٌ الصُّورُ كَهَيْئَةِ الْبُوقِ (زَجْرَةٌ) صَيْحَةٌ. وَقَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ النَّاقُورُ الصُّورُ. (الرَّاجِفَةُ) النَّفْخَةُ الأُولَى. وَ(الرَّادِفَةُ) النَّفْخَةُ الثَّانِيَةُ.

امام بخاری رحمه الله په دې باب کښې د شپیلئ د پوکولو ذکر کړې دې، شپیلئ په حقیقت کښې یو ښکر دې چه په هغې کښې به سیدنا اسرافیل علیه السلام پوکې وهی، په هغې کښې پوکی وهلو ته نفخ صور وئیلې شی، دا د شپیلئ پوکې وهل به څو کرته وی په دې کښې اختلاف دې.

**د قیامت په ورځ باندې د نفخات تعداد:** د قیامت په ورځ باندې د نفخات تعداد کښې اختلاف دې، علامه ابن حزم رحمه الله فرمائی چه څلور نفخات به کیږی، اوله نفخه به هغه وی چه په هغې سره به ټول ژوندی مړهٔ شی، دویمه نفخه به هغه وی چه په هغې سره به ټول مړی ژوندی شی، او د حساب دپاره به جمع کیږی، دریمه نفخه به هغه وی چه په هغې سره به عام بیهوشی راشی او څلورمه نفخه په هغه وی چه په هغې سره به دا راغلې بیهوشی ختمه شی.[۲]

---

[۱]) ارشاد الساری ۵۱۸/۱۳
[۲]) فتح الباری ۴۴۴/۶، کتاب احادیث الانبیاء، باب وفاة موسی وذکره بعد.

شاه عبد القادر رحمه الله هم دا قول اختیار کړې دې (۱)
مولانا رشید احمد گنگوهی رحمه الله په لامع الدراری کښې د رې (۲) او په کوکب الدری کښې د څلورو نفخاتو قول اختیار کړې دې، یو د مرگ نفخه. دویمه د احیاء، دریمه د بیهوشۍ، او څلورمه د بیداریدو. د بیهوشۍ نفخه به هغه وی چه کله د حساب دپاره ظهور اوفرمائیلې شی. (۳)
بعض حضراتو د پنځو نفخو قول اختیار کړې دې، پس شاه عبد القادر رحمه الله د سورة النمل په تفسیر کښې پنځه نفخات ذکر کړې دی، هغوی لیکی:
یو کرت به شپیلۍ پوکی چه په هغې سره به مخلوق مړ شی، چه دویم کرت اوپوکی نو دوباره به ژوندی شی، د دې نه پس چه اوپوکی نو او به یریږی، بیا اوپوکی نو بېهوشه به شی، او چه بیا اوپوکی نو بیدار به شی. (۴)
صاحب جمل په دې باندې د تعجب اظهار کولو سره فرمائی: وقد سمعنا بمن زاد فی الطنبور نغمة، ولم نسمع بمن زاد فی الصور نفخة (۵) یعنی دا خو مونږ اوریدلې وو چه په ساز کښې د څه نغمې اضافه یو سړی اضافه اوکړه (چه یوه نغمه ئې نوې ایجاد کړه) خو په شپیلۍ کښې د نفخې د اضافې قول مونږ نه وو اوریدلې.
علامه الوسی رحمه الله د درې نفخات قول ته ترجیح ورکړې ده. (۶) ابن عربی رحمه الله هم دا قول اختیار کړې دې. هغوی فرمائی، یو نفخه د فزع ده چه د هغې ذکر د قرآن کریم په سورة النمل کښې دې: ﴿وَيَوْمَ يُنْفَخُ فِي الصُّورِ فَفَزِعَ مَنْ فِي السَّمَاوَاتِ وَمَنْ فِي الْأَرْضِ﴾ (۷) او دویمه نفخه صعق ده او دریمه نفخه بعث ده د دې دواړو ذکر د سورة زمر په آیت کښې دې: ﴿وَنُفِخَ فِي الصُّورِ فَصَعِقَ مَنْ فِي السَّمَاوَاتِ وَمَنْ فِي الْأَرْضِ إِلَّا مَنْ شَاءَ اللَّهُ ثُمَّ نُفِخَ فِيهِ أُخْرَىٰ فَإِذَا هُمْ قِيَامٌ يَنْظُرُونَ﴾ (۸)
د دې تائید د طبری د روایت نه کیږی په هغې کښې دی: ﴿ثم ینفخ فی الصور ثلاث نفخات نفخة الفزع فیفزع أهل السماء والأرض بحیث تذهل کل مرضعة عما أرضعت، ثم نفخة الصعق، ثم نفخة القیام لرب العالمین﴾ (۹) په دې روایت کښې د درې نفخاتو ذکر دې، خو د دې روایت سند ضعیف دې.

---

(۱) اوګورئ: تفسیر عثمانی: ۶۲۰.
(۲) اوګورئ: لامع الدراری: ۵۸/۸، کتاب الانبیاء
(۳) تعلیقات لامع الدراری: ۵۹/۸، کتاب الانبیاء
(۴) تفسیر عثمانی: ۶۱۲، سورة النمل
(۵) تعلیقات لامع الدراری: ۵۹/۸، کتاب الانبیاء (پښتو کښې هم دا متل دې: د سحر په بانګ کښې نوې تپه)
(۶) اوګورئ: روح المعانی: ۳۸۸/۲۴
(۷) سورة النمل: ۸۷
(۸) سورة الزمر: ۶۸
(۹) ارشاد الساری: ۵۱۹/۱۳



د جمهور علماء او محققينو په نزد باندې به ټول دوه كرته نفخ صور وى.[1] چه د هغې تذكره د سورة الزمر په آيت كښې كړې شوې ده چه اول كرت به نفخ د صور كيږى او د زمكې او آسمان ټول جاندار به بيهوشه شى. مګر څوك چه الله پاك غواړى ﴿الا من شاء الله﴾ نه بعض حضراتو، جبرائيل، ميكائيل، اسرافيل او ملك الموت عليهم السلام مراد كړى دى، د بعض په نزد انبياء او شهداء مراد دى او د بعض په نزد ددې نه هغه جاندار مراد دى كوم چه د نفخه اولى نه مخكښې مړۀ شوې دى.[2]

روايت الباب امام بخارى رحمه الله په كتاب احاديث الانبياء كښې هم نقل كړې دې.[3]

**قوله:** ﴿قَالَ مُجَاهِدٌ الصُّورُ كَهَيْئَةِ الْبُوقِ﴾: په سورة الزمر كښې دى ﴿ونفخ فى الصور﴾ مشهور مفسر مجاهد رحمه الله فرمائى چه صور د بوق په شكل كښې وى، بوق ښكر ته وائى، فريابى دا تعليق موصولا نقل كړې دې.[4]

**قوله:** ﴿زَجْرَةٌ: صَيْحَةٌ﴾: د سورة النازعات په آيت كښې ﴿فَإِنَّمَا هِيَ زَجْرَةٌ وَاحِدَةٌ﴾ مجاهد په دې كښې د لفظ ﴿زجرة﴾ تفسير په ﴿صيحة﴾ سره كړې دې. د ﴿صيحة﴾ معنى اګر چه د يوې چغې راځى خو علامه قسطلانى رحمه الله فرمائى چه د دې نه مراد نفخه ثانيه ده، لكه چه په سورة يس آيت نمبر ۴۹ كښې د نفخه اولى دپاره دا لفظ استعمال شوې دې، ﴿مَا يَنْظُرُونَ إِلَّا صَيْحَةً وَاحِدَةً تَأْخُذُهُمْ﴾[5] د مجاهد رحمه الله دا تعليق فريابى موصولا نقل كړې دې.[6]

**قوله:** ﴿وَقَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ النَّاقُورُ: الصُّورُ﴾: د سورة المدثر په آيت كريمه ۸ كښې دى: ﴿فَإِذَا نُقِرَ فِي النَّاقُورِ﴾ سيدنا ابن عباس رضى الله عنهما فرمائى چه په آيت كريمه كښې د ناقور نه صور مراد دې، طبرى او ابن ابى حاتم دا تعليق موصولا نقل كړې دې.[7]

**قوله:** ﴿الرَّاجِفَةُ: النَّفْخَةُ الْأُولَى، وَالرَّادِفَةُ: النَّفْخَةُ الثَّانِيَةُ﴾: په سورة نازعات كښې دى: ﴿يَوْمَ تَرْجُفُ الرَّاجِفَةُ، تَتْبَعُهَا الرَّادِفَةُ﴾ سيدنا ابن عباس رضى الله عنهما فرمائى چه د ﴿راجفة﴾ نه اوله نفخه او د رادفة نه دويمه نفخه مراد ده، دا تعليق هم ابن ابى حاتم او طبرى موصولا نقل كړې دې.[8]

---

[1] اوګورئ: تفسير عثمانى: ۶۲۰

[2] اوګورئ: الجامع لاحكام القرآن: ۲۸۰/۱۵

[3] اوګورئ: صحيح البخارى مع فتح البارى، كتاب احاديث الانبياء، باب وفاة موسى وبعده: ۴۴۱/۶

[4] ارشاد السارى: ۵۱۸/۱۳

[5] ارشاد السارى: ۵۱۸/۱۳

[6] ارشاد السارى: ۵۱۸/۱۳

[7] ارشاد السارى: ۵۱۸/۱۳

[8] ارشاد السارى: ۵۱۸/۱۳

[۶۱۵۲] حَدَّثَنِي عَبْدُ الْعَزِيزِ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ حَدَّثَنِي إِبْرَاهِيمُ بْنُ سَعْدٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ أَبِي سَلَمَةَ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ وَالْأَعْرَجِ أَنَّهُمَا حَدَّثَاهُ أَنَّ أَبَا هُرَيْرَةَ قَالَ اسْتَبَّ رَجُلَانِ، رَجُلٌ مِنَ الْمُسْلِمِينَ وَرَجُلٌ مِنَ الْيَهُودِ فَقَالَ الْمُسْلِمُ وَالَّذِي اصْطَفَى مُحَمَّدًا عَلَى الْعَالَمِينَ. فَقَالَ الْيَهُودِيُّ وَالَّذِي اصْطَفَى مُوسَى عَلَى الْعَالَمِينَ، قَالَ فَغَضِبَ الْمُسْلِمُ عِنْدَ ذٰلِكَ، فَلَطَمَ وَجْهَ الْيَهُودِيِّ، فَذَهَبَ الْيَهُودِيُّ إِلَى رَسُولِ اللّٰهِ صلى الله عليه وسلم فَأَخْبَرَهُ بِمَا كَانَ مِنْ أَمْرِهِ وَأَمْرِ الْمُسْلِمِ فَقَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صلى الله عليه وسلم «لَا تُخَيِّرُونِي عَلَى مُوسَى، فَإِنَّ النَّاسَ يَصْعَقُونَ يَوْمَ الْقِيَامَةِ، فَأَكُونُ فِي أَوَّلِ مَنْ يُفِيقُ، فَإِذَا مُوسَى بَاطِشٌ بِجَانِبِ الْعَرْشِ، فَلَا أَدْرِي أَكَانَ مُوسَى فِيمَنْ صَعِقَ فَأَفَاقَ قَبْلِي، أَوْ كَانَ مِمَّنِ اسْتَثْنَى اللّٰهُ». [ر: ۲۲۸۰]

د سيدنا ابوهريره رضي الله عنه نه روايت دې چه دوه كسانو خپل مينځ كښې يو بل ته كنځلې اوكړې، يو مسلمان وو او يو يهودى، مسلمان اووې قسم په هغه ذات چه محمد ﷺ هغه په ټول جهان كښې منتخب كړې او غوره كړې دې، يهودى اووې : قسم په هغه ذات چا چه موسى عليه السلام په ټول جهان كښې غوره كړې او منتخب كړې دې.

سيدنا ابوهريره رضي الله عنه فرمائى چه مسلمان د يهودى په دې خبره باندې غصه شو او هغه ئې په مخ باندې او وهلو، نو يهودى رسول الله ﷺ ته راغلو او هغوى ته ئې خپله او د هغه مسلمان معامله بيان كړه، رسول الله ﷺ په دې باندې اوفرمائيل : په موسى عليه السلام باندې زما د برترئ دعوى مه كوئ. ځكه چه د قيامت په ورځ باندې ټول خلق بيهوشه شى او زه به د ټولو نه اولنې سړې يم چه په هوش كښې به راشم، هغه وخت به زه موسى عليه السلام وينم چه هغه به د الله پاك د عرش كناره نيولې وى، ماته نه ده معلومه چه هغوى به هم په هغه خلقو كښې وى چه بيهوشه شوې وو. او كه زما نه مخكښې په هوش كښې راغلى دى، او كه د هغه چا نه وو څوک چه الله پاک د دې بيهوشئ نه مستثنى كړل.

**قوله: ﴿أَوْكَانَ مِمَّنِ اسْتَثْنَى اللّٰهُ﴾:** د قرآن كريم په سورة الزمر آيت نمبر ۶۸ كښې دى : ﴿ وَنُفِخَ فِي الصُّورِ فَصَعِقَ مَنْ فِي السَّمَاوَاتِ وَمَنْ فِي الْأَرْضِ إِلَّا مَنْ شَاءَ اللّٰهُ ﴾ دوه كرته به شپيلئ پوكلې شى، اول كرت چه نفخ صور اوشى نو ټول به بيهوشه شى، څومره چه ژوندى دى هغوى ټول به مړهٔ شى او كوم چه مړهٔ وو، د هغوى په روحونو باندې په بې هوشى راوستلې شى، د دې نه پس به په دويمې شپيلئ سره د بې هوشه كيدونكو نه څه خلق مستثنى هم وى، په آيت كريمه كښې ﴿ الامن شاء الله ﴾ سره استثناء كړې شوې ده.

مستثنى به څوک وى؟ لكه چه تير شوې دى چه په دې كښې مختلف اقوال دى:

اول : مړى چه هغوى د مخكښې نه بيهوشه دى، دويم : شهداء، دريم : حضرات انبياء عليهم السلام، څلورم : جبرائيل، ميكائيل، اسرافيل او ملک الموت عليهم السلام، پنځم : د عرش والا ملائک، شپږم : سيدنا موسى عليه السلام، اووم : علامه ابن حزم رحمه الله فرمائى چه ټول ملائک د دې نه مراد

دى.(۱) علامه طبرى رحمه الله د شهداء والا قول ته ترجيح ورکړې ده.

[۶۱۵۳] حَدَّثَنَا أَبُو الْيَمَانِ أَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ حَدَّثَنَا أَبُو الزِّنَادِ عَنِ الأَعْرَجِ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ النَّبِي -صلى الله عليه وسلم- «يَصْعَقُ النَّاسُ حِينَ يَصْعَقُونَ، فَأَكُونُ أَوَّلَ مَنْ قَامَ، فَإِذَا مُوسَى آخِذٌ بِالْعَرْشِ، فَمَا أَدْرِي أَكَانَ فِيمَنْ صَعِقَ». رَوَاهُ أَبُو سَعِيدٍ عَنِ النَّبِي -صلى الله عليه وسلم-. [ر: ۲۲۸۰، ۲۲۸۱]

د سيدنا ابوهريره رضي الله عنه نه روايت دې چه رسول الله صلى الله عليه وسلم اوفرمائيل. د بيهوشئ په وخت به ټول خلق بيهوشه شي او د ټولو نه اول بيداريدونکې به زه يم، هغه وخت به سيدنا موسى عليه السلام عرش الهى لره نيولې وى، اوس ماته معلومه نه ده چه موسى عليه السلام د هغوى نه وو چه بې هوشه شوې وو (يا نه).

**قوله: ﴿رَوَاهُ أَبُو سَعِيدٍ﴾:** د سيدنا ابو سعيد خدرى رضي الله عنه روايت امام بخارى رحمه الله په کتاب احاديث الانبياء کښې موصولا نقل کړې دې.(۲)

## ۴۴: باب يَقْبِضُ اللَّهُ الأَرْضَ.

رَوَاهُ نَافِعٌ عَنِ ابْنِ عُمَرَ عَنِ النَّبِي -صلى الله عليه وسلم-.

**د ترجمة الباب مقصد:** د قبض معنى يو څيز لره جمع کول او د هغې د راټولولو هم ده او د فناء او ختمولو هم ده.

د امام بخارى رحمه الله په دې باب سره دا مقصد دې چه د قيامت په ورځ باندې به الله پاک دا د دنيا زمکه ختمه کړى. او د حشر زمکه به يوه نوې زمکه وى. پس د قرآن کريم آيت دې:

**د محشر زمکه به کومه او څنګه وى؟:** ﴿يَوْمَ تُبَدَّلُ الْأَرْضُ غَيْرَ الْأَرْضِ وَالسَّمَاوَاتُ وَبَرَزُوا لِلَّهِ الْوَاحِدِ الْقَهَّارِ﴾ يعنى: د قيامت ورځ به داسې وى چه په هغې کښې به موجوده زمکه هم بدله شى او آسمان هم او ټول په ټول به د الله پاک واحد او قهار مخکښې حاضر شى.

په زمکه او اسمان کښې دننه دا تبديلى ذاتى هم کيدې شى او صفاتى هم، د دې د بدلولو دا معنى هم کيدې شى چه د هغې صفات او شکل او صورت بدل کړې شى، لکه چه په بعض رواياتو کښې دى چه پوره زمکه به يو سطح مستوى شى، چه په هغې کښې به نه يو کور وى، نه اونه وغيره، نه غر او غونډئ او نه غار او ژوره، د قرآن کريم په يو بل آيت کريمه کښې دى: ﴿لَا تَرَى فِيهَا عِوَجًا وَلَا أَمْتًا﴾ يعنى د تعميراتو او غرونو د وجې نه چه نن صبا کومې لارې او سړکونه تاويدو سره تير شوې وى او چرته لوړ والې دې او چرته ژوروالې، دا صورت به پاتې نه شى بلکه ټول به په صفا ميدان کښې راجمع شى.

او دا بدلون ذاتى هم کيدې شى چه بالکل د هغه زمکې په بدل کښې بله زمکه او د دې

(۱) عمدة القارى: ۱۵۴/۲۳، وفتح البارى: ۴۵۱/۱۱

(۲) عمدة القارى: ۱۵۴/۲۳

آسمان په ځائې بل آسمان جوړ کړې شي، په دې سلسله کښې روايات مختلف دی، د بعض احاديثو نه صرف د صفاتو بدلون معلوميږی او د بعض نه د ذات بدلون

**اختلاف د رواياتو او په هغې کښې د تطبيق صورت** : اما. بيهقی رحمه الله په شعب الايمان کښې د سيدنا عبدالله بن مسعود رضي الله عنه د دې آيت کريمه په باره کښې روايت نقل کړې دې

﴿ يَوْمَ تُبَدَّلُ الْأَرْضُ غَيْرَ الْأَرْضِ: أَرْضٌ بَيْضَاءُ الْبَقَرَةِ كَأَنَّهَا فِضَّةُ الْبَقَرَةِ لَمْ يُسْفَكْ فِيهَا دَمٌ حَرَامٌ الْبَقَرَةِ وَلَمْ يُعْمَلْ عَلَيْهَا خَطِيئَةٌ ﴾ [1] يعنی رسول الله صلی الله علیه وسلم اوفرمائيل چه د محشر په ورځ به زمکه بالکل نوې د چاندئ د زمکه په شان سپينه شي او دا زمکه به داسې وی چه په هغې باندې به چا ګناه نه وی کړې چه په هغې کښې د چا ناحقه وينه نه وی غورځولې شوې.

دا روايت مرفوعا او موقوفا دواړو طريقو سره روايت کړې شوې دې خو د دې موقوف طريق اصح دې؛

دلته اوس وړاندې د سيدنا سهل رضي الله عنه روايت راروان دې، رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمائی چه د قيامت په ورځ باندې به خلق په يو داسې زمکه باندې اوچت کړې شي کومه چه به داسې صفا او سپينه وی لکه د ميدې ډوډئ، په هغې کښې به د چا يو علامت (کور، باغ. درخت، غرونه، غونډئ وغيره) هيڅ به نه وی، هم دا مضمون بيهقی د سيدنا عبدالله بن عباس رضي الله عنهما د دې آيت کريمه په تفسير کښې نقل کړې دې. [2]

د دې قسم رواياتو نه معلوميږی چه د محشر زمکه به د دې موجوده زمکې نه علاوه وی او د کومې تبديلئ ذکر چه په دې آيت کريمه کښې دې، د دې نه د ذات بدلون مراد دې.

خو د بعض رواياتو نه معلوميږی چه دا بدلون به صرف په صفاتو کښې وی پس امام حاکم رحمه الله په قوی سند سره د سيدنا جابر رضي الله عنه نه روايت نقل کړې دې

﴿ تُمَدُّ الْأَرْضُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ مَدًّا لِعَظَمَةِ الرَّحْمَنِ، ثُمَّ لَا يَكُونُ لِبَشَرٍ مِنْ بَنِي آدَمَ إِلَّا مَوْضِعُ قَدَمَيْهِ، ثُمَّ أُدْعَى أَوَّلَ النَّاسِ فَأَخِرُّ سَاجِدًا ثُمَّ يُؤْذَنُ لِي فَأَقُومُ فَأَقُولُ: يَا رَبِّ أَخْبَرَنِي هَذَا - لِجِبْرِيلَ وَهُوَ عَنْ يَمِينِ الرَّحْمَنِ وَاللَّهِ مَا رَآهُ جِبْرِيلُ قَبْلَهَا قَطُّ - أَنَّكَ أَرْسَلْتَهُ إِلَيَّ، قَالَ وَجِبْرِيلُ سَاكِتٌ لَا يَتَكَلَّمُ حَتَّى يَقُولَ اللَّهُ: صَدَقَ، ثُمَّ يُؤْذَنُ لِي فِي الشَّفَاعَةِ فَأَقُولُ: يَا رَبِّ عِبَادُكَ عَبَدُوكَ فِي أَطْرَافِ الْأَرْضِ، فَذَلِكَ الْمَقَامُ الْمَحْمُودُ ﴾ [3]

رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمائی چه د قيامت په ورځ باندې به دا زمکه داسې راښکلې شی، لکه څنګه چه خرمن راښکلې شی چه په هغې سره به د دې کونجې هموار شی (د هغې په وجه باندې به د زمکه غارونه او غرونه ټول برابريدلو سره په يوه سطح باندې مستوی شی او هغه وخت به د آدم علیه السلام ټول اولاد په هغه زمکه باندې راجمع شی، او د هجوم په وجه باندې به د يو انسان په حصه کښې صرف دومره زمکه وی، چه په هغې باندې هغه اودريدلې شی. بيا به په

[1]) فتح الباری : ۱۱/٤٥٤، والمستدرک للامام حاکم، کتاب الاموال : ٦١٤/٣، رقم الحديث : ۸٦٩٩

[2]) فتح الباری : ۱۱/٤٥٤

[3]) المستدرک، کتاب الاموال : ٦١٤/٤

محشر کښې د ټولو نه مخکښې زه راوبللې شم، زه به د رب العزت مخکښې په سجده کښې پريوځم، بيا به ماته د شفاعت اجزت راکړې شي نو زه به د ټول مخلوق دپاره شفاعت کوم د هغوی حساب کتاب زر او شي، هم دا مقام محمود دې

د سيدنا جابر رضي الله عنه د دې روايت نه حو په ظاهره معلوميږي چه په زمکه کښې به دا بدلون صرف د صفت وي چه غار او غرونه او اونې به پاتې نه شي، خو د زمکې ذات به هم دا باقي وي، پس امام قرطبي رحمه الله هم د ابوالحسن بن حيدره نه هم دغه شان دواړه قسم رواياتو کښې تطبيق نقل فرمائيلې دې، هغوی ليکی:

《أنه جمع بين هذه الأخبار بأن تبديل السماوات والأرض يقع مرتين إحداهما تبديل صفاتهما فقط وذلك عند النفخة الأولى ... ثم بين النفختين تطوى السماء والأرض وتبدل السماء والأرض》(١)

يعنې مختلف احاديثو کښې داسې تطبيق کيدې شي چه د زمکې او آسمان دا بدلون دوه کرته واقع شوې دې، اول کرت به د صفاتو بدلون وي او دا به د نفخه اولى په وخت وي بيا د دواړو نفخو ترمينځه چه کومه موده ده، په هغې کښې به اسمان او زمکه راجمع کړې شي او نوې اسمان او زمکه به پيدا شي نو دويم کرت به دا بدلون ذاتي وي.

يعنې په دې دواړو خبرو کښې هيڅ تضاد نشته، کيدې شي چه د اول نفخه صور په وخت هم د دې موجود زمکې صفات تبديل کړې شي او بيا د حساب کتاب دپاره هغه چرته د بلې زمکې طرف ته منتقل کړې شي. د امام عکرمه رحمه الله د يو قول نه د دې تائيد کيږي. په هغې کښې دی:

《بلغنا أن هذه الأرض يعني ارض الدنيا تطوى والى جنبها أخرى يحشر الناس منها إليها》(٢) يعنې دا زمکه به راټوله شي او د دې په اړخ کښې به يوه بله زمکه وي چه په هغې باندې به خلق د حساب کتاب دپاره اودرولې شي.

په صحيح مسلم کښې د سيدنا ثوبان رضي الله عنه روايت دې چه رسول الله صلى الله عليه وسلم ته يو يهودی عالم راغلو او دا سوال ئې اوکړو چه په کومه ورځ دا زمکه بدله شي نو انسانان به چرته وي، رسول الله صلى الله عليه وسلم ارشاد اوفرمائيلو چه د پل صراط سره به په يو تيارۀ کښې موجود وي. (٣)

د دې نه دا هم معلوميږي چه د موجوده زمکې نه به د پل صراط په ذريعه خلق بل طرف ته منتقل کړې شي او ابن جرير په خپل تفسير کښې د ډيرو صحابه کرامو رضي الله عنهم او تابعينو رحمهم الله اقوال نقل کړی دی چه هغه وخت به موجوده زمکه او د هغې ټول دريابونه اور شي، گويا دا ټوله علاقه چه په هغې باندې اوس دنيا آباده ده، هغه وخت به د جهنم علاقه شي. (٤)

---

(١) فتح البارى : ١١/٤٥٨

(٢) فتح البارى : ١١/٤٥٦

(٣) صحيح مسلم، كتاب الحيض، باب بيان صفة منى الرجل والمراءة، رقم الحديث : ٣١٥

(٤) مولانا شمس الحق افغانى صاحب رحمه الله په علوم القرآن کښې ليکی: ...[بقيه برصفحه آئنده...

بهر حال په دې سلسله کښې مختلف روايات راغلى دى او بعض روايات په ظاهر کښې د يو بل سره متضاد دى. د آخرت حقيقت او د صحيح صورت حال علم الله پاک ته دې. رسول الله ﷺ چه څومره اندازه امت ته بيان فرمائيلي دې په هغې باندې ايمان راوړل فرض دى.

[۶۱۵۴] حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ مُقَاتِلٍ أَخْبَرَنَا عَبْدُ اللَّهِ أَخْبَرَنَا يُونُسُ عَنِ الزُّهْرِيِّ حَدَّثَنِي سَعِيدُ بْنُ الْمُسَيَّبِ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ - رضى الله عنه - عَنِ النَّبِيِّ - صلى الله عليه وسلم - قَالَ «يَقْبِضُ اللَّهُ الأَرْضَ، وَيَطْوِي السَّمَاءَ بِيَمِينِهِ، ثُمَّ يَقُولُ أَنَا الْمَلِكُ أَيْنَ مُلُوكُ الأَرْضِ». [ر: ۴۵۳۴]

د سيدنا ابوهريره رضي الله عنه نه روايت دې چه رسول الله ﷺ اوفرمائيل : الله پاک به زمکه په خپل موټى کښې اونيسى او اسمان به په خپل لاس باندې راټول کړى او بيا به اوفرمائى چه زه بادشاه يم د دنيا بادشاهان چرته دى.

د يمين نه مراد د الله پاک قدرت دې، دا حديث د حديث صفات نه دې، چه د هغې تفصيل وړاندې د باب الصراط د لاندې راروان دې.

[۶۱۵۵] حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ بُكَيْرٍ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ خَالِدٍ عَنْ سَعِيدِ بْنِ أَبِي هِلاَلٍ عَنْ زَيْدِ بْنِ أَسْلَمَ عَنْ عَطَاءِ بْنِ يَسَارٍ عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ قَالَ النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - « تَكُونُ الأَرْضُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ خُبْزَةً وَاحِدَةً، يَتَكَفَّؤُهَا الْجَبَّارُ بِيَدِهِ، كَمَا يَكْفَأُ أَحَدُكُمْ خُبْزَتَهُ فِي السَّفَرِ، نُزُلاً لأَهْلِ الْجَنَّةِ». فَأَتَى رَجُلٌ مِنَ الْيَهُودِ فَقَالَ بَارَكَ الرَّحْمَنُ عَلَيْكَ يَا أَبَا الْقَاسِمِ، أَلاَ أُخْبِرُكَ بِنُزُلِ أَهْلِ الْجَنَّةِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ قَالَ «بَلَى». قَالَ تَكُونُ الأَرْضُ خُبْزَةً وَاحِدَةً كَمَا قَالَ النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - فَنَظَرَ النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - إِلَيْنَا، ثُمَّ ضَحِكَ

...بقيه ازحاشيه گذشته] زمکه به په محشر کښې هم د دنيا نه مختلف وى. په قرآن مجيد کښې : ﴿ يوم تبدل الارض غير الارض ﴾ يعنى په کومه ورځ باندې چه زمکه بدله کړې شى، د اولې زمکې نه مختلف... دا تبديلى به ذاتى وى يا صفاتى؟ يو قول دا دې چه ذاتى به وى، دويم دا چه صرف صفاتى به وى، دريم دا چه يو کرت به صرف صفاتى وى او دويم کرت به ذاتى وى. قول مختار دا دې چه صرف صفاتى به وى. په بخارى او مسلم کښې د سيدنا سهل بن سعد رضي الله عنه نه مرفوع حديث دې ﴿ يحشرالناس يوم القيامة على ارض بيضاء عفراء كقرصة النقى ليس فيها علم لاحد ﴾ او په صحيحين کښې د سيدنا ابوسعيد خدرى رضي الله عنه نه مرفوع حديث راغلې دې : ﴿ تكون الارض خبزة واحدة ﴾ چه د هغې معنى دا ده چه خلق به په يو داسې زمکه باندې اوچت کړې شى کومه چه به د سپينو غنمو رنګ ته مائل وى، لکه د ميدې ډوډئ، په هغه باندې به هيڅ قسم نخښه نه وى. او د ابوسعيد رضي الله عنه په روايت کښې دى چه : شى به دا زمکه د زمکې يو ډوډئ، او په بعض رواياتو کښې د سپينو زرو ذکر راغلې دې، د هغې مطلب په سپين والى کښې د چاندئ سره مشابهت دې، نه دا چه زمکه به په حقيقت کښې د سپينو زرو شى. په بيهقى کښې د ابن مسعود رضي الله عنه نه په صحيح سند سره دا الفاظ راغلې دى، ﴿ تبدل الارض ارضا كانها فضة ﴾ يعنى د دنيا زمکه به په داسې صورت کښې بدله شى چه هغه به د سپينو زرو په شان وى، ابن جرير د زيد بن ثابت رضي الله عنه نه مرفوعا دا حديث نقل کړې دې، ﴿ انها تكون يومئذ بيضاء مثل الفضة ﴾ يعنى دا زمکه به په هغه ورځ باندې د چاندئ په شان سپينه شى... راجح د صفاتو بدلون دې. (اوګورئ : علوم القرآن، از مولانا شمس الحق افغانى ۲۴۶)

حَتّٰى بَدَتْ نَوَاجِذُهُ ثُمَّ قَالَ أَلَا أُخْبِرُكَ بِإِدَامِهِمْ قَالَ إِدَامُهُمْ بَالَامٌ وَنُونٌ، قَالُوا وَمَا هٰذَا قَالَ ثَوْرٌ وَنُونٌ يَأْكُلُ مِنْ زَائِدَةِ كَبِدِهِمَا سَبْعُونَ أَلْفًا.

د سيدنا ابوسعيد خدرى رضي الله عنه نه روايت دې چه رسول الله ﷺ اوفرمائيل : د قيامت په ورځ باندې به زمكه د يوې ډوډئ په شان شى، كومه چه به الله پاک د اهل جنت د ميلمستيا دپاره داسې راټوله كړى څنګه چه تاسو د سفر په موقع باندې خپله ډوډئ راټوله ردئ. بيا يو يهودى راغلو او وې وئيل : ابوالقاسم! په تاسو دې رحمن بركت نازل كړى، آيا زه تاسو ته د قيامت په ورځ باندې د اهل جنت ذ ټولو نه د اول خوراک خبر درنكړم چه په هغې سره به د هغوى ميلمستيا كولې شى، خبر درنكړم؟ رسول الله ﷺ اوفرمائيل : ولې نه! نو هغه هم هغه شان اووئيل كوم چه رسول الله ﷺ فرمائيلي ووچه زمكه به يو ډوډئ شى، بيا رسول الله ﷺ زما طرف ته اوكتل او مسكې شو چه په هغې سره د هغوى مخامخ غاښونه مبارک ښكاره شو، بيا ئې تپوس اوكړو زه تاسوته دهغوى دتركارئ متعلق خبر درنكړم؟ وې وئيل چه دهغوى تركارى به بالام ونون وى، صحابه كرامو رضي الله عنهم عرض اوكړو داڅه څيزدې؟ هغه اووئيل: غوئې او مهې! چه د هغې د اينې وړوكې ټكړه به اويا زره كسان په مړه خيټه باندې اوخورى.

**قوله:** ﴿تَكُونُ الْأَرْضُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ خُبْزَةً وَاحِدَةً﴾: زمكه به يو ډوډئ شى، د زمكې نه د دنيا زمكه مراد ده.

**قوله:** ﴿يَتَكَفَّؤُهَا الْجَبَّارُ بِيَدِهِ كَمَا يَكْفَأُ أَحَدُكُمْ خُبْزَتَهُ فِي السَّفَرِ﴾: يعنى الله پاک به هغه داسې راټوله كړى لكه څنګه چه په تاسو كښې يو سړې په سفر كښې دننه خپله روټئ راټولوى. ﴿كفا﴾ د باب فتح نه دې، د دې معنى د راټولولو، را اولټه كولو او راجمع كولو ده. د اوړو د پيړې نه چه كله ډوډئ جوړولې شى نو هغه د يو لاس نه د بل لاس طرف ته اړولې او منتقل كولې شى چه هغه بالكل صحيح شى، هم دغه شان د ډوډئ پخيدو نه پس هغه په لاسونو كښې اولټه راولټه كولو سره برابرولې شى. پس علامه نووى رحمه الله د دې جملې ترجمه كړې د ه : ﴿اى يميلها من يد الى يد حتى تجتمع وتستوى﴾[1] او علامه خطابى رحمه الله د دې ترجمه داسې كړې ده يعنى ﴿خبز الملة الذى يصنعه المسافر، فانها لا تدحى كما تدحى الرقاقة، وانما تقلب على الايدى حتى تستوى﴾[2] يعنى د ډوډئ پيړه، كومه چه مسافر جوړوى، چونكه هغه د چپاتى په شان خوره او نيغه نه وى (بلكه ګول وى) هغه د يو لاس نه د بل لاس طرف ته اړولو سره برابرولې شى او دغه شان د هغې نه ډوډئ جوړه شى.

﴿فى السفر﴾ د دې قيد اتفاقى دې. په بعض نسخو كښې سُفَر (د سين د ضمې او د فاء د فتحې

---

[1]) شرح مسلم للنووى، كتاب صفات المنافقين، باب نزل اهل الجنة : ١٣٣/١٧

[2]) فتح البارى : ٤٥٣/١١

سره، دي. هغه د سُفْرَة جمع ده، سفرة د مسافر دپاره چه کوم خوراک تیارولې شی هغې ته هم وائی او دسترخوان ته هم وائی. [1]

**قوله:** ﴿ نُزُلاً لأَهْلِ الْجَنَّةِ ﴾: ﴿ نزل ﴾ (د نوم او زا- په ضمې سره) د میلمه مخکښې چه کوم څه حاضر څیز پیش کړې شی، هغې ته وائی.

**د حدیث شریف دوه مطلبونه** : ① دا حدیث بعض علماء کرامو د حقیقی معنی په ځائې مجازی معنی ته محمول کړې دې، د هغوی وینا ده چه د زمکې ډوډئ جوړیدل او د اهل جنت د هغې نه خوراک کول د الله پاک د قدرت په اعتبار سره خو هیڅ بعید نه دی خو په بل روایت کښې راځی چه د دنیا دا زمکه به اور جوړیدو سره د جهنم حصه جوړه شی نو د جنتیانو دپاره به د ډوډئ کار څنګه ورکوی، په دې وجه ﴿ تکون الارض خبزة واحدة ﴾ د حقیقی معنی په ځائې په مجازی معنی باندې محمول کول زیات مناسب دی چه په طور د تشبیه او تمثیل اووئیلې شو چه زمکه به د ډوډئ په شان نیغه او مستوی کړې شی پس هم په دې باب کښې د سیدنا سهل رضي الله عنه په حدیث کښې ﴿ کقرصة النقی ﴾ الفاظ راغلې دی په دې وجه به وئیلې شی چه د روټئ سره مثال پیش کولو سره د زمکه په دوه معنی کښې تشبیه ورکړې شوې ده. یو خو د هغه زمکې حالت او هیبت بیانول مقصود دی چه هغه به د ډوډئ په شان بالکل نیغ وی. دویم د اهل جنت دپاره چه الله پاک کومه ډوډئ تیاره کړې ده، د هغې بیان دې چه هغه به د زمکې په شان لویه او عظیمه وی، پس قاضی بیضاوی رحمه الله لیکی:

﴿ أن هذا الحديث مشكل جدا لا من جهة إنكار صنع الله وقدرته على ما يشاء بل لعدم التوقيف على قلب جرم الأرض من الطبع الذي عليه إلى طبع المطعوم والمأكول مع ما ثبت في الآثار أن هذه الأرض تصير يوم القيامة نارا وتنضم إلى جهنم فلعل الوجه فيه أن معنى قوله خبزة واحدة أي كخبزة واحدة من نعتها كذا وكذا وهو نظير ما في حديث سهل يعني المذكور بعده كقرصة النقي فضرب المثل بها لاستدارتها وبياضها فضرب المثل في هذا الحديث بخبزة تشبه الأرض في معنيين أحدهما بيان الهيئة التي تكون الأرض عليها يومئذ والآخر بيان الخبزة التي يهيئها الله تعالى نزلا لأهل الجنة وبيان عظم مقدارها ابتداعا واختراعا ﴾ [2]

② خو علامه طیبی رحمه الله، حافظ ابن حجر او د اکثرو علماء کرامو په نزد دا حدیث په خپل حقیقی معنی باندې محمول دې هغوی فرمائی چه د دې زمکې نه به ډوډئ جوړه شی او میدان حشر کښې به د حساب نه مخکښې جنت ته تلونکی د هغې نه خوراک کوی، ﴿ نزلا لاهل الجنة ﴾ هم دا مطلب دې چه اهل جنت به په دې موقع باندې د هغې نه خوراک کوی. [3]

---

[1]) فتح الباري : ٤٥٣/١١، عمدة القاري : ١٥٧/٢٣

[2]) فتح الباري : ٤٥٣/١١، ٤٥٤، وشرح الطيبي للمشكاة : ١٢٩/١

[3]) شرح مشكاة للطيبي، كتاب الفتن : ١٢٩/١، وفتح الباري : ٤٥٢/١١، وراشاد الساري : ٥٢٢/١٣

او روستو به هغوی په جنت کښې ننه د هغوی دپاره نزل او میلمستیا جوړه شي. د هغې تائید د سعید بن جبیر رحمه الله د یو قول نه هم کیږي کوم چه امام طبري رحمه الله نقل کړې دې، چه زمکه باندې سپینه ډوډۍ شي او مومن به ئې د خپلې خپو د لاندې خوري. (۱) هم دغه شان امام بیهقی رحمه الله د امام عکرمه رحمه الله قول نقل کړې دې ﴿ تبدل الارض مثلا الخبزة یاکل منها اهل الاسلام حتی یفرغوا من الحساب ﴾ (۲).

باقي هر چه تعلق د آثارو دې چه په هغې کښې ئې وئیلې دی چه دا زمکه به اور شي، حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائي چه د دې نه ارض بحر مراد دې، یعنی د دنیا په کومه حصه باندې چه سمندر قائم دې صرف هغه حصه به اور جوړیدو سره د جهنم سره یو ځائې کولې شي، پس امام طبري رحمه الله د کعب احبار رحمه الله نه نقل کړی دی چه په هغې کښې تصریح ده، هغوی فرمائي ﴿ یصیر مکان البحر نارا ﴾ د سیدنا ابی بن کعب رضی الله عنه نه هم د دې صراحت منقول دې، لهذا په دواړه قسم روایاتو کښې هیڅ تعارض نشته. (۳)

**قوله:** ﴿ فَأَتَى رَجُلٌ مِنَ الْيَهُودِ ﴾: حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائي چه د دې سړی نوم ماته معلوم نه دې. (۴)

**قوله:** ﴿ ثَوْرٌ وَنُونٌ ﴾: د بالام تشریح هغه په ثور سره اوکړه، ثور غوئی ته وائی او نون مهی ته وائی.

**قوله:** ﴿ يَأْكُلُ مِنْ زَائِدَةِ كَبِدِهِمَا سَبْعُونَ أَلْفًا ﴾: اویا زره خلق به د غوئی او مهی د زیاتی حصې نه خوراک کوی.

**قوله:** ﴿ زائدة الکبد ﴾: اینې سره چه یو وړه شان حصه او ټکړه وی هغې ته وائی. دا ډیره مفید او غوره وی. (۵)

په مسلم شریف کښې د سیدنا ثوبان رضی الله عنه حدیث دې: ﴿ تحفة اهل الجنة زیادة کبد النون ﴾ (۱). یعنی د اهل جنت ډالۍ د مهی د اینې زیاتی حصه ده

---

(۱) فتح الباري: ۴۵۲/۱۱، وراشاد الساري: ۵۲۲/۱۳

(۲) فتح الباري: ۴۵۲/۱۱، وراشاد الساري: ۵۲۲/۱۳

(۳) اوګورئ: فتح الباري: ۴۵۷/۱۱، مولانا محمد تقی عثمانی مدظلهم په تکملة د فتح الملهم کښې لیکلې دی چه حافظ ابن حجر رحمه الله د حدیث حقیقی معنی ته ترجیح ورکړې ده، خو د هغه آثارو جوابونه ئې نه دی ورکړی، چه په هغې کښې د زمکې نه د اور جوړیدو ذکر دې. (اوګورئ تکملة فتح الملهم: ۶۰/۶ باب نزل اهل الجنة) حال دا چه حافظ ابن حجر رحمه الله ذکر کړې شوې جواب ورکړې دې خو د دې بحث نه لاندې نه بلکه هم د دې باب په وړاندې حدیث کښې ئې پورته جواب ورکړې دې، کیدې شي چه د حضرت نظر هلته نه وی تلې.

(۴) فتح الباري: ۴۵۴/۱۱

(۵) فتح الباري: ۴۵۵/۱۱

[٦١٥٦] (٢) حَدَّثَنَا سَعِيدُ بْنُ أَبِي مَرْيَمَ أَخْبَرَنَا مُحَمَّدُ بْنُ جَعْفَرٍ قَالَ حَدَّثَنِي أَبُو حَازِمٍ قَالَ سَمِعْتُ سَهْلَ بْنَ سَعْدٍ قَالَ سَمِعْتُ النَّبِي - صلى الله عليه وسلم - يَقُولُ «يُحْشَرُ النَّاسُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ عَلَى أَرْضٍ بَيْضَاءَ عَفْرَاءَ كَقُرْصَةِ نَقِيٍّ». قَالَ سَهْلٌ أَوْ غَيْرُهُ لَيْسَ فِيهَا مَعْلَمٌ لأَحَدٍ.

د سيدنا سهل رضي الله عنه نه روايت دي چه رسول الله ﷺ اوفرمائيل : د قيامت په ورځ باندې خلق د صفا او سپينې ډوډۍ په شان اينختلې زمکه باندې جمع کړې شي، سهل يا د هغه نه علاوه بل چا بيان اوکړو چه په دې زمکه باندې به د بل چا هيڅ نخښبه نه وي.

**قوله: ﴿بَيْضَاءَ عَفْرَاءَ﴾**: سپينه سرخۍ ته مائله، عفراء : داسې رنګ چه خالص سپين نه وي، بلکه غنم رنګې وي، بعضو وئيلي دي چه عفراء خالص سپين رنګ ته وائي خو حافظ ابن حجر رحمه الله اول قول ته معتمد وئيلې دې.(٣)

**قوله: ﴿كَقُرْصَةِ نَقِيٍّ﴾**: لکه چه د ميدې ډوډۍ وي، ﴿قرصة﴾ ډوډۍ او ککړوی ته وائي، ﴿نقي﴾ په وزن د ولي ميده ته وائي.

**قوله: ﴿قَالَ سَهْلٌ ، أَوْ غَيْرُهُ لَيْسَ فِيهَا مَعْلَمٌ﴾**: دا د ماقبل سند سره متصل دې، د حديث راوی سهل فرمائي، يا د سهل نه علاوه بل چا وئيلي دی يعنی روايت کونکی ته د ويونکی په باره کښې شک دې چه قائل سهل دې او که بل څوک دې؟

**قوله: ﴿ليس فيها معلم﴾**: يعنی په دې زمکه کښې به هيڅ نخښبه او علامت نه وی، د دې نه معلومه شوه چه ﴿ليس فيها معلم﴾ الفاظ د حديث مرفوع حصه نه ده بلکه دا د راوی د طرف نه په طور د تشريح ليکلې شوې دی، د ﴿غيره﴾ نه څوک مراد دې، حافظ د لا علمۍ اظهار فرمائيلې دې.(٤)

﴿معلم﴾ په معنی د علامت راځی يعنی زمکه به بالکل برابر وی او په هغې کښې به هيڅ قسم تعمير او څه کور، يا بنګله وغيره هيڅ نخښبه نه وی.

## ١٦ : باب كَيْفَ الْحَشْرُ

**د حشر معنی او قسمونه**: د حشر معنی د جمع کولو راځی، د مرګ نه پس چه کله د آخرت ژوند شروع شی نو د قيامت د قائميدلو نه پس به ټول اولين او آخرين، د دنيوی ژوند په

---

(١) فتح البارى : ٤٥٥/١١

(٢) اخرجه مسلم فى صفات المنافقين واحكامهم، باب : فى البعث والنشور وصفة الارض، رقم : ٢٧٩٠. (عفراء) بيضاء مشوبة بحمرة. (كقرصة النقى) كرغيف مصنوع من دقيق خالص من الغش والنخالة. (معلم) علامة يستدل بها، اى مستوية لا حدب فيها ولا بناء عليها ولا شئ سواه.

(٣) فتح البارى : ٤٥٥/١١

(٤) فتح البارى : ٤٥٥/١١

حساب سره په يو ميدان كښې راجمع كړې شى، دې ته حشر وائى او هم دا د ټولو نه مشهوره معنى ده، بعض شارحينو د حشر درې قسمونه ليكلې دى.

① يو حشر هغه دې او هغه د قيامت د علاماتو نه دې چه قيامت ته نزدې به خلق د شام په علاقو كښې د يو اور نه تختيدلو سره جمع شى، دا د قيامت نه مخكښې د هغه لس نخښو نه يوه ده چه د هغې ذكر په حديث كښې راغلې دې.

② دويم د حشر ميدان دې يعنى حشر الاموات من القبور چه د هغې ذكر د قرآن كريم په آيت كښې دې، ﴿ وحشرناهم فلم نغادر منهم احدا ﴾، او مونږ به ټول جمع كوو او په هغوى كښې به څوك هم نه پريږدو.

③ دريم حشر جنت او جهنم دې، دا به د حساب نه پس وى چه اهل جنت، به په جنت كښې او جهنميان به په جهنم كښې جمع كولې شى. [1]

[۶۱۵۷] [2] حَدَّثَنَا مُعَلَّى بْنُ أَسَدٍ حَدَّثَنَا وُهَيْبٌ عَنِ ابْنِ طَاوُسٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رضى الله عنه - عَنِ النَّبِيِّ - صلى الله عليه وسلم - قَالَ «يُحْشَرُ النَّاسُ عَلَى ثَلاَثِ طَرَائِقَ، رَاغِبِينَ رَاهِبِينَ وَاثْنَانِ عَلَى بَعِيرٍ، وَثَلاَثَةٌ عَلَى بَعِيرٍ، وَأَرْبَعَةٌ عَلَى بَعِيرٍ، وَعَشَرَةٌ عَلَى بَعِيرٍ وَيَحْشُرُ بَقِيَّتَهُمُ النَّارُ، تَقِيلُ مَعَهُمْ حَيْثُ قَالُوا، وَتَبِيتُ مَعَهُمْ حَيْثُ بَاتُوا، وَتُصْبِحُ مَعَهُمْ حَيْثُ أَصْبَحُوا، وَتُمْسِى مَعَهُمْ حَيْثُ أَمْسَوْا».

د سيدنا ابوهريره رضي الله عنه نه روايت دې چه رسول الله ﷺ اوفرمائيل: د خلقو حشر به په دريو طريقو باندې وى (يو داسې چه) خلق به رغبت كونكى وى خو ويريږى به، (دويمه ډله به د هغه خلقو وى چه) په يو اوښ باندې به دوه سړى وى، په يو اوښ باندې به درې وى او په څه باندې به څلور وى او په څه باندې به لس وى. او (دريمه ډله به د هغه خلقو وى كوم چه به اور راجمع كوى) چه كله هغوى قيلوله كوى نو اور به هم هغه وخت هغوى سره د آرام په وخت موجود وى، چه كله هغوى شپه تيره كړى نو اور به هم هغوى سره موجود وى، چه كله هغوى سحر كړى نو اور به هم هغوى سره د سحر په وخت موجود وى او چه كله هغوى ماښام كړى نو اوربه هم هغوى سره موجود وى، يعنى چه هغوى چرته ځى اور به هلته رسيږى.

وهيب بن خالد، عبدالله بن طاؤس نه نقل كوى او عبدالله، د خپل پلار طاؤس بن كيسان نه نقل كوى.

**قوله:** ﴿ يُحْشَرُ النَّاسُ عَلَى ثَلاَثِ طَرَائِقَ ﴾: خلق به په درې طريقو سره جمع كولې شى، يعنى د حشر په وخت به د خلقو درې قسمونه وى، يو د راغبينو او راهبينو، دويم په اوښانو باندې د سورو او دريم د اور نه تختيدونكى!

**په حديث الباب كښې د راغلى حشر مصداق** : ① د بعض علماء كرامو په نزد د دې حشر نه د

[1] د تفصيل دپاره اوګورئ: فتح البارى: ۱۱/ ۴۶۰

[2] اخرجه مسلم فى الجنة وصفة نعيمها، باب: فناء الدنيا وبيان الحشر يوم القيامة، رقم: ۲۸۶۱۰

آخرت حشر مراد دې او د حدیث شریف مطلب دا دې چه خلق کله د قبرونو نه اوچتیدلو سره د محشر طرف ته لاړ شي نو د هغوی به درې قسمونه وی

★ ... یو خو د راغبین و راهبین یعني د عام مومنانو به وی چاته چه به د خپل ایمان او اعمالو په وجه د الله پاک د رحمت امید هم وی او د اعمالو په وجه عذاب ویره به ورسره هم وی، دوی به د خوف او رجاء والا کیفیت کښې وی، دا به اصحاب میمنة وی.

★ .. دویم به هغه حضرات وی کوم چه په اوښانو باندې سوریدلو سره د محشر په طرف ځی. په یو اوښ باندې دوه دوه، درې درې او څلور څلور د مراتبو مطابق سوارهٔ وی، دا به هغه نیکان وی چه د هغوی درجه به د عام مومنانو نه زیاته وی.

په یو اوښ باندې به دوه دوه درې درې په یو وخت سوارهٔ وی ځکه چه هغه اوښ به د هغوی تحمل کولې شی، یا به د دنیا په شان په نمبر نمبر په هغې باندې د مختلف تعداد دا حضرات سورلی کوی.[1]

★ دریم به هغه کافر وی کوم چه به اور شړی، دا اصحاب مشامه دی.

فضل الله توربشتی، علامه طیبی او مولانا انور شاه کشمیری رحمه الله هم دې قول ته ترجیح ورکړې ده.[2]

د مصابیح په شرح کښې علامه توربشتی رحمه الله ډیر زور ورکولو سره په دلائلو سره ثابت کړې دی چه د دې نه د دنیا حشر نه دې مراد، بلکه د آخرت حشر مراد دې.

د مشکاة شارح علامه طیبی رحمه الله اول ډیر په تفصیل سره د علامه توربشتی رحمه الله قول رد کړې دې او وئیلي ئې دی چه د دې نه د آخرت حشر نه دې مراد، بلکه د دنیا حشر مراد دې کوم چه به قیامت ته نزدې واقع کیږی او کوم چه به د قیامت په لسو لویو نخښو کښې وی، خو د دې نه پس ئې لیکلې دی چه دا تفصیل ما د خپل اجتهاد نه لیکلې وو، بیا ما په صحیح بخاری کښې په باب الحشر کښې حدیث اولیدو په هغې کښې د «یوم القیامة» تصریح ده:

«یحشر الناس یوم القیامة علی ثلاث طرائق» د یوم القیامة د تصریح نه پس اوس گنجائش نشته چه د دې نه د دنیا حشر مراد کړې شی. پس هغوی لیکی:

«هذا ما سنح لی علی سبیل الاجتهاد ثم رأیت فی صحیح البخاری فی باب المحشر یحشر الناس یوم القیامة علی ثلاث طرائق فعلمت من ذلک ان الذی ذهب إلیه الإمام التوربشتی هو الحق الذی لا محید عنه».[3]

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی چه د بخاری په هیڅ روایت کښې د «یوم القیامة» تصریح ماته معلومه نه شوه.[4]

مولانا انور شاه کشمیری رحمه الله فرمائی چه زمونږ په نسخو کښې دا موجود ده.[5]

---

[1]) فتح الباری: ۴۶۱/۱۱

[2]) شرح الطیبی للمشکاة، کتاب الفتن، باب الحشر، ۱۵۹/۱۰، وفیض الباری: ۴۳۳/۴

[3]) شرح الطیبی للمشکاة، کتاب الفتن، باب الحشر، ۱۶۳/۱۰

[4]) فتح الباری: ۴۶۴/۱۱

[5]) فیض الباری: ۴۳۳/۴

حقيقت دا دې چه په بعض نسخو کښې د ‹‹يوم القيامة›› اضافه ده، غالبا حافظ رحمه الله سره چه کومې نسخې وې په هغې کښې دا اضافه نشته.

② خو د علماء کرامو د يو لوئې جماعت په نزد د دې نه مراد د آخرت حشر نه دې. بلکه د دنيا حشر دې کوم چه به قيامت ته نزدې واقع کيږي او د کوم ذکر چه د سيدنا حذيفه بن اسيد رضي الله عنه په روايت کښې دې کوم چه امام مسلم رحمه الله په کتاب الفتن کښې ذکر فرمائيلې دې، په هغې کښې دی:

‹‹إِنَّهَا لَنْ تَقُومَ حَتَّى تَرَوْنَ قَبْلَهَا عَشْرَ آيَاتٍ. فَذَكَرَ الدُّخَانَ وَالدَّجَّالَ وَالدَّابَّةَ وَطُلُوعَ الشَّمْسِ مِنْ مَغْرِبِهَا وَنُزُولَ عِيسَى ابْنِ مَرْيَمَ -صلى الله عليه وسلم- وَيَأْجُوجَ وَمَأْجُوجَ وَثَلاَثَةَ خُسُوفٍ خَسْفٌ بِالْمَشْرِقِ وَخَسْفٌ بِالْمَغْرِبِ وَخَسْفٌ بِجَزِيرَةِ الْعَرَبِ وَآخِرُ ذَلِكَ نَارٌ تَخْرُجُ مِنَ الْيَمَنِ تَطْرُدُ النَّاسَ إِلَى مَحْشَرِهِمْ››(١) يعنى ترڅو پورې چه تاسو دا لس نخښې نه وى ليدلې تر هغه وخته پورې به قيامت نه قائميږى، هغه لس نخښې دا دى: لوږې، دجال، دابة الارض، نمر د مغرب نه راختل، د سيدنا عيسى عليه السلام نزول، د ياجوج ماجوج راوتل، او درې خسوف (د خسف نه مراد په زمکه کښې ننوتل دى) او اور کوم چه به د يمن نه راوځى او خلق به د محشر طرف ته ديکه کوى.

د دې نه علاوه په مسند احمد کښې د سيدنا عبدالله بن عمر او مستدرک حاکم کښې د عبدالله بن عمرو بن العاص رضي الله عنهما په روايت کښې هم د دې حشر ذکر دې. د مستدرک حاکم د حديث الفاظ دا دى: ‹‹تُبْعَثُ نَارٌ عَلَى أَهْلِ الْمَشْرِقِ فَتَحْشُرُهُمْ إِلَى الْمَغْرِبِ تَبِيتُ مَعَهُمْ حَيْثُ بَاتُوا، وَتَقِيلُ مَعَهُمْ حَيْثُ قَالُوا››(٢)

د دې رواياتو د تفصيلاتو حاصل دا دې چه د قيامت په ورځ باندې د قعر عدن نه يو اور راوځى، خلق به د هغې د نورو علاقو طرف ته تختى او د هغې درې قسمونه دى:

① يو قسم خو به د هغه خلقو وى چه هغوى سره سورلى او د سفر د توښې انتظام وى، په راتلونکو حالاتو کښې به د هغوى رغبت وى او د مخکښې حالاتو نه په ويره کښې کيدو سره به هغوى راوتلې وى، په حديث کښې د راغبين راهبين نه هم دا خلق مراد دى.

② دويم قسم به د هغه خلقو وى چه هغوى به د اول قسم خلقو په مقابله کښې کم وى، د سورلئ او د سفر د توښې انتظام به ئې معمولى وى، او په يو اوښ باندې به دوه دوه، درې درې او په نمبر نمبر سوريږى.

③ دريم قسم د هغه خلقو دې چه هغوى سره به بالکل انتظام نه وى او هغوى چه چرته ځى، اور به په هغوى پسې روان وى. ‹‹تبيت معهم حيث باتوا›› نه هم دا مراد دې.

علامه خطابى او حافظ ابن حجر رحمهما الله دې دويم قول ته ترجيح ورکړې ده چه د دې نه د دنيا

---

(١) صحيح مسلم، کتاب الفتن، باب فى الايات التى تكون قبل الساعة، ١٨/٢٣٥، رقم الحديث: ٧٢١٤

(٢) مستدرک للامام الحاکم، کتاب الفتن والملاحم، ٤/٥٩١، رقم الحديث: ٨٦٤٧

حشر مراد دي. (١)

بیا چه په دې کښې د کوم اور ذکر دې هغه ئې په حقیقت باندې محمول کړې دي او بعضو د دې نه د فتنې اور مراد اخستلې دې او دا مطلب ئې بیان کړې دی چه سخته فتنه به راوچتیږی کومه چه به په شام کښې نسبتا کمه او په نورو علاقو کښې به زیاته وی. په دې وجه به خلق د شام طرف ته زیات شی. (٢)

[٦١٥٨] حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا يُونُسُ بْنُ مُحَمَّدٍ الْبَغْدَادِيُّ حَدَّثَنَا شَيْبَانُ عَنْ قَتَادَةَ حَدَّثَنَا أَنَسُ بْنُ مَالِكٍ -رضي الله عنه- أَنَّ رَجُلاً قَالَ يَا نَبِيَّ اللَّهِ كَيْفَ يُحْشَرُ الْكَافِرُ عَلَى وَجْهِهِ قَالَ «أَلَيْسَ الَّذِي أَمْشَاهُ عَلَى الرِّجْلَيْنِ فِي الدُّنْيَا قَادِرًا عَلَى أَنْ يُمْشِيَهُ عَلَى وَجْهِهِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ». قَالَ قَتَادَةُ بَلَى وَعِزَّةِ رَبِّنَا. [ر: ٤٤٨٢]

د سیدنا انس بن مالک رضی الله عنه نه روایت دې چه یو صاحب عرض اوکړو. یا رسول الله ﷺ: الله پاک به کافران په مخونو باندې څنګه راجمع کوی، (د قیامت په ورځ) رسول الله ﷺ اوفرمائیل: آیا هغه ذات چا چه په دنیا کښې په دوه خپو باندې ګرځولو په دې قادر نه دې. چه د قیامت په ورځ ئې په مخونو باندې اوګرځوی، قتاده رحمه الله فرمائی: ﴿ بلى وربنا ﴾، ولې نه قسم دې په رب زمونږ.

[٦١٥٩، ٦١٦٠، ٦١٦١] حَدَّثَنَا عَلِيٌّ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ قَالَ عَمْرٌو سَمِعْتُ سَعِيدَ بْنَ جُبَيْرٍ سَمِعْتُ ابْنَ عَبَّاسٍ سَمِعْتُ النَّبِيَّ -صلى الله عليه وسلم- يَقُولُ «إِنَّكُمْ مُلاَقُو اللَّهِ حُفَاةً عُرَاةً مُشَاةً غُرْلاً». قَالَ سُفْيَانُ هَذَا مِمَّا نَعُدُّ أَنَّ ابْنَ عَبَّاسٍ سَمِعَهُ مِنَ النَّبِيِّ -صلى الله عليه وسلم-.

د سیدنا عبدالله بن عباس رضی الله عنهما نه روایت دې چه رسول الله ﷺ اوفرمائیل: تاسو به د الله پاک سره (د قیامت په ورځ) خپې ابله، بربنډ او پیاده ملاقات کوئ. سفیان بیان اوکړو چه دا حدیث د هغې نه دې چه د هغې متعلق به مونږ ګنړل چه سیدنا ابن عباس رضی الله عنهما د رسول الله ﷺ نه اوریدلې دې.

د عمرو نه عمرو بن دینار مراد دې.

﴿حُفَاة﴾: د حفی جمع ده، دا سې سړې چه خپې ابله وی.

﴿عُرَاة﴾: د عاری جمع ده، بربنډ

﴿مشاة﴾: د ماشی جمع ده، پیاده.

﴿غرل﴾: د اغرل جمع ده، ناسنته.

---

(١) فتح الباری: ١١/٤٦٤

(٢) فتح الباری: ١١/٤٦٤

[۱۶۰۱۴] حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ عَمْرٍو عَنْ سَعِيدِ بْنِ جُبَيْرٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ -رضي الله عنهما- قَالَ سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- يَخْطُبُ عَلَى الْمِنْبَرِ يَقُولُ «إِنَّكُمْ مُلاَقُو اللَّهِ حُفَاةً عُرَاةً غُرْلاً».

د سيدنا عبدالله بن عباس رضي الله عنهما نه روايت دي چه ما د رسول الله ﷺ نه واوريدل چه هغوى په منبر باندې خطبه وركوله او وې فرمائيل چه تاسو به د الله پاک سره په داسې حال كښې ملاويږئ چه خپې ابله، بربنډ او نانسنته به يئ.

**د رواياتو تعارض او د هغې حل:** دلته په روايات الباب كښې دى چه د قبرونو نه به مړى بربنډ بدن راوځى، او حال دا چه امام ابوداؤد او امام حاكم رحمهما الله د سيدنا ابوسعيد خدرى رضي الله عنه روايت نقل كړې دې چه هغوى د مرګ په وخت نوې جامې راطلب كړې او وې وئيل چه ما د رسول الله ﷺ نه اوريدلې دى چه ﴿إِنَّ الْمَيِّتَ يُبْعَثُ فِي ثِيَابِهِ الَّتِي يَمُوتُ فِيهَا﴾ يعنې مړې به هم په هغه جامو كښې اوچتولې شى په كومو كښې چه د هغوى مرګ راغلې وى. (۱) هم دغه شان د سيدنا معاذ بن جبل رضي الله عنه روايت دې ﴿ احسنوا اكفان موتاكم فانهم يحشرون فيها ﴾ (۲)، (خپلو مړو ته ښه كفن وركوئ ځكه چه هم په هغې كښې به د هغوى حشر كولې شى)

د دې دوه احاديثو نه معلوميږى، چه د قبرونو نه وتونكى مړى به ، بربنډ نه وى بلكه پټ به وى، د دې تعارض مختلف جوابات كړې شوې دى :

① د سيدنا معاذ بن جبل رضي الله عنه روايت خو ضعيف دې، هغه قابل استدلال نه دې او د سيدنا ابوسعيد خدرى رضي الله عنه په حديث كښې د ﴿ ميت ﴾ عام مړې نه دې مراد . بلكه شهيد مراد دې. خو سيدنا ابوسعيد خدرى رضي الله عنه هغه په عام مړى باندې محمول اوفرمائيلو . حاصل دا چه په احاديث الباب كښې د عام مړو د پاسيدو حال بيان كړې شوې دې، او د سيدنا ابوسعيد خدرى رضي الله عنه په حديث كښې د شهيد حالت بيان كړې شوې دې.

② دويم جواب دا وركړې شوې دې چه د قيامت په ورځ باندې به څه خلق بربنډ راوځى او څه به په پټ وى.

③ دريم جواب دا دې چه په شروع كښې به ټول د خپلو كفنونو سره وى، د سيدنا ابوسعيد رضي الله عنه په روايت كښې د هغې ذكر دې، روستو به ترې كفن لرې كړې شى، او ټول به بربنډ شى، په روايات الباب كښې د دې روستنى حالت ذكر دې.

④ او څلورم جواب دا دې چه د سيدنا ابوسعيد رضي الله عنه په روايت كښې د ثياب نه مراد اعمال دى، په قرآن كريم كښې دى ﴿ وَلِبَاسُ التَّقْوَىٰ ذَٰلِكَ خَيْرٌ ﴾ (۳)

---

(۱) اخرجه ابوداؤد فى كتاب الجنائز ، باب ما يستحب من تطهير الميت : ۱۹۰/۳، رقم الحديث : ۳۱۱۴، واخرجه الامام الحاكم فى المستدرک، كتاب الجنائز ۳۴۰/۱

(۲) اورده ابن عراق فى تنزيه الشريعة : ۳۷۲/۳

(۳) سورة اعراف : ۲۶

دا مختلف جوابات ورکړې شوې دی، خو اول جواب راجح او وزنی معلومیږی.

[۶۱۶۱] حَدَّثَنِي مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ حَدَّثَنَا غُنْدَرٌ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنِ الْمُغِيرَةِ بْنِ النُّعْمَانِ عَنْ سَعِيدِ بْنِ جُبَيْرٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ قَامَ فِينَا النَّبِيُّ -صلى الله عليه وسلم- يَخْطُبُ فَقَالَ «إِنَّكُمْ مَحْشُورُونَ حُفَاةً عُرَاةً ( كَمَا بَدَأْنَا أَوَّلَ خَلْقٍ نُعِيدُهُ ) الآيَةَ ، وَإِنَّ أَوَّلَ الْخَلاَئِقِ يُكْسَى يَوْمَ الْقِيَامَةِ إِبْرَاهِيمُ ، وَإِنَّهُ سَيُجَاءُ بِرِجَالٍ مِنْ أُمَّتِي ، فَيُؤْخَذُ بِهِمْ ذَاتَ الشِّمَالِ . فَأَقُولُ يَا رَبِّ أُصَيْحَابِي . فَيَقُولُ إِنَّكَ لاَ تَدْرِي مَا أَحْدَثُوا بَعْدَكَ . فَأَقُولُ كَمَا قَالَ الْعَبْدُ الصَّالِحُ ( وَكُنْتُ عَلَيْهِمْ شَهِيدًا مَا دُمْتُ فِيهِمْ ) إِلَى قَوْلِهِ ( الْحَكِيمُ ) قَالَ فَيُقَالُ إِنَّهُمْ لَمْ يَزَالُوا مُرْتَدِّينَ عَلَى أَعْقَابِهِمْ». [ر: ۳۱۷۱]

د سیدنا ابن عباس رضی الله عنهما نه روایت دې چه رسول الله ﷺ مونږ ته د خطبې راکولو دپاره اودریدلو او وې فرمائیل چه تاسو به د قیامت په ورځ باندې داسې حال کښې اوچت کړې شئ بربنډ او خپې ابله به یئ، څنګه چه مونږ د تخلیق شروع کړې وه، هم هغه شان به مو مونږ واپس کړو «الایة» او په ټول مخلوق کښې چه اول کوم انسان ته کپړه اچولې شی هغه به ابراهیم علیه السلام وی، او زما د امت نه به ډیر خلق راوستلې شی چه د هغوی اعمال نامې به په ګس لاس کښې وی، زه به وایم اې زما ربه ! دا خو زما ملګری دی! الله پاک به فرمائی تاته نه ده معلومه چه هغوی ستا نه روستو څه نوې څیزونه پیدا کړې وو، هغه وخت به زه هم هغه وایم کوم د نیک بنده سیدنا عیسی علیه السلام وئیلې وو ﴿ وَكُنتُ عَلَيْهِمْ شَهِيدًا مَا دُمْتُ فِيهِمْ فَلَمَّا تَوَفَّيْتَنِي كُنتَ أَنتَ الرَّقِيبَ عَلَيْهِمْ وَأَنتَ عَلَىٰ كُلِّ شَيْءٍ شَهِيدٌ - إِن تُعَذِّبْهُمْ فَإِنَّهُمْ عِبَادُكَ وَإِن تَغْفِرْ لَهُمْ فَإِنَّكَ أَنتَ الْعَزِيزُ الْحَكِيمُ ﴾ یعنی ترڅو پورې زه په دوی کښې موجود اوم تر هغه وخته پورې زه په دوی ګواه اوم او کله چه تا زه اوچت کړم نو بیشکه هم ته د هر یو څیز نګهبان ئې... نو او به وئیلې شی «رسول الله ﷺ ته» چه روستو هغوی په خپلو پوندو واپس شوې وو «یعنی ستاسو د وفات نه پس دا خلق مرتد شوې وو او ستاسو په حق دین باندې برقرار نه وو پاتې شوې».

**قوله:** ﴿إِنَّهُمْ لَمْ يَزَالُوا مُرْتَدِّينَ عَلَى أَعْقَابِهِمْ﴾: د دې نه د رسول الله ﷺ نه پس د ابوبکرصدیق رضی الله عنه په دور کښې مرتد کیدونکی خلق مراد دی، راجح قول هم دا دې.[۱]

[۶۱۶۲] حَدَّثَنَا قَيْسُ بْنُ حَفْصٍ حَدَّثَنَا خَالِدُ بْنُ الْحَارِثِ حَدَّثَنَا حَاتِمُ بْنُ أَبِي صَغِيرَةَ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ أَبِي مُلَيْكَةَ قَالَ حَدَّثَنِي الْقَاسِمُ بْنُ مُحَمَّدِ بْنِ أَبِي بَكْرٍ أَنَّ عَائِشَةَ -رضى الله عنها- قَالَتْ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- «تُحْشَرُونَ حُفَاةً عُرَاةً غُرْلاً» قَالَتْ عَائِشَةُ فَقُلْتُ يَا رَسُولَ اللَّهِ الرِّجَالُ وَالنِّسَاءُ يَنْظُرُ بَعْضُهُمْ إِلَى بَعْضٍ . فَقَالَ «الأَمْرُ أَشَدُّ مِنْ أَنْ يُهِمَّهُمْ ذَاكِ».

---

[۱]) فتح الباري: ۴۶۹/۱۱، وعمدة القاري: ۱۶۵/۲۳، وارشاد الساري ۵۲۸/۱۳

د ام المومنین سیده عائشه صدیقه رضي الله عنها نه روایت دې چه رسول الله ﷺ اوفرمائیل : تاسو به خپې ابله، بربنډ او ناسنته اوچتولې شئ، سیده عائشه رضي الله عنها فرمائی چه په دې باندې ما تپوس اوکړو : یارسول الله ﷺ! آیا سړی او ښځې به یوبل ته ګوری؟ رسول الله ﷺ اوفرمائیل : چه هغه وخت به معامله د دې نه زیاته سخته وی چه هغوی یو بل ته اوکتلې شی.

د ابو صغیره نوم مسلم قشیری دې، صغیره د صاد په فتحې او د غین په کسرې سره دې او د ابو ملیکة نوم زهیر دې.

[۶۱۶۳] (۱) حَدَّثَنِي مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ حَدَّثَنَا غُنْدَرٌ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ عَنْ عَمْرِو بْنِ مَيْمُونٍ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ قَالَ كُنَّا مَعَ النَّبِيِّ - صلى الله عليه وسلم - فِي قُبَّةٍ فَقَالَ « أَتَرْضَوْنَ أَنْ تَكُونُوا رُبُعَ أَهْلِ الْجَنَّةِ ». قُلْنَا نَعَمْ. قَالَ « تَرْضَوْنَ أَنْ تَكُونُوا ثُلُثَ أَهْلِ الْجَنَّةِ ». قُلْنَا نَعَمْ. قَالَ « أَتَرْضَوْنَ أَنْ تَكُونُوا شَطْرَ أَهْلِ الْجَنَّةِ ». قُلْنَا نَعَمْ. قَالَ « وَالَّذِي نَفْسُ مُحَمَّدٍ بِيَدِهِ إِنِّي لأَرْجُو أَنْ تَكُونُوا نِصْفَ أَهْلِ الْجَنَّةِ، وَذَلِكَ أَنَّ الْجَنَّةَ لاَ يَدْخُلُهَا إِلاَّ نَفْسٌ مُسْلِمَةٌ، وَمَا أَنْتُمْ فِي أَهْلِ الشِّرْكِ إِلاَّ كَالشَّعْرَةِ الْبَيْضَاءِ فِي جِلْدِ الثَّوْرِ الأَسْوَدِ أَوْ كَالشَّعْرَةِ السَّوْدَاءِ فِي جِلْدِ الثَّوْرِ الأَحْمَرِ ». [۶۶۴۲]

د سیدنا عبد الله بن مسعود رضي الله عنه نه روایت دې چه مونږ د رسول الله ﷺ سره په یو خیمه کښې وو، هغوی اوفرمائیل : آیا تاسو به په دې خوشحاله شئ چه تاسو به د اهل جنت یو څلورمه حصه یئ، مونږ عرض اوکړو : او جی! رسول الله ﷺ اوفرمائیل : تاسو به په دې خوشحاله شئ چه تاسو د جنتیانو دریمه حصه شئ؟ مونږ عرض اوکړو : او جی ..... رسول الله ﷺ اوفرمائیل : آیا تاسو په دې باندې خوشحالیږئ چه تاسو د جنتیانو نیمه حصه شئ؟ مونږ اووې : او جی! بیا رسول الله ﷺ اوفرمائیل : قسم دې په هغه ذات چه د هغه په لاس کښې د محمد ﷺ نفس دې، زما امید دې چه تاسو (امت مسلمه) به د اهل جنت نیمه حصه یئ او داسې به څکه وی چه جنت ته به سوا د مسلمان روح نه څوک هم داخل نه شی او تاسو د اهل شرک ترمینځه داسې یئ لکه د تور غوئی په بدن باندې سپین ویښته، یا لکه چه د سور غوئی په بدن باندې سرۀ ویښته وی. -یعنی څنګه چه د تور غوئی په بدن باندې څه ویښته سپین وی نو هغه د هغه د پوره بدن په مقابله کښې ډیر کم او په اوړو کښې د مالګې برابر وی هم دغه شان د مشرکانو په نسبت سره به ستاسو تعداد ډیر کم په جهنم کښې وی).

[۶۱۶۴] حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ حَدَّثَنِي أَخِي عَنْ سُلَيْمَانَ عَنْ ثَوْرٍ عَنْ أَبِي الْغَيْثِ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ أَنَّ النَّبِيَّ - صلى الله عليه وسلم - قَالَ « أَوَّلُ مَنْ يُدْعَى يَوْمَ الْقِيَامَةِ آدَمُ، فَتَرَاءَى ذُرِّيَّتُهُ فَيُقَالُ هَذَا أَبُوكُمْ آدَمُ. فَيَقُولُ لَبَّيْكَ وَسَعْدَيْكَ. فَيَقُولُ أَخْرِجْ بَعْثَ جَهَنَّمَ مِنْ ذُرِّيَّتِكَ. فَيَقُولُ يَا رَبِّ كَمْ أُخْرِجُ فَيَقُولُ أَخْرِجْ مِنْ كُلِّ مِائَةٍ تِسْعَةً وَتِسْعِينَ ». فَقَالُوا يَا رَسُولَ اللَّهِ إِذَا

(۱) اخرجه مسلم فی الایمان، باب : کون هذه الامة نصف اهل الجنة، رقم : ۲۲۱

أُخِذَ مِنَّا مِنْ كُلِّ مِائَةٍ تِسْعَةٌ وَتِسْعُونَ ، فَمَاذَا يَبْقَى مِنَّا قَالَ « إِنَّ أُمَّتِي فِي الأُمَمِ كَالشَّعَرَةِ الْبَيْضَاءِ فِي الثَّوْرِ الأَسْوَدِ».

د سيدنا ابوهريره رضي الله عنه نه روايت دي چه رسول الله ﷺ اوفرمائيل د قيامت په ورځ باندې به د ټولو نه اول سيدنا آدم عليه السلام رابللې شي، بيا به د هغه نسل هغوى ته ګورى چه دا ستاسو نيکه محترم سيدنا آدم عليه السلام دې، هغوى به وائى (لبيك وسعديك)، الله پاک به ورته اوفرمائى چه د خپل نسل جهنميان راوباسه! سيدنا آدم عليه السلام به عرض اوکړى: يا الله څومره راوباسم، الله پاک به فرمائى چه په هر سلو کسانو کښې يو کم سل راوباسه (يعنى په هر سلو کښې به يو کم سل جهنميان وى)، صحابه کرامو عرض اوکړو: يا رسول الله ﷺ چه کله په سلو کښې يو کم سل راويستلې شى نو بيا به باقى څه پاتې شى؟ رسول الله ﷺ اوفرمائيل: د نورو امتونو په مقابله کښې به زما امت په دومره تعداد کښې وى لکه د تور غوئى په بدن باندې چه سپين ويښته وى. (يعنى زما د امت تعداد به په هغه جهنميانو کښې ډير کم وى).

د باب په دې آخرى دوه احاديثو کښې اګر چه صراحة د حشر ذکر نشته خو د جنت او جهنم ذکر پکښې دې. چه په هغې کښې د داخليدو سلسله به د حشر نه فورا پس وى، په دې مناسبت سره ئې دا احاديث دلته ذکر فرمائيلي دي. د دې حديث ټول راويان مدنى دى او دا حديث صرف امام بخارى رحمه الله نقل فرمائيلي دې. [1]

## ٤٦: باب قَوْلِهِ عَزَّوَجَلَّ (إِنَّ زَلْزَلَةَ السَّاعَةِ شَيْءٌ عَظِيمٌ).

(أَزِفَتِ الآزِفَةُ) (اقْتَرَبَتِ السَّاعَةُ)

دا د سورة حج اول آيت کريمه دې، پوره آيت ﴿يَا أَيُّهَا النَّاسُ اتَّقُوا رَبَّكُمْ إِنَّ زَلْزَلَةَ السَّاعَةِ شَيْءٌ عَظِيمٌ﴾ اې خلقو! د الله پاک نه اويريږئ، بيشکه د قيامت زلزله ډير لوئې څيز دې.

**په ايت کريمه کښې د راغلې زلزلې مصداق:** د دې زلزلې په باره کښې دوه اقوال دى!

① يو دا چه د دې نه مراد د قيامت نه مخکښې راتلونکې زلزله ده کومه چه به د طلوع الشمس من المغرب نه لږ مخکښې وى او د قيامت د علاماتو نه به د يو علامت په طور وى. يعنى د قيامت طرف ته د هغې نسبت د قرب د وجې نه کړې شوې دې.

② دويم قول د دې چه د دې نه د قيامت د واقع کيدو زلزله مراد ده. [2] ظاهره ده چه کله قيامت ختم شى او دا نظام او کائنات ختمولې شى او د غرونه، زمکه او سمندر ټول ختميږى، مولانا شبير احمد عثمانى رحمه الله د دې آيت کريمه په باره کښې ليکى:

د قيامت په عظيم الشان زلزله کښې يو عين مقام د قيامت په وخت يا د نفخه ثانيه نه پس، دويم د قيامت نه لږ مخکښې چه کوم د علامات قيامت نه دې، که دلته دويم مراد وى نو آيت به په خپله ظاهره معنى باندې وى او که اول مراد وى نو دواړه احتمالات شته، که

[1] ورواته كلهم مدنيون وهو من افراده ...... (ارشاد السارى : ٥٣١/١٣)

[2] فتح البارى : ٥٧٥/١١، ارشاد السارى : ٥٣١/١٣

حقیقتا زلزله راشی او بی ورکونکي یا حاملې زنانه په دې خپل هیبت باندې محشورې شي، یا د زلزلې نه مراد: د هغه ځانې احوال او مصیبتونه وی او ﴿يَوْمَ تَرَوْنَهَا تَذْهَلُ كُلُّ مُرْضِعَةٍ﴾ لره په تمثیل باندې حمل کړې شي یعنی دومره ویره او سختی به وی چه که د پئ ورکونکې زنانه موجود وی نو د ویرې او شدت د وجې نه به ترې خپل بچی هیر شي او د حاملو زنانو حمل به ساقط شي. دې وخت کښې به خلق دومره مدهوش شي چه کتونکې به پرې د شرابو د نشې ګمان کوی حال دا هلته د نشې څه کار!...... د الله پاک د عذاب تصور او د احوال او شدائدو سختی به ئې هوش ختم کړی.... که دا ویره ټولو ته عام شي نو ﴿لَا يَحْزُنُهُمُ الْفَزَعُ الْأَكْبَرُ﴾ کښې نفی په اعتبار د اکثر احوالو او دلته اثبات په اعتبار د ساعت قلیلة اخستلې شي او که آیت د حاضر او اکثر الناس په حق کښې وی د ټولو په حق کښې نه وی نو بیا خو بالکل اشکال نشته. [1]

**قوله: ﴿أزفت الآزفة: اقتربت الساعة﴾**: د ﴿ازفت الآزفة﴾ ترجمه امام کړې ده، ﴿اقتربت الساعة﴾ یعنی قیامت نزدې دې، ﴿ازِف﴾ د باب سمع نه دې، د ﴿ازف﴾ معنی د قرب ده، ﴿ازِف كذا﴾ نزدې کیدل. قیامت ته آزفة وئیلې شي ځکه چه د دې وقوع نزدې ده. [2] ﴿أزفت الآزفة﴾ د سورة نجم آیت ٥٧ دې، ﴿اقتربت الساعة﴾ اګر چه دلته امام بخاری رحمه الله د تفسیر او ترجمې په طور ذکر کړې دې، خو دا د سورة قمر اولنې آیت دې.

[٦١٦٥] حَدَّثَنِي يُوسُفُ بْنُ مُوسَى حَدَّثَنَا جَرِيرٌ عَنِ الأَعْمَشِ عَنْ أَبِي صَالِحٍ عَنْ أَبِي سَعِيدٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- «يَقُولُ اللَّهُ يَا آدَمُ. فَيَقُولُ لَبَّيْكَ وَسَعْدَيْكَ وَالْخَيْرُ فِي يَدَيْكَ. قَالَ يَقُولُ أَخْرِجْ بَعْثَ النَّارِ. قَالَ وَمَا بَعْثُ النَّارِ قَالَ مِنْ كُلِّ أَلْفٍ تِسْعَمِائَةٍ وَتِسْعَةً وَتِسْعِينَ. فَذَاكَ حِينَ يَشِيبُ الصَّغِيرُ، وَتَضَعُ كُلُّ ذَاتِ حَمْلٍ حَمْلَهَا، وَتَرَى النَّاسَ سَكْرَى وَمَا هُمْ بِسَكْرَى وَلَكِنَّ عَذَابَ اللَّهِ شَدِيدٌ». فَاشْتَدَّ ذَلِكَ عَلَيْهِمْ فَقَالُوا يَا رَسُولَ اللَّهِ أَيُّنَا الرَّجُلُ قَالَ «أَبْشِرُوا، فَإِنَّ مِنْ يَأْجُوجَ وَمَأْجُوجَ أَلْفٌ وَمِنْكُمْ رَجُلٌ - ثُمَّ قَالَ - وَالَّذِي نَفْسِي فِي يَدِهِ إِنِّي لأَطْمَعُ أَنْ تَكُونُوا ثُلُثَ أَهْلِ الْجَنَّةِ». قَالَ فَحَمِدْنَا اللَّهَ وَكَبَّرْنَا، ثُمَّ قَالَ «وَالَّذِي نَفْسِي فِي يَدِهِ إِنِّي لأَطْمَعُ أَنْ تَكُونُوا شَطْرَ أَهْلِ الْجَنَّةِ، إِنَّ مَثَلَكُمْ فِي الأُمَمِ كَمَثَلِ الشَّعَرَةِ الْبَيْضَاءِ فِي جِلْدِ الثَّوْرِ الأَسْوَدِ أَوِ الرَّقْمَةِ فِي ذِرَاعِ الْحِمَارِ». [ر: ٣١٧٠]

د سیدنا ابوسعید خدری رضی الله عنه روایت دې چه رسول الله صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل: الله به فرمائی: اې آدم!...... آدم علیه السلام به عرض اوکړی: حاضر یم ستا د حکم د پوره کولو دپاره، ټول خیرونه

---

[1] تفسیر عثمانی: سورة الحج: ٤٤٢

[2] هو من الازف (بفتح الزاء) وهو القرب، يقال: ازف كذا: اى قرب، وسميت الساعة آزفة، لقربها او لضيق وقتها (فتح الباری: ٤٧٣/١١)

ستا په لاس کښې دی، رسول الله ﷺ اوفرمائيل : الله پاک به فرمائي : کوم خلق چه به جهنم کښې اچولې شي هغوی راوباسه، آدم عليه السلام به تپوس اوکړی : په جهنم کښې اچولې کيدونکی خلق څومره دی؟ الله پاک به ورته فرمائي : په هر زرو کسانو کښې نهه سوه او نهه نوی. هم دا به هغه وخت وی چه ماشومان به بوډاګان شي او حامله زنانه به خپل حمل راوغورځوی او ته به خلق د نشې په حالت کښې محسوس کړې، حال دا چه هغوی به د نشې په حالت کښې نه وی. بلکه د الله پاک عذاب سخت دې.

صحابه کرامو رضي الله عنهم ته دا خبره ډيره سخته معلومه شوه نو عرض ئې اوکړو يا رسول الله ﷺ! بيا به په مونږ کښې هغه سړې څوک وی؟ رسول الله ﷺ اوفرمائيل : تاسو ته دې زيرې وی، زر کسان به د ياجوج ماجوج قوم نه وی او په تاسو کښې به هغه يو وی (يعنی جهنم ته تلونکی که د ياجوج ماجوج نه زر کسان وی نو په تاسو کښې به صرف يو وی). بيا رسول الله ﷺ اوفرمائيل، قسم په هغه ذات چه د هغه په لاس کښې زما نفس دې! زما اميد دې چه تاسو به د جنت دريمه حصه يئ.

سيدنا ابوسعيد رضي الله عنه فرمائي چه په دې خبره باندې د الله پاک حمد او ثناء اووې، بيا رسول الله ﷺ اوفرمائيل : قسم په هغه ذات چه د هغه په لاس کښې زما نفس دې، زما اميد دې چه تاسو به د اهل جنت نيمه يئ، ستاسو مثال د نورو امتونو په مقابله کښې داسې دې لکه د تور غوئی په بدن چه سپين ويښته وی يا هغه سپين داغ کوم چه د خر په مخکښې خپو باندې وی.

﴿ رقمة ﴾ : سپينې ټکړې ته وائي.[1]

په دې روايت کښې چونکه د سورة حج د اول آيات ذکر دې، په دې وجه د حديث او آيت مناسبت ظاهر دې، حافظ ابن حجر رحمه الله ليکي :

﴿ أشار بهذه الترجمة إلى ما وقع في بعض طرق الحديث الأول انه صلى الله عليه و سلم تلا هذه الآية عند ذكر الحديث ﴾ [2] يعني : امام بخاری رحمه الله د معمول مطابق په ترجمة الباب سره د حديث الباب بعض طرق طرف ته اشاره فرمائيلې ده چه رسول الله ﷺ دا آيت کريمه، د دې حديث د بيانولو په وخت اولوستلو.

۴۷: باب قَوْلِ اللّٰهِ تَعَالَى (أَلَا يَظُنُّ أُولَٰئِكَ أَنَّهُمْ مَبْعُوثُونَ * لِيَوْمٍ عَظِيمٍ * يَوْمَ يَقُومُ النَّاسُ لِرَبِّ الْعَالَمِينَ) وَقَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ (وَتَقَطَّعَتْ بِهِمُ الْأَسْبَابُ) قَالَ الْوُصُلَاتُ فِي الدُّنْيَا.

امام بخاري رحمه الله په دې باب کښې د سورة المطففين آيات کريمه ذکر فرمائيلې دی، د هغې ترجمه ده : آيا خيال نه ساتی هغه خلق چه هغوی به پاسی د هغه لوئې ورځ دپاره، کومه ورځ چه به خلق د الله پاک رب العالمين مخکښې اودريږی.

---

[1] ) رقمة (بفتح الرا وسكون القاف) وهى قطعة بيضاء، اوشئ مستديرلا شعر فيه (ارشاد السارى : ۱۳/ ۵۳٤)
[2] ) فتح البارى ۱۱/ ٤٧٢

قوله: ﴿ وَقَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ: وَتَقَطَّعَتْ بِهِمُ الْأَسْبَابُ قَالَ الْوُصُلَاتُ فِي الدُّنْيَا ﴾: په سورة البقرة كښې دى ﴿ وَتَقَطَّعَتْ بِهِمُ الْأَسْبَابُ ﴾ سيدنا ابن عباس رضي الله عنهما د دې تفسير فرمائيلې دې چه د دې نه په دنيا كښې خپل مينځ كښې تعلقات او روابط مراد دى چه د قيامت په ورځ باندې به دا ټول منقطع شى، عبد بن حميد دا تعليق موصولا نقل كړې دې. (١) ﴿ الواصلات ﴾ د واؤ په ضمې سره او په صاد باندې ضمه او سكون دواړه صحيح دى. (٢) د وُصْلَة جمع ده، وصلة خپل مينځ كښې تعلق او رابطې ته وائى.

[٦١٦٦] حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ بْنُ أَبَانَ حَدَّثَنَا عِيسَى بْنُ يُونُسَ حَدَّثَنَا ابْنُ عَوْنٍ عَنْ نَافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ-رضى الله عنهما-عَنِ النَّبِىِّ -صلى الله عليه وسلم-. (يَوْمَ يَقُومُ النَّاسُ لِرَبِّ الْعَالَمِينَ) قَالَ «يَقُومُ أَحَدُهُمْ فِى رَشْحِهِ إِلَى أَنْصَافِ أُذُنَيْهِ». [ر: ٤٦٥٤]

د سيدنا ابن عباس رضي الله عنهما نه روايت دې چه رسول الله ﷺ ﴿ يَوْمَ يَقُومُ النَّاسُ لِرَبِّ الْعَالَمِينَ ﴾ په تفسير كښې اوفرمائيل چه په هغوى كښې به يو كس په خپلو خولو كښې ډوب ولاړ وى د غوږونو د نيمې حصې پورې؛ يعنى د هغوى خولې به د غوږونو د نيمې حصې پورې وى او هغه به په هغې كښې ډوب وى.

د ابن عون نوم عبد الله دې.

﴿ رشح ﴾: خولې ته وائى.

[٦١٦٧] حَدَّثَنِى عَبْدُ الْعَزِيزِ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ قَالَ حَدَّثَنِى سُلَيْمَانُ عَنْ ثَوْرِ بْنِ زَيْدٍ عَنْ أَبِى الْغَيْثِ عَنْ أَبِى هُرَيْرَةَ رضى الله عنه أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صلى الله عليه وسلم قَالَ «يَعْرَقُ النَّاسُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ حَتَّى يَذْهَبَ عَرَقُهُمْ فِى الأَرْضِ سَبْعِينَ ذِرَاعًا، وَيُلْجِمُهُمْ حَتَّى يَبْلُغَ آذَانَهُمْ».

د سيدنا ابوهريره رضي الله عنه نه روايت دې چه رسول الله ﷺ اوفرمائيل: د قيامت په ورځ باندې به خلق په خولهٔ كښې ډوب وى او حالت به دا شى چه د خلقو خوله به په زمكه باندې اويا لاسه خوره شى او خولې ته رسيدلو سره به غوږونه مس كوى.

﴿ يُلْجِمُهُم ﴾: الجمه الماء: چه كله اوبه خولې ته اورسيږى، هغه وخت وئيلې شى. (٣)

په دې حديث كښې د بعض خلقو حالت بيان كړې شوې دې چه خوله به د هغوى غوږونو ته اورسيږى، د بعضو معامله به د دوى نه سپكه وى نو خوله به ئې تر د كونډو پورې وى، د څه خلقو به د ګيټو پورې وى لكه چه په نورو رواياتو كښې تفصيل او تصريح ده. (٤)

---

(١) فتح البارى ٤٧٧/١١، ارشاد السارى: ٥٣٤/١٣

(٢) فتح البارى ٤٧٧/١١، ارشاد السارى: ٥٣٤/١٣، عمدة القارى ١٦٩/٢٣

(٣) ارشاد السارى: ٥٣٥/١٣، عمدة القارى ١٧١/٢٣

(٤) ارشاد السارى: ٥٣٦/١٣ _ أخرجه البيهقى فى البعث بسند حسن عنه قال ...[بقيه برصفحه آئنده...

## ۴۸: باب القصاص یوم القیامة

وهي الحاقة لأن فيها الثواب وحواق الأمور، الحقة والحاقة واحد. والقارعة، والغاشية، والصاخة، والتغابن غبن أهل الجنة أهل النار.

**د ترجمة الباب وضاحت:** امام بخاری رحمه الله په دې باب کښې د قیامت د ورځې ذکر کړې دې او د هغې د کیفیت متعلق ئې احادیث بیان کړی دی چه د هغې حاصل دا دې چه په دنیا کښې به یو سړې هم مظلوم جوړیدو سره خپله بدله وانخستلې شی نو د قیامت په ورځ باندې به د ظالم نه د هغه حق وصول کړې شی او د هغې صورت به دا وی چه د ظالم نیکئ به مظلوم ته ورکولې شی ځکه په هغه ورځ باندې به سوا د نیکئ نه یو څیز هم دکار پاتې نه شی، که د ظالم سره نیکئ نه وی نو د مظلوم ګناهونه به کمولو سره د ظالم په اعمال نامه کښې واچولې شی، بلکه کوم مومنان چه د جهنم نه نجات موندلو سره لاړ شی هغوی به هم جنت ته د داخلیدو نه مخکښې په یو پل باندې جمع کړې شی، دا پل به د جنت او جهنم ترمینځه وی. په هغې باندې به خپل مینځ کښې د کړې شوې زیاتو کمې پوره کولې شی او د ظالم نه به د مظلوم بدله اخستلې شی، چه کله د یو بل ټول حقوق ادا شی نو پاک صفا کیدو سره به جنت ته د داخلیدو اجازت ورکړې شی.

**قوله:** ﴿وهي الحاقة لأن فيها الثواب وحواق الأمور الحقة والحاقة واحد﴾: (هي)

ضمیر د قیامت طرف ته راجع دې، د قیامت ورځې ته ﴿حاقة﴾ وائی، ځکه چه په دې ورځ باندې به د اعمالو ثواب متحقق او ثابت وی او ډیر زیات امور به په دې کښې ثابت شی. د حقه او حاقة دواړو یوه معنی ده، دا په حقیقت کښې د مشهور امام فراء رحمه الله عبارت دې کوم چه هغوی په معانی القرآن کښې لیکلې دې، امام بخاری رحمه الله هم د هغه ځائې نه اخستلې دې (۱)

﴿القارعة، والغاشية، والصاخة﴾ دا درې واړه هم د قیامت نومونه دی.

---

...بقیه ازحاشیه گذشته] يشتد كرب ذلک اليوم حتى يلجم الكافر العرق قيل له فأين المؤمنون قال على الكراسي من ذهب ويظلل عليهم الغمام وبسند قوى عن أبي موسى قال الشمس فوق رؤوس الناس يوم القيامة وأعمالهم تظلهم وأخرج بن المبارک في الزهد وبن أبي شيبة في المصنف واللفظ له بسند جيد عن سلمان قال تعطى الشمس يوم القيامة حر عشر سنين ثم تدنى من جماجم الناس حتى تكون قاب قوسين فيعرقون حتى يرشح العرق في الأرض قامة ثم ترتفع حتى يغرغر الرجل زاد بن المبارک في روايته ولا يضر حرها يومئذ مؤمنا ولا مؤمنة.

وفي حديث بن مسعود عند الطبراني والبيهقي ان الرجل ليفيض عرقا حتى يسيح في الأرض قامة ثم يرتفع حتى يبلغ انفه وفي رواية عنه عند أبي يعلى وصححها بن حبان ان الرجل ليلجمه العرق يوم القيامة حتى يقول يا رب ارحني ولو إلى النار. (فتح الباري : ۴۷۹/۱۱)

(۱) فتح الباري : ۴۸۱/۱۱

﴿القارعة﴾: ټنګيدونکې د قيامت ورځ به زړونه د خپلو سختو د وجې ټنګوي، په دې وجه هغې ته قارعة وائي

﴿غاشية﴾: غوړيدونکي. پوښونکې. دا ورځ به هم په ټولو خلقو باندې خوره شي، په دې وجه هم دې ته غاشية وائي.

﴿الصاخة﴾: کړنګونکې. د دنيا د معاملاتو نه به خلق کاڼه کړي او د ﴿صاخة﴾ معنی ﴿داهية﴾ د لوئې مصيبت هم راځي او د چغې هم راځي.[1]

**قوله: ﴿التغابن: غبن اهل الجنة اهل النار﴾**: د قيامت ورځې ته ﴿يوم التغابن﴾ هم وئيلې شي دا د ﴿غبن﴾ نه اخستلې شوې دې، چه د هغې معنی ده: د خپلې حصې او مراد نه محروم کيدل، د اهل جهنم دپاره چه به په جنت کښې کوم کورونه جوړ کړې شوې وي، د هغې نه به هغوی محروم وي او په هغې کښې به جنتيان راشي،

د ﴿غبن اهل الجنة اهل النار﴾ مطلب هم دا دې چه اهل جنت به د جهنميانو هغه کورونو ته راشي او هغوی به محروم کړي.[2]

امام بخاري رحمه الله په ترجمة الباب د قيامت پنځه نومونه ذکر فرمائيلي دی، امام غزالی رحمه الله او علامه قرطبي رحمه الله چه د قيامت د ورځې نومونه جمع کړل نو تقريباً اتيا (۸۰) نومونه جمع شو چه په هغې کښې يوم الجمع، يوم التناد، يوم الحسرة او يوم التلاق وغيره شامل دی.[3]

[۶۱۶۸] حَدَّثَنَا عُمَرُ بْنُ حَفْصٍ حَدَّثَنَا أَبِي حَدَّثَنَا الأَعْمَشُ حَدَّثَنِي شَقِيقٌ سَمِعْتُ عَبْدَ اللَّهِ - رضى الله عنه - قَالَ النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - «أَوَّلُ مَا يُقْضَى بَيْنَ النَّاسِ بِالدِّمَاءِ». [۶۴۷۱]

د سيدنا عبد الله بن مسعود رضي الله عنه نه روايت دې چه رسول الله صلى الله عليه وسلم اوفرمائيل: د ټولو نه اول چه به د کوم څيز په خلقو کښې کولې شی هغه به د وينې بدله وي.

دا حديث امام بخاري رحمه الله دلته په اول کرت ذکر فرمائيلي دې، د امام بخاري رحمه الله شيخ عمر بن حفص دې، هغه د خپل پلار حفص بن ثابت نه روايت نقل کوي، د شقيق نه شقيق بن سلمة مراد دې، د هغوی کنيت ابو وائل دې او په کنيت سره زيات مشهور دی، د سند ټول راويان کوفيان دی.[4]

[1] فتح البارى ۴۸۱/۱۱، ارشاد السارى: ۵۳۶/۱۳، عمدة القارى ۱۷۲/۲۳
[2] فتح البارى ۴۸۱/۱۱، ارشاد السارى: ۵۳۶/۱۳، عمدة القارى ۱۷۲/۲۳
[3] فتح البارى ۴۸۱/۱۱، ارشاد السارى: ۵۳۶/۱۳، عمدة القارى ۱۷۲/۲۳
[4] فتح البارى ۴۸۲/۱۱، ارشاد السارى: ۵۳۷/۱۳، عمدة القارى ۱۷۲/۲۳

د امام بخاري رحمه الله نه علاوه امام مسلم، امام ترمذی، امام ابن ماجة او امام نسائی رحمهم الله هم د دې حديث تخريج کړې دې.[1]

**د قيامت په ورځ باندې به د ټولو نه اول د څه څيز فيصله کولې شی؟:** په دې حديث کښې دی چه د ټولو نه اول به د وينې فيصله کولې شی، يعنی د دنيا د قتلونو محاسبه او فيصله به کولې شی، د دې نه پس به د باقی اعمالو او نورو معاملاتو فيصلې وی.

د سيدنا ابوهريره رضي الله عنه په يو روايت کښې دی چه د ټولو نه اول محاسبه به د مانځه وی.

خو په دواړو کښې تطبيق داسې کيدې شی چه په حقوق الله کښې به د ټولو نه اول د مانځه او په حقوق العباد کښې به د ټولو نه اول د وينې فيصله او محاسبه وی.[2]

[۶۱۶۹] حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ قَالَ حَدَّثَنِي مَالِكٌ عَنْ سَعِيدٍ الْمَقْبُرِيِّ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - قَالَ «مَنْ كَانَتْ عِنْدَهُ مَظْلَمَةٌ لأَخِيهِ فَلْيَتَحَلَّلْهُ مِنْهَا، فَإِنَّهُ لَيْسَ ثَمَّ دِينَارٌ وَلاَ دِرْهَمٌ مِنْ قَبْلِ أَنْ يُؤْخَذَ لأَخِيهِ مِنْ حَسَنَاتِهِ، فَإِنْ لَمْ يَكُنْ لَهُ حَسَنَاتٌ أُخِذَ مِنْ سَيِّئَاتِ أَخِيهِ، فَطُرِحَتْ عَلَيْهِ». [ر: ۲۳۱۷]

د سيدنا ابوهريره رضي الله عنه نه روايت دې چه رسول الله صلى الله عليه وسلم اوفرمائيل: چا چه په خپل يو رور باندې ظلم اوکړو نو هغه له پکار دی چه هغه (په دې دنيا کښې په صاحب حق باندې) معاف کړی، ځکه چه په آخرت کښې به دينار او درهم نه وی، د دې نه مخکښې چه د هغه د رور دپاره د هغه د نيکو نه واخستلې شی او که هغه سره نيکئ نه وی نو د هغه د مظلوم رور بدئ به په هغه باندې واچولې شی. (په دې وجه د بې وسئ د وخت نه مخکښې مخکښې په دنيا کښې خپل معاملات صفا کول پکار دی).

[۶۱۷۰] حَدَّثَنِي الصَّلْتُ بْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ زُرَيْعٍ (وَنَزَعْنَا مَا فِي صُدُورِهِمْ مِنْ غِلٍّ) قَالَ حَدَّثَنَا سَعِيدٌ عَنْ قَتَادَةَ عَنْ أَبِي الْمُتَوَكِّلِ النَّاجِيِّ أَنَّ أَبَا سَعِيدٍ الْخُدْرِيَّ - رضى الله عنه - قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - «يَخْلُصُ الْمُؤْمِنُونَ مِنَ النَّارِ، فَيُحْبَسُونَ عَلَى قَنْطَرَةٍ بَيْنَ الْجَنَّةِ وَالنَّارِ، فَيُقَصُّ لِبَعْضِهِمْ مِنْ بَعْضٍ، مَظَالِمُ كَانَتْ بَيْنَهُمْ فِي الدُّنْيَا، حَتَّى إِذَا هُذِّبُوا وَنُقُّوا أُذِنَ لَهُمْ فِي دُخُولِ الْجَنَّةِ، فَوَالَّذِي نَفْسُ مُحَمَّدٍ بِيَدِهِ لأَحَدُهُمْ أَهْدَى بِمَنْزِلِهِ فِي الْجَنَّةِ مِنْهُ بِمَنْزِلِهِ كَانَ فِي الدُّنْيَا». [ر: ۲۳۰۸]

---

[1] الحديث اخرجه البخاري ايضا في كتاب الديات، باب قول الله تعالى: ...[بقيه برصفحه آئنده...

...بقيه ازحاشيه گذشته] ﴿ومن يقتل مؤمنا متعمدا فجزاءه جهنم﴾ رقم الحديث: ۶۸۶۴، واخرجه الامام مسلم فی کتاب الحدود، باب المجازاة بالدماء فی الاخرة، وانها اول ما يقضی فيه بين الناس يوم القيامة، رقم الحديث: ۴۳۵۷، واخرجه الترمذی فی کتاب الديات، باب الحکم فی الدماء، رقم الحديث: ۱۳۹۶، واخرجه النسائی فی کتاب تحريم الدم، باب تعظيم الدم، رقم الحديث: ۴۰۰۲، واخرجه ابن ماجة فی کتاب الديات، بالتغليظ فی قتل مسلم ظلما، رقم الحديث: ۲۶۱۵.

[2] فتح الباری ۴۸۲/۱۱، ارشاد الساری: ۵۳۷/۱۳، عمدة القاری ۱۷۲/۲۳

د سيدنا ابو سعيد خدري رضي الله عنه نه روايت دې چه رسول الله ﷺ اوفرمائيل: مومنان به د جهنم نه خلاصې بيا مومي، خو د جهنم او دوزخ ترمينځه به هغوى په يو پل باندې اودرولې شي او بيا به په يو بله غاړه باندې د دې ظلمونو بدله واخستلې شي او كله چه برابرى اوشي او صفائي راشي نو هغوى ته به جنت ته د تلو اجازت ملاؤ شي. پس قسم په هغه ذات چه د هغه په لاس كښې زما نفس دې چه په جنتيانو كښې به هر يو په جنت كښې خپل كور د دنيا د كور په مقابله كښې زياتې غوره طريقې سره اوپيژني.

په سند كښې آيت كريمه ﴿وَنَزَعۡنَا مَا فِي صُدُورِهِم مِّنۡ غِلٍّ﴾ لره ذكر كولو سره دې طرف ته اشاره اوكړه چه د حديث متن د دې آيت دپاره د تفسير په درجه كښې دې.

**قوله: ﴿عَلَى قَنْطَرَةٍ بَيْنَ الْجَنَّةِ وَالنَّارِ﴾:** د جنت او جهنم ترمينځه دا پل، يا به يو بيل پل وى يا به د مشهور پل صراط يو ګټ وى، علامه قرطبي رحمه الله فرمائي چه دا به هغه مومنان وى چه د هغوى په باره كښې به الله پاك ته علم وى چه د قصاص په صورت كښې به د هغوى حسنات او نيكئ نه ختميږي. (۱) دا حديث، د دې نه مخكښې په مظالم كښې تير شوې دې.

## ۴۹: بَابُ مَنْ نُوقِشَ الْحِسَابَ عُذِّبَ

**د قيامت په ورځ د حساب مناقشه:** امام بخاري رحمه الله ترجمة الباب د حديث يوه جمله اخستلو سره قائم كړې ده، حديث، امام په باب كښې ذكر فرمائيلې دې، چه د هغې حاصل دا دې چه د قيامت په ورځ چه د چا سره په حساب كښې مناقشة اوكړې شوه او تپوس ترې شروع شو چه داسې دې ولې اوكړل؟ ولې دې اونكړل؟ نو هغه به په عذاب كښې اخته كړې شي.

د قرآن كريم د سورة انشقاق په آيت كريمه كښې دى چه كومو خلقو ته عمل نامه په ښى لاس كښې وركړې شي نو د هغوى حساب به آسان وى، سيده عائشه رضي الله عنها د رسول الله ﷺ نه د دې حديث متعلق تپوس اوكړو چه د قرآن كريم په پورته آيت كريمه كښې د حساب ذكر دې او دا به اصحاب ميمنة وى او د حديث نه معلوميږي چه د چا سره حساب كولې شي، هغوى ته به عذاب وركولې شي.

رسول الله ﷺ اوفرمائيل: په آيت كريمه كښې د حساب نه صرف پيشي مراد ده، مناقشه نه ده، په حساب كښې چه به د چا مناقشه كولې شي، هغوى به رانيولې شي او هغوى به په عذاب كښې اخته كيږي.

[۶۱۷۱، ۶۱۷۲] حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللَّهِ بْنُ مُوسَى عَنْ عُثْمَانَ بْنِ الْأَسْوَدِ عَنِ ابْنِ أَبِي مُلَيْكَةَ عَنْ عَائِشَةَ عَنِ النَّبِيِّ -صلى الله عليه وسلم- قَالَ «مَنْ نُوقِشَ الْحِسَابَ عُذِّبَ». قَالَتْ قُلْتُ أَلَيْسَ يَقُولُ اللَّهُ تَعَالَى (فَسَوْفَ يُحَاسَبُ حِسَابًا يَسِيرًا). قَالَ «ذَلِكِ الْعَرْضُ».

د سيده عائشه رضي الله عنها نه روايت دې چه رسول الله ﷺ اوفرمائيل: د چا په حساب كښې چه سختي اوكړې شي، په هغه باندې عذاب يقيني دې، سيده عائشه رضي الله عنها فرمائي چه په دې

(۱) ارشاد الساري: ۵۳۹/۱۳

باندې ترې ما تپوس اوکړو چه ایا د الله پاک دا ارشاد نه دې چه : بیا به نزدې د هغوی نه سپک حساب واخستلې شی. چه د هغې نه معلومیږی چه حساب به د خلاصی موندونکو سره هم وی، رسول الله ﷺ اوفرمائیل چه د دې نه مراد بس صرف پیشی دی
دا روایت په کتاب العلم کښې تیر شوې دې.

حَدَّثَنِي عَمْرُو بْنُ عَلِيٍّ حَدَّثَنَا يَحْيَى عَنْ عُثْمَانَ بْنِ الْأَسْوَدِ سَمِعْتُ ابْنَ أَبِي مُلَيْكَةَ قَالَ سَمِعْتُ عَائِشَةَ-رضي الله عنها-قَالَتْ سَمِعْتُ النَّبِيَّ -صلى الله عليه وسلم- مِثْلَهُ.
وَتَابَعَهُ ابْنُ جُرَيْجٍ وَمُحَمَّدُ بْنُ سُلَيْمٍ وَأَيُّوبُ وَصَالِحُ بْنُ رُسْتُمٍ عَنِ ابْنِ أَبِي مُلَيْكَةَ عَنْ عَائِشَةَ عَنِ النَّبِيِّ -صلى الله عليه وسلم-.

د عثمان بن الاسود متابعت ابن جریج (عبدالملک بن عبدالعزیز) محمد بن سلیم، ایوب سختیانی او صالح بن رستم کړې دې، د ابن جریج، محمد بن سلیم او ایوب سختیانی متابعت ابو عوانة په خپل صحیح کښې او د صالح بن رستم متابعت اسحاق بن راهویه موصولا نقل کړې دې. [1]

[۶۱۷۲] حَدَّثَنِي إِسْحَاقُ بْنُ مَنْصُورٍ حَدَّثَنَا رَوْحُ بْنُ عُبَادَةَ حَدَّثَنَا حَاتِمُ بْنُ أَبِي صَغِيرَةَ حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ أَبِي مُلَيْكَةَ حَدَّثَنِي الْقَاسِمُ بْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَتْنِي عَائِشَةُ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ- صلى الله عليه وسلم - قَالَ «لَيْسَ أَحَدٌ يُحَاسَبُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ إِلاَّ هَلَكَ». فَقُلْتُ يَا رَسُولَ اللَّهِ أَلَيْسَ قَدْ قَالَ اللَّهُ تَعَالَى (فَأَمَّا مَنْ أُوتِيَ كِتَابَهُ بِيَمِينِهِ * فَسَوْفَ يُحَاسَبُ حِسَابًا يَسِيرًا) فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ- صلى الله عليه وسلم - «إِنَّمَا ذَلِكِ الْعَرْضُ، وَلَيْسَ أَحَدٌ يُنَاقَشُ الْحِسَابَ يَوْمَ الْقِيَامَةِ إِلاَّ عُذِّبَ». [ر: ۱۰۳]

د سیده عائشه رضی الله عنها نه رایت دې چه رسول الله ﷺ اوفرمائیل: د کوم سړی نه هم چه د قیامت په ورځ باندې حساب طلب کړې شو، هغه هلاک شو، ما عرض اوکړو، یا رسول الله ﷺ! ایا الله پاک پخپله نه دی فرمائیلی چه : پس د چا اعمال نامه چه د هغه په ښی لاس کښې ورکړې شی نو نزدې به د هغه نه سپک حساب واخستلې شی.
په دې باندې رسول الله ﷺ اوفرمائیل چه دا خو به صرف پیشی وی، د وئیلو مطلب دا دې چه د قیامت په ورځ چه د چا سره هم په حساب کښې سختی اوکړې شی. په هغه باندې عذاب یقینی دې.

[۶۱۷۳] حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ حَدَّثَنَا مُعَاذُ بْنُ هِشَامٍ قَالَ حَدَّثَنِي أَبِي عَنْ قَتَادَةَ عَنْ أَنَسٍ عَنِ النَّبِيِّ -صلى الله عليه وسلم- وَحَدَّثَنِي مُحَمَّدُ بْنُ مَعْمَرٍ حَدَّثَنَا رَوْحُ بْنُ عُبَادَةَ حَدَّثَنَا سَعِيدٌ عَنْ قَتَادَةَ حَدَّثَنَا أَنَسُ بْنُ مَالِكٍ -رضي الله عنه- أَنَّ نَبِيَّ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- كَانَ يَقُولُ «يُجَاءُ بِالْكَافِرِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ فَيُقَالُ لَهُ أَرَأَيْتَ لَوْ كَانَ لَكَ مِلْءُ

[1]) فتح الباری ۴۸۲/۱۱، ارشاد الساری : ۵۳۷/۱۳، عمدة القاری ۱۷۲/۲۳

الأَرْضِ ذَهَبًا أَكُنْتَ تَفْتَدِي بِهِ فَيَقُولُ نَعَمْ . فَيُقَالُ لَهُ قَدْ كُنْتَ سُئِلْتَ مَا هُوَ أَيْسَرُ مِنْ ذَلِكَ». [۳۱۵۶]

د سیدنا انس بن مالک رضی الله عنه نه روایت دي چه رسول الله ﷺ به فرمائیل چه د قیامت په ورځ باندې به کافر راوستلې شی او د هغه نه به تپوس اوکړې شی چه ستا څه خیال دې؟ که د زمکې برابر تاسره سره زر وی نو آیا هغه به «د خپل خلاصی دپاره» فدیه ورکوې؟ هغه به وائی او: خو هغه وخت به هغه ته اووئیلې شی چه ستا نه «په دنیا» کښې د دې نه د ډیر معمولی څیز مطالبه کړې شوې وه «او تا هغه هم پوره نه کړو یعني ایمان او عمل صالح».

[۶۱۷۴] حَدَّثَنَا عُمَرُ بْنُ حَفْصٍ حَدَّثَنَا أَبِي قَالَ حَدَّثَنِي الأَعْمَشُ قَالَ حَدَّثَنِي خَيْثَمَةُ عَنْ عَدِيِّ بْنِ حَاتِمٍ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - «مَا مِنْكُمْ مِنْ أَحَدٍ إِلاَّ وَسَيُكَلِّمُهُ اللَّهُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ، لَيْسَ بَيْنَ اللَّهِ وَبَيْنَهُ تُرْجُمَانٌ، ثُمَّ يَنْظُرُ فَلاَ يَرَى شَيْئًا قُدَّامَهُ، ثُمَّ يَنْظُرُ بَيْنَ يَدَيْهِ فَتَسْتَقْبِلُهُ النَّارُ، فَمَنِ اسْتَطَاعَ مِنْكُمْ أَنْ يَتَّقِيَ النَّارَ وَلَوْ بِشِقِّ تَمْرَةٍ».

د سیدنا عدی بن حاتم رضی الله عنه نه روایت دي چه رسول الله ﷺ اوفرمائیل: تاسو د هر هر فرد نه الله پاک د قیامت په ورځ داسې کلام کوی چه د الله پاک او د هغه ترمینځه به ترجمان نه وی. بیا چه هغه بنده اوګوری نو هغه ته به یو څیز هم په نظر رانشی، بیا به هغه خپلې مخې ته اوګوری او د هغه مخې ته به اور وی، پس کوم سړې هم چه د اور نه د بچ کیدو استطاعت لری چه «په دې دنیا کښې دې عمل کولو سره» هغه ځان بچ کړی اګر که هغه د کهجورې د یوې ټکړې په ذریعه ولې نه وی. «هغه دې د الله پاک په لاره کښې خرج کړی او د خپل بچ کیدو بندوبست دې اوکړی».

قَالَ الأَعْمَشُ حَدَّثَنِي عَمْرٌو عَنْ خَيْثَمَةَ عَنْ عَدِيِّ بْنِ حَاتِمٍ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صلى الله عليه وسلم «اتَّقُوا النَّارَ» ثُمَّ أَعْرَضَ وَأَشَاحَ، ثُمَّ قَالَ «اتَّقُوا النَّارَ» ثُمَّ أَعْرَضَ وَأَشَاحَ ثَلاَثًا، حَتَّى ظَنَنَّا أَنَّهُ يَنْظُرُ إِلَيْهَا، ثُمَّ قَالَ «اتَّقُوا النَّارَ وَلَوْ بِشِقِّ تَمْرَةٍ، فَمَنْ لَمْ يَجِدْ فَبِكَلِمَةٍ طَيِّبَةٍ». [ر: ۱۳۴۷]

دا د ماقبل سند سره متصل دې، سیدنا عدی بن حاتم رضی الله عنه فرمائی چه رسول الله ﷺ اوفرمائیل: د جهنم نه بچ شئ، بیا هغوی خپل مخ مبارک واړولو. بیا ئې اوفرمائیل: د جهنم نه ځان بچ کړئ. او د دې نه پس ئې بیا خپل مخ مبارک واړولو. درې کرته رسول الله ﷺ داسې اوکړل. مونږ دا اوګڼړله چه رسول الله ﷺ جهنم لره وینی. بیا ئې اوفرمائیل د جهنم ځان بچ کړئ اګر چه د کهجورې د یوې ټکړې په ذریعه ولې نه وی او چاته چه دا هم ملاؤ نه شی نو هغه د ښه خبرې په ذریعه «دې ځان بچ کړی».

**قوله: ﴿وَلَوْ بِشِقِّ تَمْرَةٍ﴾**: د اورنه ځان بچ کړئ اګر چه د کهجورې د یوې ټکړې په ذریعه وی.

① د دې مطلب دا هم کیدې شی چه د جهنم نه د بچ کیدو هر ممکن کوشش کول پکار دی او د کهجورې په وړه شان ټکړه کښې هم احتیاط کول پکار دی چه هغه چرته حرام او ناجائز نه

وی، د وړې نه وړه ګناه هم معمولي نه دې ګڼل پکار.
② او دا مطلب هم کیدې شي چه د نیکئ هر څومره توفیق ملاؤ شي، نیکي کول پکار دي که چاته د یو کهجورې د صدقه کولو موقع ملاویږي نو هغه هم غنیمت ګڼل پکار دي. [1]
او په ظاهر دواړو معنو کښې هیڅ تضاد نشته، دواړه مطلبونه کیدې شي.
**قوله: ﴿ثُمَّ أَعْرَضَ وَأَشَاحَ﴾**: د اشاح معنی د اعراض کولو، لرې کولو او اړولو راځی، مطلب دا دې چه رسول الله ﷺ خپل مخ مبارک واړولو، داسې محسوسیده چه اور د هغوی مخې ته ده او رسول الله ﷺ هغې ته ګوری او کتلو سره مخ مبارک بل طرف ته اړوی.

## ٥٠: باب يَدْخُلُ الْجَنَّةَ سَبْعُونَ أَلْفًا بِغَيْرِ حِسَابٍ

**په جنت کښې د اویا زره کسانو بغیر د حساب نه داخلیدل:** امام بخاری رحمه الله په دې باب کښې د رسول الله ﷺ د امت مسلمه دپاره زیرې بیان کړې دې، چه د دې امت نه به اویا زره کسان جنت ته ځی!
اویا زره د دې نه عدد معین مراد دې یا د دې نه کثرت مراد دې چه ډیر خلق به جنت ته بې حسابه داخلیږی ځکه چه د اویا عدد په عربئ کښې د کثرت دپاره راځی.
راجح دا معلومیږی چه د دې نه عدد معین مرادنه دې، بلکه کثرت مراد دې ځکه چه په مسند احمد او بیهقی کښې د سیدنا ابوهریره رضی الله عنه په روایت کښې دی چه اویا زره کسان به جنت ته ځی، رسول الله ﷺ په هغې کښې د اضافې دعا اوکړه نو د هر زرو کسانو سره د زرو اضافه اوکړې شوه. [2]
په یو بل روایت کښې دی چه د هر زرو کسانو سره د اویا زره کسانو اضافه اوکړې شوه. [3]
او په یو دریم روایت کښې په اویا زره کسانو کښې د هر یو سره د اویا زره کسانو اضافه ده. [4] دغه شان دا تعداد ډیر زیاتیږی او د الله پاک د رحمت دریاب بې کنارې دې، امید هم دا دې چه انشاء الله د دې نه به هم دا کثیرتعداد مراد وی. اللهم اجعلنا منهم.... یاارحم الراحمین!
[٦١٧٥] حَدَّثَنَا عِمْرَانُ بْنُ مَيْسَرَةَ حَدَّثَنَا ابْنُ فُضَيْلٍ حَدَّثَنَا حُصَيْنٌ. وَحَدَّثَنِي أَسِيدُ بْنُ زَيْدٍ. حَدَّثَنَا هُشَيْمٌ عَنْ حُصَيْنٍ قَالَ كُنْتُ عِنْدَ سَعِيدِ بْنِ جُبَيْرٍ فَقَالَ حَدَّثَنِي ابْنُ عَبَّاسٍ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - «عُرِضَتْ عَلَيَّ الأُمَمُ، فَأَخَذَ النَّبِيُّ يَمُرُّ مَعَهُ الأُمَّةُ، وَالنَّبِيُّ يَمُرُّ مَعَهُ النَّفَرُ، وَالنَّبِيُّ يَمُرُّ مَعَهُ الْعَشَرَةُ، وَالنَّبِيُّ يَمُرُّ مَعَهُ الْخَمْسَةُ، وَالنَّبِيُّ يَمُرُّ وَحْدَهُ، فَنَظَرْتُ فَإِذَا

[1] قال المظهری: یعنی إذا عرفتم ذلک فاحذروا من النار فلا تظلموا أحداً ولو بمقدار شق تمرة ويحتمل أن يراد وأن أمامكم النار فاجعلوا الصدقة جنة بينكم وبينها ولو بشق تمرة. (ارشاد الساری: ٥٤٣/١٣)
[2] فتح الباری ٥٠٠/١١، ارشاد الساری: ٥٤٥/١٣
[3] فتح الباری ٥٠٠/١١، ارشاد الساری: ٥٤٥/١٣
[4] فتح الباری ٥٠٠/١١، ارشاد الساری: ٥٤٥/١٣

سَوَادٌ كَثِيرٌ قُلْتُ يَا جِبْرِيلُ هٰؤُلَاءِ أُمَّتِي قَالَ لَا وَلٰكِنِ انْظُرْ إِلَى الأُفُقِ. فَنَظَرْتُ فَإِذَا سَوَادٌ كَثِيرٌ. قَالَ هٰؤُلَاءِ أُمَّتُكَ، وَهٰؤُلَاءِ سَبْعُونَ أَلْفًا قُدَّامَهُمْ، لَا حِسَابَ عَلَيْهِمْ وَلَا عَذَابَ. قُلْتُ وَلِمَ قَالَ كَانُوا لَا يَكْتَوُونَ، وَلَا يَسْتَرْقُونَ، وَلَا يَتَطَيَّرُونَ، وَعَلَى رَبِّهِمْ يَتَوَكَّلُونَ». فَقَامَ إِلَيْهِ عُكَّاشَةُ بْنُ مِحْصَنٍ فَقَالَ ادْعُ اللّٰهَ أَنْ يَجْعَلَنِي مِنْهُمْ. قَالَ «اللّٰهُمَّ اجْعَلْهُ مِنْهُمْ». ثُمَّ قَامَ إِلَيْهِ رَجُلٌ آخَرُ قَالَ ادْعُ اللّٰهَ أَنْ يَجْعَلَنِي مِنْهُمْ. قَالَ «سَبَقَكَ بِهَا عُكَّاشَةُ». [ر: ٣٢٢٩]

د سيدنا ابن عباس رضي الله عنهما نه روايت دي چه رسول الله ﷺ اوفرمائيل: زما مخکښي امتونه پيش کړې شو. د يو نبي سره پوره امت تير شو، د يو نبي سره څو کسان تير شو. د يو نبي سره لس کسان تير شو. د بعض سره پنځه کسان تير شو چا چه په هغوی باندې ايمان راوړې وو. او څه انبياء يواځې تير شو (چه په هغوی باندې يو هم ايمان راوړونکې نه وو)، بيا ما اوکتل چه د انسانانو يو لوئې جماعت د لرې نه په نظر راغلو، ما د جبرئيل عليه السلام نه تپوس اوکړو آيا دا زما امت دې؟ هغوی اوفرمائيل: نه بلکه د آسمان طرف ته اوګورئ چه او مې کتل نو د ډير لوئې جماعت غير واضح مخونه ښکاره کيدل، وې فرمائيل چه دا ستاسو امت دې او دا د هغوی مخې ته چه کوم خلق دی، د هغوی تعداد اويا زره دې. د هغوی نه به نه حساب اخستلې شی او نه به په هغوی باندې عذاب وی. ما تپوس اوکړو. داسې به ولې وی؟ هغوی اوفرمائيل: چه د دې وجه دا ده چه دې خلقو به داغونه نه لګول، غلا به ئې نه کوله. بد فالی به ئې نه کوله او په خپل رب باندې به ئې اعتماد کولو.

بيا د رسول الله ﷺ طرف ته عکاشه بن محصن رضي الله عنه ورمخکښې شو او عرض ئې اوکړو يا رسول الله ﷺ! دعا اوکړئ چه الله پاک ما هم په دغه خلقو کښې داخل کړی، رسول الله ﷺ دعا اوکړه چه يا الله! دې هم په دغه خلقو کښې داخل کړه.

د دې نه پس يو بل سړې اودريدلو او عرض ئې اوکړو چه زما دپاره هم دا دعا اوکړئ چه الله پاک ما هم په هغوی کښې داخل کړی، رسول الله ﷺ په دې باندې اوفرمائيل چه عکاشه ستا نه مخکښې شوې دې.

د حديث شريف دوه سندونه دی او دواړه تلو سره په حصين بن عبدالرحمن واسطی باندې جمع کيږی.

په اول سند کښې د امام بخاری رحمه الله شيخ عمران بن مسيرة او شيخ الشيخ محمد بن فضيل دې او په دويم سند کښې د امام بخاری رحمه الله شيخ اسيد بن زيد او شيخ الشيخ هشيم بن بشير واسطی دې.

**قوله: (سَبَقَكَ بِهَا عُكَّاشَةُ)**: د دې دويم سړی دپاره رسول الله ﷺ دعا او نه فرمائيله. د دې يو وجه خو دا کيدې شی چه دا سلسله به بيا اوږده شوې وه او په حاضرينو کښې به نور هم ډير حضرات اودريدلې وې او د خپل ځان دپاره به ئې په رسول الله ﷺ باندې دعا کوله. او دا وجه هم کيدې شی چه سيدنا عکاشه رضي الله عنه چه کله اوونيل نو هغه د قبول والی وخت وو. کوم چه روستو پاتې نه شوه، په دې وجه روستنی سړی ته رسول الله ﷺ دا جمله ارشاد

اوفرمائيله. او دا هم كيدې شي چه د هغوى په باره كښې رسول الله ﷺ د وحى په ذريعه دا خبره اوفرمائيله. د باقى په باره كښې وحى نه وه راغلې.[1]

[٦١٧٦] حَدَّثَنَا مُعَاذُ بْنُ أَسَدٍ أَخْبَرَنَا عَبْدُ اللَّهِ أَخْبَرَنَا يُونُسُ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ حَدَّثَنِي سَعِيدُ بْنُ الْمُسَيَّبِ أَنَّ أَبَا هُرَيْرَةَ حَدَّثَهُ قَالَ سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - يَقُولُ «يَدْخُلُ مِنْ أُمَّتِي زُمْرَةٌ هُمْ سَبْعُونَ أَلْفًا، تُضِيءُ وُجُوهُهُمْ إِضَاءَةَ الْقَمَرِ لَيْلَةَ الْبَدْرِ». وَقَالَ أَبُو هُرَيْرَةَ فَقَامَ عُكَّاشَةُ بْنُ مِحْصَنٍ الأَسَدِيُّ يَرْفَعُ نَمِرَةً عَلَيْهِ فَقَالَ يَا رَسُولَ اللَّهِ ادْعُ اللَّهَ أَنْ يَجْعَلَنِي مِنْهُمْ. قَالَ «اللَّهُمَّ اجْعَلْهُ مِنْهُمْ» ثُمَّ قَامَ رَجُلٌ مِنَ الأَنْصَارِ فَقَالَ يَا رَسُولَ اللَّهِ ادْعُ اللَّهَ أَنْ يَجْعَلَنِي مِنْهُمْ. فَقَالَ «سَبَقَكَ عُكَّاشَةُ». [ر: ٥٤٧٤]

د سيدنا ابوهريره رضي الله عنه نه روايت دې چه ما د رسول الله ﷺ نه واوريدل. رسول الله ﷺ اوفرمائيل چه زما د امت يو جماعت به جنت ته داخليږى. چه دهغوى تعداد به اويا زره وى. د هغوى مخونه به داسې روښانه وى لكه د څوارلسمې د شپې سپوږمۍ چه روښانه وى.
سيدنا ابوهريره رضي الله عنه فرمائى چه په دې باندې عكاشه بن محصن رضي الله عنه پاسيدو او خپل څادر كوم چه د هغوى په بدن باندې وو هغه ئې اوچت كړو او عرض ئې اوكړو يا رسول الله ﷺ! د الله پاک نه دعا اوكړئ چه ما هم په هغوى كښې داخل كړى. رسول الله ﷺ دعا اوكړه چه اې الله! دې هم په هغوى كښې داخل كړې، د هغوى نه پس يو بل صاحب پاسيدو او عرض ئې اوكړو. يا رسول الله ﷺ! دعا اوكړئ چه ما هم الله پاک په هغوى كښې داخل كړى، رسول الله ﷺ اوفرمائيل: عكاشه ستا نه مخكښې شو.

[٦١٧٧] حَدَّثَنَا سَعِيدُ بْنُ أَبِي مَرْيَمَ حَدَّثَنَا أَبُو غَسَّانَ قَالَ حَدَّثَنِي أَبُو حَازِمٍ عَنْ سَهْلِ بْنِ سَعْدٍ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - «لَيَدْخُلَنَّ الْجَنَّةَ مِنْ أُمَّتِي سَبْعُونَ أَلْفًا أَوْ سَبْعُمِائَةِ أَلْفٍ - شَكَّ فِي أَحَدِهِمَا - مُتَمَاسِكِينَ، آخِذٌ بَعْضُهُمْ بِبَعْضٍ، حَتَّى يَدْخُلَ أَوَّلُهُمْ وَآخِرُهُمُ الْجَنَّةَ، وَوُجُوهُهُمْ عَلَى ضَوْءِ الْقَمَرِ لَيْلَةَ الْبَدْرِ». [ر: ٣٠٧٥]

د سيدنا سهل بن سعد رضي الله عنه نه روايت دې چه رسول الله ﷺ اوفرمائيل: جنت ته به زما د امت اويا زره يا اويا لاكهه (راوى ته په دې كښې په يو تعداد كښې شک وو)، كسان داخليږى چه بعض به. بعض نورو لره ونيسى دغه شان به جنت ته اول او آخر ټول داخل شى او د هغوى مخونه د څوارلسمې د سپوږمۍ په شان وى.

[٦١٧٨] حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ حَدَّثَنَا يَعْقُوبُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ حَدَّثَنَا أَبِي عَنْ صَالِحٍ حَدَّثَنَا نَافِعٌ عَنِ ابْنِ عُمَرَ - رضى الله عنهما - عَنِ النَّبِيِّ - صلى الله عليه وسلم - قَالَ «إِذَا دَخَلَ أَهْلُ الْجَنَّةِ الْجَنَّةَ، وَأَهْلُ النَّارِ النَّارَ، ثُمَّ يَقُومُ مُؤَذِّنٌ بَيْنَهُمْ يَا أَهْلَ النَّارِ لاَ مَوْتَ، وَيَا أَهْلَ الْجَنَّةِ لاَ مَوْتَ، خُلُودٌ». [٦١٨٢]

[1] فتح البارى ٥٠١/١١، ارشاد السارى: ٥٤٥/١٣

د سيدنا عبدالله بن عمر رضي الله عنهما نه روايت دي چه رسول الله ﷺ فرمائي: چه کله اهل جنت. جنت ته او اهل جهنم جهنم ته داخل شي نو آواز کونکي به د هغوی ترمينځه اودريدلو سره آواز اوکړي چه اې اهل جهنم: په تاسو به مرګ نه راځي. او اې اهل جنت! په تاسو به مرګ نه راځي. بلکه همېشه به هم دلته اوسيږئ

[٦١٧٩] حَدَّثَنَا أَبُو الْيَمَانِ أَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ حَدَّثَنَا أَبُو الزِّنَادِ عَنِ الأَعْرَجِ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صلى الله عليه وسلم «يُقَالُ لأَهْلِ الْجَنَّةِ خُلُودٌ لاَ مَوْتَ. وَلأَهْلِ النَّارِ يَا أَهْلَ النَّارِ خُلُودٌ لاَ مَوْتَ»

د سيدنا ابوهريره رضي الله عنه نه روايت دې چه رسول الله ﷺ اوفرمائيل اهل جنت ته به وئيلې شي چه اې اهل جنت: تاسو به همېشه هم دلته اوسيږئ په تاسو به مرګ نه راځي او هل دوزخ ته به وئيلې شي چه اې اهل دوزخ همېشه به تاسو دلته اوسيږئ. په تاسو به مرګ نه راځي

## ٥١: باب صِفَةِ الْجَنَّةِ وَالنَّارِ

وَقَالَ أَبُو سَعِيدٍ قَالَ النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - «أَوَّلُ طَعَامٍ يَأْكُلُهُ أَهْلُ الْجَنَّةِ زِيَادَةُ كَبِدِ حُوتٍ». عَدْنٌ خُلْدٌ، عَدَنْتُ بِأَرْضٍ أَقَمْتُ، وَمِنْهُ الْمَعْدِنُ، فِي مَعْدِنِ صِدْقٍ، فِي مَنْبِتِ صِدْقٍ.

د دې باب د لاندې امام بخاري رحمه الله هغه احاديث بيان فرمائيلي دی چه په هغې کښې رسول الله ﷺ د جنت او جهنم اوصاف اود هغې کيفيت بيان کړې دی. د سيدنا ابوسعيد خدری رضي الله عنه دا تعليق امام بخاري رحمه الله ښو بابونه مخکښې په باب يقبض الله الارض.....موصولا نقل کړې دې

**قوله:** ﴿عَدْنٌ خُلْدٌ عَدَنْتُ بِأَرْضٍ أَقَمْتُ وَمِنْهُ الْمَعْدِنُ﴾: په قرآن کريم کښې په ډيرو ځايونو کښې د ﴿عدن﴾ لفظ د جنت سره استعمال شوې دې. په سورة توبه کښې دی ﴿فی جنت عدن﴾ يعنی د هميشوالی باغونو کښې. د ﴿عدنت بارض﴾ معنی ده ما په زمکه باندې قيام اوکړو. هلته اوسيدم، هم په دې سره مشهور لفظ معدن دې. يعنی کان د چرته نه چه معدنيات سرۀ زر. سپين زر او پيتل وغيره راويستلې شي.[١]

**قوله:** ﴿فِي مَعْدِنِ صِدْقٍ فِي مَنْبِتِ صِدْقٍ﴾: معدن صدق خلق وائی. د دې ترجمه ده ﴿منبت صدق﴾ او په يوه نسخه کښې ﴿مقعد صدق﴾ دې. د معدن په ځائې د ﴿مقعد﴾ لفظ دې. دا لفظ په سورة قمر کښې د جنت په تذکره کښې واقع دې ﴿إِنَّ الْمُتَّقِينَ فِي جَنَّاتٍ وَنَهَرٍ فِي مَقْعَدِ صِدْقٍ﴾ د مقعد صدق نه داسې مجلس مراد دې چه په هغې کښې څه لغو يا د ګناه

---

١ فتح الباري ٥١٠/١١. ارشاد الساري: ٥٤٨/١٣، عمدة القاری ١٨٢/٢٣

خبره نه وى، دلته چونکه د جنت ذکر دې، په دې وجه : منعه صدق مناسبت په باب سره واضح دې. خو د ابوعبيده په کلام کښې د معدن صدق معنى منبت صدق ليکلې شوې ده. (١) او د دې نه مخکښې چونکه د عدن لفظ راغلې دې نو د دې لفظ مناسبت هم راځى. هسې هم امام بخارى رحمه الله په معمولى مناسبتونو سره الفاظ ذکر کوى. لکه چه د هغې مشاهده تاسو په کتاب التفسير کښې کړې ده.

[٦١٨٠] حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ الْهَيْثَمِ حَدَّثَنَا عَوْفٌ عَنْ أَبِي رَجَاءٍ عَنْ عِمْرَانَ عَنِ النَّبِيِّ - صلى الله عليه وسلم - قَالَ «اطَّلَعْتُ فِي الْجَنَّةِ فَرَأَيْتُ أَكْثَرَ أَهْلِهَا الْفُقَرَاءَ وَاطَّلَعْتُ فِي النَّارِ فَرَأَيْتُ أَكْثَرَ أَهْلِهَا النِّسَاءَ». [ر: ٣٠٦٩]

د سيدنا عمران بن حصين رضي الله عنه نه روايت دې چه رسول الله ﷺ اوفرمائيل : ما په جنت کښې اوکتل نو د هغه ځائې اوسيدونکى اکثر غريب خلق وو او ما په جهنم کښې اوکتل نو د هغه ځائې اوسيدونکې اکثر زنانه وې.

د ابو رجاء نوم عمران عطاردى دې. د دې حديث راويان ټول بصريان دى.

[٦١٨١] حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ أَخْبَرَنَا سُلَيْمَانُ التَّيْمِيُّ عَنْ أَبِي عُثْمَانَ عَنْ أُسَامَةَ عَنِ النَّبِيِّ - صلى الله عليه وسلم - قَالَ «قُمْتُ عَلَى بَابِ الْجَنَّةِ فَكَانَ عَامَّةُ مَنْ دَخَلَهَا الْمَسَاكِينَ، وَأَصْحَابُ الْجَدِّ مَحْبُوسُونَ، غَيْرَ أَنَّ أَصْحَابَ النَّارِ قَدْ أُمِرَ بِهِمْ إِلَى النَّارِ، وَقُمْتُ عَلَى بَابِ النَّارِ فَإِذَا عَامَّةُ مَنْ دَخَلَهَا النِّسَاءُ». [ر: ٤٩٠٠]

د سيدنا اسامة رضي الله عنه نه روايت دې چه رسول الله ﷺ اوفرمائيل : زه د جنت په دروازه باندې اودريدم نو هلته اکثر داخليدونکى مساکين وو او مالدار خلق (جنت ته د داخليدو نه) منع کړې شو (د حساب او قصاص وغيره دپاره)، خو جهنميانو ته اور ته د تلو حکم اوکړې شو او ما د جهنم په دروازه باندې اودريدلو سره اوکتل نو په هغې کښې اکثر داخليدونکې زنانه وې. د اصحاب الجد نه مالدار خلق مراد دى.

[٦١٨٢] حَدَّثَنَا مُعَاذُ بْنُ أَسَدٍ أَخْبَرَنَا عَبْدُ اللَّهِ أَخْبَرَنَا عُمَرُ بْنُ مُحَمَّدِ بْنِ زَيْدٍ عَنْ أَبِيهِ أَنَّهُ حَدَّثَهُ عَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم -

«إِذَا صَارَ أَهْلُ الْجَنَّةِ إِلَى الْجَنَّةِ، وَأَهْلُ النَّارِ إِلَى النَّارِ، جِيءَ بِالْمَوْتِ حَتَّى يُجْعَلَ بَيْنَ الْجَنَّةِ وَالنَّارِ، ثُمَّ يُذْبَحُ، ثُمَّ يُنَادِي مُنَادٍ يَا أَهْلَ الْجَنَّةِ لَا مَوْتَ، يَا أَهْلَ النَّارِ لَا مَوْتَ، فَيَزْدَادُ أَهْلُ الْجَنَّةِ فَرَحًا إِلَى فَرَحِهِمْ. وَيَزْدَادُ أَهْلُ النَّارِ حُزْنًا إِلَى حُزْنِهِمْ» [٦١٧٨]

د سيدنا عبدالله بن عمر رضي الله عنهما نه روايت دې چه رسول الله ﷺ اوفرمائيل : چه کله اهل جنت جنت ته لاړ شى او اهل دوزخ دوزخ ته لاړ شى نو مرګ به راوستلې شى او هغه به د جنت او دوزخ ترمينځه ذبح کړې شى، بيا به يو آواز کونکې آواز اوکړى چه اې اهل جنت! په تاسو به

(١) فتح البارى ٥١٠/١١، ارشاد السارى : ٥٤٨/١٣، عمدة القارى ١٨٢/٢٣

مرګ نه راځی. اې اهل دوزخ! په تاسو به مرګ نه راځی، په دې وخت کښې به جنتيان نور هم خوشحاله شی او دوزخيان به نور هم غمژن شی

[۶۱۸۳] حَدَّثَنَا مُعَاذُ بْنُ أَسَدٍ أَخْبَرَنَا عَبْدُ اللَّهِ أَخْبَرَنَا مَالِكُ بْنُ أَنَسٍ عَنْ زَيْدِ بْنِ أَسْلَمَ عَنْ عَطَاءِ بْنِ يَسَارٍ عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- «إِنَّ اللَّهَ يَقُولُ لأَهْلِ الْجَنَّةِ يَا أَهْلَ الْجَنَّةِ. يَقُولُونَ لَبَّيْكَ رَبَّنَا وَسَعْدَيْكَ. فَيَقُولُ هَلْ رَضِيتُمْ فَيَقُولُونَ وَمَا لَنَا لاَ نَرْضَى وَقَدْ أَعْطَيْتَنَا مَا لَمْ تُعْطِ أَحَدًا مِنْ خَلْقِكَ. فَيَقُولُ أَنَا أُعْطِيكُمْ أَفْضَلَ مِنْ ذَلِكَ. قَالُوا يَا رَبِّ وَأَىُّ شَىْءٍ أَفْضَلُ مِنْ ذَلِكَ فَيَقُولُ أُحِلُّ عَلَيْكُمْ رِضْوَانِي فَلاَ أَسْخَطُ عَلَيْكُمْ بَعْدَهُ أَبَدًا». [۷۰۸۰]

د سيدنا ابوسعيد خدری رضی الله عنه نه روايت دې چه رسول الله ﷺ اوفرمائيل : الله پاک به اهل جنت ته فرمائی : اې اهل جنت! جنتيان به وائی : مونږ حاضر يو اې زمونږ ربه! ستا د فرمانبردارئ دپاره! الله پاک به ترې نه تپوس اوکړی : اوس تاسو خوشحاله يئ؟ هغوی به وائی : مونږ به څنګه خوشحاله نه يو اوس خو تا مونږ ته تا هر هغه څيز راکړو کوم چه دې په خپل مخلوق کښې چاته هم نه دې ورکړې، الله پاک به ورته فرمائی : آيا زه تاسو ته د دې نه هم غوره څيز درنکړم، جنتيان به وائی، اې ربه ! د دې نه غوره څيز نور څه کيدې شی؟ الله پاک به فرمائی چه زه اوس ستاسو دپاره خپله رضوان او خوشحالی نازلوم. د دې نه پس به زه ستاسو نه کله هم ناراضه نه شم. [۱]

د الله پاک رضا د جنت د ټولو نه لوئې نعمت دې، د قرآن کريم په سورة توبة کښې دی ﴿ورضوان من الله اکبر﴾ او د الله پاک په مناسبت سره ډير لوئې دې. [۲]

[۶۱۸۴] حَدَّثَنِي عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا مُعَاوِيَةُ بْنُ عَمْرٍو حَدَّثَنَا أَبُو إِسْحَاقَ عَنْ حُمَيْدٍ قَالَ سَمِعْتُ أَنَسًا يَقُولُ أُصِيبَ حَارِثَةُ يَوْمَ بَدْرٍ وَهْوَ غُلاَمٌ، فَجَاءَتْ أُمُّهُ إِلَى النَّبِيِّ -صلى الله عليه وسلم- فَقَالَتْ يَا رَسُولَ اللَّهِ قَدْ عَرَفْتَ مَنْزِلَةَ حَارِثَةَ مِنِّي، فَإِنْ يَكُ فِي الْجَنَّةِ أَصْبِرْ وَأَحْتَسِبْ، وَإِنْ تَكُنِ الأُخْرَى تَرَى مَا أَصْنَعُ. فَقَالَ «وَيْحَكِ - أَوَهَبِلْتِ - أَوَجَنَّةٌ وَاحِدَةٌ هِيَ جِنَانٌ كَثِيرَةٌ، وَإِنَّهُ لَفِي جَنَّةِ الْفِرْدَوْسِ» [ر: ۲۶۵۴]

د سيدنا انس رضی الله عنه نه روايت دې رسول الله ﷺ اوفرمائيل چه حارثه رضی الله عنه د بدر په جنګ کښې شهيد شو، هغوی دې وخت کښې کم عمر وو، نو د هغوی مور د رسول الله ﷺ په خدمت

---

[۱] الحديث ايضا اخرجه البخاری فی صحيحه، کتاب التوحيد، باب کلام الرب مع اهل الجنة، رقم الحديث : ۷۵۱۸، ومسلم فی صحيحه، کتاب الجنة وصفة نعيمها واهلها، باب احلال الرضوان علی اهل الجنة فلا يسخط عليهم ابدا، رقم الحديث : ۷۰۷۰، واخرجه الترمذی فی جامعه، کتاب صفة الجنة، باب محاورة الرب اهل الجنة، احل عليکم رضوانی، رقم الحديث : ۲۵۵۵.

[۲] ارشاد الساری : ۵۵۱/۱۳

كنبې حاضره شوه او عرض ئې اوكړو يا رسول الله ﷺ تاسو ته معلومه ده چه د حارثه سره زما څومره محبت وو. كه هغه په جنت كنبې وى نو زه به صبر اوكړم. او په صبر باندې به د اجر اميد لرم. او كه بل څه خبره وى نو تاسو به كورئ چه زه څه كوم؟ رسول الله ﷺ اوفرمائيل افسوس، ليونئ شوې ئې؟ آيا جنت يو دې څه، هغه خو ډير جنتونه دى. او هغه حارثه رضي الله عنه خو په جنت الفردوس كنبې دې.

﴿أَوَهَبِلْتِ﴾ په دې كنبې همزه د استفهام دپاره دې او واؤ عاطفه دې، معطوف عليه محذوف دې.

﴿هَبِلَتِ المراةُ﴾: خوئې وركول، دا صيغه معروف او مجهول دواړه طريقو سره استعمال شوې ده. تركيبى عبارت دې، افقدت عقلك ووهبلت: يعنى د بچى په وركيدو باندې ستاسو عقل ورك شوې دې چه په جنت نه پوهيږې؟

[٦١٨٥] حَدَّثَنَا مُعَاذُ بْنُ أَسَدٍ أَخْبَرَنَا الْفَضْلُ بْنُ مُوسَى أَخْبَرَنَا الْفُضَيْلُ عَنْ أَبِى حَازِمٍ عَنْ أَبِى هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِىِّ -صلى الله عليه وسلم- قَالَ «مَا بَيْنَ مَنْكِبَىِ الْكَافِرِ مَسِيرَةُ ثَلاَثَةِ أَيَّامٍ لِلرَّاكِبِ الْمُسْرِعِ».

د سيدنا ابوهريره رضي الله عنه نه روايت دې چه رسول الله ﷺ اوفرمائيل: د كافر د دواړو اوږو ترمينځه د تيز تلونكى دپاره د درې ورځو د مسافت فاصله ده.

په دې حديث كنبې. د جهنم ذكر نشته، خو د جهنمى ذكر دې، په دې مناسبت سره په ﴿باب صفة النار﴾ سره د دې مطابقت راشى. (١)

[٦١٨٦] وَقَالَ إِسْحَاقُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ أَخْبَرَنَا الْمُغِيرَةُ بْنُ سَلَمَةَ حَدَّثَنَا وُهَيْبٌ عَنْ أَبِى حَازِمٍ عَنْ سَهْلِ بْنِ سَعْدٍ عَنْ رَسُولِ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- قَالَ «إِنَّ فِى الْجَنَّةِ لَشَجَرَةً يَسِيرُ الرَّاكِبُ فِى ظِلِّهَا مِائَةَ عَامٍ لاَ يَقْطَعُهَا».

دا د ماقبل سند سره موصول دې..... او ابن اسحاق بن ابراهيم بيان كړې دې. هغوى ته مغيره بن سلمة خبر وركړو. هغوى ته وهيب حديث بيان كړو، هغوى ابوحازم ته، هغوى ته سهل بن سعد رضي الله عنه او هغوى ته رسول الله ﷺ اوفرمائيل چه په جنت كنبې يوه اونه ده چه د هغې په سورى كنبې سوارۀ تر سلو كالو پورې د ګرځيدو نه پس به هم هغه قطع نه كړې شى.

قَالَ أَبُو حَازِمٍ فَحَدَّثْتُ بِهِ النُّعْمَانَ بْنَ أَبِى عَيَّاشٍ فَقَالَ حَدَّثَنِى أَبُو سَعِيدٍ عَنِ النَّبِىِّ -صلى الله عليه وسلم- قَالَ «إِنَّ فِى الْجَنَّةِ لَشَجَرَةً يَسِيرُ الرَّاكِبُ الْجَوَادَ الْمُضَمَّرَ السَّرِيعَ مِائَةَ عَامٍ مَا يَقْطَعُهَا».

دا هم د ماقبل سند سره متصل دې...ابوحازم فرمائى چه بيا ما دا حديث د نعمان بن ابى عياش نه بيان اوكړو چه هغوى اووې چه ماته ابوسعيد حديث بيان كړو، هغوى ته رسول الله ﷺ

(١) ارشاد السارى: ١٣/٥٥١

اوفرمائيل: په جنت كښې به يو داسې ونه وي چه د هغې په سورى كښې غوره او په تيز رفتار اس باندې سوريدلو سره تر سلو كالو پورې روان وي او بيا به هم هغه قطع نه كړې شي

[٦١٨٧] حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيزِ عَنْ أَبِي حَازِمٍ عَنْ سَهْلِ بْنِ سَعْدٍ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - قَالَ «لَيَدْخُلَنَّ الْجَنَّةَ مِنْ أُمَّتِي سَبْعُونَ أَوْ سَبْعُمِائَةِ أَلْفٍ - لاَ يَدْرِي أَبُو حَازِمٍ أَيُّهُمَا قَالَ - مُتَمَاسِكُونَ، آخِذٌ بَعْضُهُمْ بَعْضًا، لاَ يَدْخُلُ أَوَّلُهُمْ حَتَّى يَدْخُلَ آخِرُهُمْ، وُجُوهُهُمْ عَلَى صُورَةِ الْقَمَرِ لَيْلَةَ الْبَدْرِ». [ر ٣٠٧٥]

د سيدنا سهل بن سعد رضي الله عنه نه روايت دې چه رسول الله ﷺ اوفرمائيل زما د امت نه به اويا زره يا اويا لاكهه كسان جنت ته ځى. د ابوحازم يقين نه وو چه په روايت كښې كوم يو عدد بيان شوي وو .اويازره يااويا لاكهه... فرمائى چه (هغوى به جنت ته داسې داخليږى چه) يو بل به ئې نيولې وى. يو بل به ئې نيولې وى په هغوى كښې به اولنې لا دننه داخل شوي نه وى چه آخرى سړې به داخل شى. د هغوى مخونه به د څوارلسمې د سپوږمۍ په شان روښانه وى

[٦١٨٨] حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مَسْلَمَةَ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيزِ عَنْ أَبِيهِ عَنْ سَهْلٍ عَنِ النَّبِيِّ - صلى الله عليه وسلم - قَالَ «إِنَّ أَهْلَ الْجَنَّةِ لَيَتَرَاءَوْنَ الْغُرَفَ فِي الْجَنَّةِ كَمَا تَتَرَاءَوْنَ الْكَوْكَبَ فِي السَّمَاءِ».

قَالَ أَبِي فَحَدَّثْتُ النُّعْمَانَ بْنَ أَبِي عَيَّاشٍ فَقَالَ أَشْهَدُ لَسَمِعْتُ أَبَا سَعِيدٍ يُحَدِّثُ وَيَزِيدُ فِيهِ «كَمَا تَرَاءَوْنَ الْكَوْكَبَ الْغَارِبَ فِي الأُفُقِ الشَّرْقِيِّ وَالْغَرْبِيِّ».

د سيدنا سهل رضي الله عنه نه روايت دې چه رسول الله ﷺ اوفرمائيل: بيشكه اهل جنت به (د خان نه پورته درجو والا) بالاخانې داسې وينى څنګه چه تاسو په آسمان كښې ستورى وينئ

زما والد بيان اوكړو چه بيا ما دا حديث نعمان بن ابى عياش ته بيان كړو نو هغوى اووې چه زه ګواهى وركوم چه ما د ابوسعيد خدرى رضي الله عنه نه واوريدل هغوى به حديث بيانولو او په هغې كښې به ئې دا اضافه كوله چه څنګه چه تاسو په مشرقى يا مغربى اسمانى كنارو كښې پټيدونكې ستورى وينئ.

﴿قال ابى﴾: دا روايت عبدالعزيز بن حازم د خپل پلار ابو حازم نه نقل كوى، هغوى وائى چه زما پلار ابو حازم وائى چه دا حديث ما نعمان بن ابى عياش ته واورولو نو هغوى اووې چه زه ګواهى وركوم چه ما هم دا حديث د ابوسعيد خدرى رضي الله عنه نه اوريدلې دې او په هغې كښې ﴿كما تراءون الكوكب﴾ اضافه كوى؟

[٦١٨٩] حَدَّثَنِي مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ حَدَّثَنَا غُنْدَرٌ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ أَبِي عِمْرَانَ قَالَ سَمِعْتُ أَنَسَ بْنَ مَالِكٍ - رضى الله عنه - عَنِ النَّبِيِّ - صلى الله عليه وسلم - قَالَ «يَقُولُ اللَّهُ تَعَالَى لأَهْوَنِ أَهْلِ النَّارِ عَذَابًا يَوْمَ الْقِيَامَةِ لَوْ أَنَّ لَكَ مَا فِي الأَرْضِ مِنْ شَيْءٍ أَكُنْتَ تَفْتَدِي بِهِ فَيَقُولُ نَعَمْ. فَيَقُولُ أَرَدْتُ مِنْكَ أَهْوَنَ مِنْ هَذَا وَأَنْتَ فِي صُلْبِ آدَمَ أَنْ لاَ تُشْرِكَ بِي

شَيْئًا فَأَبَيْتَ إِلَّا أَنْ تُشْرِكَ بِي». [ر: ٣١٥٦]

(د سيدنا انس بن مالک رضي الله عنه نه روايت دې چه رسول الله ﷺ اوفرمائيل: چه الله پاک به په قيامت کښې د اهل دوزخ د ټولو نه کم عذاب موندونکی نه تپوس اوکړی، که تاسو ته د زمکې په سر باندې يو څيز ميسر وی نو آيا ته به د هغې فديه (د دې عذاب نه د خلاصيدو دپاره) ورکوې؟ هغه به وائی: او .... الله پاک به فرمائی چه ما ستا نه د دې نه هم د معمولی څيز هغه وخت مطالبه کړې وه، چه کله ته د آدم عليه السلام په شا کښې وې چه ما سره به څوک نه شريکوې، خو تا هم په هغې باندې اصرار کولو چه تا به زما سره شريک جوړوې. (په دې وجه به ته اوس په عذاب کښې ګرفتاريږې).

[٦١٩٠] (١) حَدَّثَنَا أَبُو النُّعْمَانِ حَدَّثَنَا حَمَّادٌ عَنْ عَمْرٍو عَنْ جَابِرٍ رضى الله عنه - أَنَّ النَّبِي صلى الله عليه وسلم - قَالَ «يَخْرُجُ مِنَ النَّارِ بِالشَّفَاعَةِ كَأَنَّهُمُ الثَّعَارِيرُ». قُلْتُ مَا الثَّعَارِيرُ قَالَ الضَّغَابِيسُ. وَكَانَ قَدْ سَقَطَ فَمُهُ فَقُلْتُ لِعَمْرِو بْنِ دِينَارٍ أَبَا مُحَمَّدٍ سَمِعْتَ جَابِرَ بْنَ عَبْدِ اللَّهِ يَقُولُ سَمِعْتُ النَّبِي صلى الله عليه وسلم يَقُولُ «يَخْرُجُ بِالشَّفَاعَةِ مِنَ النَّارِ». قَالَ نَعَمْ.

د سيدنا جابر رضي الله عنه نه روايت دې چه رسول الله ﷺ اوفرمائيل: څه خلق به د جهنم نه د شفاعت په ذريعه داسې راوځی ګويا هغوی به (ثعارير) وی، ما تپوس اوکړو (ثعارير) څه څيز دې؟

رسول الله ﷺ اوفرمائيل چه د دې نه مراد (ضغابيس) (يعنی واړۀ واړۀ بادرنګ مراد دی، د بادرنګ سره تشبيه په دې وجه ورکړې شوه چه بادرنګ ډير زر غټيږی او په هغې باندې سپين داغونه هم وی نو دا مطلب هم کيدې شی چه د جهنم نه راوتونکو باندې به نری نری سپين وينبته هم وی) دی، د هغوی خولې به پريوتلې (يا رژيدلې) وی.

بيا ما د عمرو بن دينار نه تپوس اوکړو! اې ابو محمد! ما د سيدنا جابر رضي الله عنه نه واوريدل، هغوی بيان اوکړو چه ما د رسول الله ﷺ نه واوريدل، هغوی اوفرمائيل: چه د جهنم نه به د شفاعت د وجې نه خلق راوځی، هغوی اوفرمائيل: او.

(الثَّعَارِيرُ): ثعرور: (په وزن د عصفور) جمع ده، وړو وړو بادرنګو ته وائی چه په هغې باندې داغونه او واړۀ واړۀ وينبته وی. (٢)

(ضغابيس): د ضُغبوس جمع ده واړۀ بادرنګ، بعض وئيلې دی دا يو قسم ساګ دې. (٣)

(١) اخرجه مسلم فی الايمان، باب: ادنی اهل الجنة منزلا فيها، رقم: ١٩١

(٢) د دې حديث معنی کښې ماته غلطی ښکاره کيږی صحيح دا ده چه: د ثعارير په باره کښې راوی د خپل استاذ عمرو نه تپوس کړې دې او هغوی په ضغابيس سره جواب ورکړې دې او راوی د خپل استاذ په باره کښې وائی چه د هغه غاښونه نه وو. (فتح الباری)

(٣) ارشاد الساری: ٥٥٧/١٣، والنهاية لابن الاثير: ٨٣/٢، والفائق فی غريب الحديث: ١٦٦/١

[٦١٩١] حَدَّثَنَا هُدْبَةُ بْنُ خَالِدٍ حَدَّثَنَا هَمَّامٌ عَنْ قَتَادَةَ حَدَّثَنَا أَنَسُ بْنُ مَالِكٍ عَنِ النَّبِيِّ - صلى الله عليه وسلم - قَالَ «يَخْرُجُ قَوْمٌ مِنَ النَّارِ بَعْدَ مَا مَسَّهُمْ مِنْهَا سَفْعٌ، فَيَدْخُلُونَ الْجَنَّةَ، فَيُسَمِّيهِمْ أَهْلُ الْجَنَّةِ الْجَهَنَّمِيِّينَ». [٧٠١٢]

د سيدنا انس بن مالك رضي الله عنه نه روايت دې چه رسول الله صلى الله عليه وسلم اوفرمائيل : يو جماعت به د جهنم نه د دې نه پس راوخي چه اور به هغوی ته رسيدلې وی او بيا به هغوی جنت ته داخل شي، هغوی ته به جهنميين ونيلې شي.

سفع: د اور نخښه، سوزيدلې ځائې. د اور ګرمی.(١)

[٦١٩٢] حَدَّثَنَا مُوسَى حَدَّثَنَا وُهَيْبٌ حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ يَحْيَى عَنْ أَبِيهِ عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ - رضى الله عنه - أَنَّ النَّبِيَّ - صلى الله عليه وسلم - قَالَ «إِذَا دَخَلَ أَهْلُ الْجَنَّةِ الْجَنَّةَ، وَأَهْلُ النَّارِ النَّارَ يَقُولُ اللَّهُ مَنْ كَانَ فِي قَلْبِهِ مِثْقَالُ حَبَّةٍ مِنْ خَرْدَلٍ مِنْ إِيمَانٍ فَأَخْرِجُوهُ. فَيَخْرُجُونَ قَدِ امْتُحِشُوا وَعَادُوا حُمَمًا، فَيُلْقَوْنَ فِي نَهَرِ الْحَيَاةِ، فَيَنْبُتُونَ كَمَا تَنْبُتُ الْحِبَّةُ فِي حَمِيلِ السَّيْلِ - أَوْ قَالَ - حَمِيَّةِ السَّيْلِ». وَقَالَ النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - «أَلَمْ تَرَوْا أَنَّهَا تَنْبُتُ صَفْرَاءَ مُلْتَوِيَةً». [ر ٢٢]

د سيدنا ابوسعيد خدری رضي الله عنه روايت دې چه رسول الله صلى الله عليه وسلم اوفرمائيل : چه کله اهل جنت، په جنت کښې او اهل جهنم به اهل جهنم ته داخل شي نو الله پاک به فرمائی چه دچا په زړه کښې د اوری د دانې برابر ايمان وی نو هغه د دوزخ نه راوباسئ، هغه وخت به خلق راويستلې شي نو هغوی به سوزيدلو سره د سکروټو په شان وی د دې نه پس به هغوی په نهر حياة کښې واچولې شی، نو هغوی به تروتازه شی، څنګه چه د سيلاب په خټو کښې تيغ راوخی، يا ئې ﴿حبة السيل﴾ اووې چه د ﴿حميل السيل﴾ په ځائې او رسول الله صلى الله عليه وسلم اوفرمائيل : چه آيا تا نه دې ليدلې چه د هغه دانې نه د زيړ رنګ والا بوټې راوخيږی.

﴿امْتُحِشُوا﴾ هغوی به سوزيدلو وی، د امتحاش معنی د سوزيدو ده.

﴿حُمَم﴾: د حممة جمع ده، تور سکارهٔ.

﴿الحِبة﴾ (د حاء په کسرې سره) صحرائی تيغ ته وائی، د دې جمع حبب راځی او يو ﴿حبة﴾ (بفتح الحاء) په معنی د عام دانې راځی، د هغې جمع حبوب راځی، دلته حبة په کسرې سره دې، د دې خصوصيت دا وی چه فورا راخيژی.(٢)

---

(١) سعفته النار : اور په هغه باندې حمله اوکړه، ارشاد الساری : ٥٧/١٣، والنهاية : ٧٨٣/١، وعمدة القاری : ١٩١/٢٣.

(٢) علامه قسطلانی رحمه الله ليکی : بزر العشب او البقلة الحمقاء. لانها تنبت سريعا. (ارشاد الساری : ٥٥٨/١٣، والنهاية : ٤٣٣/١.

﴿في حميل السيل﴾: سيلاب چه د خان سره کومه خاورد او زک وغيره راوړي هغې ته حميل وائي.
﴿او قال حمية السيل﴾ د راوی شک دې چه د ﴿حمية﴾ لفظ ئې ونيلي دې او که د ﴿حميل﴾ د حمية ترجمه: معظم جري الماء واشتداده سره شارحينو کړې ده، يعنی چرته چه د اوبو بهيدل په تيزئ سره او زيات وی، په بعض نسخو کښې ﴿حمئة﴾ راغلې دې، کوم چه تورې خاورې ته وائي. [1]

﴿صفراء ملتوية﴾: زيړ او کمزورې، د ﴿ملتوية﴾ معنی ده: کمزورې
امام نووی رحمه الله فرمائي:
﴿لسرعة نباته يكون ضعيفا، ولضعفه يكون اصفر ملتويا، ثم بعد ذلك تشتد قوته﴾ [2]

دا حديث په كتاب الايمان کښې په باب تفاضل اهل الايمان د لاندې تير شوې دې. [3]

[۶۱۹۳، ۶۱۹۴] حَدَّثَنِي مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ حَدَّثَنَا غُنْدَرٌ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ قَالَ سَمِعْتُ أَبَا إِسْحَاقَ قَالَ سَمِعْتُ النُّعْمَانَ سَمِعْتُ النَّبِيَّ -صلى الله عليه وسلم- يَقُولُ «إِنَّ أَهْوَنَ أَهْلِ النَّارِ عَذَابًا يَوْمَ الْقِيَامَةِ لَرَجُلٌ تُوضَعُ فِي أَخْمَصِ قَدَمَيْهِ جَمْرَةٌ يَغْلِي مِنْهَا دِمَاغُهُ».

د سيدنا نعمان رضي الله عنه نه روايت دې چه رسول الله ﷺ اوفرمائيل: د قيامت په ورځ باندې د عذاب په اعتبار سره د ټولو نه کم انسان هغه وی چه د هغه د قدمونو د لاندې به د اور سکروټه کيخودلې شی او د هغې په وجه باندې به: هغه مازغه خوټکيږی.

﴿احمص﴾: باطن قدميه الذي لا يصل الى الارض عند المشي [4] يعنی د قدم نه لاندې هغه حصه کومه چه په ګرځيدو کښې د زمکې نه اوچته وی، دا حديث امام بخاری رحمه الله دلته اول کرت ذکر فرمائيلې دې.

[۶۱۹۴] حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ رَجَاءٍ حَدَّثَنَا إِسْرَائِيلُ عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ عَنِ النُّعْمَانِ بْنِ بَشِيرٍ قَالَ سَمِعْتُ النَّبِيَّ صلى الله عليه وسلم يَقُولُ «إِنَّ أَهْوَنَ أَهْلِ النَّارِ عَذَابًا يَوْمَ الْقِيَامَةِ رَجُلٌ عَلَى أَخْمَصِ قَدَمَيْهِ جَمْرَتَانِ يَغْلِي مِنْهُمَا دِمَاغُهُ، كَمَا يَغْلِي الْمِرْجَلُ وَالْقُمْقُمُ».

د سيدنا نعمان بن بشير رضي الله عنه نه روايت دې چه رسول الله ﷺ اوفرمائيل: د قيامت په ورځ باندې به په جهنميانو کښې د عذاب په اعتبار د ټولو نه کم عذاب موندونکې هغه سړې وی چه د هغې د دواړو خپو د لاندې سکروټې کيخودلې شی، چه د هغې د وجې نه به د هغه دماغ خوټکيږی لکه څنګه چه کټوئ خوټکيږی.

---

[1]) عمدة القاري: ۱۹۱/۲۳، ارشاد الساري: ۵۵۸/۱۳
[2]) ارشاد الساري: ۵۵۸/۱۳
[3]) کشف الباري: كتاب الايمان: ۱۰۹/۲
[4]) ارشاد الساري: ۵۵۸/۱۳

﴿قمقم﴾ لوښي چه په هغې کښې عموما اوبه ګرمولې شی مرجل او قمقم دواړه په يو معنی کښې دی. قمقم د اوبو ګرمولو د لوښی دپاره استعمالیږی بعض روایتونو کښې واؤ په حرف عطف سره دي. المرجل والقمقم، زيات واضح دی.[1]

[٦١٩٥] حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ حَرْبٍ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ عَمْرٍو عَنْ خَيْثَمَةَ عَنْ عَدِيِّ بْنِ حَاتِمٍ أَنَّ النَّبِيَّ -صلى الله عليه وسلم- ذَكَرَ النَّارَ فَأَشَاحَ بِوَجْهِهِ فَتَعَوَّذَ مِنْهَا، ثُمَّ ذَكَرَ النَّارَ فَأَشَاحَ بِوَجْهِهِ فَتَعَوَّذَ مِنْهَا، ثُمَّ قَالَ «اتَّقُوا النَّارَ وَلَوْ بِشِقِّ تَمْرَةٍ، فَمَنْ لَمْ يَجِدْ فَبِكَلِمَةٍ طَيِّبَةٍ». [ر ١٣٤٧]

د سیدنا عدی بن حاتم رضي الله عنه روایت دې چه رسول الله ﷺ د جهنم ذکر کړې دې او مخ مبارک ئې ترې واړولو. بیا ئې د هغه نه پناه اوغوښتله. د دې نه پس فرمائی چه د دوزخ نه ځان بچ کړئ. اګر که د کهجورې په يو ټکړه باندې ولې نه وی، چه چاته دا هم ملاؤ نه شی هغه له پکار دی چه د ښه خبرې په ذریعه (د دوزخ نه ځان بچ کړی)

[٦١٩٦] حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ حَمْزَةَ حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي حَازِمٍ وَالدَّرَاوَرْدِيُّ عَنْ يَزِيدَ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ خَبَّابٍ عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ -رضي الله عنه- أَنَّهُ سَمِعَ رَسُولَ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- وَذُكِرَ عِنْدَهُ عَمُّهُ أَبُو طَالِبٍ فَقَالَ «لَعَلَّهُ تَنْفَعُهُ شَفَاعَتِي يَوْمَ الْقِيَامَةِ فَيُجْعَلُ فِي ضَحْضَاحٍ مِنَ النَّارِ، يَبْلُغُ كَعْبَيْهِ، يَغْلِي مِنْهُ أُمُّ دِمَاغِهِ». [ر ٣٦٧٢]

د سیدنا ابوسعید خدری رضي الله عنه نه روایت دې چه رسول الله ﷺ اوفرمائیل : د رسول الله ﷺ مخکښې د هغوی د تره ابو طالب ذکر کړې شوې وو، رسول الله ﷺ اوفرمائیل : ممکن ده چه د قیامت په ورځ باندې زما شفاعت د هغوی په کار راشی او هغوی د جهنم په کم اور والا حصه کښې واچولې شی، د اور دا حصه به صرف د هغوی د ګیټو پورې وی خو په دې سره به هم د هغوی مازغه خوټکیږی.

﴿ضحضاح﴾: لږې شان اوبه. دلته ترې لږ اور مراد دې، د يبلغ ضمير د ضحضاح طرف ته راجع دې.

[٦١٩٧] حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا أَبُو عَوَانَةَ عَنْ قَتَادَةَ عَنْ أَنَسٍ رضي الله عنه قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صلى الله عليه وسلم «يَجْمَعُ اللَّهُ النَّاسَ يَوْمَ الْقِيَامَةِ فَيَقُولُونَ لَوِ اسْتَشْفَعْنَا عَلَى رَبِّنَا حَتَّى يُرِيحَنَا مِنْ مَكَانِنَا. فَيَأْتُونَ آدَمَ فَيَقُولُونَ أَنْتَ الَّذِي خَلَقَكَ اللَّهُ بِيَدِهِ، وَنَفَخَ فِيكَ مِنْ رُوحِهِ، وَأَمَرَ الْمَلاَئِكَةَ فَسَجَدُوا لَكَ، فَاشْفَعْ لَنَا عِنْدَ رَبِّنَا. فَيَقُولُ لَسْتُ هُنَاكُمْ - وَيَذْكُرُ خَطِيئَتَهُ وَيَقُولُ - ائْتُوا نُوحًا أَوَّلَ رَسُولٍ بَعَثَهُ اللَّهُ. فَيَأْتُونَهُ فَيَقُولُ لَسْتُ هُنَاكُمْ - وَيَذْكُرُ خَطِيئَتَهُ - ائْتُوا إِبْرَاهِيمَ الَّذِي اتَّخَذَهُ اللَّهُ خَلِيلاً. فَيَأْتُونَهُ، فَيَقُولُ لَسْتُ هُنَاكُمْ - وَيَذْكُرُ خَطِيئَتَهُ - ائْتُوا مُوسَى الَّذِي كَلَّمَهُ اللَّهُ فَيَأْتُونَهُ فَيَقُولُ لَسْتُ هُنَاكُمْ، فَيَذْكُرُ خَطِيئَتَهُ - ائْتُوا عِيسَى فَيَأْتُونَهُ فَيَقُولُ لَسْتُ هُنَاكُمْ، ائْتُوا مُحَمَّدًا صلى الله عليه وسلم فَقَدْ غُفِرَ لَهُ مَا تَقَدَّمَ مِنْ ذَنْبِهِ وَمَا تَأَخَّرَ فَيَأْتُونِي فَأَسْتَأْذِنُ

[1]) النهاية : ٤٩١/٢

عَلَى رَبِّي، فَإِذَا رَأَيْتُهُ وَقَعْتُ سَاجِدًا، فَيَدَعُنِي مَا شَاءَ اللهُ، ثُمَّ يُقَالُ ارْفَعْ رَأْسَكَ، سَلْ تُعْطَهْ، وَقُلْ يُسْمَعْ، وَاشْفَعْ تُشَفَّعْ. فَأَرْفَعُ رَأْسِي، فَأَحْمَدُ رَبِّي بِتَحْمِيدٍ يُعَلِّمُنِي، ثُمَّ أَشْفَعُ فَيَحُدُّ لِي حَدًّا، ثُمَّ أُخْرِجُهُمْ مِنَ النَّارِ، وَأُدْخِلُهُمُ الْجَنَّةَ، ثُمَّ أَعُودُ فَأَقَعُ سَاجِدًا مِثْلَهُ فِي الثَّالِثَةِ أَوِ الرَّابِعَةِ حَتَّى مَا بَقِيَ فِي النَّارِ إِلَّا مَنْ حَبَسَهُ الْقُرْآنُ» وَكَانَ قَتَادَةُ يَقُولُ عِنْدَ هَذَا أَيْ وَجَبَ عَلَيْهِ الْخُلُودُ. [ر: ۴۲۰۶]

د سيدنا انس ﷺ نه روايت دي چه رسول الله ﷺ اوفرمائيل : الله پاک به د قيامت په ورځ باندې خلق راجمع کړي، هغه وخت به خلق وائي چه که مونږ د خپل رب په حضور کښې د چا شفاعت يو سو نو فائده منديدې شي، ممکنه ده چه الله پاک مونږته ددې حالت نه آرام راکړي.

پس خلق به سيدنا آدم عليه السلام ته راشي او عرض به کوي. هم تاسو هغه انسان يئ کوم چه الله پاک په خپل لاس باندې جوړ کړو، او په تاسو کښې ئې خپل روح او پوکلو او بيا ئې ملائکو ته حکم اوکړو نو هغوی تاسو ته سجده اوکړه، تاسو زمونږ شفاعت زمونږ د رب په نزد اوکړئ، هغوی به وائی زه د دې قابل نه يم. بيا به هغوی د خپل لغزش ذکر کوی او وائی به چه نوح عليه السلام ته لاړ شئ، هغه د ټولو نه اول رسول دې، کوم چه الله پاک راليږلي دې.

خلق به نوح عليه السلام ته راشی خو هغوی به هم دا جواب اوکړی چه زه د دې قابل نه يم. هغوی به خپل لغزش ذکر کړی او وائی به چه ابراهيم عليه السلام ته لاړ شئ، د چا نه چه الله پاک خپل خليل جوړ کړې وو خلق به هغه ته راشی خو هغوی به هم داسې وائی چه زه د دې قابل نه يم، هغوی به د خپل لغزش ذکر کوی او وائی به چه موسی عليه السلام ته لاړ شئ، د چا سره چه الله پاک کلام کړې دې.

خلق به موسی عليه السلام ته لاړ شی خو هغوی به هم وائی چه زه د دې قابل نه يم، د خپل لغزش ذکر به کوی او وائی به چه عيسی عليه السلام ته لاړ شئ.

خلق به عيسی عليه السلام ته لاړ شی خو هغوی به هم فرمائی چه زه د دې قابل نه يم، محمد ﷺ ته لاړ شئ، ځکه چه د هغوی مخکښې روستو ټول ګناهونه معاف کړې شوې دی.

پس خلق به ماته راشی، هغه وخت به زه د خپل رب نه (د شفاعت) اجازت اوغواړم او په سجده کښې به پريوځم، الله پاک چه څومره وخت غواړی ما به په سجده کښې پريږدی، بيا به اووئيلې شی چه خپل سر اوچت کړه، چه څه غواړې درکولې به شی، وايه! اوريدلې به شی، شفاعت کوه، شفاعت به دې قبلولې شی. زه به د خپل رب هغه وخت حمد او ثناء بيانوم، داسې کومه چه به ماته زما رب ښائی، بيا به زه شفاعت کوم او زما دپاره به حد مقرر کړې شی، زه به خلقو لره د جهنم نه ويستلو سره جنت ته داخل کړم، بيا به زه راشم او داسې به په سجده کښې پريوځم، دريم يا څلورم کرت...... او اوس (د شفاعت د قبليدو او د جهنم نه ويستلو سره جنت ته د بوتلو نه پس) به په جهنم کښې صرف هم هغه خلق باقی پاتې شی کوم چه قرآن منع کړې دی، يعنی مشرکين او کفار ومنافقين چه د هغوی په باره کښې دی چه هغوی ته به بخښنه نه شی کولې، چه د هغوی په جهنم کښې د اوسيدو ذکر په قرآن کريم کښې په صراحت سره موجود دې، امام قتادة به په دې موقع باندې فرمائيل چه د دې نه مراد دا دې چه په کومو خلقو باندې په جهنم کښې خلود او هميشګی ده.

[٦١٩٨] حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا يَحْيَى عَنِ الْحَسَنِ بْنِ ذَكْوَانَ حَدَّثَنَا أَبُو رَجَاءٍ حَدَّثَنَا عِمْرَانُ بْنُ حُصَيْنٍ - رضى الله عنهما - عَنِ النَّبِيِّ - صلى الله عليه وسلم - قَالَ: «يَخْرُجُ قَوْمٌ مِنَ النَّارِ بِشَفَاعَةِ مُحَمَّدٍ - صلى الله عليه وسلم - فَيَدْخُلُونَ الْجَنَّةَ، يُسَمَّوْنَ الْجَهَنَّمِيِّينَ».

د سيدنا عمران بن حصين رضي الله عنه نه روايت دي چه رسول الله ﷺ اوفرمائيل : يو جماعت به د جهنم نه دمحمد ﷺ د شفاعت په وجه باندې راوخي، او جنت ته به داخل شي، چه د هغوى نوم په جهنميين كيخودلې شي.

[٦١٩٩] حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ بْنُ جَعْفَرٍ عَنْ حُمَيْدٍ عَنْ أَنَسٍ أَنَّ أُمَّ حَارِثَةَ أَتَتْ رَسُولَ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - وَقَدْ هَلَكَ حَارِثَةُ يَوْمَ بَدْرٍ، أَصَابَهُ غَرْبُ سَهْمٍ. فَقَالَتْ يَا رَسُولَ اللَّهِ قَدْ عَلِمْتَ مَوْقِعَ حَارِثَةَ مِنْ قَلْبِي، فَإِنْ كَانَ فِي الْجَنَّةِ لَمْ أَبْكِ عَلَيْهِ، وَإِلاَّ سَوْفَ تَرَى مَا أَصْنَعُ. فَقَالَ لَهَا «هَبِلْتِ، أَجَنَّةٌ وَاحِدَةٌ هِيَ إِنَّهَا جِنَانٌ كَثِيرَةٌ، وَإِنَّهُ فِي الْفِرْدَوْسِ الأَعْلَى».

د سيدنا انس رضي الله عنه نه روايت دي چه د سيدنا حارثه رضي الله عنه مور د رسول الله ﷺ په خدمت كښې حاضره شوه، حارثه رضي الله عنه د بدر په جنګ كښې د يو نامعلوم غشى لګيدو د وجې نه شهيد شوې وو هغوى راتلو سره اووې. يا رسول الله ﷺ! تاسو ته معلومه ده چه د حارثه سره زما څومره د زړه تعلق دې، كه هغه په جنت كښې وى نو زه به په هغه باندې نه ژاړم، ګينې تاسو به اوګورئ چه زه څه كوم، رسول الله ﷺ هغوى ته اوفرمائيل : ليونئ شوې ئې؟ ولې جنت يو دې څه؟ جنتونه خو ډير دى او حارثة په الفردوس الاعلى (د جنت په اوچته درجه) كښې دې.

وَقَالَ «غَدْوَةٌ فِي سَبِيلِ اللَّهِ أَوْ رَوْحَةٌ خَيْرٌ مِنَ الدُّنْيَا وَمَا فِيهَا، وَلَقَابُ قَوْسِ أَحَدِكُمْ أَوْ مَوْضِعُ قَدَمٍ مِنَ الْجَنَّةِ خَيْرٌ مِنَ الدُّنْيَا وَمَا فِيهَا، وَلَوْ أَنَّ امْرَأَةً مِنْ نِسَاءِ أَهْلِ الْجَنَّةِ اطَّلَعَتْ إِلَى الأَرْضِ، لأَضَاءَتْ مَا بَيْنَهُمَا، وَلَمَلأَتْ مَا بَيْنَهُمَا رِيحًا، وَلَنَصِيفُهَا - يَعْنِي الْخِمَارَ - خَيْرٌ مِنَ الدُّنْيَا وَمَا فِيهَا». [ر: ٢٦٣٩، ٢٦٥٤]

دا د ماقبل سند سره متصل دې ...... او رسول الله ﷺ فرمائى چه د الله پاک په لاره كښې يو سحر او يو مابنام د دنيا وما فيها نه غوره دې او په جنت كښې ستاسو د يوې ليندۍ برابر ځائې يا د يو قدم فاصلې ځائې د دنيا وما فيها نه غوره دې او كه د جنت د زنانو نه يوه زنانه د زمكې طرف ته راښكاره شي نو ټوله فضاء به منور كړى او ټوله فضاء به د خوشبويۍ نه ډكه كړى او د هغې صرف لوپټه د دنيا وما فيها نه غوره ده.

[٦٢٠٠] حَدَّثَنَا أَبُو الْيَمَانِ أَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ حَدَّثَنَا أَبُو الزِّنَادِ عَنِ الأَعْرَجِ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - «لاَ يَدْخُلُ أَحَدٌ الْجَنَّةَ إِلاَّ أُرِيَ مَقْعَدَهُ مِنَ النَّارِ، لَوْ أَسَاءَ، لِيَزْدَادَ شُكْرًا، وَلاَ يَدْخُلُ النَّارَ أَحَدٌ إِلاَّ أُرِيَ مَقْعَدَهُ مِنَ الْجَنَّةِ، لَوْ أَحْسَنَ، لِيَكُونَ عَلَيْهِ حَسْرَةً».

د سيدنا ابوهريرة رضي الله عنه نه روايت دې چه رسول الله ﷺ اوفرمائيل : جنت ته چه څوک هم داخل شي، هغه ته به د هغه د جهنم استوګنه هم اوښودلې شي، چه كه نافرمانې دې كړې وې (نو هلته به درته ځائې ملاويدو) چه هغه نور هم زيات شكر اوكړى او څوک هم چه جهنم ته داخل

شي. هغه ته به د هغه د جنت استوګنه هم ښودلې شي چه که نه عمل دې کړې وې (نو هلته به درجه ځائې ملاؤ شوې وې، چه د هغه دپاره دا نظاره د ارمان او افسوس باعث شي.

[۶۲۰۱] حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ بْنُ جَعْفَرٍ عَنْ عَمْرٍو عَنْ سَعِيدِ بْنِ أَبِي سَعِيدٍ الْمَقْبُرِيِّ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ -رضي الله عنه- أَنَّهُ قَالَ قُلْتُ يَا رَسُولَ اللَّهِ مَنْ أَسْعَدُ النَّاسِ بِشَفَاعَتِكَ يَوْمَ الْقِيَامَةِ فَقَالَ «لَقَدْ ظَنَنْتُ يَا أَبَا هُرَيْرَةَ أَنْ لاَ يَسْأَلَنِي عَنْ هَذَا الْحَدِيثِ أَحَدٌ أَوَّلُ مِنْكَ، لِمَا رَأَيْتُ مِنْ حِرْصِكَ عَلَى الْحَدِيثِ، أَسْعَدُ النَّاسِ بِشَفَاعَتِي يَوْمَ الْقِيَامَةِ مَنْ قَالَ لاَ إِلَهَ إِلاَّ اللَّهُ. خَالِصًا مِنْ قِبَلِ نَفْسِهِ». [ر: ۹۹]

د سیدنا ابوهریره ﷺ نه روایت دې چه ما رسول الله ﷺ ته عرض اوکړو. یا رسول الله ﷺ: د قیامت په ورځ به ستا د شفاعت سعادت د ټولو نه زیات چاته نصیب کیږی؟ رسول الله ﷺ اوفرمائیل: چه اې ابوهریره! زما هم دا خیال وو چه دا حدیث به ستا نه مخکښې زما نه بل څوک نه تپوس کوی. ځکه چه د حدیث متعلق زه ستا ډیر شوق وینم. د قیامت په ورځ باندې به زما د شفاعت سعادت د ټولو نه زیات هغه چاته حاصل وی چا چه ﴿لا اله الا الله﴾ کلمه د زړه په خلوص سره وئیلې وی.

دا حدیث په کتاب العلم کښې په باب الحرص علی الحدیث د لاندې تیر شوې دې.

**د شفاعت قسمونه**: په دې حدیث کښې د رسول الله ﷺ د شفاعت ذکر دې چه کوم سړی بغیر د څه جبر او اکراه د خپل طرف نه، د زړه په خلوص سره کلمه طیبه لوستلې وی. هغه ته به د رسول الله ﷺ د شفاعت سعادت حاصل وی. رسول الله ﷺ په مختلف مواقع باندې. د مختلفو خلقو دپاره سفارش کوی، قاضی عیاض رحمه الله د هغې پنځه قسمونه لیکلې دی:

① اول شفاعت. شفاعت عظمی دې، دا هغه سفارش دې چه د هغې ذکر په حدیث الباب کښې تیر شوې دې چه په میدان حشر کښې به د حساب دپاره خلق راجمع شي او حساب به نه شروع کیږی، رسول الله ﷺ به سفارش فرمائی او د هغوی سفارش به قبولې شي. امام نووی رحمه الله فرمائی چه هم دا مقام محمود دې، چه د هغې ذکر د سورة اسراء په آیت کریمه کښې دې: ﴿عَسَىٰ أَن يَبْعَثَكَ رَبُّكَ مَقَامًا مَّحْمُودًا﴾

د سیدنا ابوهریره ﷺ په روایت کښې دی چه د رسول الله ﷺ نه د مقام محمود په باره کښې تپوس اوکړې شو نو هغوی اوفرمائیل د دې نه مراد شفاعت دې.

② ډیر خلق به بغیر د حساب نه جنت ته د رسول الله ﷺ په سفارش باندې داخلیږی، دا د شفاعت دویم صورت دې.

③ د ډیرو خلقو به حساب شوې وی او د عذاب مستحق به وی خو د رسول الله ﷺ په سفارش سره به هغوی د عذاب نه بچ کیدلو سره جنت ته لاړ شي.

④ څلورم شفاعت به د هغه خلقو دپاره وی کوم چه به د خپلې ګناه د وجې نه جهنم ته تلې وی، خو د رسول الله ﷺ په شفاعت سره به هغوی د جهنم نه راویستلې شي.

⑤ پنځم شفاعت د جنتيانو د درجاتو سره متعلق دي چه د بعض مومنانو دپاره، په جنت کښې د اوچتو درجاتو والا جنت سفارش به رسول الله ﷺ کوی او د هغوی په سفارش سره به د هغوی درجات زيات شي.(١)

[٦٢٠٢] حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ حَدَّثَنَا جَرِيرٌ عَنْ مَنْصُورٍ عَنْ إِبْرَاهِيمَ عَنْ عَبِيدَةَ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ - رضي الله عنه - قَالَ النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - «إِنِّي لَأَعْلَمُ آخِرَ أَهْلِ النَّارِ خُرُوجًا مِنْهَا، وَآخِرَ أَهْلِ الْجَنَّةِ دُخُولاً رَجُلٌ يَخْرُجُ مِنَ النَّارِ كَبْوًا، فَيَقُولُ اللَّهُ اذْهَبْ فَادْخُلِ الْجَنَّةَ. فَيَأْتِيهَا فَيُخَيَّلُ إِلَيْهِ أَنَّهَا مَلأَى، فَيَرْجِعُ فَيَقُولُ يَا رَبِّ وَجَدْتُهَا مَلأَى، فَيَقُولُ اذْهَبْ فَادْخُلِ الْجَنَّةَ. فَيَأْتِيهَا فَيُخَيَّلُ إِلَيْهِ أَنَّهَا مَلأَى. فَيَقُولُ يَا رَبِّ وَجَدْتُهَا مَلأَى، فَيَقُولُ اذْهَبْ فَادْخُلِ الْجَنَّةَ، فَإِنَّ لَكَ مِثْلَ الدُّنْيَا وَعَشَرَةَ أَمْثَالِهَا. أَوْ إِنَّ لَكَ مِثْلَ عَشَرَةِ أَمْثَالِ الدُّنْيَا. فَيَقُولُ تَسْخَرُ مِنِّي، أَوْ تَضْحَكُ مِنِّي وَأَنْتَ الْمَلِكُ». فَلَقَدْ رَأَيْتُ رَسُولَ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - ضَحِكَ حَتَّى بَدَتْ نَوَاجِذُهُ، وَكَانَ يُقَالُ ذَلِكَ أَدْنَى أَهْلِ الْجَنَّةِ مَنْزِلَةً. [٧٠٧٣]

د سيدنا عبد الله بن مسعود رضی الله عنه نه روايت دي چه رسول الله ﷺ اوفرمائيل. زه ښه پوهيږم چه د اهل جهنم نه به څوک د ټولو نه په آخر کښې راوځی. او په اهل جنت کښې به څوک د ټولو نه آخرى هغې ته داخليږی.

يو سړي به د جهنم نه پړمخي غورځيدلي راوځی. الله پاک به هغه ته وائی چه لاړ شه او جنت ته داخل شه. هغه به د جنت دروازې ته راشي. خو هغه ته به معلومه شي چه جنت ډک شوي دي. پس هغه به واپس راشي. او عرض به کوی، اې زما ربه! ما خو جنت ډک بيا موندلو، الله پاک به بيا هغه ته اوفرمائي: لاړ شه او جنت ته داخل شه. هغه به بيا راشي خو هغه ته به داسې معلوميږی چه جنت ډک شوي دي، هغه به واپس شي او عرض به کوی: اې ربه! ما جنت ډک بيا موندلو. الله پاک به ورته فرمائي: لاړ شه او جنت ته داخل شه، تاته د دنيا او د هغې نه لس چنده زيات جنت درکولې شي. هغه سړې به وائي: ته ما سره ټوقې کوې حال دا چه شهنشاه ئې! ما آوکتل چه په دې موقع باندې رسول الله ﷺ په خندا شو او د هغوی غاښونه مبارک ښکاره شو. او د هغه سړی په باره کښې به وئيلې شی چه: دا په جنت کښې ادنی جنتي دې.

[٦٢٠٣] حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا أَبُو عَوَانَةَ عَنْ عَبْدِ الْمَلِكِ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ الْحَارِثِ بْنِ نَوْفَلٍ عَنِ الْعَبَّاسِ - رضي الله عنه - أَنَّهُ قَالَ لِلنَّبِيِّ - صلى الله عليه وسلم - هَلْ نَفَعْتَ أَبَا طَالِبٍ بِشَيْءٍ. [ر: ٣٦٧٠]

د سيدنا عباس رضی الله عنه نه روايت دې چه هغوی د رسول الله ﷺ نه تپوس اوکړو، آيا تاسو ابو

---

(١) اوګورئ: نسيم الرياض فى شرح شفاء القاضى عياض. فصل فى تفصيله بالشفاعة والمقام المحمود: ١٩٣/٣-٢٢٠. وارشاد السارى ٥٦٧/١٣

طالب ته څه فائده اورسوله؟
په دې حديث كښې صرف سوال دې او رسول الله ﷺ چه كوم جواب وركړې دې هغه پكښې نشته. په كتاب الأدب كښې دا روايت تير شوې دې، په هغې كښې جواب دې.
پوره حديث دا دې: ﴿هَلْ نَفَعْتَ أَبَا طَالِبٍ بِشَيْءٍ فَإِنَّهُ كَانَ يَحُوطُكَ وَيَغْضَبُ لَكَ قَالَ نَعَمْ هُوَ فِي ضَحْضَاحٍ مِنْ نَارٍ لَوْلَا أَنَا لَكَانَ فِي الدَّرْكِ الْأَسْفَلِ مِنَ النَّارِ﴾ [1]
يعنى سيدنا عباس رضي الله عنه د رسول الله ﷺ نه تپوس اوكړو چه ابوطالب به ستاسو حفاظت كولو او ستاسو دپاره به په خلقو ته غصه كيدو او خفه كيدو نو آيا تاسو هغوى ته څه فائده اورسوله؟ رسول الله ﷺ اوفرمائيل: او! هغه به په معمولى اور كښې وى. كه زه نه وې نو هغه به د جهنم په بالكل لاندې حصه كښې وې.

## ٥٢: باب الصِّرَاطُ جِسْرُ جَهَنَّمَ

**پل صراط**: ﴿جِسر﴾ د جيم په فتحې او كسرې سره، پل ته وائى امام بخارى رحمه الله په دې باب كښې د پل صراط ذكر كړې دې كوم چه په جهنم باندې واقع دې او په هغې باندې تيريدلو سره به جنت ته داخله كولې شي، دا پل د ويښته نه زيات نرې دې او د تورې نه زيات تيره دې. [2] امام فضيل بن عياض رحمه الله نقل كړى دى چه دا پل د پنځلس زرو كالو په مسافت باندې مشتمل دې، پنځه زره كاله د كوزيدو، پنځه زره كاله د ختلو او پنځه زره كاله ئې د تلو مسافت دې. [3]

[٦٢٠٤] [4] حَدَّثَنَا أَبُو الْيَمَانِ أَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ أَخْبَرَنِي سَعِيدٌ وَعَطَاءُ بْنُ يَزِيدَ أَنَّ أَبَا هُرَيْرَةَ أَخْبَرَهُمَا عَنِ النَّبِيِّ - صلى الله عليه وسلم - . وَحَدَّثَنِي مَحْمُودٌ حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ أَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ عَطَاءِ بْنِ يَزِيدَ اللَّيْثِيِّ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ أُنَاسٌ يَا رَسُولَ اللَّهِ هَلْ نَرَى رَبَّنَا يَوْمَ الْقِيَامَةِ فَقَالَ «هَلْ تُضَارُّونَ فِي الشَّمْسِ، لَيْسَ دُونَهَا سَحَابٌ». قَالُوا لاَ يَا رَسُولَ اللَّهِ. قَالَ «هَلْ تُضَارُّونَ فِي الْقَمَرِ لَيْلَةَ الْبَدْرِ، لَيْسَ دُونَهُ سَحَابٌ». قَالُوا لاَ يَا رَسُولَ اللَّهِ. قَالَ «فَإِنَّكُمْ تَرَوْنَهُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ كَذَلِكَ، يَجْمَعُ اللَّهُ النَّاسَ فَيَقُولُ مَنْ كَانَ يَعْبُدُ شَيْئًا فَلْيَتَّبِعْهُ، فَيَتْبَعُ مَنْ كَانَ يَعْبُدُ الشَّمْسَ، وَيَتْبَعُ مَنْ كَانَ يَعْبُدُ الْقَمَرَ،

---

[1] فتح البارى ٥٤١/١١، ارشاد السارى: ٥٦٩/١٣، عمدة القارى ٢٠١/٢٣
[2] ارشاد السارى: ٥٧٠/١٣
[3] ارشاد السارى: ٥٧٠/١٣، نسيم الرياض فى شرح شفاء القاضى عياض. القسم الاول: ٢١٦/٣
[4] (تضارون) تضرون احدا او يضركم احد. بمنازعة ومضايقة. (يجيز) يمشى عليه ويقطعه. (به) اى بالجسر الذى على جهنم. قال اللنووى: مذهب اهل السنة ان رؤية المومنين ربهم ممكنة. ثم قال: فقد تضافرت الادلة من الكتاب والسنة واجماع الصحابة وسلف الامة على اثباتها فى الآخرة للمومنين. قال العينى: روى فى اثبات الرؤية حديث الباب وعن نحو عشرين صحابيا. [١٣٣/٢٣]

وَيَتْبَعُ مَنْ كَانَ يَعْبُدُ الطَّوَاغِيتَ، وَتَبْقَى هَذِهِ الأُمَّةُ فِيهَا مُنَافِقُوهَا، فَيَأْتِيهِمُ اللَّهُ فِي غَيْرِ الصُّورَةِ الَّتِي يَعْرِفُونَ فَيَقُولُ أَنَا رَبُّكُمْ. فَيَقُولُونَ نَعُوذُ بِاللَّهِ مِنْكَ، هَذَا مَكَانُنَا حَتَّى يَأْتِيَنَا رَبُّنَا، فَإِذَا أَتَانَا رَبُّنَا عَرَفْنَاهُ فَيَأْتِيهِمُ اللَّهُ فِي الصُّورَةِ الَّتِي يَعْرِفُونَ فَيَقُولُ أَنَا رَبُّكُمْ. فَيَقُولُونَ أَنْتَ رَبُّنَا، فَيَتْبَعُونَهُ وَيُضْرَبُ جِسْرُ جَهَنَّمَ». قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - «فَأَكُونُ أَوَّلَ مَنْ يُجِيزُ، وَدُعَاءُ الرُّسُلِ يَوْمَئِذٍ اللَّهُمَّ سَلِّمْ سَلِّمْ، وَبِهِ كَلاَلِيبُ مِثْلُ شَوْكِ السَّعْدَانِ، أَمَا رَأَيْتُمْ شَوْكَ السَّعْدَانِ». قَالُوا بَلَى يَا رَسُولَ اللَّهِ. قَالَ «فَإِنَّهَا مِثْلُ شَوْكِ السَّعْدَانِ، غَيْرَ أَنَّهَا لاَ يَعْلَمُ قَدْرَ عِظَمِهَا إِلاَّ اللَّهُ، فَتَخْطَفُ النَّاسَ بِأَعْمَالِهِمْ، مِنْهُمُ الْمُوبَقُ بِعَمَلِهِ وَمِنْهُمُ الْمُخَرْدَلُ، ثُمَّ يَنْجُو، حَتَّى إِذَا فَرَغَ اللَّهُ مِنَ الْقَضَاءِ بَيْنَ عِبَادِهِ، وَأَرَادَ أَنْ يُخْرِجَ مِنَ النَّارِ مَنْ أَرَادَ أَنْ يُخْرِجَ، مِمَّنْ كَانَ يَشْهَدُ أَنْ لاَ إِلَهَ إِلاَّ اللَّهُ، أَمَرَ الْمَلاَئِكَةَ أَنْ يُخْرِجُوهُمْ، فَيَعْرِفُونَهُمْ بِعَلاَمَةِ آثَارِ السُّجُودِ، وَحَرَّمَ اللَّهُ عَلَى النَّارِ أَنْ تَأْكُلَ مِنِ ابْنِ آدَمَ أَثَرَ السُّجُودِ، فَيُخْرِجُونَهُمْ قَدِ امْتُحِشُوا، فَيُصَبُّ عَلَيْهِمْ مَاءٌ يُقَالُ لَهُ مَاءُ الْحَيَاةِ، فَيَنْبُتُونَ نَبَاتَ الْحِبَّةِ فِي حَمِيلِ السَّيْلِ، وَيَبْقَى رَجُلٌ مُقْبِلٌ بِوَجْهِهِ عَلَى النَّارِ فَيَقُولُ يَا رَبِّ قَدْ قَشَبَنِي رِيحُهَا وَأَحْرَقَنِي ذَكَاؤُهَا، فَاصْرِفْ وَجْهِي عَنِ النَّارِ فَلاَ يَزَالُ يَدْعُو اللَّهَ. فَيَقُولُ لَعَلَّكَ إِنْ أَعْطَيْتُكَ أَنْ تَسْأَلَنِي غَيْرَهُ. فَيَقُولُ لاَ وَعِزَّتِكَ لاَ أَسْأَلُكَ غَيْرَهُ. فَيَصْرِفُ وَجْهَهُ عَنِ النَّارِ، ثُمَّ يَقُولُ بَعْدَ ذَلِكَ يَا رَبِّ قَرِّبْنِي إِلَى بَابِ الْجَنَّةِ. فَيَقُولُ أَلَيْسَ قَدْ زَعَمْتَ أَنْ لاَ تَسْأَلَنِي غَيْرَهُ، وَيْلَكَ ابْنَ آدَمَ مَا أَغْدَرَكَ. فَلاَ يَزَالُ يَدْعُو. فَيَقُولُ لَعَلِّي إِنْ أَعْطَيْتُكَ ذَلِكَ تَسْأَلُنِي غَيْرَهُ. فَيَقُولُ لاَ وَعِزَّتِكَ لاَ أَسْأَلُكَ غَيْرَهُ. فَيُعْطِي اللَّهَ مِنْ عُهُودٍ وَمَوَاثِيقَ أَنْ لاَ يَسْأَلَهُ غَيْرَهُ، فَيُقَرِّبُهُ إِلَى بَابِ الْجَنَّةِ، فَإِذَا رَأَى مَا فِيهَا سَكَتَ مَا شَاءَ اللَّهُ أَنْ يَسْكُتَ، ثُمَّ يَقُولُ رَبِّ أَدْخِلْنِي الْجَنَّةَ. ثُمَّ يَقُولُ أَوَلَيْسَ قَدْ زَعَمْتَ أَنْ لاَ تَسْأَلَنِي غَيْرَهُ، وَيْلَكَ يَا ابْنَ آدَمَ مَا أَغْدَرَكَ فَيَقُولُ يَا رَبِّ لاَ تَجْعَلْنِي أَشْقَى خَلْقِكَ. فَلاَ يَزَالُ يَدْعُو حَتَّى يَضْحَكَ، فَإِذَا ضَحِكَ مِنْهُ أَذِنَ لَهُ بِالدُّخُولِ فِيهَا، فَإِذَا دَخَلَ فِيهَا قِيلَ تَمَنَّ مِنْ كَذَا. فَيَتَمَنَّى، ثُمَّ يُقَالُ لَهُ تَمَنَّ مِنْ كَذَا. فَيَتَمَنَّى حَتَّى تَنْقَطِعَ بِهِ الأَمَانِيُّ فَيَقُولُ لَهُ هَذَا لَكَ وَمِثْلُهُ مَعَهُ». قَالَ أَبُو هُرَيْرَةَ وَذَلِكَ الرَّجُلُ آخِرُ أَهْلِ الْجَنَّةِ دُخُولاً. قَالَ وَأَبُو سَعِيدٍ الْخُدْرِيُّ جَالِسٌ مَعَ أَبِي هُرَيْرَةَ، لاَ يُغَيِّرُ عَلَيْهِ شَيْئًا مِنْ حَدِيثِهِ حَتَّى انْتَهَى إِلَى قَوْلِهِ «هَذَا لَكَ وَمِثْلُهُ مَعَهُ». قَالَ أَبُو سَعِيدٍ سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - يَقُولُ «هَذَا لَكَ وَعَشَرَةُ أَمْثَالِهِ». قَالَ أَبُو هُرَيْرَةَ حَفِظْتُ «مِثْلُهُ مَعَهُ». [ر: ٧٧٣]

د سيدنا ابوهريره رضي الله عنه نه روايت دې چه څه خلقو عرض اوکړو يا رسول الله ﷺ! آيا د قيامت په ورځ باندې به مونږ خپل رب ليدلې شو؟ رسول الله ﷺ اوفرمائيل : آيا د نمر په کتلو کښې څه تکليف وی چه کله په هغه باندې وريځ نه وی؟

صحابه کرامو رضي الله عنهم عرض اوکړو : نه يا رسول الله ﷺ! رسول الله ﷺ تپوس اوکړو : آيا که چه وريځ نه وی نو تاسو ته د څوارلسمې د سپوږمۍ په ليدو کښې څه تکليف وی؟ صحابه

كرامو ﷺ عرض اوكړو : نه يا رسول الله ﷺ! رسول الله ﷺ اوفرمائيل : بس به تاسو هم دغه شان په قيامت كښې خپل رب وينئ.
الله پاك به خلق راجمع كړي چه په تاسو كښې چه چا د كوم څيز عبادت كولو هغه دې هغې پسې روان شي. پس كومو خلقو چه د نمر عبادت كولو هغوى به په هغه پسې روان شي. چا چه د سپوږمۍ بندګي كوله هغوى به په هغې پسې روان شي. چا چه د بتانو بندګي كوله هغوى به په هغوى پسې روان شي. او په آخر كښې به دا امت باقي پاتې شي. په دوى كښې به د منافقانو جماعت هم وي. هغه وخت به الله پاك هغوى ته په داسې صورت كښې راشي كوم چه به هغوى پيژني نه. او الله پاك به ورته وائي زه ستاسو رب يم. خلق به وائي مونږ ستا نه په الله پاك پورې پناه غواړو مونږ دلته يو او زمونږ رب به مونږ ته راځي. چه كله زمونږ رب راشي نو مونږ به ئې اوپيژنو.
پس الله پاك به هغوى ته په داسې صورت كښې راشي كوم چه به هغوى اوپيژني. او فرمائي به چه زه ستاسو رب يم. خلق به وائي ته زمونږ رب ئې. او بيا به په هغه پسې روان شي او د جهنم پل به جوړ كړې شي. رسول الله ﷺ فرمائي چه زه به د تولو نه اولني سړې يم كوم چه به په دې پل باندې تيريږي. او هغه ورځ به د رسولانو دا دعا وي : اې الله ! سلامتي راكړه. سلامتي راكړه. او د دې پل سره به د ماركونډو د ازغنو په شان ازغي لګيدلي وي. تاسو د ماركونډو ازغي ليدلي دي؟ صحابه كرامو ﷺ عرض اوكړو : ولې نه يا رسول الله ﷺ! رسول الله ﷺ اوفرمائيل : نو هغه ازغي به د ماركونډئ د ازغو په شان وي. خو د هغې پلن والي او اوږد والي د الله پاك نه سوا چاته هم نه دې معلوم. هغه به خلق د هغوى د اعمالو مطابق اونيسي او دغه شان به په هغوى كښې بعض خو د خپل عمل د وجې نه هلاك شي او د بعض بدنونه به د اورى د دانې برابر كټ شوې وي. بيا به هغه خلاصې بيا مومي.
آخر چه كله الله پاك د خپلو بندګانو ترمينځه د فيصلې كولو نه فارغ شي او د جهنم نه د هغوى راويستل غواړي د كومو د راويستلو چه د الله پاك اراده وي. يعنې هغه خلق چا چه د ﴿ لا اله الا الله ﴾ ګواهي وركړې وي، نو الله پاك به فرشتو ته حكم وركړي چه هغوى دې داسې افراد د جهنم نه راوباسي، فرشتې به هغوى د سجدو د نخښو نه اوپيژني. ځكه چه الله پاك په اور باندې حرام كړې ده چه د ابن ادم د بدن د سجدې نخښې ختم كړي
پس فرشتې به هغه خلق راوباسي، دوى به سوزيدو سره سكاره شوې وي. بيا به په هغوى باندې اوبه اچوى كومو ته چه ﴿ ماء الحياة ﴾ (د ژوند اوبه) وئيلې شي هغه وخت به هغوى تروتازه شي. لكه د سيلاب په خځو كښې د راوړې دانې تيغ چه راوټوكيږي.
يو سړې به داسې باقي پاتې شي چه د هغه مخ به د جهنم طرف ته وي او هغه به وائي: اې زما ربه ! د دې لمبو زه سيزلې يم او د دې تيزئ زه سيزلې يم، زما مخ د اور نه بل طرف ته واړوه. هغه به هم دغه شان د الله پاك نه غوښتنه كوي، آخر به ورته الله پاك اوفرمائي : كه زه ستا دا مطالبه پوره كړم نو د بل څيز غوښتنه شروع كړې. هغه سړې به عرض اوكړي نه: ستا په عزت مې دې قسم وي د دې نه سوا به بل څيز نه غواړم!

پس د هغه مخ به د جهنم نه بل طرف ته واړولې شي. اوس به د دې نه پس هغه وائي. اې زما ربه! ما د جنت دروازې ته ورنزدې کړه. الله پاک به ورته فرمائي: تا اوس دا خبره نه وه کړې چه د دې نه سوا به بل څیز نه غواړې؟. افسوس! د ادم خویه! د څومره وعده خلافي کوې.
بیا هغه برابر هم دغه شان غوښتنه کوي. او آخر به ورته الله پاک وائي چه که زه ستا دا دعا پوره کړم نو ته به د دې نه علاوه د بل څیز غوښتنه کوې، هغه به وائي چه نه: ستا په عزت مې دې قسم وی زه به د دې نه سوا بل څیز هم نه غواړم، هغه به د الله پاک سره عهد او لوظ کوی. چه د دې نه سوا به بل څیز هم نه غواړم. پس الله پاک به هغه د جنت دروازې ته ورنزدې کړی. چه کله هغه د جنت دننه نعمتونو ته اوګوری نو د څومره مودې پورې چه الله پاک غواړي هغه سړې به هم خاموش وی. بیا به وائي، اې زما ربه! ما جنت ته داخل کړه. الله پاک به ورته فرمائي: تا نه وو وئیلي چه ته به د دې نه علاوه بل څیز نه غواړې. افسوس اې ابن ادم! ته څومره لوظ ماتونکې ئې. هغه سړې به عرض اوکړي: اې الله! ما په خپل مخلوق کښې د ټولو نه بدبخته مه جوړوه، هغه به برابر دا دعا کوی. تردې چه الله پاک به اوخاندی: چه کله الله پاک اوخاندی نو هغه ته به جنت ته د تلو اجازت هم ملاؤ شي
چه کله هغه جنت ته دننه لاړ شي نو هغه ته به اووئیلې شي چه د فلانی څیز خواهش اوکړه. پس هغه به د هغې خواهش کوی. د دې نه پس به ورته بیا اووئیلې شي چه د فلانی څیز خواهش اوکړه. پس هغه به بیا دهغې خواهش اوکړي. تردې چه د هغه خواهشات به ختم شي د دې نه پس به هغه ته اووئیلې شي چه ستا دا ټول خواهشات پوره کولې شي او هم دومره درته نور نعمتونه هم درکولې شي.
سیدنا ابوهریره رضی الله عنه فرمائي چه هغه سړې به جنت ته د ټولو نه آخری داخلیدونکې وی.
عطاء بن یزید رحمه الله فرمایی چه سیدنا ابوسعید رضی الله عنه هم دې وخت کښې د ابوهریره رضی الله عنه سره ناست وو او هغوی د ابوهریره رضی الله عنه په حدیث کښې هیڅ قسم تصحیح او تبدیلی اونکړه. خو چه کله سیدنا ابوهریره رضی الله عنه د حدیث دې ټکې ته راورسیدلو چه ستا دا ټول خواهشات پوره کولې شي او هم دومره نور نعمتونه درکولې شي: نو ابوسعید رضی الله عنه اوفرمانیل چه ما د رسول الله صلی الله علیه وسلم نه اوریدلې وو چه رسول الله صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل: ستا دا ټول خواهشات پوره کولې شي او د دې نه لس چنده نور هم درکولې شي. سیدنا ابوهریره رضی الله عنه فرمایی چه ماته تر د ﴿ومثله معه﴾ (پس هم دومره) الفاظ یاد دی.
**د سند وضاحت.** امام بخاری رحمه الله دا حدیث په دوه طریقو سره نقل کړې دې او دواړه طریق په امام زهری رحمه الله باندې تلو سره جمع کیږی.
① په اول طریق کښې د امام بخاری رحمه الله شیخ ابوالیمان (حکم بن نافع) دې. د هغوی شیخ شعیب بن ابی حمزة دې او هغوی د امام زهری رحمه الله نه نقل کوی. د امام زهری رحمه الله دوه شیوخ دی. سعید بن المسیب. او عطاء بن یزید په دې طریق کښې د امام بخاری او امام زهری رحمهما الله ترمینځه صرف دوه واسطې دی.
② دویم طریق د امام بخاری رحمه الله شیخ محمود بن غیلان دې، د هغوی شیخ عبدالرزاق بن

همام او د هغوی شیخ معمر بن راشد دي او معمر. د امام زهری رحمه الله نه نقل کوی او امام زهری رحمه الله د عطاء بن یزید نه روایت کوی، په دې طریق کښې: امام زهری رحمه الله یو شیخ دې، په اول طریق کښې دوه وو، دغه شان په دې طریق کښې: امام بخاری او امام زهری ترمینځه درې واسطې دی، په اول طریق کښې دوه واسطې وې، د حدیث الفاظ هم د دې دویم طریق دی. (۱)

**قوله: ﴿وبه كلاليب مثل شوك السعدان﴾:** ﴿كلاليب﴾: د ﴿كلوب﴾ (بروزن تنور) جمع ده. زنبور. ازغنو والا، اوسپنه، ازغې، د ﴿به﴾ ضمیر د جسر طرف ته راجع دې. **سعدان:** (د سین په فتحې سره) دا یو ازغنو والا بوټئ دې (مونږ ورته مارکونډئ وایو) ﴿شوك﴾: ازغنه. ابن عربی رحمه الله فرمائی چه د دنیا نفسانی خواهشات به د هغه ازغنو په صورت کښې ظاهر شی چه د هغې طرف ته په حدیث کښې اشاره او کړې شوه. ﴿خفت النار بالشهوات﴾ (۲)

**قوله: ﴿منهم الموبق بعمله ومنهم المخردل﴾:** ﴿موبق﴾ د باب افعال نه د اسم مفعول صیغه ده، هلاک کړې شوې سړې، ﴿المخردل﴾: زخمی شوې سړې چه د هغې اندامونه د اوری د دانې برابر واړهٔ واړهٔ غوڅ شوې وی، پس علامه کرمانی رحمه الله فرمائی:

﴿المخردل: المصروع، وما تقطع اعضاؤه ای جعل کل قطعة منه بمقدار خردلة﴾ (۳) د دې نه هغه مومن مراد دې کوم چه گناهگار وی

﴿امتحشوا﴾: دا د ماضی مجهول صیغه ده او معروفه هم استعمالیږی، سوزیدلې به وی.

علامه ابن اثیر رحمه الله لیکی: ﴿ای احترقوا، والمحش: احتراق الجلد، وظهور العظم﴾ (۴)

**قوله: ﴿قد قشبني ريحها﴾:** ﴿قشب﴾ معنی تکلیف ورکول او د بد لګیدو ده، یعنی د دې هوا ماته تکلیف راکوی، **ذکاء:** ګرمی، تاؤ. (۵)

**قوله: ﴿فيأتيهم الله في الصورة التي يعرفون﴾:** په دې حدیث کښې دی چه د قیامت په ورځ به الله پاک په خپل صورت کښې راځی. صورت د جسم د لوازماتو نه دې او الله پاک د جسم او د لوازم نه پاک او منزه دې، دې صفاتو ته متشابهات وائی او د اهل علم په دې کښې اختلاف دې. دلته په دې باندې نسبتا تفصیلی بحث کولې شی!

**مسئله د الله پاک د صفاتو:** په قرآن او حدیث کښې د الله پاک دپاره ډیر داسې اوصاف دی چه

---

(۱) فتح الباری ۵۴۳/۱۱، ارشاد الساری: ۵۷۰/۱۳، عمدة القاری ۲۰۳/۲۳

(۲) ارشاد الساری: ۵۷۳/۱۳

(۳) شرح الکرمانی: ۶۱/۲۳، وعمدة القاری: ۲۰۶/۲۳

(۴) النهایة: ۶۳۸/۲

(۵) د لغاتو د تحقیق دپاره اوګورئ: شرح الکرمانی: ۶۱/۲۳-۶۲

د هغې په خپله حقيقي معنى كښې د الله پاک دپاره ثابتول صحيح نه دى ځكه چه هغه د جسم او د جسم د لوازم نه دى او الله پاک د جسم او د هغې د هر قسم لوازم نه پاک او منزه دې. مثلا : يد. وجه. ساق. ذات. استواء على العرش. فوق. تحت. وغيره. ډير داسې الفاظ په قرآن او حديث كښې د الله پاک دپاره استعمال شوې دى.
دا ټول كلمات په خپله ظاهرى او حقيقي معنى باندې محمول كول بعض خلقو د الله پاک دپاره ثابت منلې دې او دا عقيده ئې اختيار كړې ده چه د الله پاک دپاره هم دغه شان يد. وجه او ساق دى ځنګه د مخلوق دپاره دى، دا يو باطل عقيده ده كوم ته چه فرقه مجسمه او مشبه اختيار كړې ده. (١)
د دې بالمقابل، يوې بلې ډلې، د الله پاک دا اوصاف او صفات رد كړى دى. د هغې د اصل نه انكار كولو سره، د دې اوصافو مجازى معنى بيان كړې دى او وائى چه د دې اوصاف هم دا مجازى معنى يقينى طور باندې مراد دى؛ دې فرقې ته معتزله او معطله وئيلې شى. (٢)
**د اهل سنت مسلک:** د اهل السنت والجماعت مسلک دا دې چه د الله پاک دپاره دا اوصاف په قرآن او حديث كښې ثابت دى او الله پاک د جسم، د جسم د لوازمو او د مخلوق سره د هر قسم مشابهت نه پاک او منزه دې، لكه چه د الله پاک ارشاد دې : ﴿ليس كمثله شئ﴾ خو د دې اجماعى عقيدې نه پس د نصوص او صفات په باره كښې تعبير او تشريح يو اختلاف په اهل السنت والجماعت كښې موندلې شى چه هغې لره تاسو په درې مسلكونو كښې تقسيم كولې شئ :
① **اول مسلک** : د جمهور علماء اهل سنت مسلک دا دې چه دا نصوص د هغه متشابهاتو نه دى. چه د هغې معنى صرف الله پاک ته معلومه ده او مونږ هغې لره د ثابت منلو نه پس. د هغې حقيقي يا مجازى معنى بيانول نه متعين كوو، دا متشابه المعنى هم دى او متشابه الكيفية هم دى. ﴿ومايعلم تاويله الا الله﴾ يعنى د دې تفسير صرف الله پاک ته معلوم دې، دا مسلک د تفويض دې او هم دا د جمهور متقدمين اهل السنت او ائمه اربعه مسلک دې. (٣)
② **دويم مسلک** : دا دې چه دا نصوص په خپل حقيقت باندې دى، د الله پاک طرف ته نسبت كولو سره. د الله پاک شايان شان چه كومه حقيقي معنى د دې كيدې شى هم هغه مراد دى، د دې كيفيت، كنه او صورت به څه وى؟ دا معلومه نه ده، يعنى دا نصوص او صفات معلوم المعنى او متشابه الكيفية دى، هم د دې مسلک وضاحت كښې مشهور مقوله وئيلې شوې ده. ﴿الاستواء معلوم، والكيف مجهول، والسؤال عنه بدعة ....او ..... الاستواء غير مجهول، والكيف غير

---

(١) اوګورئ : شرح المقاصد : ٣٤/٣، المقصد الخامس فى الالهيات، فصل فى التنزيهات، واصول فخر الاسلام البزدوى : ٩٤/١، والمسامرة : ٤٤-٥٥
(٢) كشف الاسرار عن اصول فخر الاسلام : ٩٤/١-٩٥، ومجموع فتاوى ابن تيمية، كتاب الاسماء والصفات، ٢٨/٥، ٤٧٠، والتمهيد لابن عبدالبر : ١٤٥/٧
(٣) اوګورئ : تحفة الاحوذى، ابواب صفة الجنة، باب ما جاء فى خلود اهل الجنة : ٣٣٧/٣

معقول، والایمان به واجب ﴾ د امام مالک او د هغوی د استاذ ربیعه بن ابی عبدالرحمن ﷺ طرف ته دا مقوله منسوب ده. (۱)

په حقیقت کښې دا مسلک هم مسلک د تفویض دې خو په دویمه مرحله کښې. د اول مسلک قائلین د دې صفاتو په باره کښې د شروع نه د تفویض خبره کوی چه د دې حقیقی یا مجازی معنی مونږ ته نه ده معلوم، صرف د الله پاک به علم کښې ده. د دوم مسلک قائلین وائی چه دا په حقیقی معنی کښې دی، اوس دالله پاک طرف ته ددې نسبت کولو سره، چه ددې کنه او حیثیت به څه وی، هغوی وائی چه مونږ ته نه دې معلوم. د دې علم صرف الله پاک ته دې.

**دریم مسلک**: د اهل سنت والجماعت دریم مسلک دا دې چه د صفات او نصوص داسې مجازی معنی بیان کړې شی کومې چه د الله پاک شایان شان وی او لفظ کښې د هغه معنی د مراد کولو ګنجائش وی، مثلاً د ید نه قدرت، د وجه نه ذات او استواء نه استیلاء مراد اخستلې کیدې شی. دې مسلک ته مسلک تاویل وائی او اکثر متاخرین اهل سنت هم دا مسلک اختیار کړې دې. خو چه کومه مجازی معنی مراد کولې شی هغه یقینی او قطعی نه وی او نه هغوی په هغې باندې د جزم عقیده ساتی، بلکه هغه د ظن او احتمال په درجه کښې وی. یعنی د ید تاویل په قدرت سره کولو باندې وائی چه دا د تاویل او احتمالی تفسیر په درجه کښې دی. د ید نه یقینی او حتمی طور په نصوص کښې قدرت مراد دې. د دې عقیده هغوی نه ساتی. (۲)

پس علامه ابن الهمام په خپل مشهور کتاب المسایرة فی العقائد المنجیة فی الاخرة کښې لیکی:

﴿ انه تعالی استوی علی العرش: مع الحکم بانه لیس کاستواء الاجسام علی الاجسام من التمکن والمماسة، والمحاذاة، بل بمعنی یلیق به هو سبحانه اعلم به، وحاصله وجوب الایمان بانه استوی علی العرش مع نفی التشبیه، فاما کون المراد انه استیلاءه علی العرش فامر جائز الارادة، اذ لا دلیل علی ارادته عیناً، فالواجب علینا ما ذکرنا، واذا خیف علی العامة عدم فهم الاستواء اذا لم یکن بمعنی الاستیلاء الا باتصال ونحوه من لوازم الجسمیة وان لا ینفوه، فلا بأس بصرف فهمهم الا الاستیلاء، فانه قد ثبت اطلاقه وارادته لغة ....... وعلی نحو ما ذکرنا کل ما ورد مما ظاهره الجسمیة فی الشاهد کالاصبع، والقدم، والید، فان الید وکذا الاصبع وغیره صفة له تعالی لا بمعنی الجارحة، بل علی وجه یلیق به وهو سبحانه اعلم به، قد نؤول الید

---

(۱) اوګورئ: مجموع فتاوی ابن تیمیة. کتاب الاسماء والصفات: ۲۳/۵

قال ابن عبدالبر فی التمهید: ۱٤٥/۷: أهل السنة مجمعون علی الإقرار بالصفات الواردة کلها فی القرآن والسنة والإیمان بها وحملها علی الحقیقة لا علی المجاز إلا أنهم لا یکیفون شیئا من ذلک.

هم دغه شان اوګورئ: دار العلوم دیوبند ...... مدرسة فکریة. باب التوحید: ٥٤٥. (مقالة سماحة العلامة مولانا محمد تقی العثمانی حفظه الله ورعاه)

(۲) فتح الباری، کتاب التوحید، باب ما یذکر فی الذات: ۱۶۹/۱۳

والاصبع بالقدرة، والقهر لما ذكرنا من صرف فهم العامة من الجسمية وهو ممكن ان يراد، ولا يجزم بارادته خصوصا على قوز اصحابه انها من المتشابهات وحكم المتشابه انقطاع رجاء معرفة المراد منه في هذا الدار والا لكان قد علم) [1]

يعنی مونږ په استواء على العرش باندې ايمان راوړو. د دې خبرې د حکم سره چه د الله پاک استواء د بدنونو سره استوا. کولو په شان نه ده چه په يو مکان کښې کيني. د مس کولو يا مقابل کيدلو معنی لري. بلکه د داسې معنی په اعتبار سره دې کومه چه د الله پاک د شان لائق وی. به کرم چه د هغه نه سوا ځوک هم نه پوهيږي. حاصل دا چه په استواء على العرش باندې ايمان راوړل د تشبيه د نفی سره واجب دی. او د دې نه مراد استيلاء هم اخستلې کيدې شی خو په دې هيڅ دليل نشته او چونکه دعام خلقو په باره کښې ويره وه چه هغوی چرته د استواء نه هغه معنی مراد نه کړی کومه چه د جسم په لوازم کښې ده. په دې وجه د هغوی فکر او سوچ د جسميت د طرف نه د اړولو دپاره د استواء على العرش معنی استيلاء راخی. هم دا مسلک به د هغه ټولو نصوصو او الفاظو په باره کښې اختيارولې شی کوم چه ظاهرا د جسم دپاره استعماليږي. لکه اصبع. قدم او يد دی. پس يد د الله پاک صفت دې خو د جارحة په معنی کښې نه دې بلکه د الله پاک طرف ته نسبت کولو سره چه کومه شايان شان معنی ده هم هغه مراد ده. د يد او اصبع تاويل په قدرت او قهر سره هم کړې شوې دې دا امکانی معنی خو کيدې شی خو يقينی اوختمی معنی نه ده. خاص کر زمونږ د اصحابو (يعنی اشاعره او ماتريدية) په نزد دا د متشابهاتو نه دی او د متشابهاتو حکم دا دې چه په دې دنيا کښې د دې د مراد يقينی طور د معرفت اميد نه شی کيدلې. ګيني د دې معنی به ټولو ته معلومه وې.

بهر حال دا درې واړه مسلکونه د اهل سنت والجماعت دی.

دا ټول په دې خبره باندې متفق دی چه دا نصوص او اوصاف د الله پاک دپاره ثابت دی.

دا ټول په دې متفق دی چه د انسانانو او مخلوق طرف ته نسبت کولوسره چه د دې الفاظو کومه معنی ده. د الله پاک طرف ته نسبت کولو سره هغه معانی نه دی مراد.

دا ټول په دې خبره باندې متفق دی چه الله پاک د جسم، لوازم جسم او مخلوق سره د هر قسم مشابهت نه بالکل پاک او منزه دې. (ليس كمثله شئ وهو السميع العليم) [2]

مولانا عبدالحی لکهنوی رحمه الله دويم مسلک ته د اکثر علماء او دريم مسلک ته د اکثر متاخرين متکلمين مذهب وئيلې دې، پس مولانا په خپله يو فتوی کښې ليکی:

په دې باب کښې د علماء کرامو څو مسلکونه دی. يو مسلک د تاويل چه استواء په معنی د استيلاء او يد په معنی د قدرت او وجه په معنی د ذات ده. وعلى هذا القياس او هم دا مختار

---

[1] المسايرة فى العقائد المنجية فى الاخرة : ٤٤-٤٨

[2] سورة الشورى : ١١

مسلک دي د متاخرين متکلمينو. دويم مذهب : تشابه فی المعنی وفی الکيفية. دريم مسلک معلوم المعنی متشابه الکيفية او حق په دي کښې مسلک ثالث دي او هم دا مذهب دې د صحابه کرامو او تابعين او ائمه مجتهدينو او د محدثينو او محققيينو فقهاء کرامو او اصولينو [١]

**راجح او محتاط مسلک** : خو حقيقت دا دې چه اکثر علماء کرامو اول مسلک اختيار کړې دې کوم چه په مسلک تفويض سره مشهور دې او هم هغه مسلک د ټولو نه زيات اسلم او محتاط مذهب دې :

★..... پس امام ترمذی رحمه الله په سنن ترمذی کښې فرمائی:

﴿قَدْ رُوِیَ عَنِ النَّبِیِّ -صلی الله علیه وسلم- رِوَایَاتٌ کَثِیرَةٌ مِثْلُ هَذَا مَا یُذْکَرُ فِیهِ أَمْرُ الرُّؤْیَةِ أَنَّ النَّاسَ یَرَوْنَ رَبَّهُمْ وَذِکْرُ الْقَدَمِ وَمَا أَشْبَهَ هَذِهِ الأَشْیَاءَ وَالْمَذْهَبُ فِی هَذَا عِنْدَ أَهْلِ الْعِلْمِ مِنَ الأَئِمَّةِ مِثْلِ سُفْیَانَ الثَّوْرِیِّ وَمَالِکِ بْنِ أَنَسٍ وَابْنِ الْمُبَارَکِ وَابْنِ عُیَیْنَةَ وَوَکِیعٍ وَغَیْرِهِمْ أَنَّهُمْ رَوَوْا هَذِهِ الأَشْیَاءَ ثُمَّ قَالُوا تُرْوَی هَذِهِ الأَحَادِیثُ وَنُؤْمِنُ بِهَا وَلاَ یُقَالُ کَیْفَ وَهَذَا الَّذِی اخْتَارَهُ أَهْلُ الْحَدِیثِ أَنْ تُرْوَی هَذِهِ الأَشْیَاءُ کَمَا جَاءَتْ وَیُؤْمَنُ بِهَا وَلاَ تُفَسَّرُ وَلاَ تُتَوَهَّمُ وَلاَ یُقَالُ کَیْفَ وَهَذَا أَمْرُ أَهْلِ الْعِلْمِ الَّذِی اخْتَارُوهُ وَذَهَبُوا إِلَیْهِ﴾ [٢]

يعنی : د الله پاک د ليدو په باره کښې داسې ډير روايات راغلی دی چه خلق به (په آخرت کښې) د الله پاک ديدار کوی، هم دغه شان د قدم وغيره الفاظ هم راغلې دی. په دې سلسله کښې سفيان ثوری، امام مالک بن انس، سفيان بن عيينة او وکيع وغيره حضرات ائمه اهل علم مسلک دا دې چه د دې احاديثو دې روايت اوکړې شی. په دې باندې دې ايمان راوړې شی او د کيفيت په باره کښې دې تپوس اونکړې شی چه د دې صورت او کيفيت به څه وی. حضرات محدثينو هم دا مسلک اختيار کړې دې چه دا احاديث څنګه راغلې دی، هم هغه شان دې په دې باندې ايمان راوړلې شی، د هغې دې نه تفسير اوکړې شی نه دې تجسيم لره موهم معنی مراد کړې شی او نه دا اوونيلې شی چه د دې کيفيت به څه وی، د اهل علم هم دا مسلک دې.

★..... د سفيان به عيينة او امام محمد رحمه الله نه منقول دی:

﴿ ما وصف الله تبارك وتعالى بنفسه في كتابه، فقراءته تفسيره، ليس لاحد ان يفسره بالعربية ولا بالفارسية﴾ [٣]

★..... امام وکيع بن الجراح رحمه الله فرمائی :

---

[١]) مجموعة الفتاوی عبدالحی : ١٠/٣٩

[٢]) سنن الترمذی، ابواب صفة الجنة، باب ما جاء فی خلود اهل الجنة، رقم الحديث : ٢٥٥٧

[٣]) کتاب الاسماء والصفات للبيهقی : ٣١٤. (قلت : وروی الدارقطنی بسنده عن سفيان بن عيينة لما سئل عن أحاديث الصفات فقال: هی کما جاءت نقر بها ونحدث بلا کيف (ق ٥ /٢). فالمراد من قول سفيان الأول إنما هو نفی الکيفية فقط)

(ادرکت اسماعیل بن ابی خالد، وسفیان، ومسعرا یحدثون بهذه الاحادیث ولا یفسرون شیئا) [1]
یعني ما اسماعیل بن ابی خالد، سفیان ثوری او مسعر اولیدل چه هغوی به دا احادیث بیانول خو د یو څیز به ئې هم تفسیر نه کولو.

★... هم د دې مسلک په باره کښې علامه طیبي رحمه الله فرمائی: هذا هو المذهب المعتمد، وبه یقول السلف الصالح [2] یعني هم دا مذهب قابل اعتماد دې، او سلف صالحین هم د دې قائل دی.

★ او علامه ابن الجوزي رحمه الله فرمائی:

(أکثر السلف یمتنعون من تأویل مثل هذا ویمرونه کما جاء وینبغي أن یراعی في مثل هذا الامرار اعتقاد أنه لا تشبه صفات الله صفات الخلق ومعنی الامرار عدم العلم بالمراد منه مع اعتقاد التنزیه) [3]
یعني حضرات سلف کښې اکثرو په داسې صفاتو کښې د تاویل نه منع کوله او څنګه چه راغلی وو او څنګه دا وارد دی، هم دغه شان به ئې هغه تیرول، د دې عقیدې د رعایت سره چه د الله پاک اوصاف د مخلوق د اوصافو سره مشابهت نه ساتی، د امرار یعني تیرولو معنی دا ده چه د تنزیه عقیده ساتلو سره چه د هغې د مراد په باره کښې لا علم کیدل.
څو اهم خبرې: د اهل حق په دې درې وارو مسلکونو باندې د ځان پوهه کولو نه پس څو خبرې د صفات متشابهات په باره کښې په ذهن کښې اوساتئ!

★... په دې درې مذاهبو کښې د چا مسلک ته هم بالکلیه غلط او باطل نه شی وئیلې کیدې، په قرآن او حدیث کښې د هر یو مسلک دپاره د تعبیر بهر حال ګنجائش دې، خو اول مسلک اسلم او محتاط دې او هم هغه مسلک د جمهور علماء او ائمه اربعه دې لکه چه واضح کړې شوې ده.

★ ... په عالم اسلام کښې، د یوې اوږدې مودې نه په دې مسئله کښې مناظرې او بحثونه کیږې او ډیر کرته د دواړو طرفونو نه غلو او تجاوز هم کیدلو او دا سلسله تر اوسه پورې جاري ده حال دا چه ذکر کړې شوې متفق علیه امور نه پس دا اختلاف څه دومره وزنی حیثیت نه لري او تقریبا د تعبیر اختلاف پاتې کیږي خو د مناظرې ماحولونو د دې نه یو هوا جوړه کړې ده اود طرفین د بعض حضراتو د طرف نه غلو کیدله.
پس اکثر متاخرین متکلمین اهل سنت د تاویل مسلک اختیار کړې دې چه چرته عوام دې صفاتو لره په عام حقیقی معنو کښې اخستلو سره د مجسمه مسلک اختیار نه کړی، دې ځائې پورې خو صحیح ده خو د دې مسلک بعض غالی حضرات، حق صرف هم دا مسلک ګنړي، بلکه د متقدمین مسلک تفویض لره هم په مسلک تاویل کښې د اچولو سعی کوی او وائی چه د هغوی مسلک په تاویل اجمالی باندې مشتمل دې حال دا چه متقدمین

[1]) التمهید لابن عبدالبر: ١٤٩/٧
[2]) فتح الباري، کتاب التوحید، باب قول الله تعالی: ولتصنع علی عیني: ٤٧٨/١٣
[3]) فتح الباري، ٤٠/٦، کتاب الجهاد، باب الکافر یقتل المسلم، رقم الحدیث: ٢٨٦۶

مطلقا تاویل نه کوی. نه اجمالي، نه تفصیلي. بلکه تفویض خپلوي.
**د سلفي حضراتو تشدد ★** ... دویم طرف ته سلفي حضرات او غیر مقلدین تاویل کونکي په حق باندې نه ګڼړي او هغوی ته معطله وئیلو سره هغوی ګمراه ګڼړي. په دې سلسله کښې هغوی د مقالو او مضامینو یو انبار لګولې دي او داسې محسوسیږي چه د تعبیري اختلاف دا اجتهادي مسئله د عالم اسلام د ټولو نه لویه مسئله ده. د فتح الباري چه کومه نوې نسخه راغلې ده. په هغې کښې چه حافظ ابن حجر رحمه الله په صفات متشابهات کښې کوم کوم ځائې د علماء او ائمه کرامو تاویلي اقوال نقل کړي دي. په سلفي اهل قلم زهیر شاویش صاحب. په هغه مقاماتو باندې ډیر په اهتمام سره حاشیه لګوي چه دا تاویل صحیح نه دې او خپل مسلک ذکر کوي، مثلاً حافظ ابن حجر رحمه الله دلته په کتاب الرقاق کښې د یو حدیث تشریح کولو سره فرمائیلي دي چه د الله پاک د رضا مطلب. د الله پاک د خیر اراده کول دي او د سخط الله مطلب د شر اراده کول دي. بعض علماء کرامو د الله پاک د رضا او د سخط دا مطلب بیان کړې دې. په دې باندې دا سلفي لیکي:

﴿الواجب اثبات هاتين الصفتين : الرضاء والسخط كباقي الصفات على الحقيقة اللائقة بالله عزوجل من غير تكييف ولا تمثيل، ولا تحريف ولا تعطيل، هذا الواجب في باب الاسماء والصفات جميعا كما قال سبحانه وتعالى : ﴿ليس كمثله شئ وهو السميع البصير﴾ وسد باب التاويل الذى هو في الحقيقة نفي وتعطيل﴾ [١]

د تاویل په باره کښې دا وئیل چه هغه په حقیقت کښې د الله پاک د صفاتو نفي ده او صفاتو لره معطل کول دي، دا تشدد، غلو او د حقیقت خلاف خبره ده. د اهل سنت والجماعت متاخرین متکلمین چه کوم د تاویل مسلک اختیار کړې دې هغه حضرات د صفاتو نفي هر ګز نه کوي بلکه د هغې چه کومې محتمل معاني کیدې شي په هغې کښې یو معنی ظني د تفسیر او مراد په طور بیانوي چه د دې صفت دا معنی مراد اخستلې کیدې شي. لکه چه مخکښې تیر شوې دي. او معتزله او جهمیه په تاویلي معنی باندې جزم کوي. شیخ الاسلام مولانا حسین احمد مدني رحمه الله لیکي:

اعتراض واردیږي چه څنګه د اشاعره ډله، ماتریدیه تاویلات کوي، معتزله او جهمیه هم تاویلات کوي. په دوی او هغوی کښې څه فرق دې؟ د دې جواب دا دې چه د دواړو په تاویلاتو کښې فرق دې چه اشاعره او ماتریدیه په تاویلاتو باندې جزم نه کوي. په خلاف د معتزله وغیره چه هغوی تاویلات کوي او وائي چه بس دلته هم دا معنی مراد ده. [٢]

د صحابه کرامو او جلیل القدر تابعین نه په مختلف آیتونو او نصوص کښې تاویل منقول دې چه د هغې تفصیل وړاندې په کتاب التوحید کښې راځي. په دې وجه دا وئیل چه مسلک تاویل مسلک تعطیل دې صحیح خبره نه ده. علامه ابن الجوزي رحمه الله د دفع شبه

---

[١] فتح الباري : كتاب الرقاق، باب من نوقش الحساب عذب : ٤٩١/١١
[٢] معارف مدنية : ٨٤٧

التشبیه په نوم باندې مستقل یو کتاب لیکلې دی. چه په هغې کښې په هغه خلقو باندې تنقید کړې شوې دې کوم چه د تاویل مطلق انکار کوي. هم دې صاحب وړاندې په کتاب التوحید کښې د تفویض او تاویل دواړو مسلکونو ته باطل وئیلې دی. (۱) ظاهره ده. دا غلو، افراط او د حد نه تجاوز دی.

★ او په آخرې خبره باندې داسې ځان پوهه کړئ چه پورته چه کوم درې مسلکونه بیان شوې دی، هغه درې واړه صحیح دی. علامه ابن تیمیه، علامه ابن قیم او د هغوی په اتباع کښې د عربو سلفیانو او د هندوستان غیر مقلدینو دویم مسلک اختیار کړې دې. خو ډیر کرته هغوی په تفصیل کښې تلو سره داسې عبارتونه او الفاظ راوړی. چه د هغې نه د تجسیم او تشبیه بوئی راځی. (۲)

د صفات باری تعالی مسئله چونکه نازک او حساس ده. په دې وجه یو داسې لفظ، داسې کلمه او عبارت نه دې استعمالول پکار کومه چه تجسیم لره موهم وی. حکیم الامت مولانا اشرف علی تهانوی رحمه الله لیکی:

نن صبا بعض خلق چه په هغوی باندې ظاهریت غالب دې چه کله د متشابهاتو تفسیر کوی نو په درجه د اجمال کښې خو په مسلک سلف باندې اوسیږی. خو څلور غلطئ کوی:

① یو دا چه د تفسیر ظنی د قطعیت مدعی شی.

② دویمه غلطی داده چه کله تفصیل کوی نو عنوانات موهمه تکییف او تجسیم اختیاروی.

③ دریمه غلطی دا چه مسلک د تاویل ته علی الاطلاق باطل وئیلو سره چه زړګونو اهل حق تضلیل کوی. حال دا چه د اهل حق سره د هغوی د مسلک د صحت دپاره احادیث هم بناء دی او قواعد شرعیه هم

④ څلورمه غلطی دا کوی چه تفسیر بالاستقرار خو د سلف په مسلک ګڼړی او نورو تفاسیر لغویه ته د خلف تاویل وائی. حال دا چه د ټولو مساوی کیدل پورته ظاهر شو (۳)

علامه ابن تیمیة او علامه ابن القیم رحمه الله په دې مسئله کښې متشدد وو. خو سلفی حضرات او غیر مقلدین صرف خپل مسلک حق ګڼړی هم دې ته د اهل السنت مسلک وائی. باقی حضرات هغوی ګمراهان او په باطله ګڼړی

جمهور اهل سنت چه په هغوی کښې صحابه کرام، تابعین او جلیل القدر ائمه کرام داخل دی لره ګمراه ګنړل خپله لویه ګمراهی ده.

﴿اللهم ارنا الحق حقا وارزقنا اتباعه وارنا الباطل باطلا وارزقنا اجتنابه﴾ (آمین)

---

۱) پس شاویش صاحب لیکی: ﴿وطریقی التفویض والتاویل فی باب الصفات مسلکان باطلان. اما اهل السنة والجماعة فیقابلون نصوص الاسماء والصفات بالایمان بها، والتسلیم والاثبات والتنزیه علی الکمال الاثق به. (فتح الباری، کتاب التوحید، باب قول النبی صلی الله علیه وسلم: لاشخص اغیر من الله) : ۴۹۲/۱۳)

۲) اوګورئ: فیض الباری، کتاب استتابة المرتدین : ۴۷۳-۴۷۴

۳) امداد الفتاوی : ۱۱۱/۶

# ٥٣: باب في الحَوض

وَقَوْلِ اللّٰهِ تَعَالَى (إِنَّا أَعْطَيْنَاكَ الْكَوْثَرَ). وَقَالَ عَبْدُاللّٰهِ بْنُ زَيْدٍ قَالَ النَّبِي -صلى الله عليه وسلم- «اصْبِرُوا حَتَّى تَلْقَوْنِي عَلَى الْحَوْضِ». [ر ٢٠١٥]

**د حوض مفهوم**: د حوض په باره کښې څو خبرې په ذهن کښې اوساتئ:

① حوض په عربئ ژبه کښې تقريبا هم په دې مفهوم کښې استعمال شوې دې په کومه معنى کښې چه په اردو کښې مستعمل دې، د حوض نه مراد حوض کوثر دې. چه په هغې سره به رسول اللهﷺ خپل امتيانو ته په ميدان حشر کښې اوبه ورکوى، دا په حقيقت کښې په ميلونو خور شوې وسيع او عريض تالاب دې، چه د هغې نه به په جنت کښې د کوثر نهر نه صفا او شيرين او خوږې اوبه وى کومې چه به د پيو نه زياتې سپينې، د شهدو نه زياتې خوږې او د مشکو نه زياتې خوشبودارې وى، لکه چه وړاندې په حديث الباب کښې راځى.

**د حوض کوثر ثبوت**: معتزله وغيره د حوض کوثر انکار کوى، خو په احاديثو کښې د دې ثبوت تقريبا تواتر معنوى ته رسيدلې دې، قاضى عياض رحمه الله د پنخويشتو صحابه کرامو رضي الله عنهم نه د حوض روايات نقل کړى دى. (١) امام نووى رحمه الله په دې باندې د دريو اضافه کړې ده. (٢) او حافظ ابن حجر رحمه الله د پنځوسو نه زياتو صحابه کرامو رضي الله عنهم نه د حوض روايات نقل فرمائيلې دى او ليکلې ئې دى چه د بعض علماء کرامو په باره کښې معلومه شوې ده چه هغوى دا تعداد زياتولو سره اتيا ته رسولې دې. (٣)

د رسول اللهﷺ نه علاوه د نورو انبياء عليهم السلام دپاره هم په حديث کښې د حوض ذکر ملاويږى، پس په سنن ترمذى کښې د سيدنا سمرة بن جندب رضي الله عنه مرفوع روايت دې، ﴿ان لكل نبى حوضا﴾ يعنى د هر نبى حوض دې. امام ترمذى رحمه الله فرمائى چه د دې په موصول او مرسل کيدو کښې اختلاف دې او د دې مرسل طريق زيات صحيح دې. (٤)

ابن ابى الدنيا د امام حسن بصرى رحمه الله نه په صحيح سند سره روايت نقل کړې دې، په هغې کښې دى: ﴿إن لكل نبي حوضًا وهو قائم على حوضه بيده عصا يدعو من عرف من أمته ألا وإنهم يتباهون أيهم أكثر تبعًا وإني لأرجو أن أكون أكثرهم تبعًا﴾

يعنى بيشک د هر نبى به يو حوض وى، هغه به د دې حوض په خوا کښې ولاړ وى، په لاس کښې به ئې همسا وى، په خپلو امتيانو کښې به چه څوک پيژنى، هغوى به راغواړى او حضرات انبياء عليهم السلام به د خپل امتونو په کثرت باندې فخر کوى او زما اميد دې چه زما امت

---

(١) فتح البارى: ٥٧٠/١١، وشرح مسلم للنووى. باب اثبات الحوض، ٥٣/١٦

(٢) شرح مسلم للنووى، کتاب الفضائل، باب [illegible]ت حوض نبينا صلى الله عليه وسلم ٥٣/١٥

(٣) فتح البارى: ٥٧٠/١١

(٤) سنن الترمذى، کتاب صفة القيامة، باب ما جاء [illegible] صفة الحوض: ٦٢٨/٤، رقم الحديث: ٢٤٤٣

به په تعداد كښې د ټولو نه زيات وي
خو دا روايت هم مرسل دې (١) خو د رسول الله ﷺ حوض كوثر به د ټولو نه ممتاز او بيل وي په هغې كښې به د جنت د نه نه اوبه راځي
**حوض به د صراط نه مخكښې وى كه روستو** ③ دريم بحث دا دې چه د حوض كوثر نه به د اوبو څكولو دا سلسله كله وي. د پل صراط نه پس يا كه د هغې نه مخكښې؟
★ ... د ډيرو علماء كرامو خيال دې چه دا به صراط نه اول وي، خلقو به د قبرونو نه راوځي نو هغوى به په ميدان حشر تنده لګيدلې وي او لا به د صراط مرحله نه وي راغلې، هغه وخت به دا حوض وي او رسول الله ﷺ به په ميدان محشر كښې د صراط نه مخكښې مخكښې خلقو باندې د هغې خوږې اوبه څكوي.
د علامه قرطبى او حافظ ابن حجر رحمهم الله وغيره رجحان هم دې طرف ته دې او مشهوره هم دا ده. (٢)
★ ... خو نور ډير علماء كرام فرمائى چه دا به د صراط نه پس وى. د امام بخارى رحمه الله د صنيع نه هم دا معلوميږي، څكه چه امام بخارى رحمه الله د باب الصراط نه پس باب فى الحوض قائم كړې دې. (٣)
د سيدنا انس رضي الله عنه د يو روايت نه د دې تائيد كيږي كوم چه امام ترمذى رحمه الله نقل كړې دې چه ما رسول الله ﷺ ته درخواست اوكړو چه زما دپاره به په قيامت كښې سفارش كوئ، رسول الله ﷺ ورته اقرار اوكړو، سيدنا انس رضي الله عنه تپوس اوكړو زه به تاسو كوم خائې ګورم؟ رسول الله ﷺ اوفرمائيل: ته د ټولو نه اول ما په صراط باندې اوګوره، ما اووې: كه هلته ملاقات اونشو نو بيا؟ رسول الله ﷺ اوفرمائيل: ميزان سره، ما عرض اوكړو: كه هلته ملاؤ نه شو نو بيا؟ رسول الله ﷺ اوفرمائيل: حوض كوثر سره. (٤)
په دې حديث كښې صراحت دې چه د حوض په زمانه كښې به پل صراط موجود وى!
بعض حضراتو وئيلي دى چه د رسول الله ﷺ به دوه حوضونه وى يو په ميدان حشر كښې او د صراط نه مخكښې او دويم په جنت كښې دننه او د دواړو نوم حوض كوثر دې.
د علامه عينى رحمه الله رجحان هم دې طرف ته دې. (٥)
**يو اشكال او د هغې جواب:** په حوض قبل الصراط باندې اشكال كړې شوې دې چه د ميدان حشر او جنت ترمينځه وى چه په هغې باندې به پل صراط خوړولې شى او د حوض اوبه به د جنت د نهر كوثر نه راځي، كه حوض د صراط نه مخكښې تقسيم كړې شى نو د جنت او

(١) ارشاد السارى: ۵۷۸/۱۴
(٢) فتح البارى: ۵۶۸/۱۱
(٣) فتح البارى: ۵۶۷/۱۱، ارشاد السارى: ۵۷۷/۱۳
(٤) سنن الترمذى، كتاب صفة القيامة، باب ما جاء فى شان الصراط، ۶۲۱/٤، رقم الحديث: ۶٤۳۳
(٥) عمدة القارى: ۲۰۹/۲۳

حوض ترمينځه به جهنم وی. د جنت د نهر نه به اوبه حوض ته څنګه راځي؟ [1]
خو د دې جواب دا ورکړې کیدې شي چه د آخرت امور نه په دنیا باندې قیاس کیدې شي او نه د هغې مناظرو صحیح او حقیقي تصویر مونږ په دنیا کښې ذهن کولې شو. په دې وجه دا څه بعیده نه ده چه د جهنم د حائل کیدو باوجود به د جنت د نهر نه به حوض کوثر کښې اوبه راځي چه د الله پاک د قدرت عجائبات بیشمیره دی.

**د ترجمة الباب وضاحت:** ④ امام بخاری رحمه الله په دې باب کښې تقریبا نورلس احادیث ذکر فرمائیلي دی. چه په هغې کښې د رسول الله ﷺ د حوض ذکر دې. په ترجمة الباب کښې د سورة کوثر اول ایت ﴿إِنَّا أَعْطَيْنَاكَ الْكَوْثَرَ﴾ ذکر فرمائیلي دې. د دې تفسیر په کتاب التفسیر کښې تیر شوې دې. د کوثر نه خیر کثیر مراد کړې شوې دې. او په حوض کوثر سره هم د دې تفسیر کړې شوې دې [2] امام بخاری رحمه الله په باب الحوض کښې آیت ذکر کولو سره، دې دویم تفسیر طرف ته اشاره اوفرمائیله.
په ترجمة الباب کښې چه ئې د عبدالله بن زید کوم تعلیق ذکر فرمائیلې دې. هغه امام بخاری رحمه الله په کتاب المغازی کښې په باب غزوة حنین کښې موصولا نقل کړې دې.
د باب په ډیرو روایتونو کښې راځي چه د رسول الله ﷺ خواله به حوض کوثر ته یو جماعت راځي. رسول الله ﷺ به هغوی اوپیژني او په هغوی باندې به د حوض نه اوبه څکل غواړي چه په مینځ کښې به ئې بندیز راشي. رسول الله ﷺ به اوفرمائي چه دا خو زما صحابه او زما امتیان دی. هغوی ته به اوونیلې شي چه هغوی ستاسو نه روستو خپل دین بدل کړې وو.
د دوی نه کوم خلق مراد دی، بعض وئیلې دی چه د رسول الله ﷺ د زماني منافقان مراد دی. خو صحیح قول دا دې چه د هغوی نه د رسول الله ﷺ نه پس مرتد کیدونکي خلق مراد دی چه هغوی سره سیدنا صدیق اکبر رضي الله عنه جهاد کړې وو. [3]

[٦٢٠٥] [4] حَدَّثَنِي يَحْيَى بْنُ حَمَّادٍ حَدَّثَنَا أَبُو عَوَانَةَ عَنْ سُلَيْمَانَ عَنْ شَقِيقٍ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ عَنِ النَّبِيِّ -صلى الله عليه وسلم- «أَنَا فَرَطُكُمْ عَلَى الْحَوْضِ».

---

[1] قال القسطلاني: وأما قول صاحب التذكرة والصحيح أن له -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- حوضين أحدهما في الموقف قبل الصراط. والآخر داخل الجنة وكلاهما يسمى كوثراً متعقب بأن الكوثر نهر داخل الجنة وماؤه يصب في الحوض، ويطلق على الحوض كوثر لكونه يمدّ منه. وفي حديث أبي ذر عند مسلم أن الحوض يشخب فيه ميزابان من الجنة. وقد سبق أن الصراط جسر جهنم، وأنه بين الجنة والموقف فلو كان الحوض دونه لحالت النار بينه وبين الماء الذي يصب من الكوثر في الحوض والله أعلم. (ارشاد الساري: ٥٧٨/١٣)
[2] كشف الباري، كتاب التفسير: ٧٦٠
[3] فتح الباري: ٤٦٩/١١، وعمدة القاري: ١٦٥/٢٣
[4] اخرجه مسلم في الفضائل، باب: اثبات حوض نبينا صلى الله عليه وسلم وصفاته، رقم: ٢٢٩٧
(فرطكم: هو الذي يتقدم الواردين ليصلح لهم الحياض والدلاء ونحوها من امور الاستقاء. (ليرفعن) يظهرهم الله تعالى لي حتى اراهم. (ليختلجن) يعدل بهم عن الحوض ويجذبون من عندي. (دوني) قبل ان يصلوا الي. (ما احدثوا) من بدعة وفتنة ومعصية.

د سيدنا عبدالله بن مسعود رضي الله عنه نه روايت دي چه رسول الله ﷺ اوفرمائيل : زه به ستاسو نه مخکښې په حوض باندې موجود يم

﴿فرط﴾ هغه سړی ته وائی چه د اوبو د بندوبست پراوخاني لپاره دقافلې نه مخکښې ځی

وَحَدَّثَنِي عَمْرُو بْنُ عَلِيٍّ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ جَعْفَرٍ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنِ الْمُغِيرَةِ قَالَ سَمِعْتُ أَبَا وَائِلٍ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ -رضي الله عنه- عَنِ النَّبِيِّ -صلى الله عليه وسلم- قَالَ «أَنَا فَرَطُكُمْ عَلَى الْحَوْضِ، وَلَيُرْفَعَنَّ رِجَالٌ مِنْكُمْ ثُمَّ لَيُخْتَلَجُنَّ دُونِي فَأَقُولُ يَا رَبِّ أَصْحَابِي. فَيُقَالُ إِنَّكَ لاَ تَدْرِي مَا أَحْدَثُوا بَعْدَكَ». تَابَعَهُ عَاصِمٌ عَنْ أَبِي وَائِلٍ. وَقَالَ حُصَيْنٌ عَنْ أَبِي وَائِلٍ عَنْ حُذَيْفَةَ عَنِ النَّبِيِّ -صلى الله عليه وسلم-. [۲۲۴۲]

د سيدنا عبدالله رضي الله عنه نه روايت دي چه رسول الله ﷺ اوفرمائيل : زه به په حوض باندې ستاسو نه مخکښې موجود يم. او ستاسو نه به څه خلق زما مخې ته راوستلې شي. بيا به هغوی زما د مخې نه لرې کړې شي نو زه به وايم چه اې زما ربه! دا زما ملګری دی. خو ماته به اووئيلې شي چه هغوی ستاسو نه روستو څه نوې څيزونه ايجاد کړې وو

﴿يختلجن﴾ : د جمع مذکر مجهول صيغه ده او په آخره کښې ئې نون ثقيلة دې يعنی بيا به زمانه رابنکلې شی. بيل به کړې شي!

يقال : اختلجه منه : اذا نزعه منه او جذبه : رابنکل. لرې کول

﴿تباعه عاصم﴾ : د اعمش متابعت عاصم اوکړو. حارث بن ابی اسامة هغه موصولا نقل کړې دي [۱] او حصين بن عبدالرحمن واسطی دا روايت د ابو وائل په واسطې سره د سيدنا حذيفه رضي الله عنه نه نقل کړې دی او مسلم د حصين روايت موصولا نقل کړې دې [۲]

[۲۲۰۶] [۳] حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا يَحْيَى عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ حَدَّثَنِي نَافِعٌ عَنِ ابْنِ عُمَرَ -رضى الله عنهما- عَنِ النَّبِيِّ صلى الله عليه وسلم- قَالَ «أَمَامَكُمْ حَوْضٌ كَمَا بَيْنَ جَرْبَاءَ وَأَذْرُحَ».

د سيدنا عبدالله بن عمر رضي الله عنهما نه روايت دي چه رسول الله ﷺ اوفرمائيل : ستاسو مخې ته حوض دې، په دومره فاصله باندې څومره چه، د جرباء او ازرح ترمينځه ده

﴿جرباء﴾ : د شام يو کلې دې

﴿اذرح﴾ : اذرح هم د شام د يو کلی نوم دې د دواړو ترمينځه تقريبا د ديرشو ورځو مسافت دې [۱]

---

[۱] عمدة القاری : ۲۱۱/۲۳. وارشاد الساری : ۵۷۹/۱۳

[۲] عمدة القاری : ۲۱۱/۲۳. وارشاد الساری : ۵۷۹/۱۳

[۳] اخرجه مسلم فی الفضائل، باب : اثبات حوض نبينا صلی الله عليه وسلم وصفاته، رقم : ۲۲۹۹

(جرباء واذرح) موضعان، وقيل : هما قريتان بالشام والمراد : ضرب المثل لبعد اقطار الحوض وسعته، فکان يشبه ذلک بالبلاد التی ينای بعضها عن بعض، ولا يراد بذلک حقيقة المسافة بين هذه البلاد.

[٢٢٠٧] حَدَّثَنِي عَمْرُو بْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا هُشَيْمٌ أَخْبَرَنَا أَبُو بِشْرٍ وَعَطَاءُ بْنُ السَّائِبِ عَنْ سَعِيدِ بْنِ جُبَيْرٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ - رضي الله عنه - قَالَ الْكَوْثَرُ الْخَيْرُ الْكَثِيرُ الَّذِي أَعْطَاهُ اللَّهُ إِيَّاهُ. قَالَ أَبُو بِشْرٍ قُلْتُ لِسَعِيدٍ إِنَّ أُنَاسًا يَزْعُمُونَ أَنَّهُ نَهَرٌ فِي الْجَنَّةِ. فَقَالَ سَعِيدٌ النَّهَرُ الَّذِي فِي الْجَنَّةِ مِنَ الْخَيْرِ الَّذِي أَعْطَاهُ اللَّهُ إِيَّاهُ. [ر: ٤٦٨٢]

د سيدنا ابن عباس رضی الله عنهما نه روايت دې چه د ﴿الكوثر﴾ نه مراد ډير زيات خير (خير كثير) دى، كوم چه الله پاک رسول الله صلى الله عليه وسلم ته وركړې دې، ابو بشر وائى چه ما سعيد بن جبير رحمه الله ته اووې چه د بعض خلقو خيال دې چه ﴿كوثر﴾ په جنت كښې يو حوض دې نو هغوى اووې چه كوم نهر په جنت كښې دې، هغه هم د دې خير (نيكئ) يوه حصه ده، كوم چه الله پاک رسول الله صلى الله عليه وسلم ته وركړې دې.

[٢٢٠٨] (٢) حَدَّثَنَا سَعِيدُ بْنُ أَبِي مَرْيَمَ حَدَّثَنَا نَافِعُ بْنُ عُمَرَ عَنِ ابْنِ أَبِي مُلَيْكَةَ قَالَ قَالَ عَبْدُ اللَّهِ بْنُ عَمْرٍو قَالَ النَّبِيُّ صلى الله عليه وسلم «حَوْضِي مَسِيرَةُ شَهْرٍ، مَاؤُهُ أَبْيَضُ مِنَ اللَّبَنِ، وَرِيحُهُ أَطْيَبُ مِنَ الْمِسْكِ، وَكِيزَانُهُ كَنُجُومِ السَّمَاءِ، مَنْ شَرِبَ مِنْهَا فَلَا يَظْمَأُ أَبَدًا».

د سيدنا عبدالله بن عمرو رضی الله عنهما نه روايت دې چه رسول الله صلى الله عليه وسلم اوفرمائيل: زما حوض به د يوې مياشتې په مسافت باندې خور وى، د هغې اوبه به د پيو نه زياتې سپينې وى او د هغې خوشبوئى به د مشكو نه زياته ښه وى، او د هغې ګلاسونه به د آسمان د ستورو په شان وى، كوم انسان چه د هغې نه يو كرت اوڅكى، بيا به كله هم تږې نه شى.

﴿كيزان﴾: د كوز جمع ده: ګلاس، كوزه.

[٢٢٠٩] (٣) حَدَّثَنَا سَعِيدُ بْنُ عُفَيْرٍ قَالَ حَدَّثَنِي ابْنُ وَهْبٍ عَنْ يُونُسَ قَالَ ابْنُ شِهَابٍ حَدَّثَنِي أَنَسُ بْنُ مَالِكٍ - رضي الله عنه - أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - قَالَ «إِنَّ قَدْرَ حَوْضِي كَمَا بَيْنَ أَيْلَةَ وَصَنْعَاءَ مِنَ الْيَمَنِ، وَإِنَّ فِيهِ مِنَ الأَبَارِيقِ كَعَدَدِ نُجُومِ السَّمَاءِ».

د سيدنا انس بن مالک رضی الله عنه نه روايت دې چه رسول الله صلى الله عليه وسلم اوفرمائيل: زما د حوض

---

[1]) عمدة القارى: ٢١٢/١٣، وارشاد السارى: ٥٨٠/١٣

[2]) اخرجه مسلم فى الفضائل، باب: اثبات حوض نبينا صلى الله عليه وسلم وصفاته، رقم: ٢٢٩١
(مسيرة): اى طول حافته تحتاج الى السير هذه المدة. (كيزانه) جمع كوز. والتشبيه بالنجوم من حيث الكثرة والضياء. (يظماء) يعطش.

[3]) اخرجه مسلم فى الفضائل، باب: اثبات حوض نبينا صلى الله عليه وسلم وصفاته، رقم: ٢٣٠٣
(قدر حوضى) طول شاطئة: (ايلة) مدينة كانت عامرة، وهى بطرف البحر الاحمر من ناحية الشام. (صنعاء) البلد المعروف فى اليمن. (الاباريق) جمع ابريق.

اوږدوالي به دومره وي څومره چه د ايله او يمن ښار ترمينځه مسافت دي او هلته به په دومره لوښي تعداد کښې پيالې وي څومره چه د آسمان د ستورو تعداد دي.

﴿اباريق﴾ د ابريق جمع ده، د چاندئ پياله، لوښي.

[۲۲۱۰] (۱) حَدَّثَنَا أَبُو الْوَلِيدِ حَدَّثَنَا هَمَّامٌ عَنْ قَتَادَةَ عَنْ أَنَسٍ عَنِ النَّبِيِّ - صلى الله عليه وسلم - . وَحَدَّثَنَا هُدْبَةُ بْنُ خَالِدٍ حَدَّثَنَا هَمَّامٌ حَدَّثَنَا قَتَادَةُ حَدَّثَنَا أَنَسُ بْنُ مَالِكٍ عَنِ النَّبِيِّ - صلى الله عليه وسلم - قَالَ «بَيْنَمَا أَنَا أَسِيرُ فِي الْجَنَّةِ إِذَا أَنَا بِنَهَرٍ حَافَتَاهُ قِبَابُ الدُّرِّ الْمُجَوَّفِ قُلْتُ مَا هَذَا يَا جِبْرِيلُ قَالَ هَذَا الْكَوْثَرُ الَّذِى أَعْطَاكَ رَبُّكَ . فَإِذَا طِينُهُ - أَوْ طِيبُهُ - مِسْكٌ أَذْفَرُ» . شَكَّ هُدْبَةُ. [ر: ۴۶۸۰]

د سيدنا انس بن مالک رضی الله عنه نه روايت دي چه رسول الله ﷺ اوفرمائيل چه زه په جنت کښې روان اوم چه زه يو نهر ته اورسيدم، د هغې په دواړو غاړو باندې د ډډو ملغلرو گنبدونه جوړ شوي وو، ما تپوس اوکړو، اې جبرئيل دا څه دي؟ هغوی اووئيل: کوثر دې، کوم چه ستاسو رب تاسو ته درکړې دي، ما اوکتل چه د هغې خاوره يا د هغې خوشبوئي د مشکو په شان وه، د هدبه شک وو (چه خاوره ئې وئيلې وه که خوشبوئي)

﴿حافتاه﴾: د حافة نه غاړه مراد ده. ﴿قباب﴾: د قبة جمع ده، گنبد ته وائي.

﴿الدر المجوف﴾ داسې ملغلره کومه چه د دننه خالي وي. ﴿اذفر﴾: تيز خوشبودار.

ابن فارس رحمه الله فرمائي ﴿ذفر﴾ د بوئي تيز والی ته وائي.

[۲۲۱۱] (۲) حَدَّثَنَا مُسْلِمُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ حَدَّثَنَا وُهَيْبٌ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيزِ عَنْ أَنَسٍ عَنِ النَّبِيِّ - صلى الله عليه وسلم - قَالَ «لَيَرِدَنَّ عَلَىَّ نَاسٌ مِنْ أَصْحَابِى الْحَوْضَ ، حَتَّى عَرَفْتُهُمُ اخْتُلِجُوا دُونِى ، فَأَقُولُ أُصَيْحَابِى . فَيَقُولُ لاَ تَدْرِى مَا أَحْدَثُوا بَعْدَكَ» .

دحضرت انس رضی الله عنه نه روايت دي چه نبی کريم صلی الله عليه وسلم اوفرمائيل: زما ملگری به حوض له زما مخې ته راوستلې شي ترديې چه کله زه هغوی اوپيژنم، بيا به هغوی زما د مخې نه لرې کړې شي، زه به په دې باندې اووائم چه دا خو زما ملگري وو، ليکن ما ته به اووئيلې شي چه تا ته پته نشته چه دوی ستاسو نه پس کوم نوی څيزونه ايجاد کړي وو

[۲۲۱۲] حَدَّثَنَا سَعِيدُ بْنُ أَبِى مَرْيَمَ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ مُطَرِّفٍ حَدَّثَنِى أَبُو حَازِمٍ عَنْ سَهْلِ بْنِ سَعْدٍ قَالَ قَالَ النَّبِىُّ - صلى الله عليه وسلم - «إِنِّى فَرَطُكُمْ عَلَى الْحَوْضِ ، مَنْ مَرَّ

---

(۱) اخرجه مسلم في الفضائل، باب: اثبات حوض نبينا صلى الله عليه وسلم وصفاته، رقم: ۲۳۰۴

(اصحابى) اى ممن كان يصاحبنى، (اختلجوا) جذبوا وابعدوا، (ما احدثوا) من معصية توجب حرمانهم وابعادهم من الحوض.

(۲) اخرجه مسلم في الفضائل، باب: اثبات حوض نبينا صلى الله عليه وسلم وصفاته، رقم: ۲۲۹۰، ۲۲۹۱

عَلَى شَرِبَ، وَمَنْ شَرِبَ لَمْ يَظْمَأْ أَبَدًا، لَيَرِدَنَّ عَلَى أَقْوَامٌ أَعْرِفُهُمْ وَيَعْرِفُونِي، ثُمَّ يُحَالُ بَيْنِي وَبَيْنَهُمْ».

د سیدنا سهل بن سعد رضی الله عنه نه روایت دي چه رسول الله ﷺ اوفرمائیل زه به به حوض باندې ستاسو نه مخکښې موجود یم. کوم سړې هم چه زما طرف ته راتیر شی هغه به د هغې اوبه څکی. اوڅوک چه دهغې اوبه څکی هغه به بیاکله هم نه تږې کیږی. اوهلته به داسې خلق راشی کوم چه په زه پیژنم اوهغوی به ما پیژنی. خو بیا به زما او د هغوی مینځ کښې حجاب راشی

قَالَ أَبُو حَازِمٍ فَسَمِعَنِي النُّعْمَانُ بْنُ أَبِي عَيَّاشٍ فَقَالَ هَكَذَا سَمِعْتَ مِنْ سَهْلٍ فَقُلْتُ نَعَمْ. فَقَالَ أَشْهَدُ عَلَى أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ لَسَمِعْتُهُ وَهُوَ يَزِيدُ فِيهَا «فَأَقُولُ إِنَّهُمْ مِنِّي. فَيُقَالُ إِنَّكَ لَا تَدْرِي مَا أَحْدَثُوا بَعْدَكَ. فَأَقُولُ سُحْقًا سُحْقًا لِمَنْ غَيَّرَ بَعْدِي». [۶۶۴۳]

دا تعلیق نه دې. بلکه د ماقبل سره متصل دې. ابو حازم (سلمه بن دینار) فرمائی چه دا حدیث ما د نعمان بن ابی عیاش نه واوریدلو او وې وئیل چه آیا تاسو د سیدنا سهل رضی الله عنه نه هم دغه شان اوریدلې وو، ما اووې او. هغوی اوفرمائیل چه زه ګواهی ورکوم چه ما د سیدنا ابوسعید خدری رضی الله عنه نه دا حدیث اوریدلې وو. او هغوی به په دې حدیث کښې اضافه کوله (یعنی دا چه رسول الله ﷺ به فرمائی) چه زه به وایم چه دا خو زما نه دی. رسول الله ﷺ ته به اووئیلې شی چه تاسو ته معلومه نه ده چه هغوی ستاسو نه روستو څه نوې څیزونه ایجاد کړې وو. زه به په دې باندې وایم چه لرې شئ، لرې شئ چا چه زما نه پس بدلون کړې وو

وَقَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ سُحْقًا بُعْدًا، يُقَالُ سَحِيقٌ بَعِيدٌ، وَأَسْحَقَهُ أَبْعَدَهُ.

سیدنا ابن عباس رضی الله عنهما فرمائی چه د ﴿ سحقا ﴾ معنی د لرې والی ده. دا لفظ په سورة الملک آیت نمبر ۱۱ کښې دې ﴿ فَسُحْقًا لِأَصْحَابِ السَّعِيرِ ﴾ او د سحیق معنی د بعید راځی. دا په سورة حج آیت نمبر ۳۱ کښې دی: ﴿ أَوْ تَهْوِي بِهِ الرِّيحُ فِي مَكَانٍ سَحِيقٍ ﴾ سحقة واسحقه مجرد او د باب افعال دواړو نه د دې معنی د لرې کولو راځی! ابن ابی حاتم دا تعلیق موصولا نقل کړې دې.

[۱] دلته چونکه په حدیث کښې د ﴿ سحقا ﴾ لفظ راغلې وو. د دې مناسبت د وجې نه امام بخاری رحمه الله د عبدالله بن عباس رضی الله عنهما دا تشریح دلته نقل اوفرمائیله.

[۶۲۱۳، ۶۲۱۴] وَقَالَ أَحْمَدُ بْنُ شَبِيبِ بْنِ سَعِيدٍ الْحَبَطِيُّ حَدَّثَنَا أَبِي عَنْ يُونُسَ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ سَعِيدِ بْنِ الْمُسَيَّبِ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ أَنَّهُ كَانَ يُحَدِّثُ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صلى الله عليه وسلم قَالَ «يَرِدُ عَلَى يَوْمَ الْقِيَامَةِ رَهْطٌ مِنْ أَصْحَابِي فَيُحَلَّئُونَ عَنِ الْحَوْضِ فَأَقُولُ يَا رَبِّ أَصْحَابِي. فَيَقُولُ إِنَّكَ لَا عِلْمَ لَكَ بِمَا أَحْدَثُوا بَعْدَكَ، إِنَّهُمُ ارْتَدُّوا عَلَى أَدْبَارِهِمُ الْقَهْقَرَى».

د سعید بن المسیب نه روایت دې چه سیدنا ابوهریره رضی الله عنه به حدیث بیانولو چه رسول الله ﷺ اوفرمائیل: د قیامت په ورځ به زما د صحابه کرامو رضی الله عنهم نه یو جماعت په ما باندې

[۱] فتح الباری: ۵۷۶/۱۱، وعمدة القاری: ۲۲۷/۲۳، وارشاد الساری: ۵۸۱/۱۳

پیش کړې شی، بیا به هغوی د حوض نه لرې کړې شی، زه به عرض اوکړم، اې زما ربه! دا خو زما صحابه وو. الله پاک به فرمائی چه ته نه معلومه نه ده چه هغوی ستا نه روستو څه نوې څیزونه ایجاد کړې وو. دا خلق په شا باندې واپس شوې وو.
د احمد بن شبیب دا تعلیق ابو عوانة موصولا نقل کړې دې.[1]

[٦٢١٤] حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ صَالِحٍ حَدَّثَنَا ابْنُ وَهْبٍ قَالَ أَخْبَرَنِي يُونُسُ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنِ ابْنِ الْمُسَيَّبِ أَنَّهُ كَانَ يُحَدِّثُ عَنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ -صلى الله عليه وسلم- أَنَّ النَّبِيَّ -صلى الله عليه وسلم- قَالَ «يَرِدُ عَلَى الْحَوْضِ رِجَالٌ مِنْ أَصْحَابِي فَيُحَلَّئُونَ عَنْهُ فَأَقُولُ يَا رَبِّ أَصْحَابِي. فَيَقُولُ إِنَّكَ لاَ عِلْمَ لَكَ بِمَا أَحْدَثُوا بَعْدَكَ، إِنَّهُمُ ارْتَدُّوا عَلَى أَدْبَارِهِمُ الْقَهْقَرَى».

سعید بن المسیب رحمه الله د رسول الله ﷺ د صحابه کرامو رضی الله عنهم نه نقل کولو سره فرمائی چه رسول الله ﷺ اوفرمائیل په حوض باندې به زما د ملګرو یو جماعت راوستلې شی. بیا به هغوی د هغې نه لرې کړې شی. زه به عرض اوکړم، اې الله! دا خو زما صحابه دی، الله پاک به اوفرمائی چه تاته معلومه نه ده چه هغوی ستا نه روستو څه نوې څیزونه ایجاد کړې وو دوی په خپلو پوندو (د اسلام نه) واپس شوې وو.

﴿قهقری﴾: په پوندو باندې شاته تلل.

وَقَالَ شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ كَانَ أَبُو هُرَيْرَةَ يُحَدِّثُ عَنِ النَّبِيِّ - صلى الله عليه وسلم - فَيُجْلَوْنَ. وَقَالَ عُقَيْلٌ فَيُحَلَّئُونَ.

شعیب چه د زهری نه کوم روایت نقل کړې دې، په هغې کښې ﴿ فَيُجْلَوْنَ ﴾ الفاظ دی او هم دغه شان د عقیل بن خالد په روایت کښې د ﴿ فَيُحَلَّؤُونَ ﴾ الفاظ دی.

﴿يحَلَّؤُونَ﴾: د ﴿تحلئة﴾ نه دې، د دې معنی د منع کولو او د لرې کولو ده. وئیلې شی ﴿حلاءه عن الماء﴾: هغه ئې د اوبو نه منع کړو. او ﴿يجلون﴾ مجهول صیغه ده، د ﴿جلاء﴾ معنی ده، لرې کول، ﴿يجلون﴾، هغوی به لرې کړې شی.[2]
د شعیب دا تعلیق امام ذهلی موصلا نقل کړې دې.[3]

وَقَالَ الزُّبَيْدِيُّ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ عَلِيٍّ عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ بْنِ أَبِي رَافِعٍ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ -صلى الله عليه وسلم-.

زبیدی، د زبید طرف ته منسوب دې، چه یوه قبیله ده او د دې نه مراد محمد بن الولید بن عامر دې، سیدنا ابورافع رضی الله عنه د رسول الله ﷺ ازاد کړې غلام وو، د هغوی نوم اسلم وو، عبیدالله د هغوی ځوئې وو، په دې سند کښې درې تابعین دی: امام زهری رحمه الله، د هغوی

[1] فتح الباری: ٥٧٦/١١، وعمدة القاری: ٢١٧/٢٣، وارشاد الساری: ٥٨٠/١٣
[2] عمدة القاری: ٢١٨/٢٣
[3] فتح الباری: ٥٧٧/١١، وارشاد الساری: ٥٨٦/١٣

شيخ محمد بن علي او د هغوی شيخ عبيدالله رحمه الله، درې واړه تابعين دي. [۱] امام دارقطني رحمه الله دا تعليق موصولا نقل کړې دي. [۲]

[۶۲۱۵] حَدَّثَنِي إِبْرَاهِيمُ بْنُ الْمُنْذِرِ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ فُلَيْحٍ حَدَّثَنَا أَبِي قَالَ حَدَّثَنِي هِلَالُ عَنْ عَطَاءِ بْنِ يَسَارٍ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صلى الله عليه وسلم قَالَ «بَيْنَا أَنَا قَائِمٌ إِذَا زُمْرَةٌ، حَتَّى إِذَا عَرَفْتُهُمْ خَرَجَ رَجُلٌ مِنْ بَيْنِي وَبَيْنِهِمْ فَقَالَ هَلُمَّ. فَقُلْتُ أَيْنَ قَالَ إِلَى النَّارِ وَاللَّهِ. قُلْتُ وَمَا شَأْنُهُمْ قَالَ إِنَّهُمُ ارْتَدُّوا بَعْدَكَ عَلَى أَدْبَارِهِمُ الْقَهْقَرَى. ثُمَّ إِذَا زُمْرَةٌ حَتَّى إِذَا عَرَفْتُهُمْ خَرَجَ رَجُلٌ مِنْ بَيْنِي وَبَيْنِهِمْ فَقَالَ هَلُمَّ. قُلْتُ أَيْنَ قَالَ إِلَى النَّارِ وَاللَّهِ. قُلْتُ مَا شَأْنُهُمْ قَالَ إِنَّهُمُ ارْتَدُّوا بَعْدَكَ عَلَى أَدْبَارِهِمُ الْقَهْقَرَى. فَلَا أُرَاهُ يَخْلُصُ مِنْهُمْ إِلَّا مِثْلُ هَمَلِ النَّعَمِ».

د سيدنا ابوهريره رضي الله عنه نه روايت دې چه رسول الله ﷺ اوفرمائيل: زه به (په حوض باندې) ولاړ يم چه يو جماعت به مخې ته راشي او چه کله ئې زه اوپيژنم نو يو سړې به زما او د هغوی ترمينځه راوځي او وائي به چه دلته راشئ او زه به وايم چه چرته؟ هغه به وائي، د اور طرف ته، زه به تپوس اوکړم، دا څنګه خلق دي. هغه به وائي چه دا خلق ستاسو نه روستو په خپلو پوندو باندې واپس شوې وو، بيا به يوه بله ډله زمونږ مخې ته راشي او کله چه زه هغوی اوپيژنم نو بيا به يو سړې زما او د هغوی ترمينځه راوځي او هغوی ته به وائي چه دلته راشئ، زه به تپوس اوکړم چرته؟ هغه به وائي چه د جهنم طرف ته، قسم په الله زه به ترې تپوس اوکړم چه د هغوی احوال څه دي؟ هغه به وائي دا خلق ستاسو نه روستو په خپلو پوندو باندې واپس شوې وو، رسول الله ﷺ فرمائي پس زه نه وينم هغوی لره چه د هغوی نه به خلاصې بيا مومي مګر ډير لږ تعداد.

**قوله:** ﴿فَلَا أُرَاهُ يَخْلُصُ مِنْهُمْ إِلَّا مِثْلُ هَمَلِ النَّعَمِ﴾: يعني زما خيال نه دې چه هغوی به خلاص شي، مګر د بيکاره پريخودلې شوې اوښ په شان ډير کم!

﴿همل﴾: هغه څاروی او اوښ وغيره ته وائي چه هغه بيکار پريخودلې شي او د هغې څوک نګراني او خيال نه ساتلې کيږي، چه چرته تلل غواړي، چرته څريدل غواړي هلته څريږي، داسې څاروې هلاک او ضائع کيږي، عموما داسې څاروی ډير کم وي. په دې وجه دلته د دې نه قلت مراد دې چه د هغوی نه به د جهنم نه بچ کيدونکي خلق ډير کم وي. علامه عيني رحمه الله ليکي: ﴿اى لايخلص منهم من النار الا قليل﴾. [۳]

**د ترجمة الباب سره مناسبت:** په دې حديث کښې د حوض کوثر ذکر نشته، خو د مرتدينو ذکر دې او مخکښې چه کوم احاديث تير شوې دي په هغې کښې د حوض او مرتدينو دواړو ذکر دې، په دې وجه براه راست خو د دې د ترجمة الباب سره څه مناسبت نشته، خو د حوض

[۱] فتح الباری: ۵۷۷/۱۱، وعمدة القاری: ۲۱۹/۲۳، وارشاد الساری: ۵۸۶/۱۳
[۲] فتح الباری: ۵۷۷/۱۱، وعمدة القاری: ۲۱۹/۲۳، وارشاد الساری: ۵۸۶/۱۳
[۳] د ذکر شوې تفصيل دپاره اوګورئ: عمدة القاری: ۲۱۹/۲۳

والا احادیثو سره د دې مطابقت دې. نود هغې د مناسبت د وجې نه نې هم ددې سره مطابقت راشي (١)

﴿خرج رجل﴾: د دې نه مراد فرشته ده چه د انسان په صورت کښې به ظاهريږي (٢)

[۲۲۱۶] حَدَّثَنِي إِبْرَاهِيمُ بْنُ الْمُنْذِرِ حَدَّثَنَا أَنَسُ بْنُ عِيَاضٍ عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ عَنْ خُبَيْبِ عَنْ حَفْصِ بْنِ عَاصِمٍ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رضي الله عنه أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صلى الله عليه وسلم قَالَ «مَا بَيْنَ بَيْتِي وَمِنْبَرِي رَوْضَةٌ مِنْ رِيَاضِ الْجَنَّةِ، وَمِنْبَرِي عَلَى حَوْضِي». [ر: ۱۱۳۸]

د سیدنا ابوهریره رضی الله عنه نه روایت دې چه رسول الله ﷺ اوفرمائیل: زما د کور او منبر ترمینځه د جنت د باغونو نه یو باغ او زما منبر زما په حوض باندې دې.

﴿منبری﴾: د منبر نه مراد یا خو دنیا والا منبر دې کوم چه په مسجد نبوی ﷺ کښې نصب دې او یا د آخرت منبر مراد دې کوم چه به د حوض کوثر سره نصب کولې شي. (٣)

د رسول الله ﷺ د کور او په مسجد نبوی کښې چه د منبر ترمینځه کوم ځائې دې. هغه ته

﴿روضة الجنة﴾ وائی. یعنی د جنت باغ دې ته یا خو په دې وجه د جنت باغ وئیلې شي چه بعینه هم دا حصه به د جنت طرف ته منتقل شي او یا مطلب دا دې چه په دې کښې عبادت به انسان لره د جنت طرف ته منتقل کړي. (٤)

[۲۲۱۷] حَدَّثَنَا عَبْدَانُ أَخْبَرَنِي أَبِي عَنْ شُعْبَةَ عَنْ عَبْدِ الْمَلِكِ قَالَ سَمِعْتُ جُنْدَبًا قَالَ سَمِعْتُ النَّبِيَّ - صلى الله عليه وسلم - يَقُولُ «أَنَا فَرَطُكُمْ عَلَى الْحَوْضِ».

د سیدنا جندب رضی الله عنه نه روایت دې چه ما د رسول الله ﷺ نه واوریدل. هغوی اوفرمائیل: زه به ستاسو نه مخکښې په حوض کوثر باندې موجود یم.

د امام بخاری رحمه الله شیخ عبدان دې، عبدان لقب دې، او د هغوی نوم عبدالله بن عثمان دې، دوی د خپل پلار نه نقل کوی، د هغوی د پلار نوم عثمان بن حبلة دې. (٥)

[۲۲۱۸] حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ خَالِدٍ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ يَزِيدَ عَنْ أَبِي الْخَيْرِ عَنْ عُقْبَةَ - رضي الله عنه - أَنَّ النَّبِيَّ - صلى الله عليه وسلم - خَرَجَ يَوْمًا فَصَلَّى عَلَى أَهْلِ أُحُدٍ صَلاَتَهُ عَلَى الْمَيِّتِ، ثُمَّ انْصَرَفَ عَلَى الْمِنْبَرِ فَقَالَ « إِنِّي فَرَطٌ لَكُمْ، وَأَنَا شَهِيدٌ عَلَيْكُمْ، وَإِنِّي وَاللَّهِ لأَنْظُرُ إِلَى حَوْضِي الآنَ، وَإِنِّي أُعْطِيتُ مَفَاتِيحَ خَزَائِنِ الأَرْضِ - أَوْ مَفَاتِيحَ الأَرْضِ - وَإِنِّي وَاللَّهِ مَا أَخَافُ عَلَيْكُمْ أَنْ تُشْرِكُوا بَعْدِي، وَلَكِنْ أَخَافُ عَلَيْكُمْ أَنْ تَنَافَسُوا فِيهَا». [ر: ۱۲۷۹]

---

(١) عمدة القاری: ۲۳/۲۱۹

(٢) عمدة القاری: ۲۳/۲۱۹، وفتح الباری: ۱۱/۵۷۸

(٣) عمدة القاری: ۲۳/۲۲۰

(٤) عمدة القاری: ۲۳/۲۲۰

(٥) عمدة القاری: ۲۳/۲۲۰

د سيدنا عقبة بن عامر رضي الله عنه نه روايت دې چه رسول الله ﷺ بهر تشريف راوړلو او په شهداء احد باندې ئې داسې مونځ اوکړو څنګه چه په مړي باندې مونځ کولې شي. بيا ئې منبر ته تشريف راوړلو او وې فرمائيل : زه به ستاسو نه مخکښې ځم او په تاسو به ندې به ګواه يم او زه به والله! د خپل حوض طرف ته دې وخت کښې هم ګورم. او ماته د زمکې د خزانو کنجيانې راکړې شوې دی. يا ئې اوفرمائيل چه، د زمکې کنجيانې راکړې شوې دی. والله! زه ستاسو باره کښې د دې نه نۀ ويريږم چه تاسو به شرک اوکړئ. خو زه د دې نه ويريږم چه تاسو به د دنيا دپاره د يو بل نه د مخکښې کيدو کوشش کوئ.

په سند کښې د يزيد نه مراد يزيد بن ابى حبيب دې، چه د هغوى کنيت ابو رجاء دې. ابو حبيب د سويد کنيت دې او د ابوالخير نوم مرثد بن عبدالله دې.

﴿مرثد﴾: د ميم په فتحې او د راء په سکون او د ثاء په فتحې سره دې.

[٦٢١٩] (١) حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ حَدَّثَنَا حَرَمِيُّ بْنُ عُمَارَةَ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ مَعْبَدِ بْنِ خَالِدٍ أَنَّهُ سَمِعَ حَارِثَةَ بْنَ وَهْبٍ يَقُولُ سَمِعْتُ النَّبِيَّ - صلى الله عليه وسلم - وَذَكَرَ الْحَوْضَ فَقَالَ «كَمَا بَيْنَ الْمَدِينَةِ وَصَنْعَاءَ

وَزَادَ ابْنُ أَبِي عَدِيٍّ عَنْ شُعْبَةَ عَنْ مَعْبَدِ بْنِ خَالِدٍ عَنْ حَارِثَةَ سَمِعَ النَّبِيَّ - صلى الله عليه وسلم - قَوْلَهُ حَوْضُهُ مَا بَيْنَ صَنْعَاءَ وَالْمَدِينَةِ.

فَقَالَ لَهُ الْمُسْتَوْرِدُ أَلَمْ تَسْمَعْهُ قَالَ الأَوَانِي . قَالَ لاَ . قَالَ الْمُسْتَوْرِدُ تُرَى فِيهِ الآنِيَةُ مِثْلَ الْكَوَاكِبِ.

د سيدنا حارثه بن وهب رضي الله عنه نه روايت دې چه هغوى د رسول الله ﷺ نه واوريدل، رسول الله ﷺ د حوض ذکر اوکړو او وې فرمائيل چه (هغه به دومره لوئې وی، څومره چه د مدينې او د صنعاء ترمينځه مزل دې.

او ابن ابى عدى د شعبه په واسطې سره د سيدنا حارثه رضي الله عنه نه دا اضافه نقل کړه. چه هغوى د رسول الله ﷺ نه دا ارشاد واوريدلو چه د رسول الله ﷺ حوض به دومره اوږد وی څومره چه د صنعاء او د مدينې ترمينځه مسافت دې. په دې باندې هغوى ته مستورد رحمه الله اووې چه آيا تاسو د رسول الله ﷺ نه د هغه حوض د لوښو متعلق اوريدلې دي؟ هغوى اوفرمائيل : نه! مستورد اووې په هغې کښې به لوښى داسې په نظر راځى لکه د آسمان ستورى (په کثرت سره پړقيدونکى)

**قوله:** ﴿وَزَادَ ابْنُ أَبِي عَدِيٍّ﴾: د ابن ابى عدى نوم محمد بن ابراهيم دې، ابو عدى د

(١) اخرجه مسلم فى الفضائل، باب : اثبات حوض نبينا صلى الله عليه وسلم وصفاته: رقم ٢٢٩٨
(كما بين ... ما بين) المراد بيان سعته وطول ابعاده، كما مر فى الحديث (٦٢٠٦). (الاوانى) جمع انية، والانية جمع اناء، وهو الوعاء، والمراد : الكؤوس التى يشرب بها من الحوض. (مثل الكوكب) : النجوم فى السماء كثرة وضياء.

